محقق جدید ایډیشن

# معارف القرآن

جلد ۱

پښتو

تالیف

مفتی اعظم پاکستان مولانا محمد شفیع رحمۃ اللہ علیہ

مع

# آسان ترجمه قرآن

حضرت مولانا مفتی محمد تقی عثمانی صاحب مدظله

مترجم

## حضرت مولانا شاه فیصل صاحب

فاضل وفاق المدارس امداد العلوم وجامعه اسلامیه چارسده

**خصوصیات مع تسهیلات واضافات**

① هر عبارت ته په حاشیه کښې حواله ورکول ② آسان ترجمه قرآن از مفتی محمد تقی عثمانی مدظله ③ تکی په تکی او روانه ترجمه ④ د خلاصه تفسیر په مینځ کښې قرآنی آیاتونه لیکل ⑤ په حاشیه کښې د طیر تفسیر شده آیاتونو تفسیر ⑥ د عربی او فارسی د اشعارو په پښتو کښې ترجمه ⑦ د اختلاف په صورت کښې یوسفزئ پښتو سره قندهاری الفاظ لیکل


فیصل کتب خانه (مدینه مارکیټ)

محله جنگی قصه خوانی بازار پیښور {۰۳۲۱-۹۰۹۱۸۳۵}

دکتاب نوم : معــارف القــرآن پــښتو محقــق ایډیــشن

مؤلف : حضرت مولانا مفتي محمد شفیع صاحب رحمة الله علیه
مفتي اعظم پاکستان

مترجم : مولانا پروفیسر (الباحث في الدکتوراه) شاه فیصل
فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم، جامعه اسلامیه چارسده

خپرونکی : فیصل کتب خانه محله جنګی

موبائیل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

**د ملاویدو پتې :- د فیصل کتب خانې نه سوا**

- مکتبه روغانیول جلال آباد
- رحیمی کتب خانه خوست
- نعمت کتب خانه کابل
- جدید اسلامی کتب خانه خوست
- المصباح کتب خانه کابل
- انصاف کتب خانه جلال آباد
- حرم کتب خانه کابل
- شریف الله کتب خانه کابل
- فلاح کتب خانه جلال آباد
- موسۍ مبارک کتب خانه غزنی
- مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
- واحدی کتب خانه خوست
- مکتبه رحمانیه قندهار
- دعوت کتب خانه جلال آباد
- تقوی کتب خانه جلال آباد
- حقانیه کتب خانه ګردیز
- مسلم کتب خانه جلال آباد
- مکتبه نعمانیه غزنی
- ګودر کتب خانه جلال آباد
- مسلم کتب خانه خوست
- حاجی سردار کتب خانه کابل
- مکتبه رشیدیه کابل

# فهرست مضامين

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## پاره نمبر [۱]

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|
| | د یو شبهې جواب | ۱۱۴ |
| | دآیتونو ترون | ۱۲۰ |
| | د روحاني انو جسماني بیمارو تعریف | ۱۲۰ |
| | د صحیح ایمان معیار څه دي؟ | ۱۲۱ |
| | د منافقانو رویه د مسلمانانو سره | ۱۲۱ |
| | کفراونفاق یواځې دحضور ﷺ په زمانه کښې وواوکه اوس هم شته | ۱۲۲ |
| | دایمان اوکفرحقیقت | ۱۲۳ |
| | دکفراو ایمان ضابطه | ۱۲۳ |
| | یوه شبه لرې کول | ۱۲۳ |
| | دروغ ډیر خراب څیز دي | ۱۲۴ |
| | انبیاؤ او اولیاؤسره بدسلوک کول الله تعالی سره بدسلوک کول دی | ۱۲۴ |
| | د دروغو ونیلو وبال | ۱۲۴ |
| | داصلاح او فساد تعریف او دمصلح اومفسد پیژندګلو | ۱۲۴ |
| | د فسادونو ذرائع او سد باب | ۱۲۵ |
| | دآیتونو ترون | ۱۲۷ |
| | د انسانانو د تقسیم او ویش د مذهب اعتبار سره | ۱۲۷ |
| | دچاعمل دهغه دنجات اوجنت یقیني سبب نه دي | ۱۳۲ |
| | یواځې دتوحید عقیده دنیاکښې دامن اوامان سکون اواطمینان ضمانت ورکوي | ۱۳۲ |
| | دمحمد ﷺ د پیغمبرئ ثابتول دقرآني اعجازپه رڼا کښې | ۱۳۳ |
| | دآیتونوترون اودمضمون خلاصه | ۱۳۴ |
| | د نورومعجزو په مقابله کښې د قرآن پاك د تخصیص وجه | ۱۳۵ |
| | یوه شبه او دهغې جواب | ۱۳۲ |
| | قرآن کریم ترقیامته پورې پاتې کیدونکې یوژوندئ معجزه ده | ۱۳۲ |
| | دقرآني اعجازتشریح | ۱۳۷ |
| | دقرآني اعجازوجوهات | ۱۳۷ |
| | دقرآني اعجازدویمه وجه | ۱۳۹ |
| | کافرانو د ډیرو هلو ځلو باوجود د قرآن پاك چیلنج قبول نه کړو | ۱۳۹ |
| | د رسول الله ﷺ او دکلام الله متعلق د کافرانو سردارانو مشوره او رائې | ۱۴۰ |
| | د حضرت ابو ذر ﷺ د ایمان راوړو واقعه | ۱۴۱ |
| | د قیس بن نسیبه د ایمان راوړلو واقعه | ۱۴۲ |
| | د کفارو سردارانو دقرآن د آوریدو کیفیت | ۱۴۳ |
| | دریمه وجه | ۱۴۴ |
| | څلورمه وجه | ۱۴۴ |
| | پنځمه وجه | ۱۴۴ |
| | شپږمه وجه | ۱۴۴ |

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|
| | په کلام کښې دلفظي بدلون راوستوشرعي حکم | ۲۲۲ |
| | دیهودودهمیشه ذلت اوخوارئ دتاپې مطلب اوداسرائیلودموجوده حکومت باره کښې دشبهې اوددې دجواب بیان | ۲۲۸ |
| | د یوې شبهې ازاله | ۲۳۲ |
| | دیني معاملاتوکښې داسې یوحیله جوړول حرام دی چه ورسره اصلي حکم شرعي باطل شي | ۲۳۴ |
| | دیهودودشکلونودړانولو واقعه | ۲۳۴ |
| | دوران شوی شکلونوخاوندانونسل نه چلیږي بلکه بیخي ختمیږي | ۲۳۵ |
| | د خلود فی النار ضابطه | ۲۵۱ |
| | تعلیم او تبلیغ کښې سخت کلامي کافرو سره هم صحیح نه دی | ۲۵۳ |
| | یوه شبه او دهغې جواب | ۲۷۱ |
| | د جادوسحراو معجزو مینځ کښې فرق واضح کولوکار یې دانبیاء کرامو نه ولې وانغستو؟ | ۲۷۷ |
| | د فرښتو کار او عمل | ۲۷۷ |
| | دخلقو د فرښتو نه د سحر زدکړه | ۲۷۸ |
| | د پوهې دپاره یو مثال | ۲۷۸ |
| | دسحرحقیقت | ۲۷۸ |
| | دسحرقسمونه | ۲۷۹ |
| | ړومبی قسم دسحر | ۲۷۹ |
| | د سحر دویم او دریم قسم | ۲۸۰ |
| | په سحراومعجزه کښې فرق | ۲۸۱ |
| | آیاپه پیغمبرانو | ۲۸۲ |
| | دسحرشرعي احکام | ۲۸۲ |
| | په احکام الهیه کښې دنسخ حقیقت | ۲۸۸ |
| | جاهلانه شبهې | ۲۸۸ |
| | دنسخ په مفهوم کښې دمتقدمینواومتاخیرینوپه اصطلاحاتوکښې فرق | ۲۸۹ |
| | دیهودو او نصاراؤ دعوې او حقیقت | ۲۹۲ |
| | نیک عمل بهٔ هم هغه قابل قبول وی کوم چې د قرآن پاك او سنت موافق وی | ۲۹۲ |
| | نسلي مسلمان وی که یهودی یانصراني وی دالله تعالی په نزد ددې هیڅ قیمت نشته اصل څیز ایمان اونیک عمل دې | ۲۹۷ |
| | صرف په دعوی سره څوك مسلمان نشي کیدې | ۲۹۷ |
| | یو سوال او دهغې حل | ۲۹۸ |
| | دکوم عمل دپاره چې کوشش او فکر کیږي ترقي هم په هغې حاصلیږي | ۲۹۹ |
| | دکافرانو نه مونږ څه زده کړل | ۲۹۹ |
| | فوائد از بیان القرآن | ۳۰۲ |
| | دبیت المقدس بې حرمتي او خرابي | ۳۰۳ |
| | په آدابو کښې ټول جماعتونه برابر دی | ۳۰۳ |

| صفحه | مضمون | شمیره |
|---|---|---|



## پاره نمبر [۲]

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

# د اضافي تشريحاتو فهرست [از مترجم]

..............

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله رب العالمين والصلاة والسلام على سيد المرسلين وعلى آله الطيبين الطاهرين

اما بعد:- دا خبره ټولو علماء كرامو ته معلومه ده چې د عامو مسلمانانو دپاره د قرآن پاك په تفاسيرو كښې چې معارف القرآن د مفتي اعظم پاكستان مولانا محمد شفيع رحمه الله تفسيرته كوم شهرت او مقبوليت حاصل دې زما په خيال دا مقبوليت بل تفسيرته په موجوده وخت كښې نه دې حاصل هم دا وجه ده چې د دې په مختلفو ژبو كښې ترجمې شوې دى لكه فارسى، انګريزى، او پښتوكښې بيا په پښتو كښې د دې ترجمې يوې مكتبه والا نه ده كړې بلكه ګڼومكتبو والا كړې ده د دې تقاضا خو دا ده چې زمونږ ادارې فيصل كتب خانه د دې ترجمه نه كوله بلكه هم په دغه تراجمو يې اكتفاء كړې وه خوزما په زړه كښې د معارف القرآن په باره كښې د تسهيل اوبعضې اضافاتو اراده وه كوم چې نه په اردو كښې شته اونه په نورو تراجمو كښې د دې وجې مې د دې د ترجمې اراده اوكړه او اميد لرم چې الله تعالى به دې ته هم د دې خصوصياتو په وجه مقبوليت وركړى لكه څنګه چې اول ځل ما احقر شاه فيصل د اشرف الهدايه ترجمه په پښتو ژبه كښې اوكړه خو په هغې كښې مې د خپل طرفه څه تسهيلات او اضافات شامل كړل د هغې په وجه هغې ته الله تعالى مقبوليت وركړل اګرچې روسته نورو مكتبو والا هم د اشرف الهدايه ترجمه اوكړه ليكن د طلباؤ اوعلماؤ په مينځ كښې چې داحقر شاه فيصل ترجمې ته كوم مقبوليت ملاؤ شوهغه د بل چا په نصيب كښې نشو (اوس دغه د اشرف الهدايه ترجمه د نورو ډيرو خصوصياتو شموليت په وجه د تسهيل الهدايه په نوم مشهوره ده) زه اميد لرم چې زما دمعارف القرآن ترجمه به هم طلباء او علماء خوښه كړى كوم تسهيلات (آسانتياګانې) او اضافات چې ما د معارف په ترجمه كښې كړى دى هغه دا دى

① **تكى په تكى او روانه ترجمه**:- معارف القرآن كښې مفتي صاحب د شيخ الهند رحمه الله ترجمه لګولې ده ښكاره خبره ده چې د وخت تيريدو سره سره په ژبه كښې ضرور تبديلي راځى دغه ترجمه علمى ترجمه ده اوزمونږ د خلقو استعداد كمزوري دې د دې وجې ما خپله ترجمه كومه چې د ،،فهم القرآن،، په نوم چهاپ شوې ده د شيخ الهند رحمه الله د ترجمې په ځائې اولګوله كومه چې لفظي او بامحاوره ترجمه ده

② **دخلاصه تفسيرپه مينځ كښې آياتونه ليكل**:- په معارف القرآن كښې چې كومه خلاصه تفسيردې په هغې كښې قرآني آياتونه نشته بلكه صرف ترجمه او اضافى قيودات دى يوحافظ ته خو دا پته لګيدې شى چې دا ترجمه د فلانئ جملې ده اودا وريسى د بلې جملې ده خوغيرحافظ ترې په مشكله دا معلوموليې شى چې دا د فلانئ جملې ترجمه اوخلاصه تفسير دې خوغيرحافظ ته نشى لګيدې ما احقر په كښې د خپل طرفه دا آسانتيا پيدا كړې ده چې دهرې جملې څخه وړاندې مې دهغې قرآنى جمله ليكلې دې چې غيرحافظ ته هم په آسانتيا سره معلوميږى چې دا ترجمه د دې جملې ده

③ **د غيرتفسير شده آياتونو تفسير**:- تفسيرمعارف القرآن په اصل كښې د مفتى صاحب د ريډيو درس قرآن تحريري شكل دې كوم چې هغوى د عوامو په مطالبه باندې تحرير ته راوړلې وو اوبيا د معارف القرآن تكميل مفتى صاحب اكثر د بيمارئ په دوران كښې كړې دې د دې وجې بعضې آياتونه داسې دى چې په هغې كښې د تفسير ضرورت وو خو مفتى صاحب ترې د د دې وجې

وړه کړي ده چې د هغې آیاتونو تفسیر اووضاحت په ریډیو باندې ورته مناسب نه ښکاره کیدل لکه په سورة بقره کښې د حیض په باره کښې چې کوم آیت دې دوی په کښې هیڅ تفسیر نه دې کړې بلکه په خلاصه تفسیر یې اکتفاء کړې ده ځکه چې د حیض مسائل په ریډیو باندې بیانول په ورته مناسب نه ښکاریدل یا د بیمارئ په وجه به یې ترې اعراض کړې وی ما احقر شاه فیصل په هغې کښې د بعضې آیاتونو تفسیر لاندې په حاشیه کښې لیکلې دې

④ **داشعارو ترجمه**- په معارف کښې د عربئ اوفارسئ د اشعارو ترجمه نشته مونږ په پښتو کښې د دې دواړه قسمه اشعارو د ترجمې التزام اوکړو د دې دپاره چې عوام یې هم په معنی اومطلب پوهه شی

⑤ **د قندهاری ټکواضافه**- د پښتنو په سیمه کښې دوه قسمه پښتو ژبه رائجه ده قندهارئ او یوسفزئ په دې دواړه قسمه پښتو کښې بعضې ټکی داسې دی چې دیوبل ځخه بیخی مختلف دی د دې وجې یوسفزی په قندهارئ اوقندهاری په یوسفزئ پښتو نه پوهیږی مونږ په دې ترجمه کښې دهغه ټکو په قوسینو کښې قندهاری ټکی هم اولیکل کوم چې دیوسفزئ پښتو ځخه مختلف دی د دې دپاره چې زمونږ دمعارف ځخه د کوئټې چمن قندهار پښتانه اودغه شان دخیبرپختونخواه اوجلال آباد پښتانه هم فائده واخلی

**د نوی چهاپ مزید خصوصیات**

**دآسان ترجمه قرآن شاملول**- د معارف القرآن اوله ترجمه چې ما شروع کړې وه نو زه کراچئ ته تلې ووم اوهلته مې د مکتبه دارالعلوم د مدیرښاغلي مشتاق ستی صاحب سره ملاقات اوشو ما ورته د خپلې ترجمې خبر ورکړو نوهغوی راته اوفرمائیل چې مونږ معارف القرآن کمپیوټری نسخه چهاپ کوو په هغې باندې کارشروع دې په هغې کښې د شیخ الاسلام مفتی تقی عثمانی صاحب مدظله العالی آسان ترجمه قرآن شاملوو دهغه وخت ځخه زه په دې انتظار ووم چې کله دغه کمپیوټری نسخه مارکیټ ته راشی نو زه به هم په خپله پښتو ترجمه کښې دغه آسان ترجمه قرآن شاملوم ما چې د کوم سپرلی انتظار کولو هغه هم زما په ژوند کښې په ما باندې راغلو او هغه ورځ هم راغله چې مکتبة دارالعلوم ،معارف القرآن کمپیوټری نسخه چهاپ کړله اوپه هغې کښې ئې د مفتی صاحب آسان ترجمه قرآن شامله کړې وه هم د هغه ورځ ځخه ما د معارف القرآن پښتو فائل راواخستل اوځنګه چې مکتبة دارالعلوم معارف تیار کړې وو نو مونږ هم په کښې د مفتی صاحب آسان ترجمه قرآن شامله کړه دغه شان زمونږ په معارف کښې ځلور ترجمې جمع شوې ① ټکي په ټکی ترجمه، ② بامحاوره ترجمه ③ آسان ترجمه قرآن ④ خلاصه تفسیر ترجمه.

**دآسان ترجمه قرآن اهمیت**- هسې خو د قرآن پاک ډیرې ترجمې په مختلفوژبوکښې شوی دی خو ځومره چې دکوم مترجم علمی بصیرت زیات وی هغه هومره د هغوی ترجمه هم معیاری وی ځنګه چې د معارف القرآن مصنف مفتی محمد شفیع د خپل وخت مفتی اعظم وو دغه شان په موجوده وخت کښې په علمی دنیا کښې د هغوی د مایه ناز اوقابل فخرځوې مفتی محمد تقی صاحب مدظله العالی هم د خپل پلار پشان لوړ مقام دې بلکه زه خو دا وایم ځوی ئې د پلار ځخه هم اوچت مقام پیدا کړې دې ځکه چې پلار ئې د مفتی اعظم پاکستان په لقب ملقب وو او ځوی ته ئې دشیخ الاسلام لقب ملاؤ شوې دې بهرصورت مفتی تقی عثمانی د آسان ترجمه

قرآن په نوم باندې چې کومه ترجمه اوکړه د هغوی د علمیت په وجه په پوره پاکستان کښې ئې په لږ وخت کښې ډیر زیات شهرت او مقبولیت حاصل کړو، تردې چې په پښتو ژبه کښې ئې هم ترجمه اوشوه.مونږ هم د خپلې ادارې ،،دارالتالیف والتحقیق،، څخه په مخکنی چهاپ کښې ددې ترجمې اضافه اوکړه [1]

**د حوالو تخریج**- دا خبره د عالمانو او طالبانو په مینځ کښې منلې شوې ده چې موجوده وخت د تحقیق او ریسرچ دې.تفسیر خو لو یه خبره ده چې نن صبا د وعظ او تقریر په کتابونو کښې هم هغه کتاب ته ترجیح ورکولی شی کوم چې د حوالو په زینت ښائسته وی.لکه یو مثال زمونږ وړاندې دې د اردو فتاوی ،، *آپ کے مسائل اور ان کا حل*،، غیر محقق وه.او په پښتو کښې ددې ترجمه هم شوې وه.خو ددې څخه روسته هم دا فتاوی په تحقیقی شکل کښې چهاپ شوه.چې د هرې مسئلې حواله په کښې ورکړې شوې وه.نو په پښتو کښې محققه نسخه چهاپ شوه او کومو عالمانو او طالبانو چې غیر محققې نسخې اخستې وې هغوی دغه نسخې واپس کول غوښتل که واپس به نشوې نو بیا به ئې مجبوراً تحقیقی نسخې هم اخستلې.ددې څخه معلومه شوه چې په موجوده دور کښې هغه کتاب ته زیاته ترجیح ورکولې شی چې حوالې ورپه کښې وی.نو کله چې په اردو کښې تحقیقی معارف راغلو.ددې باوجود چې د غیر محقق او محقق معارف په قیمت کښې د دولسو سوو روپو (۱۲۰۰) فرق دې بیا هم عالمان او طالبان په ډیر شوق سره محققې نسخې اخلی.دغه شان مونږ هم محقق معارف چهاپ کړلو او د عالمانو او طالبانو بلکه د عوامو څخه امید ساتو چې زمونږ حوصله افزائی اوکړی او ددې محقق معارف په انتخاب کښې د شوق مظاهره اوکړی.

احقر مترجم شاه فیصل

تاریخ لسمه فروری کال دوه ذره نورلس

...

---

[1] ) دا اداره احقر شاه فیصل په کال ۲۰۰۳ عیسوی کښې قائمه کړې ده.په دې کښې مختلف عالمان او فاضلان د کمپوزنګ،ترجمې،تصحیح، انتخاب،تالیف او تصنیف په دیلی خدماتو کښې مشغول دی.ددې ادارې څخه تر اوسه پورې مختلف کتابونه د طباعت په زینت ښائسته شوی دی.لکه ① کشف الباری شرح صحیح بخاری.② فوز المبتدی بشرح مختصر القدوری③ افادات اعزازی شرح شمائل ترمذی④ علمی وعظونه او تقریرونه⑤ تحفه د واعظانو⑥ علمی تقریرونه⑦ معارف القرآن ⑧ اجمل الحواشی شرح اصول شاشی او اوس چې په کومو کتابونو کار شروع دې هغه دا دی ① تسهیل مرقات المفاتیح شرح مشکواة المصابیح عربی کوم کښې چې احقر شاه فیصل د خپلو ملګرو په مدد سره ښیږ خصوصیات اضافه کړی دی.② تسهیلات شرح مشکواة د پنځلس هغه خصوصیاتو سره کوم چې د مشکواة په نورو شروحاتو کښې نشته ③ فتاوی هندی یعنی فتاوی عالمګیری عربی د شپږو هغه خصوصیاتو سره کوم چې تر اوسه پورې چهاپ شوی عالمګیری نسخو کښې نشته.④ فوائد الجلالین للقیودات تفسیر الجلالین ⑤ د فقهې نوادرات ترجمه فقهی لطائف ⑥ فضل المسجود شرح سنن أبي داؤد ⑦ سراج المنتهي شرح جامع الترمذي دغه شان په درسیاتو هم د احقر په نګرانۍ د نوې خصوصیاتو سره کار شروع دې.دالله رب العزت څخه سوال دې چې دې ادارې ته ترقی او مقبولیت ورکړی.آمین.

## مقدمة المعارف

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ الْقُرْاٰنَ الْكَرِيْمَ عَلٰى عَبْدِهِ الْكِتٰبَ وَلَمْ يَجْعَلْ لَّهٗ عِوَجًا والصلاة والسلام على من رغب في تعليم القرآن وتعلمه ولم يجعل له حدا،

**وحي اوددې حقيقت:** قرآن كريم چونكه په نبي ﷺ د وحى په ذريعه نازل شوې دې نوددې وجې د ټولونه اول د وحى په باره كښې څو خبرې پيژندل ضرورى دى.

**د وحي ضرورت:** هرمسلمان ته پته دهر چې الله ﷻ انسان دې دنيا ته د امتحان دپاره راليږلې دې. او په ده باندې ئې څه فرائض مقرر كړي دى. اوټول كائنات ئې دده په خدمت كښې لګيا كړي دى. نو دنياته د راتلونه پس دانسان دپاره دوه كارونه ضرورى دى. يو دا چې ددې كائناتو نه كوم چې د ده نه څلور واړه طرفونوته پراته دى. ددې نه صحيح صحيح كار واخلى. دويم دا چې دا كائنات په خپل استعمال كښې راولى. او چې دالله ﷻ داحكامو خيال په كښې اوساتى. او داسې څه حركت اونكړى. چې دالله ﷻ درضا خلاف وى.

**دعلم ضرورت:** [ازمترجم] ددې دواړوكارونو دپاره ده ته د علم ضرورت دې. څكه چې ترتر څور پورې ده ته دا معلومه نه وى. چې ددې كائناتو حقيقت څه دې؟ددې دفلانى څيزخواص څه دى؟ددې نه څنګه فائده اخستلې شى. نوترهغه وخته پورې دې د دنيا هيڅ يوڅيزدخپلې فائدې دپاره نشى استعمالولې.دغه شان چې تر څور پورې ده ته دا معلومه نه وى. چې دالله ﷻ رضا څه ده؟هغه كوم كارونه خوښوى.؟ او كوم كارونه نه خوښوى؟ ترهغه وخته پورې د هغه دپاره دالله ﷻ د رضا مطابق اوسيدل ممكن نه دى.

**دعلم د تحصيل درې ذرائع:** [ازمترجم] نوالله ﷻ دانسان پيدا كولو سره سره درې څيزونه داسې پيدا كړي دى چې دهغې په ذريعه ده ته دپورتنو خبرو علم كيديشى. [چې دكائناتو نه به څنګه فائده اخلى. اودالله ﷻ د رضا حصول به څنګه كوى؟ [ازمترجم]① يو دانسان حواس يعنى سترګې غوږونه، پوزه،خوله اولاسونه پښې ② دويم عقل ③ او دريم وحى. انسان ته زياتې خبرې دخپلو حواسو په ذريعه معلوميږى. او ډيرې دعقل په ذريعه اوكومې خبرې چې په دې دواړو ذرائعو باندې نشى معلومې دې، نو د هغې علم د وحى په ذريعه باندې وركولې شى.

**دعلم په ذرائعو كښې ترتيب** [ازمترجم] دعلم په دې دريو ذرائعو كښې ترتيب څه داسې دے چې د هر يو خپل حد اومخصوص دائره كار دې. چې دهغې نه وړاندې كار نه كوى. نو كوم څيزونه چې انسان ته دحواسو په ذريعه معلوميږى. دهغې علم صرف دعقل په ذريعه نشى معلومې دې. مثلا اوس ماته مخامخ يوانسان ناست دې. ماته دخپلو سترګو په ذريعه دا معلومه شوه.چې دا انسان دې. هم سترګو ماته دا اوخودلو.چې دده رنګ بادامى دې. اوتن دا يئ پلن دې. ويخ نه يئ تور دى. شوندې ئې نرئ دى. اومخ ئې كتابى دې ليكن كه هم دا خبرې زه خپل حواس بيكاره كړم.او دعقل په ذريعه معلومول غواړم.مثلا چې سترګې بندې كړم.او دا اوغواړم.چې ددې انسان رنګ اودده داندامونو صحيح صحيح جوړخت څنګه دې؟ او دده د سر نه تر پښو پورې صحيح شكل ماته صرف په خپل عقل سره شى معلوم شى. نودا ناممكنه ده.

**د عقل دائره كار:** [ازمترجم] دغه شان چې د كوموڅيزونوعلم په عقل سره حاصليدې شى.نو هغه

صرف په حواسو نه معلومیږي. مثلا د دغه کس په باره کښې ماته دا هم معلومه ده چې د ده به خامخا مور هم وي. دغه شان راته هم علم دې چې دې به چا پیدا کړې وي. اګرچې په هغه وخت کښې نه دهغه مور ماته مخامخ شته او نه دهغه پیدا کونکې زه وینم لیکن زما عقل دا ښائي چې داکس په خپله نشي پیداکیدې اوس که داعلم دعقل په ځائې دخپلو سترګو په ذریعه حاصلول غواړم نودا ممکن نه ده ځکه چې دهغه دتخلیق اوپیدائش منظر زما د سترګو وړاندې نه دې غرض دا چې ترکومې پورې د حواس خمسه تعلق دې هلته عقل څه راهنمائي نه کوي. اوپه کوم ځائې کښې چې حواس خمسه بې کاره شي نوهلته کښې عقل کار شروع کړي لیکن ددې عقل راهنمائي هم غیر محدود نه ده بلکه دا هم چې یو ځائې ته لاړ شي. اواودریږي.

**د وحی دائره کار** [ازمترجم] او ډیرې خبرې داسې دی چې نه هغه دحواسو په ذریعه حاصلیدې شي. اونه دعقل په دریعه مثلا د دغه کس په باره کښې خو عقل دا اوخودل چې دے چا پیدا کړیدې لیکن دا سړې یئ ولې پیدا کړیدې په ده باندې دالله ﷻ د طرف نه څه فرائض دي؟ دده کوم کار دالله ﷻ خوښ دې اوکوم کار یې ناخوښه دې دا سوالونه داسې دی. که عقل او حواس یوځائې شي. نوهم ددې جراب نشي ورکولې انسان ته ددې سوالاتو دجوابونودپاره چې الله ﷻ کومه ذریعه پیدا کړې ده.د هغې نوم "وحی" دې.

او ددې طریقه دا وي چه الله تعالی په خپلو بندګانو کښې څوک منتخب کوي او خپل پیغمبر ئې ګرځوي او په هغه باندې خپل کلام نازلوي. هم دې کلام ته ''وحی،، وائي.

**د علم په ذرائعو کښې د وحی عظمت** [ازمترجم] ددې نه معلومه شوه چې وحی د انسان دپاره هغه اوچته ذریعه دعلم ده چې ده ته دده د ژوند متعلق د هغه سوالونو جوابونه ورکوي. چې هغه د عقل او حواسو په ذریعه نشي حل کیدې لیکن دهغې علم حاصلول د ده دپاره ضروري دی. د پورتنې وضاحت نه دا هم معلومه شوه چې صرف عقل او مشاهده دانساني رهنمائې دپاره کافي نه ده بلکه دده د هدایت دپاره دالله ﷻ وحی یو اهم ضرورت دې اوچونکه بنیادي طور د وحی ضرورت په هغه ځائې کښې راځي. په کوم ځائې کښې چې عقل کار نه کوي. نوځکه دا ضروري نه ده چې دوحی دهرې خبرې ادراک دې په عقل سره اوشي. لکه څنګه چې د یوځیز رنګ معلوموول د عقل کار نه دې بلکه دحواسوکار دې دغه شان د ډیرو دیني معتقداتو علم حاصلول دعقل په ځائې د وحی منصب دې اودهغې د ادراک دپاره صرف په عقل باندې بهروسه کول ټیک نه دی.[۱]

او معاذالله هغه ماده پرستو خلقو چې هغوی د سر نه د الله ﷻ د وجود نه منکر دی. هغوی سره خو د وحی په مسئله باندې خبرې کول بالکل فضول دی. ځکه څوک چې دالله ﷻ د وجود نه منکر وي. نو دهغه دپاره ممکن نه دی چې هغه د وحی په حقیقت په کهولاو زړه سره غور اوکړي. اوپه سراو سترګو دا تسلیم کړي. هغه سره خو د ټولو نه وړاندې د الله ﷻ په وجود باندې دخبرو کولو ضرورت دې باقي پاتې شوهغه کسان چې د الله ﷻ د وجود قائل دی. نو دهغوی دپاره دوحی عقلي ضرورت ددې امکان اوددې حقیقي وجود پیژندل څه ګران نه دی.

---

[۱] دلته کښې د وحی ضرورت ته ډیر اجمالي اشارې اوشوې. په دې موضوع باندې دتفصیلي بحث دپاره " تمهید ابی شکورسالمي رحمه الله صفحات ۶۸ تا ۷۲ اود مولانا شمس الحق افغاني رحمه الله کتاب "علوم القرآن" صفحات ۳ تا ۱۸ مطبوعه اداره مطبعه فاروقیه بهاولپور کال ۱۳۸۹هجري اوګورئ.

**د عاقل فعل د حکمت نه خالي نه وي** [ازمترجم] که ته دا یقین ساتې چې دا کائنات یو قادر مطلق پیدا کړي دي.او هم هغه دا مربوط اومستحکم نظام په خپل حکمت بالغه سره چلوي. اوهم هغه انسان د یو خاص مقصد دپاره دلته رالیږلې دې نوبیا دا څنګه ممکن ده.چې انسان به یې پیدا کړي وي. او داسې به یې په تیاره کښې پریخې وي. اوهغه ته به دومره قدرې نه ښائي. چې دې دڅه دپاره دے دنیا ته راغلې دې؟ دلته کښې دده څه ذمه وارئ دی. اودده څه منزل مقصود دې. او دې به څنګه خپل ژوند تیروي. آیا یوکس چې عقل اوحواس ئے کار کوي. داسې کولې شي. چې د څه خاص مقصد دپاره خپل نوکر په سفر باندې اولیږي. او هغه ته نه په سفر د روانیدو په وخت کښې د سفر مقصد اوښائي. او نه بیا روستو په څه ذریعه هغه خبر کړي. چې دې د څه کار دپاره لیږلې شوې دې او دسفر په دوران کښې به دده ذمه واري څه وي؟کله چې یو معمولي انسان داسې حرکت نشي کولې.نو بیا د هغه پاك ذات په باره کښې دا تصور څنګه کیدیشي. چې دهغه په حکمت بالغه د کائناتو دا ټول نظام چلیږي. آخر دا څګه ممکن ده چې کوم ذات سپوږمۍ، نمر آسمان، زمکه، ستوري او د سیارو دا عقل حیرانونکي نظام پیدا کړیدې. هغه به خپلو بندګانو ته د پیغام رالیږلو داسې څه انتظام نشي کولې چې دهغې په ذریعه انسانانو ته دهغوي د ژوند دمقصد په باره کښې هدایات ورکړي. که د الله ﷻ په حکمت بالغه باندې ایمان وي. نوبیا به دا منل هم ضروري وي. چې هغه خپل بندګان په تیاره کښې نه دي پریخي. بلکه د هغوي د لار خودلو دپاره به یې څه باقاعده نظام ضرور جوړ کړې وي. بس د لار خودلو ددې باقاعده نظام نوم وحي او رسالت دې.

**عدم مشاهده دلیل د عدم وجود نه دې** [ازمترجم] ددې نه ښکاره ثابته شوه. چې "وحي" صرف دیني اعتقاد نه دې .بلکه یو عقلي ضروت دې. ددې نه انکار په حقیقت کښې د الله ﷻ د حکمت بالغه نه انکار دې.

**په نبي ﷺ دوحي طریقې**: د وحي او رسالت دا مقدّسه سلسله د دواړو جهانونو په سردار محمد مصطفی ﷺ باندې ختمه شوه، اوس به نه په یو انسان باندې وحي نازلیږي او نه ددې ضرورت شته په نبي ﷺ هم په مختلفو طریقو وحي نازله شوې ده.دصحیح بخاري په یو حدیث کښې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي. چې یوځل حضرت حارث بن هشام [۱] د نبي ﷺ نه تپوس اوکړلو.چې په تاسو به وحي څنګه راتله؟ نونبي ﷺ اوفرمائیل:[**أحيانا يأتيني مثل صلصلة الجرس وهوأشده علي فيفصم عني وقد وعيت ما قال وأحيانا يتمثل لي الملك رجلا**][۲]کله خو به ماته د ټلې آواز اورولې شو.او د وحي دا صورت زما دپاره د ټولو نه زیات سخت وو.بیا چې کله دا سلسله ختمه شوه.نو چې څه آواز به وو.هغه به ماته یاد شوې وو.اوکله به فرښته ماته مخامخ د سړي په شکل کښې راتله. [صحیح بخاري ج۱ ص۲]

په دې حدیث کښې نبي کریم ﷺ د وحي آواز لره د ټلې آواز سره تشبیه ورکړې ده.

---

[۱] حضرت حارث بن هشام رضي الله عنه په اوچتو صحابه کرامو کښې دې. دمکه دفتح په موقعه یې اسلام راوړلې او په کال ۱۵هجري کښې دشام په فتح کولو کښې شهید شوې وو.[القسطلاني:ارشادالساري ۱ ۵۷ بولاق مصر کال ۱۳۲۳هجري]

[۲] صحیح بخاري ۲/۱، اصح المطابع کراچي

شیخ حضرت محی الدین ابن عربی رحمة الله نه دديِ تشبیه کوم مطلب نقل کړېدې. هغه د ذکر شوو ټولوتوجیهاتونه زیات لطیف دې. دهغوی وینا دا ده چې دا تشبیه صرف په دوو اعتبارو سره ورکړې شوې ده.یوخو دآواز تسلسل سره وی.لکه څنګه دټلې آوازمسلسل وی.اونه اودرېږی. اودویم په دې اعتبار سره چې ټلې مسلسل ټنګیږی. نو اوریدونکی ته عام طور د هغې د آواز طرف متعین کول ګران وی. ځکه چې د هغې آواز د هر طرف نه محسوسیږی. اوالله ﷻ چونکه د جهت اومکان نه پاك دې. نو ځکه د کلام الهی دا خصوصیت دے چې د هغه آو[از د یوطرف نه نه راځی. بلکه د هرطرف نه راځی. ددې کیفیت صحیح ادراك د مشاهدې نه بغیر ممکن نه دې. لیکن دا خبره عامو ذهنونو ته د نزدې راوستلو دپاره ددې تشبیه نبی ﷺ د ټلې د آواز سره ورکړې ده.[۱]

**د دې قسم د سختوالي وجه:** [ازمترجم] کله چه به په دې طریقه نبی علیه السلام باندې وحی نازلیده نو داپه نبی ﷺ د ټولو نه زیاته سخته وه. ددې سره به په نبی ﷺ زیات بوج پریوتلو.[۲] حضرت عائشه رضي الله عنها د پورتنی حدیث په آخر کښې فرمائی.چې [ولقدرأیته ینزل علیه الوحی فی الیوم الشدید البرد فیفصم عنه وإن جبینه لیفصد عرقاً][۳] ما د سخت ژمی په ورځ نبی ﷺ د وحی نازلیدو په وخت کښې لیدلي وو.[چې په داسې یخنۍ کښې هم] چې کله به د وحی سلسله ختمه شوه.نو د نبی ﷺ د تندی نه به خولې بهیدلې.په یو بل روایت کښې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی.چې کله به په نبی ﷺ وحی نازلیدله.نو د نبی ﷺ ساه به بندیدله.او مخ مبارك به یې بدلیدو.اود کهجورے د شاخ پشان به زیړ شو.مخامخ غاښونه به یې د یخنۍ نه رپیدل.او په نبی ﷺ به دومره خوله راتله.چې دهغې څاڅکی به د ملغلرو پشان څڅیدل.[۴]

**دحضرت زید بن ثابت واقعه:** [ازمترجم] دوحی په دې کیفیت کښې به بعضې وخت دومره سخت والی پیدا شو.چې نبی ﷺ به په هغه وخت کښې په کوم ځاروی سور وو.نو هغه به د ډیر بوج د وجې کیناستلو.او یوځل نبی ﷺ خپل سر مبارك د حضرت زید بن ثابت رضي الله عنه په پتون باندې ایخودے وو.چې په دې حالت کښې د وحی نزول شروع شو.په دې باندې د حضرت زید رضي الله عنه په پتون دومره بوج پریوتلو.چې ماتیدوته نزدے وو[۵] بعضې وخت به ددې وحی معمولی معمولی آو[از نوروهم اوریدلو.حضرت عمر رضي الله عنه فرمائی. چې کله به په نبي ﷺ وحی نازلیدله. نود نبی ﷺ د مخ مبارك سره به د شاتو د مچو پشان بنګار اوریدے شو.[۶]

**تمثیل ملك:** دوحی دویم صورت چې په دې حدیث کښې ئے ذکر دادې وو.چې فرښته به انسانی شکل کښې راغله.او نبی ﷺ ته به یې پیغام راوړو.په داسې موقع به اکثر حضرت جبرئیل ﷺ د مشهور صحابی حضرت دحیة کلبی رضي الله عنه په صورت کښې تشریف راوړلو. البته په بعضې وختونو کښې په نورو صورتونو کښې هم دحضرت جبرئیل ﷺ راتلل ثابت دی. بهر حال د وحی

---

[۱] فیض الباری ۱/۱۹، ۲۰] قاهره کال شي ۱۳۵۷هجری]
[۲] فتح الباری [۱/۱۶] قاهره کال ۱۳۵۷هجری
[۳] صحیح بخاری [۱/۲] حدیث نمبر ۳۰۰
[۴] السیوطی الاتقان [۱/۴۶] قاهره کال ۱۳۶۸ هجری پحواله ابن سعید
[۵] ابن قیم زادالمعاد في هدی خیرالأنام [۱/۱۸،۱۹] المطبعة المیمنیة مصر.
[۶] ایضاً [۲۰/۲۱۲]

په دې صورت کښې به فرشته په انساني شکل کښې راتله.او د وحی په دې طریقه کښې به په نبی ﷺ څه سختي نه راتله.

**دفرښتې په خپل اصلي شکل کښې راتلل:** د وحی دریم صورت دا وو.چې حضرت جبرئیل ﷺ د انساني شکل جوړولو نه بغیر په خپل اصلي شکل کښې ښکاره کیدلو. داسې د نبی ﷺ په ټول عمر کښې درې ځله شوی وو.یوځل هغه وخت چې د نبی ﷺ په خپله د جبرئیل ﷺ په خپل اصلي شکل کښې د لیدلو خواهش کړې وو.دویم ځل په معراج کښې او دریم ځل بیخی د نبوت په ابتدائي زمانه کښې په مکه مکرمه کښې په مقام اجیاد باندې. اولنۍ دوه واقعې ت خو په صحیح سند سره ثابتې شوی دی. خو آخری دریمه واقعه د سند د کمزورۍ د وجې مشکوکه ده.[۱]

**الله تعالی سره خبرې شول:** دوحی څلورم صورت دا وو.چې نبی ﷺ ته هم الله ﷻ سره براه راست د خبروکولوشرف حاصل شوې وو.دبیدارۍ په حالت کښې دا واقعه صرف د معراج په موقعه پیشکه شوې وه.ددې نه علاوه یوځل نبی ﷺ په خوب کښې هم الله ﷻ سره خبرې کړې وې.[۲]

**نفث في الروع:** د وحی پنځمه طریقه دا وه چې حضرت جبرئیل ﷺ به بغیر د څه شکل اختیارلو نه د نبی ﷺ په زړه کښې څه خبره واچوله.

دې ته په اصطلاح کښې ''نفث في الرّوع''، وائي. [ایضاً]

## د قرآن د نزول تاریخ

قرآن کریم په اصل کښې دالله ﷻ کلام دې. ځکه د ازل نه په لوح محفوظ کښې موجود دې. دقرآن کریم ارشاددې ﴿بَلْ هُوَ قُرْآنٌ مَّجِيدٌ ۝ فِي لَوْحٍ مَّحْفُوظٍ ۝ البروج: ۲۱،۲۲﴾بلکه دا قرآن مجيد دې. په لوح محفوظ کښې.

**دقرآن دنزول دوه طریقې:** [ازمترجم] بیا د قرآن کریم نزول دوه ځله شوې دې یوځل دا ټول په دنیاوی آسماني کښې بیت العزت ته نازل شوې وو.

بیت عزّت [چه دې ته البیت المعمور هم وائي] د کعبة الله په محاذات کښې په آسمان کښې د فرښتو د عبادت ځائي دې، دا نزول په لیلة القدر کښې شوې وو.بیادویم ځل نبی ﷺ باندې لږ لږ دضرورت مطابق نازلیدلۀ.تر دې چې په دریویشت کاله کښې ددې تکمیل اوشو.

**د حدیث نه د دوو طریقو ثبوت:** [ازمترجم] دقرآن کریم دا دوه صورتونه پخپله دقرآن کریم د اندازبیان نه هم معلومیږی. ددې نه علاوه په نسائي، حاکم، بیهقي ابن ابی شیبه، طبراني او ابن مردویه ﷬ د حضرت عبدالله بن عباس ﷠ نه ګڼ روایاتونه نقل کړی دی. دهغې خلاصه هم دا ده.چې دقرآن کریم اولنې نزول ددنیا آسمان ته شوې وو.اودویم نزول په مزه مزه نبی ﷺ ته شوې وو.[۳]

**اولنې نزول:** دقرآن کریم اولنې نزول حکمت علامه ابوشامه ﷫ دا بیان کړیدې. چې په دې کښې دقرآن کریم اوچت والی د مقام ته اشاره ده.او دغه مقام نه فرښتو ته دا خبره خودل

---

[۱] د تفصیل دپاره اوګورئ فتح الباری [۱/۱۸،۱۹]

[۲] الإتقان [۱/۴۶]

[۳] اوګورئ الاتقان ۱/۴۱ النوع السادس عشر]

مقصودوو.چې دادې لله ﷻ آخرى كتاب دې چې دزمكې دخلقو دهدايت دپاره نازليدو والا دې.

**د كتاب الفان ته اشاره** [ازمترجم] زرقانى رحمه الله هم دا نكته بيان كړې ده.[۱] چې ددې په دوه ځله نازلولوكښې دا مقصود وو.چې دا كتاب دشك او شبه نه پاك دې. چې د نبى ﷺ د مبارك زړه نه علاوه دا په نورو دووځايونو كښې هم محفوظ دې. يولوح محفوظ اودويم بيت العزت والله اعلم. بهر حال دالله ﷻ د حكمتونو احاطه څوك كولې شى. هم هغه ته صحيح علم دې. چې ددې به نور څه څه حكمتونه وى. اومونږ ته دهغې په لټولو كښې د پريوتولو ضرورت هم نشته.البته مونږ ته د دومره وضاحت سره خودلى شوى دى. چې دا اولنى نزول په شب قدر كښې شوې وو.

**دويم نزول** په دې باندې تقريبا اتفاق دې. چې دقرآن كريم دويم تدريجى نزول هغه وخت شروع شو. كله چې د نبى ﷺ عمر څلويښت كاله شو.ددې نزول شروع هم د صحيح قول مطابق په شب قدر كښې شوې وه.[۲] دا هم هغه تاريخ وو.چې روستو په كښې جنګ بدر شوې وو. ليكن دا شپه د رمضان كوم تاريخ وو.په دې باره كښې په قرآن كريم كښې څه يقينى خبره نشى كولې. د بعضې رواياتونه درمضان اوولسمه او د بعضو نه نورلسمه او د بعضو نه اوويشتمه شپه معلوميږى.[۳]

## د ټولو نه اولنې نازليدونكې آيت

**د سورت علق ابتدائى اياتونه** [ازمترجم] صحيح قول دادې چې په نبى ﷺ د ټولو نه اولنى آيتونه چې كوم نازل شوې وو.هغه د سورت علق اولنى آياتونه دى.په صحيح بخارى كښې حضرت عائشه رضي الله عنها ددې واقعه داسې بيانوى. چې په رسول الله ﷺ د وحى شروع د رښتينى خوبونو نه شوې وه. ددې نه پس په خلوت كښې نبى ﷺ ته د عبادت كولو شوق پيدا شو.او په هغه دوران كښې به نبى ﷺ څو څو شپې په غار حرا كښې تيرولې. او په عبادت كښې به مشغول اوسيدۀ.تر دې چې يوه ورځ هم په هغه غار كښې نبى ﷺ ته دالله ﷻ د طرف نه فرشته راغله.او هغې د ټولو نه اولنۍ خبره دا اوكړلۀ.«اِقرأ» يعنى اولوله.نبى ﷺ اوفرمائيل:زه لوستونكې نه يم.ددې نه پس رسول الله ﷺ پخپله واقعه بيانوى. چې زما په دې جواب فرښتې زه اونيولم.اوماته يې داسې زورراكړلو.چې ماته سخت تكليف اورسيدۀ.بيا هغې زه پريخودم.او ماته يې اوئيل. ،اقرا، ،ما جواب وركړلو.چې زه لوستونكې نه يم.په دې باندې هغې زه په دريم خل اونيولم.او زور ئې راته راكړلو.بيا ئې اووئيل :اولوله﴿ اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِيْ خَلَقَ ۚ خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ ۚ اِقْرَاْ وَرَبُّكَ الْاَكْرَمُ ۙ الَّذِيْ عَلَّمَ بِالْقَلَمِ ۙ عَلَّمَ الْاِنْسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ ۗ﴾اولوله دخپل پرودرګارد نوم نه چاچې پيدا كول كړى دى. چاچې انسان د چكه وينې نه پيدا كړېدې اولوله.اوستا پروردګار د ټولو نه زيات مهربانه دې. الخ.

[۱] مناهل العرفان [۱\۳۹]۔

[۲] مشهوره دا ده.چې نبى ﷺ ته نبوت په ربيع الاول كښې ملاو شوې وو.علامه سيوطى رحمه الله ددې محمل دا خودلې دې. چې نبى ﷺ ته په ربيع الاول كښې رښتينې خوبونه ليدل شروع شوى وو.دا سلسله شپږو مياشتو پورې جارى وه.بيا په رمضان كښې قرآن نازل شو.[الاتقان ۱/۴۲]

[۳] تفسير جامع البيان دې بن جرير طبرى ۱/۷، طبع مصر]

**د سورت مدثر آیاتونه** [ازمترجم] دا په نبي ﷺ باندې نازل شوی د ټولو نه اولني آیاتونه وو. ددې نه پس درې کاله پورې د وحي سلسله بنده وه. دې زمانې ته د "فترت وحي" زمانه وائي. بیا درې کاله پس هغه فرښته چې په غار حراء کښې راغلې وه. نبي ﷺ ته د آسمان اوزمکې په مینځ کښې اوخودلې شوه. او هغې نبي ﷺ ته د سورت مدثر آیاتونه واورول. دې نه پس د وحي سلسله شروع شوه.

## مکي او مدني آیاتونه

① **هجرت معیار ګرځول** [ازمترجم] تاسو به د قرآن کریم د سورتونو په عنواناتو کښې کتلي وي. چې د بعضې سورت سره مکي او د بعضې سره مدني لیکلې شوې وي. ددې صحیح مفهوم پیژندل ضروري دي. داکثرو مفسرینو داصطلاح مطابق د "مکي آیت" نه هغه آیت مراد دې چې د نبي ﷺ دهجرت په غرض مدینې طیبې ته د تلو نه وړاندې نازل شوی وي.

② **مکه او مدینه معیار ګرځول** [ازمترجم] بعضې کسان د مکي نه دا مطلب اخلي. چې په مکه ښار کښې نازل شوی وي. او د مدني نه دا چې په مدینه ښار کښې نازل شوی وي. لیکن داکثرو مفسرینو داصطلاح مطابق دا مطلب اخستل ټیك نه دي. ځکه چې څو آیاتونه داسې دي. چې دمکې په ښار کښې نازل شوي نه دي. لیکن چونکه د هجرت نه وړاندې نازل شوي دي. نو ځکه ورته مکي وئیلې شي. په منی، عرفات وغیره او د معراج په سفر کښې نازل شوي آیاتونه داسې دي. تر دې چې د هجرت په سفر کښې چې په لار کښې کوم آیاتونه نازل شوي دي. هغې ته مکي وائي. دغه شان ډیر آیاتونه داسې دي. چې په مدینه ښار کښې نه دي نازل شوي. لیکن هغې ته مدني وائي. دهجرت نه پس نبي ﷺ ډیر سفرونه کړي وو. چې په هغې کښې نبي ﷺ د مدینې نه په سوونو میله لرې هم تشریف اوړے وو. په دې ټولو مقاماتو کښې نازل شوو آیاتونو ته مدني وائي. تر دې چې هغه آیاتونو ته هم مدني وائي چې د فتح مکې یا غزوه حدیبیې په موقع باندې یا خاص کړ په مکه ښار یا ددې په مضافاتو کښې نازل شوي دي. [۱] دقرآن آیت ﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا﴾_ النسـاء﴾ مدني دې. حالانکه دا په مکه مکرمه کښې نازل شوې دې [۲]

بیا بعضې صورتونه خو داسې دي. چې هغه ټول مکي یا ټول مدني دي. مثلا سورت مدثر ټول مکي دې اوسورت آل عمران ټول مدني دې او بعضې وخت داسې هم شوي دي. چې ټول سورت خو مکي وي. خو په هغې کښې یو یا څو آیاتونه مدني وي. مثلا سورت اعراف مکي دې لیکن په دې کښې ﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا﴾ نه واخله تر ﴿وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِي آدَمَ﴾ پورې آیاتونه مدني دي. دغه شان کله ددې په عکس هم وي. مثلا سورت حج مدني دې. لیکن په دې کښې څلور آیاتونه ﴿وما.....تمنی﴾ نه تر ﴿عذاب عظیم﴾ پورې مکي دي. ددې نه دا هم ښکاره کیږي. چې د یو سورت مکي یا مدني کیدل عام طور دهغې د زیاتو آیاتونو په اعتبار سره وي. او اکثربه داسې کیدل چې دکوم سورت ابتدائي آیاتونه دهجرت نه وړاندې نازل شوي وو. هغه

[۱] دتفصیل دپاره اوګورئ البرهان في علوم القرآن ۱/۱۸۸ النوع التاسع ]
[۲] مناهل العرفان ۱/۱۸۸]

مکی او گرځولې شوې کر چې روستو دهغې بعضې آیاتونه دهجرت نه پس نازل شوی وو[۱]

## دمکي او مدني آياتونو خصوصيات

دتفسیر عالمانو د مکی او مدنی سورتونو لتون کړېدې. او ددې بعضې داسې خصوصیات یې بیان کړی دی. چې د هغې نه په اولنی نظر سره دا معلومیږی. چې دا سورت مکی دے که مدنی. په دې سلسله کښې بعضې کلی قاعدے دی. او بعضې اکثری قاعدے دی.

**لفظ د کلا معیار ګرځول** [ازمترجم] ① هر هغه سورت چې په هغې کښې د "کلا" [هیڅ کله نه] لفظ راغلې وی. هغه مکی وی. دا لفظ په پنځلس سورتونو کښې دری ديرش [۳۳] خله راغلې دې. او دا ټول آیاتونو د قرآن په آخری نیمه حصه کښې دی.

**آیت د سجدۀ معیار ګرځول**: [ازمترجم] ②هر هغه سورت چې په هغې کښې آیت د سجدے وی. مکی دې. [دا اصول د احنافو په مسلك دې.

**د آدم ﷺ واقعه معیار ګرځول**: [ازمترجم] ③ د سورت بقره نه سوا هر هغه سورت چې په هغې کښې دحضرت آدم ﷺ او شیطان واقعه راغلې وی. هغه مکی دې.

**جهاد معیار ګرځول** : [ازمترجم]④ هر هغه سورت چې په هغې کښې د جهاد اجازت یا ددې احکام ذکر شوی وی. مدنی دې.

**د منافقانو ذکر معیار ګرځول**: ⑤ هر هغه سورت چې په هغې کښې د منافقانو ذکر راغلې وی. مدنی دې.

**د مکی اومدنی سورتونو پیژندګلو اکثری قاعدې**:[ازمترجم] اود سورتونو دا لاتدنیی خصوصیات عمومی اواکثری دی. یعنی کله کله ددې خلاف هم کیږی. لیکن اکثر اوزیات هم داسې دی.

**خطاب معیار ګرځول** :[ازمترجم] ① په مکی سورتونوکښې اکثر په ﴿یاایهاالناس﴾، اے خلقو، الفاظو سره خطاب شوې دې اوپه مدنی سورتونوکښې کښې د ﴿یاایهاالذین آمنوا﴾ الفاظو سره خطاب شوې دې

**طوالت او اختصار معیار ګرځول** :[ازمترجم] ② مکی آیاتونه اوسورتونه اکثر واړه دی. اومدنی آیاتونه اوسورتونه "طوال او مفصل دی. [د طوال اومفصل تفصیل به روستو راشی [ازمترجم]

**توحید او احکام معیارات ګرځول** :[ازمترجم] ③ مکی سورتونه زیات تر د توحید، رسالت اود آخرت اثبات، دحشر اونشر منظر کشئ، نبی ﷺ ته دصبر او تسلئ تلقین، او د وړاندینی امتونو په واقعې تو مشتمل دی. اوپه دې کښې احکام اوقوانین ډیر کم بیان شوی دی. ددې په خلاف په مدنی سورتونو کښې خاندانی اوتمدنی قوانین، دجهاد او قتال احکام اوحدود او فرائض بیان شوی دی.

**مخاطبه د کافرانو او اهل کتابو معیارات ګرځول** :[ازمترجم] ④ په مکی سورتونوکښې زیاته مقابله د بت پرستو سره شوې ده.اوپه مدنی سورتونوکښې د اهل کتابواومنافقانو سره.

---

[۱] مناهل العرفان ۱۹۲/۱]

**اسلوب بیان معیار څرګنول** :[ازمترجم] ⑤ د مکی سورتونوترتیب اسلوب زیات تر د شکایت دي. اوپه دې کښې استعارات،تشبیهات اومثالونه زیات دی. اوذخیره الفاظ یې ډیر زیات دی. ددې په خلاف د مدنی سورتونو اسلوب نسبتاً ساده دې.

**په مکي اومدني اسلوب کښې د فرق وجوهات**:[ازمترجم] د مکی او مدنی سورتونو په انداز بیان کښې دا فرق په اصل کښې دحالاتو، ماحول اومخاطبینو د اختلاف د وجې پیدا شوې دې په مکی ژوند کښې د مسلمانانومقابله چونکه زیاته د بت پرستو عربو سره وه.او اسلامی ریاست موجود شوې نه وو.ځکه په دغه دور کښې زیادت زور د عقائدو په تیك کولو اود اخلاقو په اصلاح او د بت پرستو مدلل تردید او قرآن کریم د شان اعجاز په اظهار باندې ورکړې شوې دې. ددې په خلاف په مدینه طیبه کښې یواسلامی ریاست قائم شوې وو.خلق به ډلې ډلې د اسلامی جنډے لاندې راتلل.په علمی میدان کښې د بت پرستئ ابطال شوې وو.او ټول نظریاتی جنګ داهل کتابو سره وو.ځکه ددې ځائې احکام، قوانین، حدود اود فرائضو په تعلیم باندې زیات توجه ورکړې شوې ده.او ددې مناسب اسلوب یې اختیار کړېدې.

## د قرآن کریم تدریجی نزول

په اول کښې راغلی ووچې په نبی ﷺ باندې قرآن کریم په یو ځل نه وو نازل شوې. بلکه لږ لږ تقریبا په دیرویشت کالو کښې نازل شوې وو.بعضے وخت به حضرت جبرئیل امین ﷺ د یو ورکوټی آیت بلکه د آیت دیوے حصے دپاره هم تشریف راوړلۀ.اوکله به څوڅو آیاتونه په یو وخت نازل شو.د قرآن کریم د ټولو نه وړه حصه چې ځان له نازله شوې وه. هغه ﴿ غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ: النسـاء:۹۵﴾ ده.دا دیو اوږد آیت ټکړه ده.بل طرف ته سورت انعام ټول په یوځل نازل شوې دې[1]

**د مشرکانو اعتراض**:[ازمترجم] قرآن کریم په یو ځل نازلولوپه ځائې لږ لږ ولې نازل شوې دې؟دا سوال په خپله د عربومشرکانو د نبی ﷺ نه کړې وو. الله ﷻ ددې سوال جواب په خپله په دې الفاظو کښې ورکړېدې ﴿ وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ الْقُرْآنُ جُمْلَةً وَاحِدَةً ۚ كَذَٰلِكَ لِنُثَبِّتَ بِهِ فُؤَادَكَ ۖ وَرَتَّلْنَاهُ تَرْتِيلًا۝ الفرقـان:۳۲﴾ او کافرانو اووئیل: چې په تا باندې قرآن ولې په یو ځل نه نازلیږی. دغه شان مونږ قرآن پاك تدریجا نازل کړېدې. چې ستا زړه پرې مطمئین کړو.اومونږ دا په مزه مزه لوستے دې. او دوی به څه خبره تاته نه راوړی. مګر مونږ به تاته حق راوړو. او د هغې به ښه تفسیر پیش کوو،،

**د تدریجی نزول حکمتونه**:[ازمترجم] امام رازی ﷫ ددې آیت په تفسیرکښې د قرآن کریم په تدریجی نزول کښې چې کوم حکمتونه بیان کړی دی. دلته کښې د هغې خلاصه پیژندل کافی دی. هغوی فرمائی. چې ددې په تدریجی نزول کښې څو حکمتونه دی.

① نبی ﷺ امی وو.لیکل لوستل یې نشو کولې. نو که ټول قرآن په یوځل نازل شوې نه وې. نوددې یادول او ضبط کول به ګران وو.ددې په خلاف حضرت موسی ﷺ لیکونکې اولوستونکې وو.ځکه په هغوی باندې تورات په یو ځل نازل شوې وو.

② که ټول قرآن په یو ځل نازل شوې وو.نو د ټولو احکامو پابندی به فورا شروع شوې وه. نو دا

[1] تفسیر ابن کثیر ۱۲۲/۲]

به ددې د حکیمانه تدریج نه خلاف وو. د کوم چې به شریعت کښې خیال ساتلی شي.

③ نبی ﷺ به هره ورځ دخپل قوم د طرف نه نوی نوی تکلیفونه برداشت کول. د قرآن دنازلولو دپاره د حضرت جبرئیل ﷺ بار بار راتګ به د دغه تکلیفونو مقابله کول آسانوله. او د نبی ﷺ د زړه دمضبوطتیا سبب به جوړیده.

④ د قرآن کریم زیاته حصه د خلقو د سوالونو جواب او مختلفو واقعې تو سره متعلق ده. ځکه ددې آیاتونو نزول په هغه وخت کښې مناسب وو. په کوم وخت کښې چې دغه سوالانه شوی وو یا واقعې ت پیښې شوی وو. دې سره د مسلمانانو بصیرت هم زیاتیده. او د قرآن کریم غیبی خبرو بیانولو سره ددې حقانیت نور هم ښکاره کیدلو.[۱]

## شان نزول

دقرآن کریم دوه قسمه آیاتونه دی. یوهغه آیاتونه دی. چې په خپله نازل شوی دی. څه خاص واقعه یا د چا سوال وغیره دهغې د نزول سبب نه وی جوړ شوې. دویم قسم آیاتونه هغه دی. چې دهغې نزول د څه خاص واقعې یا دچا دسوال په جواب کښې شوی وی. هغې ته د دغه آیاتونو پس منظر وئیل پکار دی. دې پس منظر ته د مفسرینو په اصطلاح کښې "سبب نزول" یا "شان نزول" وئیلې شي.

مثلاً دسورت بقره آیت دې. ﴿وَلَا تَنكِحُوا الْمُشْرِكَاتِ حَتَّىٰ يُؤْمِنَّ ۚ وَلَأَمَةٌ مُّؤْمِنَةٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكَةٍ وَلَوْ أَعْجَبَتْكُمْ ۗ وَلَا تُنكِحُوا الْمُشْرِكِينَ حَتَّىٰ يُؤْمِنُوا ۚ وَلَعَبْدٌ مُّؤْمِنٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكٍ وَلَوْ أَعْجَبَكُمْ ۗ :: البقرة: ۲۲۱﴾ «مشرکو ښځو سره ترهغه وخته پورې نکاح مه کوئ. ترڅوچې هغوی ایمان نه وی راوړے. بیشکه یوه مومنه وینزه دمشرکې نه بهتره ده. اګرچې مشرکه ستاسو خوښه وی

**د پورتنی آیت شان نزول** [ازمترجم] دا آیت په یوه خاص واقعه کښې نازل شوې وو. په زمانه د جاهلیت کښې حضرت مرثد بن ابی مرثد غنوی رضی الله عنه دعناق نومې یوې ښځې سره تعلقات وو. داسلام راوړلو نه پس دے مدینې طیبې ته راغلۀ. اوهغه ښځه په مکه مکرمه کښې پاتې شوه. یو خل دڅه کار دپاره حضرت مرثد رضی الله عنه مکې ته تشریف یوړلۀ. نوعناق ده ته دګناه دعوت ورکړلو. حضرت مرثد رضی الله عنه ترې صفا انکار اوکړلو. اووې فرمائیل. اسلام زما اوستا په مینځ کښې پرده جوړه شوې ده. لیکن که ته غواړې. نوزه د نبی ﷺ په اجازت سره تا سره نکاح کولې شم. چې مدینې منورې ته یې تشریف راوړلو. نو حضرت مرثد رضی الله عنه د نبی ﷺ نه د نکاح کولو اجازت اوغوښتلو. اود خپلې خوښې اظهار یې اوکړلو. په دې باندې دا آیت نازل شو. اودے د مشرکو ښځوسره د نکاح کولو نه ممانعت اوکړلو[۲] داواقعه دپورتنی آیت سبب نزول یا شان نزول دې. د قرآن کریم په تفسیر کښې "شان نزول" ډیر اهمیت لري، د ډیرو آیاتونو مفهوم ترهغه وخته پورې په صحیح طریقه پوهه کښې نه راځی چه ترڅو پورې دهغې شانِ نزول معلوم نه شي.

## د قرآن اووه حرفونه اوقرائتونه

په یوصحیح حدیث کښې نبی ﷺ فرمائیلی دی [إن هذا القرآن أنزل على سبعة أحرف فاقرأو

[۱] تفسیر کبیر دامام رازی رحمه الله [۶/۳۳۶] مطبع عامره کال ۱۳۲۴هجری
[۲] الواحدی :اسباب النزول صفحه ۳۸، مصطفی البابی مصر کال ۱۳۷۹]

ما تیسر منه][1] په دې حدیث کښې د اووؤ حروفو نه څه مراد دې. د دې په باره کښې داهل علم مختلف اقوال دی.

زمونږ په نزد دقرآن کریم داووه حروفو د ټولو نه بهترینه تشریح او تعبیر دادې. چې په حدیث کښې د حروفو د اختلاف نه د قرائتونو اختلاف دې. او د اووه حروفو نه د قرات د اووه نوعیتونو اختلاف مراد دې. نو قرائتونه اګرچې د اووه نه زیات دی. لیکن په دې قراتونو کښې چې کوم اختلاف موجودیږی. نو هغه په اووه قسمونو کښې منحصر دې.

① **د اسماؤ اختلاف:** چې په کښې افراد. تثنیه.جمع. او تذکیر و تانیث داواړو اختلافه شامل دی. ددې مثال هم هغه دې. ﴿وَتَمَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ﴾ چې په یوقرات کښې ﴿تمت كلمات ربك﴾هم لوستلې شوې دې.

② **دافعالواختلاف:** چې په یو قرات کښې دماضی صیغه وی. او په بل کښې د مضارع اوپه بل کښې امر وی. ددې مثال ﴿رَبَّنَا بٰعِدْ بَيْنَ أَسْفَارِنَا﴾ دې. چې په یو قرات کښې ددې په ځائې ﴿ربنا بعد بين أسفارنا﴾ هم راغلې دې.

③ **دوجوه اعراب اختلاف:** په دې کښې اعراب یا حرکات په مختلفو قراتونو کښې مختلف وی. ددې مثال ﴿ولايُضَارَّكاتبٌ اولايُضَارُّكاتبُ﴾ دې. او ﴿ذوالعرش المجيدُاوذوالعرش المجيدِ﴾

④ **دالفاظو د کمی اوزیاتی اختلاف:** چې په یو قرات کښې یولفظ کم وی. او په بل کښې زیات وی. مثلاً په یو قرات کښې﴿وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ وَالْأُنْثَىٰ﴾ دې. اوپه بل کښې ﴿ خَلَقَ الذَّكَرَ وَالْأُنْثَىٰ﴾ دې. او په دې کښې د ﴿وَمَا خَلَقَ﴾ لفظ نشته.دغه شان په یو قرات کښې ﴿ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ﴾ او په بل کښې ﴿تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ﴾ دې.

⑤ **د تقدیم او تاخیر اختلاف:** چې په یو قرات کښې یو لفظ وړاندې او په بل کښې روستو وی.مثلاً ﴿وجاءت سكرة الموت بالحق﴾او﴿جاءت سكرة الحق بالموت﴾شو.

⑥ **د بدلیت اختلاف:** چې په یو قرات کښې یو لفظ وی. اوپه بل کښې دهغې په ځائې بل لفظ وی. مثلاً ﴿ننشزها اوننشرها﴾ دغه شان﴿فتبينوا اوفتثبتوا﴾او﴿طلح اوطلع﴾ شو.

⑦ **د لهجو اختلاف:** چې په کښې تفخیم.ترقیق.اماله. قصر.مد.همز.اظهار.او ادغام وغیره اختلافات شامل دی.[2] مثلا ﴿موسٰی﴾ په یو قرات کښې د ﴿موسٰی﴾ په شان دې. بهرحال ! د قرات د اختلاف ددې اووه قسمونو لاندې ډیر قرأتونه نازل شوی وو، او ددې په خپل مینځ کښې فرق سره په معنی کښې څه خاص فرق نه راتلو، صرف د تلاوت د سهولت دپاره دهغې اجازت ورکړې شوې وو.

لیکن دا اجازت صرف داسلام په اولنی دور کښې وو.چې ټول اهل عرب د قرآنی ژبې سره پوره عادت نه وو. بیا چې په مزه مزه ددې قرآنی ژبې دائره اثر زیات شو.او اهل عرب ددې عادتی جوړ شو.او هغوی ته دقرآن پاك په اصلی لغت کښې تلاوت کول آسان شو.نو نبی ﷺ د وفات

---

[1] صحیح بخاری مع القسطلانی کتاب فضائل القرآن ۷/۴۵۳]

[2] فتح الباری ۹/۲۴]

نه وړاندې په رمضان کښې حضرت جبرئيل ﷺ سره د قرآن پاك آخرى دور اوکړلو.چې،،عرصه اخير،، ورته وئيلى شى. په دې ځل په مرادفاتو سره د وئيلو اجازت ختم شو.اوصرف هغه طريقه باقي پاتې شوه.په کومه چې قرآن کښې نازل شوې وو.

حضرت عثمان ﷺ محسوس کړه.که دا صورت حال هم دغه شان باقى وى. اوانفرادى مصاحف ختم نه کړې شى. او د قران کريم معيارى نسخې په عالم اسلام کښې خورے نه شى.نو زبردسته فتنه به راپورته شى د قران کريم -

① د قران کريم اووه معيارى نسخې يئ تيارے کړې.

② ددې مصاحفو رسم الخط يئ داسې مقرر کړه.چې په دې کښې اووه واړه حروف راشى. دا مصاحف د نقطواوحرکاتونه خالى وو. او دا د هرحرف مطابق لوستلې شو.

چه هم د دغه مذکوره قرأتونو نه چه د کوم قرأت مطابق غواړى تلاوت اوکړى، په دې طريقه اکثر قرأتونه په دې رسم الخط کښې يوځائې جمع کړې شو، او کوم قرأتونه چه په رسم الخط کښې راجمع نه شو، دهغې د محفوظ کولو طريقه هغوى دا اختيار کړه چه يو نسخه هغوى د يو قرأت مطابق اوليکله او دوئمه ئې د بل قرأت مطابق، اُمت په دغه نسخو کښې د راجمع شوو قرأتونو د ياد ساتلو دومره اهتمام اوکړو چه علم قرأت يو مستقل علم جوړ شو، او په سوونو عالمانو، قاريانو او حافظانو ددې په حفاظت کښې خپل عمرونه خرچ کړل.

**په قرأت کښې د قبوليت معيار:** په اصل کښې اوشوه داسې چه کله عثمان ﷺ دا مصاحف د عالم اسلام مختلفو حصو ته اوليږل.نو د هغې سره يئ داسې قاريان هم اوليکل.چې د لوستلو طريقه ورته اوښائى. چې کله دغه قاريان حضرات مختلفو علاقو ته اورسيدل.نوهغوى دخپل خپل قراءت مطابق خلقوته د قران کريم تعليم ورکړلو.اودا مختلف قراءتونه په خلقوکښې خواره شو. په دې موقع باندې بعضې‌حضراتوهم د دغه مختلفو قرائتونو يادولو ته او نورو ته خودلوته خپل ژوند وقف کړې وو.او دغه شان د،، علم قرات،، بنياد کيخودې شو.اود هرې علاقې خلقو په دې علم کښې دکمال حاصلولو دپاره د قراءت امامانو طرف ته رجوع اوکړه.چا صرف يو قراءت يادکړۀ.چا دوه، چادرې، چا اووه او چا ددې نه هم زيات.

**دعلم قرات اصولى ضوابط:** [ازمترجم] په دې باره کښې يوه اصولى ضابطه په پوره امت کښې منلے شوې ده.اوپه هرځائې کښې هم د دې مطابق عمل کيږى. هغه دا چې صرف هغه ،،قراءت،، به د قران په حيثيت سره قبلولې شى. چې په هغې کښې درے شرطونه موجود وى.

① چې د مصاحف عثمانى په رسم الخط کښې ددې ګنجائش وى ② عربى يئ دصرف او نحو قواعدو مطابق وى. ③ د نبى کريم ﷺ نه په صحيح سند سره ثابت وى. اود قراءت په امامانو کښې مشهور وى. چې کوم قراءت کښې په دې کښې يو شرط هم نه وى. هغه به دقران په حيثيت سره نه شي قبلولې. دغه شان د متواترقراءتونو يولوئې تعداد د يونسل نه بل نسل ته رانقل کيدلو.اود آسانتيا دپاره داسې هم اوشول.چې يو امام يو يا يوڅو قراءتونه اختيارکړل اوهم دهغې تعليم ورکول يئ شروع کړو.اوهغه قراءت ددغې امام په نوم مشهورشو.بيا عالمانو د دغه قراءتونه جمع کولودپاره کتابونه ليکل شروع کړل.

**په اووه قراآتونوروبنې کتاب:** د ټولونه مخکښې امام ابوعبيدقاسم ابن سلام، امام ابوحاتم سجستانى، قاضى اسماعيل او امام ابوجعفرطبرى ﷺ په دې فن باندې کتابونه مرتب کړل.

چې په دې کښې د شلونه زيات قراءتونه جمع وو.بيا علامه ابوبکر احمد بن موسی بن عباس ابن مجاهد رحمه الله [متوفی کال۳۲۴ھ]کښې يو کتاب اوليکلو.چې په هغې کښې صرف د اووه قاريانو قراءتونه راجمع کړې شوی وو.د دوی دا تصنيف دومره مقبول شو.چې د اووه قاريانو قراءتونه د نورو قاريانو په مقابله کښې ډير زيات مشهورشو.بلکه بعضې خلقودا اوګنړل.چې صحيح اومتواترقراءتونه هم دغه دی. د باقی قاريانوقراءتونه صحيح يا متواترنه دی. حالانکه حقيقت دادې. چې علامه ابن مجاهد رحمه الله هځے اتفاقاً دغه اووه قراءتونه راجمع کړی وو.د هغوی مطلب هرګز دا نه وه. چې ددې نه سوا نورقراءتونه غلط يا ناقابل قبول دی. د علامه ابن مجاهد رحمه الله په دې عمل سره يوه غلط فهمی دا هم پيدا شوه.چې بعضې خلقود ، ، سبعة احرف.، ، مطلب دا اوګنړل.چې دے نه دغه اووه قراءتونه مراد دی. چې کوم ابن مجاهد رحمه الله راجمع کړی دی.

حالانکه مخکښې ښودلی شوی دی چه دا اووه قرأتونه د صحيح قرأتونو يوه حصه وه. ګينی هرهغه قرأت کوم چه د پورته دريو شرائطو مطابق پوره راځی هغه صحيح، د قبليدو قابل او په هغه اووه حرفونو کښې داخل دې په کوم کښې چه قرآن کريم نازل شوې.

**اووه مشهورقاريان**: [ازمترجم] د علامه ابن مجاهد رحمه الله په دې عمل سره چې کوم اووه قاريان د ټولونه زيات مشهورشو. هغه دادی.

① عبدالله بن کثير الداری رحمه الله [متوفی کال۱۲۰ھ] دوی په صحابو رضی الله عنهم کښې د حضرت انس بن مالك رضی الله عنه، عبدالله بن زبير رضی الله عنه، اود ابوايوب انصاری رضی الله عنه زيارت کړې وو. او د دوی قراءت په مکه مکرمه کښې زيات مشهورشو.اود دوی د قراءت په راويانوکښې بزی اوقنبل زيات مشهوردی.

② نافع بن عبدالرحمن بن ابی نعيم رحمه الله [متوفی کال۱۶۹ھ] دوی د اوياؤ داسې تابعينونه استفاده کړې وه.چې هغوی براه راست دحضرت أبی بن کعب رضی الله عنه، عبدالله بن عباس رضی الله عنه، او د ابوهريره رضی الله عنه شاګردان وو.د دوی قراءت په مدينه منوره کښې زيات مشهورشو.او د دوی په راويانو کښې ابوموسٰی قالون رحمه الله [متوفی کال۲۲۰ھ] او ابوسعيد ورش [متوفی کال ۱۹۷ھ] مشهورشو.

③ عبدالله اليحصبی چې دابن عامر په نوم سره مشهوردې. [متوفی کال ۱۱۸ھ] دوی په صحابو رضی الله عنهم کښې دحضرت نعمان بن بشير رضی الله عنه اودحضرت واثله بن اسقع رضی الله عنه زيارت کړې وو. اود قراءت فن يې د حضرت مغيره بن شهاب مخزومی رحمه الله نه حاصل کړې وو.چې دحضرت عثمان رضی الله عنه شاګرد وو.د دوی د قراءت زيات رواج په شام کښې اوشو.اود دوی د قراءت په راويانو کښې هشام اوزکوان زيات مشهورشو.

④ ابوعمروزبان بن العلاء بن عمار رحمه الله [متوفی کال ۱۴۵ھ] دوی دسعيدبن جبير رضی الله عنه په واسطےسره د حضرت ابن عباس رضی الله عنه اود أبی بن کعب رضی الله عنه نه روايت کړېدې. او د دوی قراءت په بصره کښې زيات مشهورشو.د دوی دقراءت په راويانوکښې ابوعمر الدوری [متوفی کال ۲۴۶ھ] اوابوشعيب سوسی رحمه الله [متوفی کال۲۶۱ھ] زيات مشهور دی.

⑤ حمزه بن حبيب الزيات رحمه الله مولی عکرمه بن ربيع التيمی [متوفی کال ۱۸۸ھ] دا د سليمان اعمش شاګردې.هغوی ديحی بن وثاب، هغوی د زربن حبيش رحمه الله ،اوهغوی د حضرت

عثمان ؓ، حضرت علی ؓ اوحضرت ابن مسعود ؓ نه استفاده کړې وه.د دوی په راویانو کښې خلف بن هشام [متوفی کال ۱۸۸ھ] اوخلادبن خالد [متوفی ۲۲۰ھ] زیات مشهوردی.

⑥ عاصم ابن ابی النجودالاسدی [متوفی کال ۱۲۷ھ] دے دحضرت زربن حبیش ؒ په واسطے سره دحضرت عبدالله بن مسعود ؓ اود ابوعبدالرحمن سلمی ؒ په واسطے سره د حضرت علی ؓ شاګرد وو.د دوی د قراءت په راویانوکښې شعبه بن عیاش [متوفی سن۱۹۳ھ] اوحفص بن سلیمان ؒ [متوفی کال۱۸۰ھ] زیات مشهوردی. نن صبا عام تلاوت دحفص ؒ د روایت مطابق کیږي.

⑦ ابوالحسن علی بن حمزه الکسائی النحوی ؒ [متوفی کال ۱۸۹ھ] د دوی په راویانو کښې ابوالحارث مروزی ؒ [متوفی کال۲۴۰ھ] اوابوعمرالدوری ؒ [چې د ابوعمر ؒ راوی هم دے] زیات مشهوردي.د روستنودرې وارو قراءتونه زیات ترپه کوفه کښې رائج شو.

**په لسو قراءتونو جامع**: [ازمترجم] لکه څنګه چې وړاندې بیان شوی دی. چې ددې اووه نه علاوه نور قراءتونه هم متواتراوصحیح دی. لکه څنګه چې روستو غلط فهمی پیدا شوه چې صحیح قراءتونه هم په دې اووه کښې منحصردی. نوګڼو عالمانو [مثلاً علامه شزائی ؒ اوابوبکرمهران ؒ] داووه په ځائې لس قراءتونه یوکتاب کښې جمع کړل.نود،،قراات عشره،، اصطلاح مشهوره شوه.[۱]

**نور درې مشهورقاریان** : [ازمترجم] په دې لسوقراءتونوکښې د پورتنی اووه قراءتونو نهٔ علاوه ددې درې حضراتوقراءتونه هم شامل کړې شو

① ابوجعفر یزیدبن القعقاع ؒ [متوفی کال ۱۳۰ھ] اود دوی قراءت په مدینه طیبه کښې رائج پاتې‌شو.② خلف بن هشام ؒ [متوفی کال ۲۰۵ھ] دوی دسلیم بن ٔعیسی بن حمزه بن حبیب زیات نه استفاده کړې وه.او دې دحمزه ؒ دقراءت هم راوی وو.د دوی قراءت په کوفه کښې زیات رائج وو.③ یعقوب بن اسحاق خضرمی ؒ [متوفی کال ۲۲۵ھ] د دوی قراءت زیات تر په بصره کښې مشهورشو.

**نورڅلورقاریان** : [ازمترجم] دے نه علاوه بعضې حضراتو د څوارلسو قاریانو قراءتونه راجمع کړل. اوپه ذکرشوی لسوحضراتو باندې یې دلاندینو قراء قراءتونه اضافه کړل.

① حسن بصری ؒ [متوفی کال۱۱۰ھ] دوی د قراءت مرکز په بصره کښې وو.

② محمد بن عبدالرحمن ابن محیض ؒ [متوفی کال ۱۲۳ھ] ددوی مرکزپه مکه مکرمه کښې وو.

③ یحي بن مبارك یزیدی [متوفی کال۲۰۲ھ] دوی د بصرے اوسیدونکې وو.

④ ابوالفرج محمد بن احمدشنبوزی ؒ [متوفی کال۳۸۸ھ] دوی د بغداد اوسیدونکې وو. بعضې حضراتوپه دې څوارلسو قاریانوکښې دحضرت شنبوری ؒ په ځائې دحضرت سلیمان اعمش ؒ نوم شمیرلے دې. په دې کښې اولنی لس قراءتونه دصحیح قول مطابق متواتردی. اوددې نه علاوه شاذ دی.[۲]

[۱] النشرفی القرآت العشر .ص۳۴.ج۱

[۲] مناهل العرفان بحواله منجدالمقرئین لابن الجزری ؒ. ص ۴۶۰.ج۱

وو.چې دوی به د نبی ﷺ نه د قران لس آیاتونه زده کول.تر هغه وخته پورې به وړاندې نه تلل.تر څو چې به یې د دغه آیاتونو متعلق ټول علمي او عملي خبرو باندې عبورنه وو حاصل کړې. هغوی به فرمائیل.[فتعلمنا القران والعلم والعمل جيعاً] مونږ قرآن او علم او عمل یوځائې زده کول.په موطا امام مالك کښې روایت دې. چې حضرت عبدالله بن عمر صرف د سورت بقره په یادولو کښې اته کاله لګولي وو.او په مسند احمد کښې حضرت انس ﷺ فرمائي. چې په مونږ کښې به کوم کس سورت بقره او سورت آل عمران اوویل نو زمونږپه نظرکښې به دهغه اوچت مقام وو[۱]

**دصحابو په طریقه باندې د خپلې مدعا دپاره استدلال:** [ازمترجم] دغور کولو خبره ده. چې دا حضرت صحابه کرام ﷺ چې د هغوی مورنۍ ژبه عربي وه.هغوی په عربي شعر او ادب کښې پوره مهارت لرلو.او هغوی ته به اوږدې اوږدې قصیدې په معمولي توجه سره د قل هو پشان یادیدلې. هغوی ته د قرآن کریم حفظ کول او ددې په معانیو باندې ځان پوهولو دپاره د دومره اوږدې مودې څه ضرورت وو.چې اته اته کاله کښې صرف د یو سورت په وئیلو کښې لګوی. ددې وجه دا وه.چې قرآن کریم او ددې زده کولو دپاره صرف عربۍ ژبه کښې مهارت کافي نه وو.بلکه ددې دپاره د نبی ﷺ صحبت او د تعلیم نه فائده اخستل ضروري وو.بنکاره خبره ده. چې کله صحابه کرام ﷺ چې هغوی ته په عربۍ ژبه کښې مهارت حاصل وو.او د نزول وحی نې براه راست مشاهده کړې وه.ددې باوجود د عالم قرآن جوړیدو دپاره باقاعده د نبی ﷺ نه د تعلیم حاصلولو ضرورت وو.نو د نزول قرآن نه په سوونو کاله روستو هغه کس چې په عربۍ باندې ورته څه معمولي غوندې واقفیت حاصل شوې وی. صرف به د ترجمې په کتلو دقرآن کریم د مفسرجوړیدو دعوی کوی. دا څومره د زړه ورتیا او علم دین سره د افسوسناکې خندا خبره ده.داسې خلقو ته چې دا زړه ورتیا کوی. د نبی ﷺ دا ارشاد ښه یاد ساتل پکار دې. چې [من قال فى القرآن بغيرعلم فليتبوأمقعده فى النار] کوم کس چې په قرآن کښې بغیر د پوهې نه خبره کوی. نو هغه خپل ځائې په جهنم کښې تیاروی. [ابوداؤد، از اتقان ۲| ۱۷۹]

او : ـ **من تكلم فى القران برايه فاصاب فقد اخطاء**،، کوم سړې چې دقرآن په معامله کښې [ محض ] په خپله راې سره ګتفګوکوی اوپه هغې کښې صحیح خبره هم اوکړی نوبیاهم هغه غلطی اوکړه،، [ ابوداؤد ﷺ ونسائي ﷺ ازاتقان ۱۲۲\ ۱۷۹]

**خومشهور تفسیرونه:** دعهد رسالت نه روستودقرآن بیشماره تفسیرونه لیکلې شوی دی، بلکه په دنیا کښې دیوکتاب هم دومره خدمت نه دې شوې، څومره چې دقرآن کریم شوې دې، ددې ټولو تفاسیرو تعارف په کوم مفصل کتاب کښې هم ممکنه نه دې، څه چې په دې مختصر غوندې مقدمه کښې ئې اراده اوکړې شي، لیکن دلته به مونږ دهغه اهم تفسیرونو مختصر تعارف کول غوارو کوم چې دمعارف القرآن خاص مآخذ پاتې شوې دی، اودکوم حواله چې په قرآن کښې بار بار راځي، اګرچه دمعارف القرآن د تصنیف په دوران کښې ډیرتفسیرونه اوپه سلګونو کتابونه دنظر لاندې پاتې شوی دی، لیکن دلته صرف دهغه تفاسیرو تذکره مقصود ده دکومو حوالې چې په کثرت سره راځي ـ

---

[۱] الاتقان ۲/۱۷۶ نوع ۷۷]

**تفسير ابن جرير:** ددې تفسيراصل نوم ,, جامع البيان،، دی، اودا دعلامه ابوجعفرمحمدبن جريرطبری رحمه الله [ متوفی ۳۱۰ھ] تاليف دې، علامه طبری رحمه الله داوچتې درجې مفسر، محدث اومؤرخ دې، نقل کړې شوی دی چې هغه ترڅلويښتو [ ۴۰ ] کالوپورې مسلسل ليکلوکښې مشغول وو، اوپه هره ورځ کښې به ئې څلويښت [ ۴۰ ] ورقه ليکلومعمول وو [ البدايه والنهايه، ص۱۴۵ج۱۱ ] بعضې حضراتوپه دهٔ باندې دشيعه کيدوالزام عائد کړې دې، ليکن محققينوددې الزام ترديدکړې دې، اوحقيقت هم دا دې چې هغه داهل سنت جليل القدر عالم دې، بکله دهغه شمارپه ائمه مجتهدينوکښې کيږی۔

ددهٔ تفسيرپه دريشت [ ۳۰ ] جلدونوکښې دې، اوروستوتفاسيرو دپاره دبنيادی مآخذ حيثيت لری، هغه دآياتونوپه تفسيرکښې دعلماؤ مختلف اقوال نقل کوی، اوبيا چې کوم قول دهغه په وړاندې راجح وی هغه ددلائلو په ذريعه سره ثابتوی، البته دهغه په تفسيرکښې صحيح اوسقيم هرشان روايات جمع شوی دی، ځکه دهغه بيان کړې شوی هرروايت باندې اعتماد نشی کيدې، په اصل کښې دې تفسيرنه دهغه مقصداووچې دتفسيرقرآن په باره کښې څومره روايات چې هغه ملاوې دې شی هغه ټول جمع کړې شی، اودغه جمع کړې شوی موادو نه کار واغستلې شی، البته هغه دهرروايت سره دهغې سند هم ذکرکړې دې، دې دپاره چې کوم سړې غواړی دراويانو تحقيق کولوسره دروايت صحيح يا غلط کيدې فيصله اوکړې شی۔

① **تفسير ابن كثير:** په دې کښې سرفهرست تفسير ابن کثير دې. دا د حافظ عماد الدين ابوالفداء اسماعيل بن الخطيب ابی الحفص عمر بن كثير الشافعی رحمه الله [المتوفی ۷۴۷ ھ] تنصيف دې. او په څلورو جلدونو مشتمل دې. دې کتاب ته د تفسير ابن جرير خلاصه وئيل پکار دی. حافظ بن کثير رحمه الله چې کومه طريقه اختيار کړې ده.هغه د تفسير بالروايت طريقه ده. خو د حافظ ابن کثير رحمه الله خصوصيت دادې چې کوم کمزورې روايات چې دوی نقل کړی دی. نود هغې د اسناد په علتونو باندې يئ تنبيه هم ورکړې ده.

او په دې لحاظ سره داکتاب په ټولو تفسيری کتابونوکښې يوممتاز مقام لری۔

② **تفسير قرطبي:** ددې پوره نوم "الجامع لاحكام القرآن" دادې د اندلس دمشهور او محقق عالم ابو عبدالله محمد بن احمد بن ابی بكر القرطبی رحمه الله [متوفی ۶۷۱ ھ] تصنيف دآ دوی په فقه کښې د امام مالك د مسلك تابع دې.

دعبادت او دزهد په اعتبار سره لوئ ناموړه سړې وو،

په اصل کښې‌خو ددې کتاب اصلی موضوع د قرآن کريم نه د فقهی احکامو او مسائلو استنباط دې. خو په دې ضمن کښې‌هغوی د قرآن کريم د آيتونو تشريح، د ګرانو ټکو تحقيق، اعراب، بلاغت، اومتعلقه روايات هم په تفسيرکښې ښه جمع کړی دی.او باربار چاپ شوې دې.

③ **تفسير كبير:** د امام رازی رحمه الله تفسير کبير دې ددې اصل نوم "مفاتيح الغيب" دې خو د تفسير کبير په نوم باندې زيات مشهور دادې د امام فخر الدين محمد بن ضياء الدين عمر الريزی [متوفی ۶۰۶ ھ] تصنيف دې. ځکه چې د روايت په اعتبار سره تفسير ابن کثير ډير جامع او بې نظيره تفسير دې دغه شان د علوم درايت په لحاظ سره تفسير کبير لاجوابه دې

بعضي خلقو په دې كتاب باندې دا فقره چسپان كړې ده. چې [فيه كل شئ إلا التفسير] په دې كښې دتفسير نه سوا هرڅه شته[1] خوحقيقت دادې چې دا جمله ددې كتاب سره ډيرلوئې ظلم دې ځكه چې دقرآن پاك دحل دپاره ددې تفسير څه ثاني نشته ددې امتيازي خصوصيات دا دي.

④ **دتفسير كبير باره كښې څو ضروري خبرې** : [از مترجم] امام رازي رحمه الله دا تفسير د سورة فتح پورې ليكلې وو. چې وفات شو نو دسورة فتح نه پس يوبل عالم قاضي شهاب الدين بن خليل الخولي الدمشقي رحمه الله [متوفى ۶۳۹ ه] يا شيخ نجم الدين احمد بن محمد القمولي [متوفى ۷۷۷ ه] رحمه الله كښې مكمل كړلو [2]

امام رازي رحمه الله دخپلې زمانې دضرورت مطابق چونكه كلامي بحث اودباطل فرقوترديدباندې خاص زور ور كړې دې او په دې ضمن كښې دهغه بحثونه په ډيرو ځاينوكښې ډير اوږده شوي دي، البته په يوڅومقاماتوباندې هغوى دجمهورامت دلارې نه اخوا دآيات قرآني تفسير كړې دې، ليكن داسې مقامات اتۀ [۸] غټ غټ جلدونوكښې خال خال دي ـ

⑤ **تفسير البحر المحيط** : دا دعلامه ابوحيان غرناطي اندلسي رحمه الله [ متوفى ۷۵۴ه ] تصنيف دې، كوم چې داسلامي علومونه علاوه په علم نحواو بلاغت كښې خصوصي مهارت لرلو، نو ددۀ په تفسيركښې دنحواو دبلاغت رنګ ښكاره دې، دئ دهرآيت دالفاظوتحقيق، دتركيبونو اختلاف اودبلاغت نكات بيان كولوباندې خاص زرو وركړې دې ـ

⑥ **احكام القرآن للجصاص** رحمه الله : دا د امام ابوبكرجصاص رازي [ متوفى ۳۷۰ه ] تصنيف دې، كوم چې په فقهاء احنافوكښې دممتاز مقام خاوند دې، ددوى ددې كتاب موضوع دقرآن كريم نه فقهي احكامات اومسائل استنباط كول دي، اوهغوى دمسلسل آيتونودتفسير په ځائې باندې صرف دهغه آيتونوفقهي تفصيلات بيان كړي دي، كوم چې په فقهي احكاماتوباندې مشتمل دي، په دې موضوع باندې ډيركتابونه ليكلې شوي دي، ليكن دې كتاب ته په دغه ټولوكښې يولوړ اوممتاز مقام حاصل دې ـ

⑦ **تفسير الدرالمنثور** : دا دعلامه جلال الدين سيوطي رحمه الله [متوفى ۹۱۰ه ] تصنيف دې، اوددې پوره نوم ,, **الدرا لمنثور في التفسير بالماثور** ،، دې، په دې كښې علامه سيوطي رحمه الله دهغه ټولورواياتونودجمع كولو كوشش كړې دې كوم چې دقرآن كريم دتفسير سره متعلق هغه ته ملاؤ شوي دي، ددوى نه مخكښې ډيرو محدثينومثلا حافظ ابن جرير رحمه الله ، امام بغوي رحمه الله او ابن ماجه رحمه الله وغيره په خپله خپله ټوګه باندې دكار كړې دې،

علامه سيوطي رحمه الله ددغه ټولوبيان شوي جمع روايات په دې كتاب كښې جمع كړي دي، البته هغوى درواياتو سره دهغې پوره سندذكركولوپه ځائې باندې صرف دهغه مصنف نوم ذكر

[1] الاتقان [۲/ و تجيب السلمين بكلام رب العالمين. خو زمونږ حقيره رايئ دا ده. كه دجمله په څه كتاب باندې صحيح راځي نو هغه به زمونږ د زمانې په تفسيرالجواهر للطنطاوي دې.

[2] كشف الظنون [۲/۴۷۷]

کولوباندې اکتفاء کړې ده چاچې دې روايت په خپل سند سره بيان کړې دې، دې دپاره چې په وخت دضرورت دغې ته مراجعت کولوسره دسند تحقيق اوکړې شی، چونکه دهغه مقصد درواياتوذخيرې لره جمع کول وو، ځه په دې کتاب کښې هم صحيح او سقيم هرشان رواياتونه جمع شوی دی، او دسند دتحقيق نه بغير ددهٔ هربيان کړې شوې روايت قابل اعتماد نه ګڼړلې کيږی، علامه سيوطی رحمه الله په بعضې ځائې کښې درروايت سره دا هم اوائی چې ددې سند په کومه درجه کښې دې، چونکه دتنقيد حديث په معامله کښې هغه ډير متساهل مشهور دې، ځکه په دهٔ باندې کماحقه اعتماد کول مشکل دی۔

⑥ **تفسير مظهری**: دا دعلامه قاضی ثناء الله صاحب پانی پتی رحمه الله متوفی [۱۲۲۵ھ] تصنيف دې اوهغه دخپل شيخ طريقت مرزا مظهرجان جانان دهلوی رحمه الله په نوم باندې ددې تفسيرنوم „ تفسير مظهری اينبودې دې، ددهٔ دا تفسير ډيره ساده او واضحه دې، او په اختصار سره دقرآنی آياتونو تشريح معلوملودپاره ډير فائده مند، دهٔ د قرآنی آياتونوتشريح سره متعلقه رواياتونه هم ډير تفصيل سره ذکرکړی دی، دنوروتفسيرونوپه مقابله کښې ډيرپه چهان بين سره درواياات کولو کوشش کړې دې۔

⑧ **روح المعانی**: ددې پوره نوم "روح المعانی فی تفسير القرآن العظيم والسبع المثانی" دې او د بغداد د مشهور عالم علامه محمود آلوسی حنفی رحمه الله [متوفی ۱۲۷۰ ھ] تصنيف دې او په ديرش جلدونو باندې مشتمل دې. دا چونکه بالکل دآخر دور تصنيف دې. نو ځکه دوی دا کوشش کړېدې چې د وړاندينو تفسيرونو اهم مباحث په دې کښې جمع کړی. نو په دې کښې لغت، نحو ادب، بلاغت، فقه، عقائد، کلام، فسلفه، هيئت، تصوف او متعلقه روايتو باندې تفصيلی بحث کړېدې. او کوشش يئ دا کړېدې. چې د آيت سره متعلقه علمی بحث پاتې نشی. د حديث د رواياتو په معامله کښې هم علامه آلوسی د نورو مفسرينو په مقابله کښې محتاط پاتې شوې دې په دې اعتبار سره دې کتاب ته د وړاندينی تفاسيرو خلاصه وئيل پکار دی. او اوس قرآن د تفسير په سلسله کښې هيڅ يو کار هم ددې د مددنه بې نيازه کيدې نشی.

.............

## تمهيد

بسم الله الرحمن الرحيم

**الحمد لله عدد خلقه وزنة عرشه ومداد كلماته ورضى نفسه والصلوة والسلام على صفوة رسله وخير خلقه سيدنا محمد واله وصحبه وجميع الأنبياء والمرسلين. اما بعد!**

### د دنيا دټولو نه لوئې نعمت قرآن دې:

قرآن کريم په دې دنيا کښې هغه قيمتي نعمت دې چې ټول جهان، آسمان او زمکه او په دې کښې پيدا کيدونکې مخلوقات ددې بدل نه شي جوړيدې.

د انسان دټولو نه لويه نيک بختي او خوش نصيبي دخپل وس تر حده پورې په قرآن کريم کښې مشغوليدل او دا حاصلول دي. او د ټولو نه لويه بد بختي او بد نصيبي دقرآن نه مخ اړول او دا پريخودل دي. په دې وجه هر مسلمان له ددې فکر فرض عين او ضروري دې چې قرآن کريم په صحيح الفاظو سره پخپله د لوستلو او اولاد ته ئې د ښودلو کوشش اوکړي او بيا څومره چې ممکن وي ددې په معانيو او احکامو باندې دپوهيدلو او په دې باندې دعمل کولو فکر کښې مشغوله وي، او دا دخپل ټول عمر وظيفه جوړه کړي، او د خپلې حوصلې او همت مطابق چې ددې کومه حصه هم نصيب شي هغه دې ددې جهان دټولو نه لوئې نعمت اوګڼري.

### د مصنف رحمه الله مختصر حالات

ناکارهٔ خلائق بنده محمد شفيع بن مولانا محمد يٰسين صاحب رحمه الله ددې نعمت شکر نه شي اداکولې چې الله تعالى زما د پيدائش ځائې او وطن د اسلامي علومو مرکز ديوبند جوړ کړو، او د داسې پلار محترم په غيږه کښې ئې د پرورش موقع رانصيب کړه چې هغه د حافظ قرآن او عالم دين کيدو سره سره د دارالعلوم ديوبند همځولي وو، د دارالعلوم ديوبند د بنياد ايخودونکو رباني علماؤ د صحبت نه ورته د فيض حاصليدو مواقع هميشه ملاؤ وې، ددوى وجود ددغې بزرګانو ژوندئ تذکره وه، او ددوى ژوند د ماشوموالي نه تر وفاته پورې په دارالعلوم ديوبند کښې تير شو، هم دلته ئې تعليم حاصل کړو، او هم دغلته مدرس شو او ټول عمر ئې د تعليم په خدمت کښې تير کړو.

د احقر (مفتي شفيع صاحب رحمه الله) د تعليم قرآن ابتداء د پلار محترم په تجويز سره د دارالعلوم (ديوبند) د قرآن د د استاذانو حافظ عبدالعليم صاحب او حافظ نامدار خان صاحب رحمهما الله سره اوشوه، او بيا په خپله د پلار محترم په خدمت کښې اوسيدو سره مې اردو، فارسي، حساب، رياضي او د ابتدائي عربي تعليم حاصل کړو. بيا مې په سن ۱۳۳۱ هـ کښې د دارالعلوم په عربي کلاس کښې باقاعده داخله واخسته، او د ۱۳۳۵ هـ پورې مې د درس نظامي نصاب ددې فن د ماهر استاذانو په خدمت کښې حاصل کړو چې دهغوى مثال نن د دنيا په ګوټ ګوټ کښې ملاويدل مشکل دى. د ماشوموالي نه تر متوسطه عربي تعليم پورې مې د شيخ العرب والعجم سيدى حضرت مولانا محمود الحسن صاحب شيخ الهند قدس سره په خدمت کښې حاضري اوکړه، کله کله راته د درس بخاري غير رسمي حاضري نصيب شوه، د مالټا جيل نه د واپس تشريف راوړلو نه پس راته هم ددوى په لاس مبارک بيعت د طريقت نصيب شو، او د عربي علومو باقاعده تعليم مې د لاندينو حضراتو نه حاصل کړو. حافظ حديث جامع العلوم حضرت علامه مولانا محمد انور شاه صاحب کشميري، عارف بالله حضرت

مولانا مفتي عزيز الرحمن صاحب، عالم رباني حضرت مولانا سيد اصغرحسين صاحب، شيخ الاسلام حضرت مولانا شبير احمد صاحب عثماني، شيخ الادب والفقه حضرت مولانا محمد اعزاز علي صاحب رحمة الله عليهم اجمعين، او ماهر علوم معقول ومنقول حضرت علامه مولانا محمد ابراهيم صاحب اوحضرت مولانا محمد رسول خان صاحب، افسوس ده چې ددې تحرير د ليکلو په وخت د آخرالذکر دوؤ بزرګانو نه علاوه ټول ددې فاني دنيا نه رخصت شوي دي الله تعالى دې ددې دواړو بزرګانو سورې تر ډير وخته [۱] پورې د عافيت سره قائم وساتي، او اهل علمو ته دې ددوى نه د فيض حاصلولو زيات نه زياته موقع ورنصيب کړي.

د استاذانو او د دارالعلوم د اکابرو د شفقت او مهربانۍ نظر د شروع نه په دې ناکاره باندې وو، په ۱۳۳۶ هـ کښې احقر د فنونو بقيه يو څو کتابونه "قاضي" او 'ميرزاهد' او 'أموعامه' وغيره وئيل شروع کړي وو، چې هم په دغه کال د دارالعلوم اکابرينو راته څه سبقونه د خودلو دپاره راکړل، دغسې کال ۱۳۳۶ هـ زما د تعليم او تعلّم مشترک کال وو، د ۱۳۳۷هـ نه باقاعده په دارالعلوم کښې د تدريس په خدمت باندې اولګولې شوم، دولس کاله مې مسلسل د مختلف علومو او فنونو د متوسط او د اعلى کتابونو د درس خدمات ترسره کړل، په ۱۳۴۹ هـ کښې راته د صدر مفتي په حيثيت سره د دارالعلوم د فتوىٰ منصب اوسپارلې شو، دې سره سره مې دحديث او تفسير د څه کتابونو درس هم کولو. او آخر دا چې په ۱۳۶۲ هـ کښې دتحريکِ پاکستان د جدوجهد او دڅه نورو اسبابو په وجه د دارالعلوم نه مستعفي شوم.

په دارالعلوم کښې د شپږويشت (۲۶) کالو د درس او فتوىٰ خدمت سره سره مې په خاص خاص موضوعاتو باندې د تصنيف سلسله هم جاري وه، دې ټولې مشغولتيا او د دارالعلوم د بزرګانو په صحبت سره دخپلې حوصلې مطابق راته د قرآن او حديث سره څه مناسبت پيداشوې وو.

دحضرت مجدّد الملة حکيم الامت سيّدي حضرت مولانا اشرف علي تهانوي قدس سره په خدمت کښې د حاضرۍ شرف خو راته د طالب علمۍ د زمانې نه هم حاصليدو، خو د ۱۳۴۶ هـ نه د بيعت په تجديد سره راته د مسلسل حاضريدو شرف حاصل شو، چې دا تقريباً شل (۲۰) کاله د حضرت اقدس د وفات رجب ۱۳۶۲ هـ پورې جاري وو. حضرت (تهانوي) قدس سره ته الله تعالى د جمله علومو او فنونو کامل مهارت ورنصيب کړې وو، او په هغې کښې خصوصاً تفسير او تصوّف دهغوى مخصوص فن وو، په دې دواړو علومو کښې دهغوى تصانيف 'بيان القرآن' ، 'التکشّف' او 'التّشرّف' او نورې د تصوّف رسالې په دې باندې کافي شاهد دي، حضرت قدس سره په خپل آخرى عمر کښې دا ضرورت محسوس کړو چې په احکام القرآن باندې يو داسې کتاب اوليکلې شي چې په هغې کښې د عصر حاضر مسائل هم واضحه کړې شي څومره چې د قرآن کريم نه ثابتيږي. دا کار ئې د زر پوره کولو په خيال په يو څو ملګرو تقسيم کړو، دهغې يوه حصه ئې ماته هم اوسپارله، چې ددې څه حصه خو دحضرت قدس سره په ژوند کښې دهغوى په نګرانۍ کښې اوليکلې شوه، باقي حصه دحضرت رحمه الله د وفات نه پس

---

[۱] په ۲۳ / شعبان ۱۳۹۳ هـ چې مې کله په معارف القرآن باندې نظرثاني شروع کړه نو دا دواړه بزرګان هم رخصت شوي دي، الله تعالى دې دوى ته په خپل رحمت کښې ځائې ورکړي، او اوچتې درجې دې ورنصيب کړي.(آمين) ۱۲ منه.

د الله تعالی په مدد سره پوره شوه، او په دوه جلدونو کښې شائع هم شوه، دغه مجموعه په عربۍ ژبه کښې ده.

دغې سلسلې د حضرت رحمه الله په برکت سره بحمد الله د قرآن کریم سره خصوصي تعلق او طلب راپیدا کړو، ددې نه پس په قضاء وقدر سره په ژوند کښې د یو نوي انقلاب دروازه کهلاؤ شوه، په ۱۳۶۵ هـ یعني په ۱۹۴۶ ء کښې د پاکستان تحریک مضبوط شو او پوره ملک کښې خورشو، د حضرت قدس سره په سابقه ایماء اود موجوده اکابرو په ارشاد مې په دې تحریک کښې حصه واخسته، او دوه کاله مې شپه ورځ په دې جدوجهد کښې تیر کړل، د مدراس نه پېښور پورې اود مغرب کښې تر کراچۍ پورې مې د ملک دورې اوکړې، هم دغه تحریک پاکستان او ددې جدوجهد آخرکار د دارالعلوم دیوبند نه په استعفاء ورکولو ختم شو، او آخر داچې الله تعالی د مسلمانانو د مودو راسې دا خواهش پوره کړو چې هندوستان تقسیم شو او مسلمانانو دپاره دخالص اسلام په نوم باندې د دنیا دټولو نه لوئې اسلامي سلطنت د پاکستان په نوم په وجود کښې راغې.

د اسلامي سلطنت، اسلامي نظام، او د اسلامي قانون پخواني امیدونه او آرزوګانې اوس د اُمید په صورت کښې تبدیل شو، او دې سره سره محبوب وطن د پرېخودو او پاکستان لره د وطن جوړولو کشمکش په زړه کښې راؤچت شو، په وطنِ اصلي دیوبند د اسلامي علومو په مرکز اود اُمت د منتخب علماؤ مرجع کیدو باندې چې به مې نظر لاړلو نود سعدي شیرازي رحمه الله دا شعر به رایاد شو:

تولائے مردانِ ایں پاک بوم برانگیختم خاطر از شام و رُوم[1]

خو کله چې به مې دملک په سیاسي حالاتو او په هندوستان کښې دمسلمانانو او ددوی د ادارو په مستقبل باندې نظر تلو نو څه روښانه اړخ به مخې ته نه راتلو، او ددې په خلاف پاکستان کښې په هر شان د صلاح او فلاح اُمید په ظاهري اسبابو سره په نظر راتلو، دلته دا کشمکش جاري وو او بل طرف ته په ټول ملک کښې بدامني او د قتل وغارت قیامت خیز هنګامې پیدا شوې، په هندوستان کښې مسلمانانو باندې ژوند تنګ کړې شو، په لکهونو انسانان په زبردستۍ سره پاکستان طرف ته اوشړلې شو، او بیا تلونکو خلقو ته په عافیت سره د تلو موقع هم ورنکړې شوه، ځائې په ځائې قتل عام، خون ریزي، لوټ مار، او د اغوا خطرناکې نظارې وې، دچا صحیح سلامت پاکستان ته رسیدل به یوه اُعجوبه یا کرامت ګڼړلې شو، اته میاشتې پس دا هنګامې لږې کمې شوې، نو زما اُستاذ محترم او د ترور ځوی شیخ الاسلام حضرت مولانا شبیر احمد عثماني رحمه الله اود کراچۍ یو څو مشرانو دا اراده اوکړه چې پاکستان دپاره د اسلامي دستور یوه خاکه جوړول پکار دي چې حکومت ته وړاندې کړې شي، چې دکوم مقصد دپاره پاکستان جوړشوې دې، هغه زر تر زره په کار راوستې شي، ددې تجویز دپاره د یو څو علماؤ سره ماته هم د هندوستان نه کراچۍ ته د راتلو دعوت راکړې شو.

۲۰ / جمادي الثاني ۱۳۶۷ هـ، یکم مئ ۱۹۴۸ ء زما په عمر کښې دعظیم انقلاب ورځ وه، چې په دې کښې مې محبوب وطن د علومو مرکز دیوبند ته خیرباد اووئیلو. صرف واړه ماشومان او ددوی مور مې دځان سره کړه او پاکستان ته روان شوم، مور محترمه، او اکثر اولاد او ټول

[1] ترجمه: ددې پاک وطن د خلقو سره د تعلق په وجه زما زړه د شام او رُوم نه موړ شوې دې.

رشته داران او کور وغیره د پریخودلو سخت منظر، او کوم طرف ته چې ځم هلته د یو مسافر په حیثیت سره د وخت تیرولو مشکلات، د یو نوی اسلامی حکومت وجود او په دې کښې د دینی سوچونو په کار د راتلو خوشحالونکی امیدونه وو چې په دې ټولو ګډ وډو تصوراتو کښې راګیر او حیران ووم.

دهلی او بعضې مقاماتو باندې راتیریدو سره په ۲۶ جمادی الثانی ۱۳۶۷ هـ، ۶ مئ ۱۹۴۸ء الله تعالی د پاکستان حدودو ته اورسولم، او کراچۍ مې غیر اختیاری طور باندې خپل وطن جوړ شو، دلته د راتلو مې اوس دا وخت پنځلس کاله او درې میاشتې پوره شوې، په دې پنځلس کاله کښې مې څه اوکړل او څه مې اوکتل، ددې قصه ډیره اوګده ده، دا مقام دهغې د لیکلو نه دې، د کومو مقاصدو دپاره چې پاکستان مُحبُّوب او مطلوب وو، او دڅه دپاره چې مې هر څه قربان کړی وو، د حکومتونو انقلاباتو دهغې حیثیت د یو خونډوُر خوب نه زیات څه نه دې پریخودې:

بلبل همه تن خون شد وګل شد همه تن چاک     اے وائے بهارے اګر ایں ست بهارے [1]

د حکومت د لارې نه دڅه دینی انقلاب او د واضحه اصلاح اُمیدونه هسې خوب او خیال پاتې کیږی، البته په عامو مسلمانانو کښې د دین بیداری او د دین د اُمورو احساس بحمدالله تر اوسه پورې د ژوند سرمایه جوړه شوې ده، په دوی کښې د اصلاح او تقوی والؤ بحمد الله خاص تعداد موجود دې، همدې احساس دلته د دینی خدمتونو لارې پرانستې دی.

د حکومت د لارې د اصلاح دکوششونو نه علاوه په عوامی طرز سره د اصلاحی کوششونو او دې دپاره دڅه ادارو قائمول مې هم د شروع نه په نظر کښې وو، ددې ابتداء په ۱۳۷۰ هـ، ۱۹۵۰ هـ کښې داسې اوشوه چې آرام باغ کراچۍ سره متصل په مسجد باب الاسلام کښې مې روزانه د سحر نه پس درسِ قرآن شروع کړو، او د هر طرفه د راتلونکی سوالاتو په جواب کښې چې به مسلسل کومې فتوی لیکلې کیدې، او د نقل نه بغیر به مې لیکلې، اوس ددې انتظام هم په دې مسجد کښې د یو دارالافتاء د قیام په صورت کښې په عمل کښې راغلو، دا درس قرآن د اُمید نه زیات فائده مند او مؤثر ثابت شو، د آوریدونکو په ژوند کښې د انقلاب آثرات ښکاره شو، احقر ناکاره (مفتی صاحب) ته د ژوند یوه ښه مشغله ملاؤ شوه، د سحر د مونځ نه پس د یوې ګهنټې په عمل سره په اووه کالو کښې بحمد الله درسِ قرآن مکمل شو.

تردې ځائې پورې تمهید د صفر په میاشت ۱۳۸۳ هـ کښې هغه وخت لیکلې شوې وو کله چې مې د "تفسیر القرآن" په کتابی صورت کښې د راوستلو اراده اوشوه، بیا د ۱۳۸۸ هـ پورې دا سلسله پاتې شوه، د ۱۳۸۸ هـ نه په دې باندې کار شروع شوچې د ۱۳۹۲ هـ پورې په پنځه کالو کښې بحمدالله مکمل شو، ددې تمهید نه پس راروانه حصه د تفسیر د تکمیل نه پس په ۱۳۹۲ هـ کښې اولیکلې شوه.

**قدرتی اسبابو سره د تفسیر "معارف القرآن" تصنیف**

د احقر ناکاره ګناهګار بې علمه اوبې عمله دا جرأت کله هم نه وو چې د قرآن کریم تفسیر اولیکم، خو د قدرت د تقدیر نه ددې اسباب داسې شروع شو چه د ریډیو پاکستان نه د درس

[1] ترجمه: د بلبل ټول بدن په وینو کښې لت پت (ککړ) دې او ګلونه ټکړې ټکړې شو، که موسم د بهار هم دا دې نو په داسې موسم بهار باندې سخت افسوس دې.

قرآن روزانه نشر کولو متعلق ماته فرمائش اوکړې شو چې دځه عذرونو په وجه مې قبول نه کړې شو، بیا دوی راته یو بل تجویز وړاندې کړو چې د روزانه د درس نه علاوه یو هفته واری درس د "معارف القرآن" په نوم جاری کړې شی، چې په هغې کښې د پوره قرآن تفسیر په نظر کښې نه وی بلکه دعامو مسلمانانو د موجوده ضرورت په لحاظ سره د خاص خاص آیاتونو انتخاب اوکړې شی او دهغې تفسیر او متعلقه احکام بیان کړې شی. احقر دا (فرمائش) په دې شرط منظور کړوچه د درس به هیڅ معاوضه نه اخلم او ځه داسې پابندی به هم نه قبلوم چه هغه زما په نزد د درس قرآن مناسب نه وی، زما دا شرط منظور کړې شو.

د الله تعالی په نوم دا درس د "معارف القرآن" په نوم باندې د ۳/ شوال ۱۳۷۳ هـ، ۲/ جولائی ۱۹۵۴ ء نه شروع شو او تقریباً یوولس (۱۱) کاله پابندئ سره جاری وو، تردې پورې چې په جون ۱۹۶۴ء کښې د ریډیو پاکستان دخپلې نوې پالیسئ لاندې دا درس ختم کړې شو، د"معارف القرآن" دا درس په دیارلسمې سیپارې او په سورۃ ابراهیم باندې ختم شو. په کوم کښې چې ددې دیارلسو سیپارو مکمل تفسیر نه وو بلکه د منتخب آیاتونو تفسیر وو، احقر په مینځ کښې داسې آیاتونه نه وو شامل کړی کوم چې خالص په علمی مضامینو باندې مشتمل وو او د ریډیو د تقریر په ذریعه د عوامو په ذهن کښې دهغې اچول مشکل وو، یا هغه آیاتونه کوم چې څو ځله بار بار راغلی وو.

کوم وخت چې مې دا کار شروع کولو، هغه وخت مې دا خیال بالکل نه ووچې دا به څه وخت کښې په کتابی صورت کښې د یو مستقل تفسیر په انداز کښې شائع کیږی، خو اوشوه دا چې کله دا درس نشر کیدل شروع شونود پاکستان دټولو علاقو نه او ددوی نه زیات د نورو ملکونو افریقه او یورپ وغیره کښې د اوسیدونکو مسلمانانو د طرفه بې شماره خطونه ریډیو پاکستان ته او پخپله ماته هم ملاؤ شو، دهغې نه معلومه شوه چې ډیر دینداره او نوی تعلیم یافته مسلمانان ددې درس ډیر شوق لری، په افریقه کښې به دا درس د شپې په آخر کښې یا بالکل د صبح صادق په وخت رسیدلو، دهغه ځائ خلقو دا (درس) د ټیپ ریکارډ په ذریعه محفوظ کړې وو اوروسته ئې ټولو ته د بار بار آورولو اهتمام اوکړو، اود مختلفو ځایونو نه ددې تقاضا اوشوه چې دا درس دې په کتابی صورت کښې شائع کړې شی.

د عامو مسلمانانو دې شوق ددې ناکاره همت زیات کړو او د امراضو او کمزورئ باوجود مې تر یوولس کالو پورې دا سلسله ډیر پابندئ سره جاری اوساتله، په ۱۳۸۳هـ او ۱۹۶۴ ء کښې چې کله د درس سلسله بنده شوه نو د ډیرو حضراتو دطرفه دا تقاضا اوشوه چې څومره شوې دې دا په کتابی شکل کښې شائع کړې شی، او په مینځ کښې چې کوم آیاتونه پریښودلې شوی دی هغه دې هم پوره کړې شی، د الله په نوم مې دا اراده اوکړه چې په موجوده باندې مې نظرثانی شروع کړې شی او په مینځ کښې د باقی آیاتونو د تکمیل کار شروع کړې شی، نو په ۱۶/صفر ۱۳۸۳ هـ کښې د سورۃ فاتحه تفسیر باندې نظرثانی مکمل شوه، او په سورۃ بقره مې کار شروع کړو، په دې کښې د احکامو مشکل آیاتونه ډیر دی کوم چې په ریډیو باندې په نشری تقریر کښې نه وو راغلی، دې کار ډیر محنت او فراغت غوښتلو،خو ډیرو مشاغلو او بیمارو فارغه نه کړم او تقریبا دا کار رانه پاتې پاتې کیدلو.

**د تقدیر په کرشمې سره سخته اوږده بیماري د تفسیر دتکمیل سبب جوړ شو**

د ۱۳۸۸ هـ په شعبان کښې د احقر په لاندې بدن څه پولئ شان رابنکاره شوې، او په مزه مزه زیاتیدلې، آخر په رمضان کښې دې (پولو) د اودریدو نه معذوره کړم، آخری اته (۸) روژې هم رانه قضاشوې، په کور کښې به مې په ناسته مونځ کولو، دې سره په خپه کښې د نقرس زوږ درد (یعنی دخپو د غټې ګوتې درد) شروع شو، ددې کوم علاج چې به مخکښې فائده کوله هغه هم کامیاب نه شو، او د دواړو خپو نه معذوره شوم، تقریبا لس میاشتې هم دغسې په معذورئ او بیمارئ کښې د مرګ او ژوند په کشمکش کښې تیرې شوې، کله چې د ګرځیدو راګرځیدو نه او د هر کار نه معذوره شوم، د ژوند امید مې هم کم شو، نو اوس راته په دې افسوس اوشوچه دا تفسیری کار چې څومره شوې وو په هغې باندې نظرثانی او تکمیل هم اونه شو، اوس به دا کار هسې ضائع شی، الله تعالی مې په زړه کښې همت واچولو، اود شوال ۱۳۸۸ هـ په آخر کښې د بیمارئ په حالت کښې راباندې الله تعالی دا کار شروع کړو، او په ۲۵/ ذیقعده ۱۳۸۸ هـ سورة بقره پوره شوه او کتابت او طباعت دپاره مې ورکړه، ددې نه روسته خاص د بیمارئ او معذورئ په حالت کښې دا کار په تدریج سره روان وو، الله تعالی ددې په برکت سره لس میاشتې پس معذوری هم ختمه کړه، نو د رجب ۱۳۸۹ هـ نه دا کار لږ تیز شو، خو دې سره سره په ملک کښې جدید انتخاباتو د سیاسی هنګامو یو طوفان جوړکړو، زه اګرچې د ډیر مودې راسې د سیاست نه بالکل یو طرف ته شوې ووم، خو دې انتخاباتو په پاکستان کښې د خالص اسلامی حکومت په ځائې د کمیونزم او سوشلزم خوریدو خطرات مضبوط کړل، او سوشلزم لره عین اسلام باور کولو دپاره کوششونه او جلسې جلوسونه زیات شو، ددې مسئلې نزاکت بیا زه په دې آماده کړم چې کم ازکم په اسلام او سوشلزم کښې فرق او د سوشلزم خطرناک نتائجو نه قوم خبرولو تر حده پورې په دې سیاسی میدان کښې حصه واخستلې شی ددې دپاره مې تحریری مقالې هم اولیکلې، او د مشرقی او مغربی پاکستان په اهمو مواقعو کښې په جلسو کښې مې شرکت هم کولو، د مسئلې وضاحت ترخپل وس تر حده پورې پوره شو، خود سیاست په میدان کښې د مسائلو او حقائقو نه زیات زور او زر کارکوی، د انتخاباتو نتیجه بالکل خلاف او برعکس اووتله، دهغې په اثر کښې چې په پاکستان کوم زوال راتلل وو هغه راغلو. **لِلّٰهِ الْاَمْرُ مِنْ قَبْلُ وَمِنْ بَعْدُ.**

د انتخاباتو نه پس احقر بیا د سیاست نه مستعفی شو اوخپل داکارئې شروع کړو، او الحمد لله علی کرمه چې د رجب ۱۳۹۰ هـ پورې د "معارف القرآن" د دیارلسو سیپارو نظرثانی اوشوه، او په مینځ کښې د پریښودلو شوو آیاتونو تفسیر هم مکمل شو، اود سورة ابراهیم نه سورة نحل پورې د دوه سیپارو تفسیر هم اولیکلې شو اوس قرآن مجید نصف ته نزدې شو نو الله تعالې راته همت راکړو او د باقی پاتې قرآن تفسیر لیکل مې شروع کړل، ددې هغه وخت هیڅ تصور نه وو چې د پنځه اویا (۷۵) کالو په عمر او د طاقت د کمزورئ او دې سره د مختلف قسمه امراضو تسلسل کښې به دا تفسیر پوره شی، خودا خیال مې اوکړو چې قرآن ختمول مقصود نه دی بلکه په قرآن کښې خپل عمر ختمول دی، د شعبان ۱۳۹۰ هـ نه مې د سورة بنی اسرائیل تفسیر شروع کړو او په ۲۳/ صفر ۱۳۹۱ هـ د قرآن څلورم منزل سورة فرقان نورلسمې (۱۹) سیپارې پورې مکمل شو

وروسته درې منزله یعنی تقریباً دریمه حصه قرآن کریم باقي وو، د عمر د کمزورئ او د مختلف قسمه مرضونو په وجه مې دا خیال پیدا شو چه ددې ټولو تکمیل خو شاید زمانه اونه شي. خود مینځنی پنځم او شپږم منزل تفسیر احقر په "احکام القرآن" کښې عربي ژبه کښې لیکلې دې، چې هغه شائع شوې هم دي، که ما دغه او نه لیکلې شو نو زما نه پس به ئې هم څوک د الله بنده همدغه د "احکام القرآن" تفسیر به اردو ژبه کښې منتقل کړي او دا حصه به پوره شي، او ددې وصیت مې هم څه حضراتو ته اوکړو، اود مینځ دا دوه منزلونه مې پرېښودل او د آخری اووم منزل سورة ق نه مې لیکل شروع کړل، د الله تعالی مدد مې شامل حال شو، اوپه ۱۲/ربیع الاول ۱۳۹۱هـ مې شروع اوکړه د شوال ۱۳۹۱ هـ پورې مې دا آخری منزل پوره کړو، صرف معوذتین یعنی آخری دوه سورتونه مې پرېښودل.

اوس مینځنی دوه منزلونه د سورة شعراء نه سورة حجرات پورې باقي وو، دالله په نوم مې دغه هم شروع کړل، دهغې نه سورة ص، صافات، زخرف مې په خپل عزتمند څوی مولوی محمد تقی سلمه اولیکل، او په خپله مې په هغې نظرثانی اوکړه اومکمل مې کړل، باقي سورتونه مې په خپله لیکل شروع کړل، اود قرآن مجید تقریباً یوه نیمه سیپاره باقي پاتې وه چه په ۲۴/ربیع الثانی ۱۳۹۲ هـ، ۸ جون ۱۹۷۲ء راته ناڅاپه د زړه سخت مرض پیدا شو چې د مرګ نقشه مې په سترګو کې تاؤ شوه، کټونکو د لږ وخت میلمه ګڼړلم، په کراچئ کښې د زړونو هسپتال ته فوری طور باندې اورسولې شوم، درې ورځې پس ډاکټرانو لږ څه د اطمینان اظهار اوکړو، کله چې مې هوش اوحواس صحیح شو نو د باقي پاتې تفسیر خیال مې یو حسرت (ارمان) پاتې شو. عزتمند څوی مولوی محمد تقی سلمه ته مې وصیت اوکړو چه د باقي تفسیر تکمیل اوکړي، په دې مې د زړه بوج لږ سپک شو، د الله تعالی په زرګونو شکرونه چې هغه راته ددې مرض نه صحت هم رانصیب کړو، او درې میاشتې پس مې دومره طاقت اوشو چې څه د لیکلو او لوستلو همت راکښې پیدا شو، خو لږ شان کار کولو سره به مې زړه ، دماغ او سترګې ستړې شوې، خاص د الله تعالی فضل اوکرم ووچه په ما باندې ئې په دې حالت کښې باقي تفسیر ۲۱/ شعبان ۱۳۹۲هـ د چارشنبې په ورځ مکمل کړو، او حسن اتفاق سره هم په دغه ورځ ۱۳۱۴هـ زما د پیدائش ورځ وه، هم په دغه ورځ زما د عمر اووه اویا منزلونه پوره شو، اته اویائم کال شروع شو.

ددې تفسیر شروع په ۱۳۸۸هـ کښې په سختې بیمارئ کښې اوشو او خاتمه ئې پنځه کاله پس په ۱۳۹۲ هـ کښې د سختې بیمارئ نه متصل روسته اوشوه، دا پنځه کاله د آخری عمر د طبعی کمزورئ، د مختلفو بیمارو تسلسل، ګنړ فکرونه، او په ملک کښې د انقلابی هنګامو کال وو، هم په دې کښې الله تعالی ددې تفسیر تقریباً اووه زره صفحات [1] ددې ناکاره په قلم اولیکل، او دا خبره ئې راته په سترګو اوخودله چې:

---

[1] داهم په داسې حال کښې چې د دارالعلوم د انتظامی ذمه دارو او د فتوی د مستقل خدماتو نه علاوه په نورو اهمو موضوعاتو باندې لس مختصر اومفصل کتابونه نور هم اولیکلې شو چې هغه شائع شوی هم دی: (۱) أحکام الحج (کوم چې مختصر آسان کیدو سره ټولو ضروری احکامو ته جامع هم دی)، (۲) الیواقیت فی احکام المواقیت (د مواقیت حج وجده نه داحرام تحقیق)، (۳) منهج الخیر...[بقیه په راروانه صفحه.

اِنَّ الْمَقَادِيْرَ اِذَا سَاعَدَتْ اَلْحَقَتِ الْعَاجِزَ بِالْقَادِرِ

یعنی کله چې د الله تقدیر مدد کوی نو عاجز د قادر سره ملاوهی.
علم او عمل مخکښې هم هسې په نوم وو، دې کمزورئ او بوډاتوب او بیمارو او مشاغلو او دماغی کمزورئ رانه باقی هرڅه هم ختم کړل، په دې حالاتو کښې د تصنیف خصوصاً د قرآن کریم د تفسیر اراده کول هم یو لوئې جرأت وو، اطمینان مې په دې وو، چې په دې کښې زما هیڅ څیز نشته، د اکابر علماؤ او د سلف صالحینو رحمهم الله تفسیر په آسانه ژبه کښې د موجوده زمانې طبیعتونو ته نزدې کول زما د ټول محنت حاصل وو، ما د آخری عمر د پنځو کالو دا سخت محنت په دې خواهش کښې اولګول چه د نوی دور مسلمانان کوم چې عموماً د علمی اصطلاحاتو او د علمی ژبې نه ناآشنا شوی دی، د اکابرو رحمهم الله تفسیر دهغوی دپاره پوهیدلو ته آسان کړم، نو شاید چې ددې زمانې مسلمانانو ته ددې نه نفع اورسیږی، او زما دپاره د آخرت توښه جوړه شی، محققین علماء د خپل علمی تحقیقاتو کمالات ښکاره کوی، ما ناکاره خپله بې علمی په دې پرده کښې پټه کړې ده، الله تعالی دې ما سره د خپل ستّار کیدلو (عیبونو دپټولو) معامله اوکړی، او ددې ناڅیز خدمت دې قبول کړی، چې به دې کښې دڅه علمی کمال خو هیڅ دخل نشته، البته خپل ځان مې سترې کړې ضرور دې، او دا سترې کیدل هم د الله تعالی په توفیق سره وو، ګنی د یو قدم تلو هم څه مجال وو، کاش! الله تعالی زما په دې سترې والی نظر واچوی او زما کوتاهیانې معاف کړی کومې چې رانه دهغه د کتاب کریم په حقوقو اداکولو کښې اوشوې، او دې ته شرف د قبولیت ورنصیب کړی:

نه بحرف ساخته سرخوشم نه به نقش بسته مشوشم
نفسے بیادِ تو مے زنم چه عبارت و چه معانیم [۱]

د کتاب د تصنیف دا اوږده قصه د احقر دپاره خو یو یادداشت او د شکر و یستلو دپاره یوه تذکره ده، خو دعامو خلقو د شوق څیزنه دې، ددې باوجود مې ځکه اولیکل چې خلقو ته زما ددې جرأت عذر معلوم شی.
لکه څنګه چې مې مخکښې عرض کړی دی چه د قرآن په تفسیر باندې د مستقل تصنیف دپاره د جرأت کولو زما دپاره چرته لرې هم څه احتمال نه وو، خو غیر ارادی طور باندې ددې اسباب جوړشو، البته د اوږدې زمانې راسې یوه تمنا مې په زړه کښې وه، چې دحکیم الامت مجدّد الملّة سیّدی حضرت مولانا اشرف علی صاحب تهانوی قدس سره تفسیر "بیان القرآن" چې دا یو بې مثاله، مختصر خو جامع تفسیر او د سلف صالحینو د تفسیرونو لب لباب (خلاصه) ده،

---

...بقیه د تیرمخ] فی الحج عن الغیر (یعنی دحج بدل احکام) (۴) مقام صحابه رضی الله عنهم (د مشاجرات صحابه او د عدالت صحابه مکمل بحث او د سلف صالحینو طرز عمل) (۵) اسلامی ذبیحه (د ذبیحې شرعی احکام مفصّل، د یهود او نصاراؤ د ذبیحې حیثیت، د تحریفاتو تردید) (۶) اعضائے انسانی کی پیوندکاری، (۷) بیمه زندگی (۸) پراویډنټ فنډ (۹) اسلام اور سوشلزم (۱۰) اسلامی نظام میں اقتصادی اصلاحات. فللّه الحمد والمنة ۱۲ منه.

[۱] ترجمه: نه په حرف جوړولو خوشحاله یم. نه په نقش ونګار جوړولو سره ماته څه پریشانی ده، ستا په یاد کښې ساه اخلم، چرته زما عبارت او چرته دهغې معانی؟

خوهغه په علمي ژبه او علمي اصطلاحاتو کښې ليکلې شوې دي، د نن صبا عوام ددې نه د استفادې کولو نه قاصر شوی دی، چې ددې مضامين په آسانه ژبه کښې پيش کړې شي، خو دې کار هم کافي محنت او فرصت غوښتلو، پاکستان ته د راتلو نه مخکښې مې هم څه شروع کړې وو خو بيا پاتې شوې وو، د "معارف القرآن" دې تحرير بحمد الله هغه خواهش مې هم پوره کړو، ځکه چې ددې تفسير بنياد احقر "بيان القرآن" جوړ کړې دې، چې ددې تفصيل روسته راروان دې.

## د "معارف القرآن" خصوصيات او التزامات

(۱) د قرآن تفسير چې د عربئ نه علاوه په څه بله ژبه کښې وی، په هغې کښې دټولو نه اهم او د احتياط خيز د قرآن ترجمه ده، ځکه چه دا د الله تعالی دکلام حکايت دې، په دې کښې معمولی شان کمې زياتې هم دخپل طرفه جائز نه دې، په دې وجه ما په خپله د ترجمې کولو همت اونه کړو، او ددې ضرورت هم نه وو، ځکه چه اکابرو علماؤ دا کار ډير په احتياط سره سرته رسولې دې، په اُردو ژبه کښې دا خدمت دټولو نه مخکښې د حضرت شاه ولی الله رحمه الله دوؤ ځامنو حضرت شاه رفيع الدّينؒ او حضرت شاه عبدالقادر رحمهما الله په خپل خپل طرز کښې پوره کړو. په اوّل الذکر ترجمه کښې بالکل تحت اللفظ (ټکی په ټکی) ترجمه اختيار کړې شوې ده، د اُردو محاورې هم زيات رعايت نه دې ساتلې شوې، او ډير په کمال سره ئې د قرآن الفاظ په اُردو کښې منتقل کړی دی، اوپه دويمه ترجمه کښې تحت اللفظ سره د اُردو محاورې رعايت هم دې، دا حضرت شاه عبدالقادر رحمه الله ځلويښت کاله په مسجد کښې د اعتکاف په حالت کښې پوره کړې دې، تردې پورې چې دهغوی جنازه هم د مسجد نه اوچته کړې شوه، د دارالعلوم ديوبند د ړومبی صدر مدرّس دحضرت مولانا محمد يعقوب صاحب رحمه الله فرمان دې چې بې شکه دا ترجمه الهامی ده، دانسان د وَس خبره نه ده چې داسې ترجمه اوکړی. شيخ العرب والعجم سيّدی حضرت مولانا محمود الحسن صاحب رحمه الله چه خپل وخت کښې کله دا اوکتله چې اوس د ډيرو محاورو د بدليدو په وجه په بعضې مقاماتو کښې د ترميم ضرورت دې نو هغوی هم ددغې ترجمې دا خدمت ترسره کړو، کومه چې د "ترجمة شيخ الهند" په نوم سره معروفه اومشهوره شوه، احقر د قرآن کريم د متن لاندې بعينه هم دغه ترجمه راخستې ده.

(۲) سيّدی حضرت حکيم الامت تهانوی قدس سره اصل تفسير "بيان القرآن" په دې انداز کښې ليکلې دې چې د قرآن ترجمې سره سره ئې دهغې تفسير او توضيح د قوسينو (بريکټونو) په مينځ کښې کړې دې، ترجمې دپاسه ئې لکيره راښکلې ده او تفسير ئې د بريکټونو په مينځ کښې ليکلو سره ممتاز کړې دې، او دغسې لکيره راښکلو والا عبارت کښې دقرآن ترجمه ده، اود بريکټونو په مينځ کښې دهغې تفسير دې، ډيرو خلقو دغه د لکيرو والا ترجمه جدا کړې ده اود قرآن مجيد د متن لاندې ئې د حکيم الامت رحمه الله په نوم سره په خپله د حضرت (حکيم الامت رحمه الله) په زمانه کښې شائع کړې هم وو.

چونکه د "بیان القرآن" د تسهیل کار دمخکښې نه زما په نظر کښې وو، اوس احقر د حضرت رحمه الله دا تفسیر د "خلاصه تفسیر" په نوم په شروع کښې بعینه صرف د یو تصرف سره نقل کړې دې، هغه دا چې په دغه تفسیر کښې چې کوم ځائې خاص اصطلاحي او مشکل الفاظ راغلي وو، هغه مې دلته په آسانو لفظونو کښې منتقل کړل، او دهغې نوم مې "خلاصه تفسیر" کیخودل ځکه مناسب اوګڼړل چه پخپله حضرت په "خطبه بیان القرآن" کښې ددې متعلق فرمائیلی دی چې دې ته تفسیرِ مختصر یا ترجمه مطوّل وئیلې کیدې شی.

اوکه یو مضمون خالص علمی اومشکل وو نوهغه مې د دلته نه جدا کړو اوپه "معارف اومسائل" کښې مې په خپل آسان عبارت کښې اولیکلو، چې که مشغول سړې ئې زیات نه شی کتلې نو ددې "خلاصه تفسیر" نه دې کم ازکم په قرآنی مفهوم باندې پوره ځان پوهه کړی، ددې دواړو څیزونو التزام د جلد اولّ په اوله طبعه کښې د الم سیپارې په اوله رُبع کښې آیت نمبر ۴۴، د معارف جلد اوّل صفحه ۲۱۲ [1] پورې نه وو شوې، اوس په دویمه طبع کښې دغه حصې هم مکمل کړې شوې او د پوره تفسیر مطابق کړې شوې دې، البته یو التزام کوم چې د دویم جلد نه شروع شوچې د متنِ قرآن لاندې د شیخ الهند رحمه الله ترجمه اولیکلې شی، دا د ړومبی طباعت په پوره جلد اول کښې نه وو، په طبع ثانی کښې دا هم د متن لاندې اولیکلې شو او د باقی تفسیر مطابق کړې شو، دا دواړه کارونه خو د اکابرو علماؤ وو.

(۳) دریم کار کوم چې د احقر طرف ته منسوب دې هغه د "معارف اومسائل" عنوان دې، چې په دې کښې هم غور اوکړې شی نو د احقر صرف د اُردو عبارت دې، ټول مضامین د سلف علماؤ د تفسیر نه اخستې شوی دی، چې دهغې حوالې هر ځائې لیکلې شوی دی، په دې کښې احقر د یو څو څیزونو التزام کړې دې:

[الف] علماؤ دپاره د قرآن په تفسیر کښې دټولو نه اول او اهم کار د لغاتو تحقیق، نحوی ترکیب، د فنِ بلاغت نکات، او د اختلاف قراءت بحثونه دی، کوم چې بلاشبه د اهلِ علمو دپاره په فهمِ قرآن کښې د یو مضبوط بنیاد حیثیت لری، هم ددې په ذریعه د قرآن صحیح مفهوم موندلې کیږی، خو عوام خو عوام دی، نن صبا ډیر اهلِ علم هم په دې تفصیلاتو کښې مشکل محسوسوی، خاص کر د عوامو دپاره خودا بحثونه دهغوی د پوهې نه پورته اوپه اصل مقصد کښې خلل جوړیږی، هغوی داګڼړی چې قرآن پوهیدو سره لوستل مشکل کاردې، حالانکه د قرآن کریم چې کوم اصل مقصد دې چې د انسان تعلق دخپل رب سره مضبوط شی او ددې په نتیجه کښې مادّی تعلقات په اعتدال راشی چه دا ددین په لاره کښې رکاوټ جوړ نه شی، ددنیا نه زیات د آخرت فکر پیداشی، او انسان خپل هرقول اوفعل باندې په دې سوچ کولو عادتی شی چه په دې کښې هیڅ یو څیز د الله تعالی اودهغه د رسول د مرضئ خلاف اونشی، دا څیز قرآن دومره آسان جوړکړې دې چې معمولی لیکونکې لوستونکې سړې په خپله

[1] ددې جلد ص ۲۰۳ ناشر.

کتلو سره او بالکل انپړه جاهل ئې په آوریدو سره هم دا فائده حاصلولې شی. قرآن کریم په خپله ددې اعلان فرمائیلې دې:

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ (القمر)[۱]

په تفسیر "معارف القرآن" کښې د عوامو دسهولت په خاطر ددې علمی او اصطلاحی بحثونو تفصیل نه دې لیکلې شوې، بلکه د تفسیر د آئموٌ په اقوالو کښې چې کوم (قول) جمهورو راجح ګرځولې دې دهغې مطابق تفسیر اخستلې شوې دې، او که بعضې وخت د ضرورت په وجه دا بحث هم راخستلې شوې دې نو هلته هم ددې لحاظ ساتلې شوې دې چې خالص علمی اصطلاحات او غیرمعروف مشکل الفاظ رانه شی، او هم په دې وجه داسې علمی مباحث هم پرېښودلې شوی دی کوم چې دعوامو دپاره غیر ضروری او دهغوی د سطح نه پورته دی.

[ب] د مستند او معتبر تفاسیرو نه داسې مضامین اهمیت سره نقل کړې شوی دی کوم چې د انسان په زړه کښې د قرآن عظمت اود الله تعالی اودهغه د رسول عظمت اومحبت زیات کړی، او په قرآن باندې عمل او دخپلو اعمالو د اصلاح طرف ته ئې مائل کړی.

[ج] په دې خود مؤمن ایمان دې چې قرآن کریم تر قیامته پورې د راتلونکی نسلونو دهدایت دپاره نازل شوې دې، او ترقیامته پورې دپیدا کیدونکو ټولو مسائلو حل په دې کښې موجود دې، په دې شرط چې قرآن د رسول الله ﷺ د بیان او تشریح په رڼا کښې اوکتلې شی او اولوستلې شی، اوپه دې کښې د پوره تدبّر نه کار واخستلې شی، په دې وجه د هرې زمانې مفسّرینو په خپلو خپلو تفسیرونو کښې په هغه جدید مسائلو او مباحثو باندې زور ورکړې دې کوم چې دهغوی په زمانه کښې پیدا شو، یا د باطل پرستو خلقو دطرفه د شکوکو اوشبهاتو په صورت کښې پیدا کړې شو، په دې وجه د قرونِ متوسّطه تفسیرونه د معتزله، جهمیه، صفوانیه، وغیره فرقو د تردید اودهغوی د شبهاتو د ازالې نه ډک په نظر راځی. احقر ناکاره هم ددغه ا صولو لاندې دغسې مسائلو او مباحثو ته اهمیت ورکړې دې، کوم چې ددې زمانې مشینی دور نوی نوی پیدا کړل او یا ددې زمانې ملحدینو او یهودی او نصرانی مستشرقینو د مسلمانانو په زړونو کښې د شکوکو او شبهاتو پیداکولو دپاره رامخې ته کړل، دجدید مسائلو دحل دپاره مې دخپل وَس مطابق ددې کوشش کړې دې چې د قرآن اوسنت یا د فقهائې امت رحمهم الله د اقوالو نه ددې څه ثبوت ملاؤ شی یا کم ازکم ددې څه نظیر ملاؤشی، او الحمدلله په دې کښې کامیاب شوم، په داسې مسائلو کښې مې د نورو عصری علماؤ نه دمشورې اخستلو هم التزام کړې دې، اود ملحدانه شکوکو اوشبهاتو په ازاله کښې هم دخپل وس مطابق ددې کوشش وو چې جواب اطمینان والا وی، اوپه دې جواب ورکولو کښې مې په اسلامی مسائلو کښې معمولی ترمیم (بدلون) هم برداشت نه کړو، لکه څرنګه چې د موجوده

---

[۱] ترجمه: اوحقیقت دادې چې مونږ قرآن د نصیحت حاصلولو دپاره آسان کړې دې اوس آیا څوک شته چې نصیحت حاصل کړی؟

دور بعضې مصنفینو په دې جواب ورکولو کښې په خپله اسلامی مسائلو کښې تاویلونه اوکړل اود ترمیم (بدلون) کولو طریقه ئې اختیار کړې ده، دا هرڅه دخپلو معلوماتو او دخپل کوشش تر حده پورې دی، چې په دې کښې د ډیرو خطاګانو او غلطیانو احتمال شته، الله تعالی دې راته معافی اوکړی او ددې د اصلاح لاره دې راؤباسی.

مذکور الصّدر التزاماتو تفسیر "معارف القرآن" د لاندینو څیزونو جامع جوړ کړې دې.

(۱) د قرآن مجید دوه مستندې ترجمې یوه دحضرت شیخ الهند رحمه الله کومه چې په اصل کښې د شاه عبدالقادر صاحب رحمه الله ترجمه ده، دویمه د حضرت حکیم الامت تهانوی رحمه الله ترجمه.

(۲) "خلاصه تفسیر" کوم چې په حقیقت کښې د "بیان القرآن" خلاصه ده سره د تسهیل نه، چې که دا د قرآن مجید دحاشیې په طور باندې جدا هم چاپ کړې شی نود لږ وخت لرونکو خلقو دپاره د فهم قرآن مستنده او بهترینه ذریعه ده، دې یو بل ضرورت هم پوره کړو دکوم طرف ته چې اخی فی الله مولانا بدرعالم صاحب مهاجر مدینه منوّره زما توجه راوګرځوله، هغه داچې د علامه فرید وجدی رحمه الله یو مختصر تفسیر په حاشیه د قرآن لګیدلې ئې ماته اوښودله، چې کاش په اُردو کښې هم څه تفسیر وې چې هغه ددې په شان مختصر او آسان وی، الله تعالی دې سره دا خواهش هم پوره کړو، دا دواړه څیزونه خود اکابرو علماؤ مستند اومشهور دی.

(۳) دریم څیز "معارف اومسائل" دی کوم چې زما طرف ته منسوب دی، او زما د محنت نتیجه ده، الحمدلله چې په دې کښې هم زما خپل هیڅ نشته، ټول مې د اُمت د اسلافو نه راخستې دی، د تن صبا عالمان او مصنفین اکثر په دې فکر کښې وی چې دخپل طرفه څه تحقیق اود خپل طرفه څه نوې څیز پیش کړی، زه په دې باندې دالله تعالی شکرګزار یم چې په دې ټولو کارونو کښې زما هیڅ نشته.

این همه گفتیم ولیک اندر بسیچ بے عنایات خدا هیچیم وهیچ [۱]

والله سبحانهٗ وتعالی أسأل الصواب والسّداد فی المبدءِ والمعادِ وبهٖ أستعین من زلّةِ القدمِ فیما علمتُ وما لا أعلم وإیاهُ أسألُ أن یجعلهٗ خالصًا لوجههِ الکریمِ وأن یّتقبّلَ منّی کما تقبل مِنْ صَالِحِیْ عبادهٖ وأن یّنفعنِیْ بهٖ یوم لا ینفعُ مالٌ وّلا بَنونَ ولهُ الحمد أوّلًا وّ آخرًا وّ ظاهرًا وّ باطنًا وصلی الله تعالی علی خیر خلقهٖ وصفوةِ رُسُلِهٖ خاتَمِ أَلْبیَائِهٖ وعلی آلهٖ وأصحابهٖ أجمعینَ وبارَکَ وَسَلَّمَ تَسلیمًا کثیرًا.

بندہ ضعیف وناکارہ

محمّد شفیع

خادم دارالعلوم کراچی

۲۵/ شعبان ۱۳۹۲ هـ

.....................

[۱] ترجمه: داهرڅه مونږ اووئیل خوپه اراده کښې دالله تعالی د عنایت اومهربانۍ نه بغیرمونږ هیڅ نه یو.

## سورة الفاتحة

دا مکي سورت دی په دې کښې اووه آياتونه دي.

بسم الله الرحمن الرحيم

### د سورة فاتحه فضائل او خصوصيات

سورة فاتحه ته په قرآن کښې ډيرخصوصيات حاصل دي:

(۱) اول دا چې قرآن ددې نه شروع کيږي، مونځ ددې نه شروع کيږي، اود نزول په اعتبار سره هم دټولو نه ړومبې سورت کوم چې مکمل طور باندې نازل شوې دې هم دا سورت دې، د سورة اقرأ، مزمّل او مدّثر يو څو آياتونه ضرور ددې نه وړاندې نازل شوی وو، خو مکمل سورت دټولو نه اول فاتحه نازل شوې دې، د کومو حضرات صحابه کرامو رضی الله عنهم نه چې د سورة فاتحې **اوّل ما نزل** يعنی په نزول کښې دټولو نه اول سورت کيدل منقول دی، دهغې مطلب هم غالبًا دادې چې پوره سورت ددې نه وړاندې بل نه دې نازل شوې، شايد په دې وجه ددې سورت نوم هم "فاتحة الکتاب" ايخودې شوې دې.

(۲)دويم خصوصيت دادې چه دا سورت په يوحيثيت سره دپوره قرآن متن او ټول قرآن ددې شرح ده، يا په دې وجه چې دپوره قرآن مقاصد په ايمان اوعمل صالح کښې واقع دی، او ددې دواړو څيزونو بنيادی اصول په دې سورت کښې بيان کړې شوی دی.په تفسير "روح المعانی" او "روح البيان" کښې ددې تفصيلی بيان شته.[۱] په دې وجه د سورة فاتحه نوم **أمّ القرآن، أمّ الکتاب** او قرآن عظيم هم په صحيح احاديثو کښې راغلې دې.(قرطبی) [۲]

يا په دې وجه چې په دې سورت کښې دهغه کس دپاره چې هغه دقرآن تلاوت يا مطالعه شروع کړی يوخاص هدايت ورکړې شوې دې چې هغه دخپلو ټولو تيرو شوو خيالاتو او نظرياتو نه ذهن خالی کړی اودا کتاب خالص د طلب حق اود نيغې لارې د طلب دپاره اولولی او اوئې ګوری،او د الله تعالی نه دا دعا هم اوکړی چه د صراط مستقيم هدايت نصيب شی، اود سورت په شروع کښې دهغه ذات د حمد اوثنابيان دې دچا په دربار کښې چې دا درخواست او هدايت پيش کوی، او هم ددغې درخواست جواب پورا قرآن دې، کوم چې د **الٓمٓ. ذٰلِکَ الکِتَابُ**، نه شروع کيږی، ګويا انسان چې د الله تعالی نه کومه نيغه لاره طلب کړې وه دهغې په جواب کښې ئې **ذلک الکتاب** فرمائيلو سره اشاره اوکړه چې کوم څه ته غواړې هغه په دې کتاب کښې موجود دی.

رسول کريم ﷺ فرمائيلی دی چې قسم دې په هغه ذات دچا په قبضه کې چې زما ساه ده چې د سورة فاتحه نظير نه په تورات کښې نازل شوې دې، نه په انجيل کښې اونه په زبور کښې، اونه په خپله قرآن کريم کښې څه بل سورت ددې په مثل شته. (رواه الترمذی) [۳]

**عن أبي هريرة وقال حسن صحيح، والحاکم وقال: صحيح على شرط مسلم، من المظهری)**

او نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی چې سورة فاتحه د هرې بيمارئ شفا ده.

---

۱) روح البيان فی الإبتداء ج:۱، ص: ٦١، ٦٢.
۲) تفسير القرطبی فی الإبتداء ج:۱، ص: ۱۱۲.
۳) جامع الترمذی، ابواب فضائل القرآن، باب ماجاء فی فاتحة الکتاب ج:۲، ص: ۱۱۵.

(رواه البيهقي في شعب الإيمان بسند صحيح، مظهري)[1]
د سورة فاتحه يونوم په حديث كښې سورة شفاء هم راغلې دې (قرطبي)[2]، او په صحيح بخاري[3] كښې د انس رضى الله عنه په روايت سره مذكور دى چې رسول الله ﷺ او فرمائيل چه د قرآن كريم په ټولو سورتونو كښې عظيم ترين الحمد لله رب العالمين دې (قرطبي)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ○

شروع كوم په نوم د الله چې ډير مهربان او زيات رحم كونكې دې.

**بسم الله د قرآن يو آيت دې:** په دې باندې دټولو اهل اسلام اتفاق دې چې **بسم الله الرحمن الرحيم** په قرآن كښې د سورة نمل جزء دې، او په دې هم اتفاق دې چه د سورة توبه نه علاوه دهر سورت په شروع كښې **بسم الله** ليكلې كيږي، په دې كښې دائمه مجتهدينو اختلاف دې چې **بسم الله** د سورة فاتحه يا دټولو سورتونو جزء دې او كه نه دې؟ دامام اعظم ابو حنيفه رحمه الله مسلک دادې چه **بسم الله** د سورة نمل نه علاوه دبل سورة جزء نه دې، بلكه يو مستقل آيت دې چې دهر سورت په شروع كښې د دوؤ سورتونو په مينځ كښې د فصل او فرق ښكاره كولو دپاره نازل شوې دې.

**دقرآن تلاوت او هر ضروري كار په بسم الله سره د شروع كولو حكم:** د جاهليت د زمانې دخلقو عادت وو چې خپل كارونه به ئې د بتانو په نوم سره شروع كول، دجاهليت ددغه رسم دختمولو دپاره د قرآن دټولو نه ړومبې آيت كوم چې جبرئيل امين راوړو په هغې كښې قرآن لره د الله تعالى په نوم سره د شروع كولو حكم وركړې شو، **اقرأ باسم ربک** (العلق)[4]
علامه سيوطى رحمه الله فرمائيلى دى چه د قرآن نه علاوه نور ټول آسمانى كتابونه هم د **بسم الله** نه شروع كړې شوى دى، او بعضې علماؤ فرمائيلى دى چې **بسم الله الرحمن الرحيم** د قرآن او د اُمت محمديه د خصوصياتو نه ده، د دواړو اقوالو تطبيق دادې چې د الله په نوم سره شروع كول خو په ټولو آسمانى كتابونو كښې مشترک دى، خو الفاظ **بسم الله الرحمن الرحيم** د قرآن خصوصيت دې، لكه څرنګه چې په بعضې رواياتو كښې دى چې نبى كريم ﷺ به هم په ابتداء كښې هر كار د الله د نوم نه د شروع كولو دپاره "**باسمک اللهم**" وئيل او ليكل، كله چې **بسم الله الرحمن الرحيم** نازل شو نو بيا ئې دا الفاظ اختياركړل او هميشه دپاره دا سنت جارى شو. (قرطبى وروح المعانى)[5]
په قرآن كښې ځائې په ځائې ددې هدايت دې چې هر كاردې د الله تعالى په نوم سره شروع كړې شى، او رسول كريم ﷺ فرمائيلى دى چه هر اهم كار چې په **بسم الله** سره شروع نه كړې شى هغه بې بركتنه وى.

---

[1] شعب الايمان للبيهقى رقم الحديث: ۲۳۷۷، والتفسيرالمظهرى ج:۱، ص:۲.
[2] تفسير القرطبى ج:۱، ص: ۱۱۲.
[3] صحيح البخارى، كتاب التفسير، باب ما جاء فى فاتحة الكتاب ج:۲، ص: ۲٤۲ وتفسيرالقرطبى ج:۱ ص: ۱۱۲.
[4] اولوله د خپل پروردګار نوم اخستلو سره.
[5] تفسير القرطبى ج:۱، ص: ۹۲ و روح المعانى ج:۱، ص:۱.

په یو حدیث کښې ارشاد دې چې د کور دروازه بندوئ نو بسم الله وایئ، ډیوه بندوئ نو بسم الله وایئ، لوښی باندې سر ایږدئ نو بسم الله وایئ، د خوراک خوړلو، د اوبو څکلو، اودس کولو، سورلئ باندې د سوریدلو او کوزیدلو په وخت د بسم الله وئیلو هدایات په قرآن اوحدیث کښې بار بار راغلي دي (قرطبی).[1]

**هر کار په بسم الله سره د شروع کولو حکمت:** اسلام هر کار د الله تعالی په نوم سره د شروع کولو هدایت ورکړې دې اودې سره ئې د انسان د پوره ژوند رُخ د الله تعالی طرف ته داسې اړولې دې چه هغه قدم په قدم ددې وفادارئ د حلف تجدید کوي چې زما وجود او زما هیڅ یو کار د الله تعالی د مشیت او ارادې نه او بغیر دهغه د امداد نه نه شي کیدې، او دې د انسان هر نقل اوحرکت او ټول معاشي او دنیاوي کارونه هم یو عبادت اوګرځولو.

عمل څومره مختصر دې چې نه په کښې وخت خرچ کیږي او نه محنت، او فائده ئې څومره کیمیاوي او لویه ده، چه دنیا هم دین جوړ شو، یو کافرهم خوراک څکاک کوي اویو مسلمان هم، خو مسلمان دخپلې نمړئ نه مخکښې بسم الله وئیلو سره دا اقرار کوي چې دا نمړئ د زمکې نه د پیدا کیدو نه واخله تر پخیدو او تیاریدو پورې آسمان او زمکه او ستورې، او هوا اود فضائي مخلوقاتو طاقتونه، بیا د لکهونو انسانانو محنت خرچ کولو سره تیارشوې دې،ددې حاصلول زما په وَس کښې نه وو، خاص دالله تعالی ذات دې چې هغه دې ټولو مراحلو نه تیرولو سره دا نمړئ یا ګوټ ماته رانصیب کړې دې، مؤمن او کافر دواړه اوده کیږي او بیداریږي، ګرځي راګرځي هم، خو هر مؤمن د اوده کیدو نه مخکښې او د بیداریدو په وخت د الله تعالی نوم اخلي، اوپه دې سره دخپلې رابطې تجدید کوي، چې دې سره دا ټول دنیاوي او معاشي ضرورتونه د الله ذکر جوړیږي او عباد کښې لیکلې کیږي، مؤمن په سورلئ باندې د سوریدلو په وخت بسم الله وئیلو سره ګویا دا ګواهي ورکوي چه ددې سورلئ پیدا کول یا په کار راوستل، بیا دا زما په قبضه کې راتلل د انسان د قدرت نه بهر څیزدې، دا د ربّ العزت د جوړ کړې شوي مضبوط نظام کار دې چې د یو ځائې لرګی، د یو ځائې اوسپنه، د یو ځائې مختلف دهاتونه، د یو ځائې کاریګر، د یو ځائې چلونکی ټول په ټوله زما په خدمت کښې لګیا دي، یو څو پیسې خرچ کولو سره د الله تعالی د دومره لوئی مخلوق محنت مونږ په خپل کار کښې راوستلې شو،او دا پیسې هم مونږ دځان سره دچرته نه نهٔ وې راوړلې، بلکه ددې د حاصلولو ټول اسباب هم هغه پیدا کړي دي، غور اوکړئ چې د اسلام صرف دې یو مختصر تعلیم انسان لره د کوم ځائې نه کوم ځائې ته اورسولو، په دې وجه دا وئیل بالکل صحیح دي چې بسم الله یوه اکسیره نسخه ده چې دې سره د تانبې نهٔ بلکه د خاوړې نه سرهٔ زر جوړیږي، فلله الحمد علی دین الإسلام وتعلیماته.

**مسئله:** د قرآن دتلاوت شروع کولو په وخت اوّل أعوذ بالله من الشیطن الرّجیم او بیا بسم الله الرحمن الرحیم وئیل سنت دي، او د تلاوت په مینځ کښې هم د سورة براءت نه علاوه د هر سورت په شروع کښې بسم الله وئیل سنت دي.

---

[1] تفسیر القرطبی ج ۱ ص: ۹۷.

ددې تمهيد نه پس د آيت: **بسم الله الرحمن الرحيم** تفسير او ګورئ!

**د بسم الله..الخ تفسير: بسم الله.** دا کلمه د دريو لفظونو نه مرکب ده، يو حرف باء، دويم **اسم**، دريم **الله**. حرف باء په عربي ژبه کښې د ډيرو معانيو دپاره استعماليږي، چې دهغې نه درې معاني دې مقام سره مناسب دی، دهغې نه هر يوه معنی په دې ځائې کښې اخستلې کيدې شی:

(۱) اول: **مصاحبت:** يعنی يو څيز دبل څيز سره متصل کيدل،

(۲) دويم: **استعانت:** يعنی د يو څيز نه مدد حاصلول.

(۳) دريم: **تبرّک:** يعنی دڅه څيز نه برکت حاصلول.

په لفظ "**اسم**" کښې لغوی او علمی تفصيلات ډير دی چې دهغې زده کول عوامو دپاره ضروري نه دی، دومره پوهيدل کافی دی چې په اردو کښې ددې ترجمه "نوم" سره کولې شی.

لفظ "**الله**" د الله تعالی په نومونو کښې دټولو نه لوئې او دټولو نه جامع نوم دې، او بعضې علماؤ دې ته اسم اعظم وئيلی دی، او دا نوم د الله تعالی نه سوا بل دهيچا نه شی کيدې، په دې وجه ددې لفظ تثنيه او جمع هم نه راځي، ځکه چې الله واحد دې، دهغه څوک شريک نشته، خلاصه داده چې الله نوم دې دهغه موجود برحق ذات ګوم چې دکمال ټولو صفتونو لره جامع اود ربوبيّت ټولو صفاتو سره متصف، يکتا او بې مثاله دې.

په دې وجه د **بسم الله** معنی د حرف باء مذکوره دريو معانيو په ترتيب سره دا شوه:

د الله په نوم سره، د الله دنوم په مدد سره، د الله دنوم په برکت سره،

خو دريو وارو صورتونو کښې دا ښکاره ده چې دا کلام نامکمل دې، چې ترڅو پورې دهغه کار ذکر اونه کړې شی کوم چې دالله په نوم سره يا دهغه د نوم په برکت سره کول مقصود دی، په دې وجه د نحوی قاعدې مطابق دلته يو فعل د مقام مناسب محذوف وی، مثلاً "شروع کوم يا لولم د الله په نوم سره"

او مناسب داده چې دا فعل هم روسته محذوف اومنلې شی، چې حقيقتاً شروع په نوم د الله سره اوشی، چې دا فعل محذوف هم د الله د نوم نه مخکښې رانه شی، صرف د حرف باء د الله د اسم نه مخکښې راتلل د عربی ژبې په لحاظ سره ضروری او لازم دی، په دې کښې هم په مصحف عثمانی کښې په اجماع د صحابه ؤ رضی الله عنهم سره دا رعايت ساتلې شوې دې چې حرف باء د رسم الخط په قاعدې سره د "الف" سره تړلې شوې ليکل پکاروو، او لفظ "اسم" جدا، چې ددې صورت به وو: "باسم الله" خود مصحف عثمانی په رسم الخط کښې حرف همزه حذف کولو سره حرف باء د "سين" سره اوتړلې شوه او صورةً د "اسم" جزء جوړکړې شوه، چې شروع په نوم د الله سره اوشی، هم داوجه ده چې په نورو مواقعو کښې دا حرف الف نه حذف کيږي، لکه په "**اقرأ باسم ربک**" (العلق: ۱) کښې "ب" د "الف" سره تړلې ليکلې شی، دا صرف د بسم الله خصوصيت دې چې حرف باء د "سين" سره تړلې شوې ده.

**الرحمن الرّحيم.** دا دواړه د الله تعالی صفات دی، د **رحمٰن** معنی ده عام الرحمة، او د **رحيم** معنی ده تام الرحمة، د عام الرحمة مطلب دادې چې هغه ذات چې دهغه رحمت ټول عالَم او ټول کائنات او کوم څه چې تر اوسه پورې پيدا شوی دی او کوم چې به پيدا کيږی په ټولو حاوی او (ټولو ته) شامل وی، اود تام الرحمة مطلب دادې چې دهغه رحمت کامل اومکمل وی.

هم دا وجه ده چې لفظ "رحمٰن" د الله جلّ شانه د ذات سره مخصوص دې، هيڅ يو مخلوق ته "رحمٰن" وئيل جائز نه دی، ځکه چې د الله تعالی نه سوا څوک هم داسې نه شي کيدې چې دهغه د رحمت نه د عالَم څه څيز خالی نه وی، په دې وجه لکه څرنګه چې د لفظ "الله" جمع او تثنيه نه راځی، د "رحمٰن" هم جمع او تثنيه نه راځی، ځکه چې دا د يو ذات پاک سره مخصوص دې، د دويم او دريم هلته د سره احتمال هم نشته، (تفسير قرطبی) په خلاف د لفظ "رحيم" چې ددې په معنی کښې څه داسې څيز نشته چې دهغې موجود کيدل په مخلوق کښې ناممکن وی، ځکه دا کيدې شي چې يو کس د بل کس سره پوره پوره د رحمت معامله اوکړی.

په دې وجه لفظ "رحيم" د انسان دپاره هم وئيلې شی، په قرآن کريم کښې د رسول الله ﷺ دپاره هم دا لفظ استعمال شوې دې: "بالمؤمنين رءوف رحيم"[1] (التوبة)

**مسئله:** ددې نه دا هم معلومه شوه چې نن صبا خلق په "عبدالرحمٰن"، "فضل الرحمٰن" وغيره نومونو کښې تخفيف کوی او "رحمٰن" وائی، او دغه کس ته په دې لفظ سره خطاب کوی، دا ناجائز او ګناه ده.

**حکمت:** په "بسم الله" کښې د الله تعالی د اسماء حسنٰی او صفات کماليه ؤ نه صرف دوه صفتونه ذکر کړې شوی دی او دا دواړه د لفظ "رحمت" نه مشتق دی، اوَد رحمت په فراخوالی او کمال رحمت باندې دلالت کونکی دی، په دې کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چه د عالَم پيدائښت اود آسمان او زمکې او دټول کائنات د پيدا کولو او ددې د پاللو وغيره منشا د الله تعالی صفت "رحمت" دې، نه هغه ته ددې څيزونو په خپله څه ضرورت وو، نه بل څوک ددې څيزونو په پيدا کولو باندې مجبور کونکې وو، صرف هم دهغه د رحمت په تقاضې سره دا ټول څيزونه او ددې د پرورش ټول انتظامات په وجود کښې راغلی دی:

ما نبود و تقاضا ما نبود　　　لطفِ تو نا ګفته ما می شنود[2]

## احکام او مسائل

**د تعوّذ مسئله:** د تعوّذ معنی ده "أعوذ بالله من الشيطن الرجيم" وئيل، په قرآن کريم کښې ارشاد دې: **فاذا قرأت القرآن فاستعذ بالله من الشيطن الرجيم** (النحل) يعنی "کله چې تاسو د قرآن تلاوت کوئ نود الله سره پناه غواړئ د شيطان مردود د شرنه"

د قرآن د قراءت نه مخکښې "تعوّذ" وئيل د أمت په اجماع سره سنت دی، که تلاوت په مونځ کښې وی او که بهر د مونځ نه وی. (شرح منيه)[3]

تعوّذ وئيل د قرآن تلاوت سره مخصوص دی، د تلاوت نه علاوه د نورو کارونو په شروع کښې صرف "بسم الله" وئيل پکار دی، تعوّذ مسنون نه دې (عالمګيری، باب رابع، من الکراهية)[4]

کله چې د قرآن شريف تلاوت کولې شی هغه وخت به "اعوذ بالله" او "بسم الله" دواړه وئيلې شی،

---

[1] ترجمه: مؤمنانو دپاره ډير شفيق زيات رحم مهربان دې.

[2] مونږ نه وو او زمونږ دطرفه څه تقاضا هم نه وه، ستا مهربانۍ زمونږ هغه دعا هم واؤريدله کومه چې مونږه نه وه غوښتلې.

[3] شرح منيه ص: ۳۰۳، ۳۰۴.

[4] ج: ۵، ص: ۳۱۶.

د تلاوت په مينځ کښې کله چې يو سورت ختم شي دويم شروع شي نو د سورة براءت نه علاوه د هر سورت په شروع کښې "بسم الله" وئيل پکار دي، "اعوذ بالله" نه. اوکه سورة براءت د تلاوت په مينځ کښې راشي نو په دې به "بسم الله" نه شي وئيلې، اوکه د قرآن تلاوت د سورة براءت نه شروع کول وي نو ددې په شروع کښې "اعوذ بالله" او "بسم الله" (دواړه) وئيل پکار دي. (عالمگيرية عن المحيط) [۱]

**د بسم الله احکام:** "بسم الله الرحمٰن الرحيم" په قرآن مجيد کښې په سورة نمل کښې د آيت جزء دې، اود هر دوه سورتونو په مينځ کښې مستقل آيت دې، په دې وجه ددې احترام د قرآن مجيد په شان واجب دې، دې ته بې اودسه لاس لګول جائز نه دی (على مختار الکرخي وصاحب الکافي والهدايه، شرح منيه). اود جنابت يا دحيض اونفاس په حالت کښې دا په طور دتلاوت وئيل هم د پاکيدو نه مخکښې جائز نه دی، البته دکار په شروع کښې لکه د خوراک نه مخکښې د دعا په طور وئيل په هر حال کښې جائز دی. (شرح منيه کبير) [۲]

**مسئله:** د ړومبی رکعت په شروع کښې د "اعوذ بالله" نه پس "بسم الله" وئيل مسنون دی، البته په دې کښې اختلاف دې چې په آواز سره اووئيلې شي اوکه په رو، امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله او نورو ډير ائمهٔ په رو وئيلو ته ترجيح ورکړې ده.

د ړومبی رکعت نه پس د نورو رکعتونو په شروع کښې هم "بسم الله" وئيل پکار دی، ددې په مسنون کيدو دټولو اتفاق دې، اوپه بعضې رواياتو کښې د هر رکعت په شروع کښې "بسم الله" وئيلو ته واجب وئيلې شوی دی. (شرح منيه) [۳]

**مسئله:** په مونځ کښې د سورة فاتحه نه پس د سورة شروع کولو نه مخکښې "بسم الله" وئيل نه دی پکار، که مونځ جهری وی اوکه سری وی، دا د نبی کريم ﷺ او د خلفاء راشدينو رضی الله عنهم نه ثابت نه دی، په شرح منيه کښې ئې هم دا د امام اعظم رحمه الله اود ابويوسف رحمه الله قول ليکلې دې. [۴] اوپه شرح منيه، درمختار او برهان وغيره کښې ئې دې ته ترجيح ورکړې ده، خود امام محمد رحمه الله قول دادې چه په سرّی (پټ) مونځونو کښې وئيل غوره دی، په بعضې رواياتو کښې دا قول دامام ابوحنيفه رحمه الله طَرف ته هم منسوب کړې شوې دې، او شامی د بعضې فقهاؤ نه ددې ترجيح هم نقل کړې ده، په "بهشتی زيور" [۵] کښې هم دا اختيار کړې شوې دې، اوپه دې باندې دټولو اتفاق دې چې که څوک ئې اووائی نو مکروه نه دی. (شامی) [۶]

---

۱) پورتنۍ حواله.
۲) شرح منيه کبير، ص: ۵۷.
۳) شرح منية ص: ۳۰۶.
۴) شرح منية ص: ۳۰۸، ۳۰۹.
۵) حصه دوم ص: ۲۰.
۶) ج: ۱، ص: ۴۹۰.

## سورة الفاتحة

| ایاتونه | سُوْرَةُ الْفَاتِحَةِ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ سَبْعُ آيَاتٍ | رکوع گانې |
|---|---|---|
| اووه | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | يوه |
| ⑦ | شروع کوم په نوم د الله \| چه ډیر مهربان \| زیات رحم کونکې دې | ① |

د الله په نوم شروع کوم چه ډیر مهربان او زیات رحم کونکې دې

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۝

ټول تعریفونه | الله لره دی | چه پالونکې دې دټولومخلوقاتو | ډیر مهربان | زیات رحم کونکې دې

ټول تعریفونه الله پاک لره ښائی چې پالونکې دټولو مخلوقاتودې بیحده مهربان اوډیررحم کونکې دې

مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ ۝ اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَاِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ ۝

مالک د ورځې قیامت دې | خاص ستا عبادت کوو | او هم خاص ستا نه مدد غواړو

دانصاف دورځې[تنها] واکدار دې ائې الله مونږ صرف ستا عبادت کوؤ او صرف ستا نه مدد غواړو

اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ ۝ صِرَاطَ الَّذِيْنَ اَنْعَمْتَ

اوښایه مونږ ته | لار | نیغه | لار | دهغه خلقو | چې نعمت کړې دې تا

[ائې الله] مونږ په نیغه لار روان کړه | دهغه چا په لار چې تا پرې نعمت کړې دې

عَلَيْهِمْ ۝ غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ ۝

په هغوی باندې نه لار د هغه خلقو | چه هغوی غضب شوې دې | په هغوی | او نه د هغه خلقو لار چه گمراه شوی دی

چې غصه شوې پرې نه ئې اونهٔ گمراهان دی

### آسان ترجمه قرآن

خاص په مدد د نوم دهغه الله چه عام مهربان دے او خاص مهربان دے شروع کوم۔

دخدائیتوب ټول صفتونه (خاص) دهغه الله دپاره دی چه د ټولو مخلوقاتو پالونکے دے عام مهربان دے (په دنیا کښې) او خاص مهربان دے (په آخرت کښې) د جزاء د ورځے مالک دے۔ اے الله مونږ خاص ستا عبادت کوو (دَبل چا نه کوو) او خاص ستا نه مدد غواړو (دَبل چا نه نهٔ غواړو) (اے الله) مونږ په نیغه لاره بانده کلک اوساته یعنی دهغه خلقو په لار چه تا په هغوی (خپل خاص) انعام کړے دے چه غضب پرے هم نه دے شوے او نه هغوی گمراه دی.

### خلاصه تفسیر

﴿بِسْمِ اللّٰهِ﴾ شروع کوم د الله په نوم ﴿الرَّحْمٰنِ﴾ چه بیحده مهربان ﴿الرَّحِيْمِ﴾ زیات رحم کوونکې دې ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ ټولې ستائینې الله تعالی لره دی ﴿رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ چه پالونکې د ټول عالم دې [د مخلوقاتو بیل بیل جنس بیل بیل عالم بللې شی لکه عالم ملائکه، عالم انسان، عالم جن]

الرَّحۡمٰنِ چه بیحده مهربان، الرَّحِیۡمِ زیات رحم کوونکې دې ﴿مٰلِكِ یَوۡمِ الدِّیۡنِ﴾ مالك د ورځې د جزادې [یعنی دقیامت د ورځې چه هرڅوك به په کښې دخپل عمل بدله بیاموممی ﴿اِیَّاكَ﴾ مونږ هم ستا ﴿نَعۡبُدُ﴾ عبادت کوو ﴿وَاِیَّاكَ﴾ اوهم ستانه ﴿نَسۡتَعِیۡنُ﴾ مدد غواړو ﴿اِهۡدِنَا﴾ اوښایه مونږ ته ﴿الصِّرَاطَ﴾ لاره ﴿الۡمُسۡتَقِیۡمَ﴾ نیغه.[چه ددین لار ده ﴿صِرَاطَ الَّذِیۡنَ﴾ لار دهغه چا ﴿اَنۡعَمۡتَ عَلَیۡهِمۡ﴾ چه انعام دې پرې کړې دې [یعنی ددین انعام] ﴿غَیۡرِ الۡمَغۡضُوۡبِ عَلَیۡهِمۡ﴾ چه غصه شوې پرې نه یئ ﴿وَلَا الضَّآلِّیۡنَ﴾ او نه هغه چه لار یئ ورکه کړې ده.[دهدایت دلارې د پریښودو دوه وجې کیدې شی یو دا چه پوره تحقیق اونکړی.د ضالین نه هم داسې خلق مراد دی، بلکه داچه د پوره تحقیق کولو نه پس هم پرې عمل اونکړی، د مَغۡضُوۡبِ عَلَیۡهِمۡ نه داسې خلق مراد دی.ځکه چه سره د پوهې په قصد، خلاف کول دالله تعالی د زیاتې ناراضګۍ سبب جوړیږی].

## معارف او مسائل

**د سورت فاتحې مضامین**: دسورت فاتحه داووه آیتونوځنې په ړومبو دریؤ آیتونوکښې دالله تعالی ستائینه ده اوپه آخری دریؤایتونوکښې دانسان ددعااوخواست مضمون دې چې رب العزت هم پخپله،خپل رحمت سره انسان ته ښودلې دې اوپه منځنی آیت کښې دغه دواړه څیزونه مشترک دی،څه خوپه کښې دالله تعالی ستائینه ده اوڅه په کښې دبنده دعااوخواست دې،

**د سورة فاتحه د الله او بنده په مینځ کښې تقسیم**: صحیح مسلم کښې د حضرت ابی هریره رضی الله عنه په روایت نقل دی چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل،الله فرمائی:مونځ،[یعنی سورت فاتحه] زما او زماد بنده ترمنځه دوه برخې کړې شوې دې،نیم ماله اونیمه زمابنده لره ده،څه مې چې بنده غواړی هغه به ورکولې شی،،نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې کله بنده ﴿اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ رَبِّ الۡعٰلَمِیۡنَ﴾ اووائی نوالله تعالی فرمائی چې ځما بنده زما تعریف بیان کړو.او چې کله بنده ﴿الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ﴾ اووائی نو الله تعالی فرمائی چې زمابنده زماستائننه اوکړه اوکله چې بنده ﴿مٰلِكِ یَوۡمِ الدِّیۡنِ﴾ اووائی اوالله تعالی فرمائی چې زمابنده زمابزرګی بیان کړه اوکله چې بنده ﴿اِیَّاكَ نَعۡبُدُ وَاِیَّاكَ نَسۡتَعِیۡنُ﴾ اووائی نوالله تعالی فرمائی چې داآیت زمااوزماد بنده ترمنځه مشترک [ګډ] دې ځکه چې په دې کښې یواړخ ئه دالله تعالی ستائینه ده اوبل اړخ ته په کښې دبنده دعا او خواست دې،دې سره داهم فرمائی چې زمابنده ته به هغه څه ورکولې شی چې هغه ئی خواست کوی،،بیاچه بنده اووائی ﴿اِهۡدِنَا الصِّرَاطَ الۡمُسۡتَقِیۡمَ﴾ [آخره پورې] نو الله تعالی فرمائی چې دا ټول زما بنده دپاره دی چې ورته به هغه څه ورکولې شی چې وې غوښتل [مظهری].[1]

**د هر څیز ستائینه په حقیقت کښې د الله ستائینه ده**: د ﴿اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ﴾ معنی داده چې ټولې ستائینې الله لره دی.مطلب داچه چرته څه وخت اوڅه چې ستائینه کیږی په حقیقت کښې دادالله تعالی ستائینه ځکه ده چې په دنیا کښې په زرګونوښکلی مناظر،په لکونوزړه راښکونکې نظارې اوپه کروړونوفائده مندڅیزونه داسې دی چې د انسان زړه ځان ته راکاږی،اوپه خپلې ستائنې ئې مجبوره کوی که په ژورنظراوکتلې شی نوپه دې ټولوڅیزونوکښې یواځې دقدرت خداوندی لاس په نظرراځی نتیجه به ئی دا راوځی چې دهرڅه یا د هرچا ستائینه چې کیږی په حقیقت

۱) تفسیر المظهری: ۱/ ۱۱، صحیح مسلم، کتاب الصلوٰة، باب وجوب قراءة الفاتحة: ۱/ ۱۶۹

کښې دا دالله تعالی ستائینه ده لکه څنګه چې دیونقش، تصویر، یاکاریګرئی ستائینه کول په حقیقت کښې دنقاش، مصور، یاکاریګرستائینه وی، اوس دې جملې سره دګنړوالی په چپو کښې نښتی انسان ته داحقیقت څرګند کړې شوچه داټول ګنړوالی هم یووحدت سره تړلی دی او ټولې ستائینې په حقیقت کښې دهغه قادرِمطلق دی بل چاته ئې نسبت کول دبصارت اوبصیرت دوارو کوتاهی ده.

حمد را با تو نسبتی است درست　　بر در هرکه رفت بردرِتست

**ترجمه**: درحقیقت اصلی ستائینه هم ستاده دهرچادرته تلل هم ستاپه درګنړلي شي]

**په جمله اَلْحَمْدُلِلّٰهِ کښې د وحدانیت درس**: دې نه داخبره ښکاره کیږی چې هرکله په ټولوکائناتوکښې دستائینې ورِذات صرف یودې نودعبادت اوبندګئی مستحق هم دغه ذات دې، په داشان اګرچه﴿اَلْحَمْدُلِلّٰهِ﴾دحمداوثنادپاره راورې شوې ده خوددې په ترس [ضمن] کښې په یومعجزانه شان مخلوق پرستی ختم کړې شویده اوپه زړه اثرکونکې دتوحیدسبق ورکړې شوې دې.
که په ژورنظراوکتلې شی نودې ورې اولنډې جملې کښې یوارخ ته الله تعالی دستائینې اوثنا بیان دې بل ارخ ته په ګنړوچورلکونو [رنګینیو]کښې راګیرانسان دهغې نه راخلاص کړې شواوپوحقیقت ته ئې مخه راواړولې شوه چې دمخلوق پرستئ جرړې [ریښې] ورسره پریکړې شوې دریم داچه انسان لره ئې په معجزانه اندازسره دایمان رومبی رکن توحیدته په داشان رامات [متوجه] کړوچه دعوی ورسره پخپله دلیل هم جوړیږی. ﴿فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخٰلِقِیْنَ﴾(۱)

**د رب معنی**: ددغه رومبئ جملې څخه پس دالله تعالی صفت ﴿رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ﴾ذکرشوچه مختصر او لنډه تشریح ئې داسې کولې شی، [رب] دعربئ لغت په اعتبارسره ددې لفظ معنی پالونکې اوپرورش کونکې دې اوتربیت کونکې دې ته وائی چې یو څیزله درجه په درجه داسې وده ورکړې شی چې کامل شی اوپه دغه وده [ترقی] ورکولو کښې ددې دټولوښیګړوخیال ساتلې شوې وی. دا لفظ [رب] هرکله چې غیرمضاف وی نویواځې الله تعالی دپاره استعمالیدې شی ولې چې نور هریومخلوق پخپله خپلې پالنې دپاره دبل محتاج دې نودبل پالنه به څنګه اوکړې شی البته چې مضاف شی نوانسان دپاره استعمالیدې شی، لکه رب المال یارب الدار وغیره

**د عالمین معنی**: قوله تعالی: ﴿الْعٰلَمِیْنَ﴾دا دعالم جمع ده، په دې کښې ددنیاټول اجناس، آسمان، نمر [المر]، سپوږمئی، ستوری، هوا، فضا، بریښنا، باران، فرښتې، پیریان، زمکه اوټول مخلوقات حیوانات، انسانان، اوښې [درختی]، کانړی، بوټی داخل دی، نود﴿رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ﴾معنی دا شوه چې الله تعالی دکائناتو د ټولو جنسونو اوقسمونو پالونکې دې،

**د عالمونو شمار**: اوداهم څه لرې خبره نه ده چې ددې زمونږ عالم نه سوا نورپه لکونو کروړونو عالمونه په فضاکښې موجود وی چې مونږته نه ښکاری، امام رازی رحمه الله په خپل تفسیرکبیر(۲) کښې فرمائی: زمونږددې عالم نه بهر یو نه ختمیدنکې خلاپه عقلی دلائلو سره ثابته ده، اوداهم ثابته ده چې الله تعالی په هرڅه قدرت لری، هغه دپاره داخه مشکل نه دی چې په دغه نه ختمیدنکې خلا کښې ئې زمونږددې عالم پشان نورپه زرګونولکونوعالمونه جوړ کړې وی،

---

(۱) ترجمه: د الله تعالی ډیر لوئی شان دی او هغه زات د ټولو کار کونکو نه لوئی کارکونکی دی.
(۲) تفصیل دپاره اوګوئی. التفسیرالکبیر: ۱/ ۲۲۸

دحضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه منقول دی چې عالمونه څلوېښت زره دی چې يودهغې ځنې زمونږداعالم دې د مشرق څخه ترمغربه پورې،داشان د تفسير امام حضرت مقاتل رحمه الله نه اتيا عالمونه منقول دی [قرطبی]([1])

**يواشكال او د هغې جواب:** دلته داشبه کول چې په نوروعالمونوکښې دانساني مزاج مطابق هوا وغيره نه وی نوانسان هلته څنګه ګزاره کولې شی؟ددې جواب امام رازی رحمه الله داورکړې دې چې داڅه ضروری نه ده چې هريوعالم کښې د يوآځې انسانان آبادوی الله تعالى داهم کولې شی چې هلته ئی داسې نور مخلوق پيدا کړې وی چې مزاج ئی هغې سره جوړښت خوری اوخوراک څکاک [څښاک] ئی هم دهغې مطابق وی.

**امام رازی رحمه الله او موجوده خلا باز:** دا مضمون دنن څخه اوه سوه کاله رومبې يواسلامی سائينسدان ليکلې دې په کوم وخت کښې چې د فضا اوخلاپه سفرڅوک نه ووتلی اونه داسې ذريعې اوآلات په دغه وخت [کښې] ايجاد شوې وې، د ننني راکټونووغيره زمانه کښې خلائی مسافرانوچه کوم بيان اوکړوهغه هم ددې څخه زيات نه دې چې ددې عالم څخه بهرد خلاهيڅ حداوانتهانشته اودا هم څوک نشی وئيلې چې په دې خلا کښې څه څه موجوددی؟ زمونږدې عالم ته نزدې دسيارو،سپوګمئی اومريخ کومه اندازه چې اوسنی ماهرانودسائنس لګولې ده چې دغې سيارودپاسه داسې قسم مخلوق آباددې چې هغې دپاره دا ضرروی نه دی چې طبيعتونه ئی ددې عالم دحيواناتوپشان وی بلکه عقل داوائی چې دهغې مخلوق خوراک، څکاک، طَبيعت، مزاج، اوضروريات دې ددې عالم دخلقوڅخه مختلف وی نوپه يوبل د قياس کولو تکليف ته څه ضرورت دی

**دجان ګلين انکشاف:-** داامام رازی رحمه الله دتائيداوددې سلسلې دنوی معلوماتودپاره هغه مقاله کافی ده چې امريکی خلائی مسافر جان ګلين شائع کړې ده کوم چې اوس اوس دخلائی سفرنه واپس شوې دې په دې مقاله کښې هغه ديوشعاعی کال په نوم ديوې اوږدې مودې اومسافت پيمانه جوړه کړې ده.اودخپل فکرد فراخئ په اندازه ئی څه معلومات پيش کړی دی بيا ئی دااقرارکړې دې چې د خلا دفراخئ هيڅ اندازه اوحدنشته،

**انسان دپاره د عبرت خبره:-** دقرآن کريم دالنډه شان جمله په نظرکښې اولرئی اودټول عالم اوددې د کائناتوجائزه واخلئې چې الله تعالى دعالم دتربيت څومره مضبوط،محکم اوعقل حيرانوونکې نظام جوړ کړې دې آسمانونه، ستوری،سيارې اوذرې ټول په دې نظام کښې پئيلی شوی دی چې هريوپه خپل خپل سپارلی کارکښې لګيادې،ديوانسان په خله کښې راتلونکې نمرئ [ګوله] باندې که غوراوکړې شی نوپه دې کښې د زمکې،آسمان قوتونو ، او کروړونو انسانانو او څاروکارکړې دې هله پس ته دانمرئ [ګوله] تياره شوې ده،داټول هرڅه دې دپاره دی چې انسان د غورفکرڅخه کارواخلی اوپه دې ځان پوهه کړی چې الله تعالى آسمان اوزمکه اوپه دې کښې موجود ټول مخلوق دانسان په خدمت کښې لګولې دې پکاردی چې انسان په دې هم فکراوکړی چې هرکله ده لره الله تعالى دکائناتومخدوم جوړکړونودده په ذمه به هم څه فرائض اوخدمت وی،

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ۱/ ۱۳۸

ابروباد ومه وخورشیدوفلک درکاراند تاتونانے بکف آری وبغفلت نخوری

**ترجمه:-** وریځ، هوا، میاشت، سپوږمئ، اونمرټول په کارکښې لګیادی، چه روټئ ترلاسه کړې نوپه غفلت سره ئې مه خوره،

همه ازبهرتوسرګشته وفرمانبردار شرط انصاف نباشدکه توفرمان نبری

**ترجمه:-** ټول ستاد پاره سرګردانه اوحکم منونکی دی. انصاف دانه دې چې ته حکم نه منې ﴿وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ﴾ [ماپیریان اوبنیادم نه دی پیداکړی بل څه کارد پاره سوا ددې نه چې زما عبادت اوکړی]

**د الله د حمد دلائل:-** ددې تفصیل څخه معلومه شوه چه ﴿رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ په یوحیثیت سره د ړومبئ جملې ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ دلیل دې، په دې شان چې هرکله د ټولوکائناتودپالنې ذمه وارصرف یو ذات دباری تعالی دې، نود ستائینې حقیقی ورهم دغه ذات کیدې شی په دې طریقه چې ړومبی آیت ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ کښې دحمد او ثنا سره، د ایمان دړومبی رکن توحید بیان په مؤثر اندازکښې اوشو، بل آیت کښې، د رحمت اوصفت ذکررحمٰن او رحیم سره کړې شوې دې چې دواړه د مبالغې صیغې دی، درحمت خداوندی، فراخی، ډیروالې اوکمال ترې څرګندیږی، ددې صفت په ذکر کولو سره غالبا دې اړخ ته اشاره ده چې د دې ټولوکائناتودپالنې ذمه وارې دخپل ضرورت پوره کولویادڅه مجبورئ دکبله الله تعالی نه ده اخستې بلکه دا ټول هرڅه دده د صفت رحمت تقاضا ده که ټول کائنات نه وی نوالله تعالی ته څه نقصان نشته اوکه دا ټول کائنات موجود وی نوپه الله تعالی هیڅ پیټې نه جوړیږی،

نه تنها بدی چونکه خلقت نبود نه چون کرده شد برتو زحمت فزدو

**ترجمه:** نه د مخلوقاتو نیشتوالئ ستا دپاره څه عیب وو او نه ددوئ وجود په تا څه بوج دې.

**د مالک او دین معنی:- قوله تعالی:** ﴿مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ﴾: لفظ دمالک دملک نه مشتق دې چې معنی ئی داده په یوخیزداسې قبضه کول چې په هغې کښې دتصرف کولوجائزقدرت لری [قاموس] د لفظ دین معنی ده بدله ورکول، ددې دواړویوځائ کیدونه پس ﴿مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ﴾ لفظی معنی ئی دا شوه، مالک د ورځې دجزاء یعنی په لرونکی او هغه ملکیت به په څه کښې وی، ددې ذکر نه دې شوې. دتفسیرکشاف په قول په دې کښې اشاره عموم اړخ ته ده، مطلب داچه دجزاپه ورځ به دتمامو کائناتواوټولوخیزونوملکیت یواځې د الله تعالی وی [کشاف] ([1])

**د جزاء د ورځې حقیقت او عقلاددې ضرورت:-**

**دوه سوالونه او دهغې جوابونه:-** روزجزا د کومې ورځې نوم دې؟ حقیقت ئی څه دې، بله داچه چې څنګه الله تعالی په ټولوکائناتود جزاء په ورځ ملکیت لری هغسې اوس هم لری نوددې تخصیص څه مطلب؟ د ړومبئ خبرې جواب دا دې چې د جزاء ورځ هغه ده چې الله تعالی د نیکو او بدوعملونودپاره ټاکلې ده، د روزجزا د لفظ څخه یوعظیم الشان فائده ترلاسه شوه چې دنیا د نیکو او بدعملونو دجزا اوسزا ورکولوځائې نه دې بلکه دا دارالعمل یعنې د فرض ادا کولو ځائې دې چې بدله او تنخواه ئې هم دلته نشی ترلاسه کیدې، دې نه دا اندازه لګول څه ګرانه

---

[1] ) تفسیر کشاف: ۱/ ۵۴، ۵۵

خبره نه ده چې د دنیا عیش عشرت، دولت، آرام ددې دلیل نه دی چې ددې موندلو والادې دالله تعالی په نیز مقبول اومحبوب وی یاڅوک غم زپلي په مصیبتونوکښې ګیرډې دالله تعالی ګنهګار اوناخوښه وی،

**د دنیامثال**:- ددې مثال داسې اوګڼړئ چې پخپله، خپل ځان لره څوک په مصیبت کښې بندیوان هغه وخت نه ګڼړئ چې په خپل دفتریاکارخانه کښې خپل فرض ادا کوی اونه بل څوک ده لره مصیبت زپلي ګڼړی، ځکه چې دغه دفتری اودکارخانې کارکونکې دغه مشقت اومحنت لره لویه کامیابی ګڼړی، اوکه څوک مهربان ئې دغه قسمه مشقت نه فارغول غواړي نودې هغه لره خپل یوناکاره دشمن ګڼړی ځکه چې دې ددغه میاشتنی محنت په شاهغه آرام وینی چې دتنخواه په صورت کښې ئې ترلاسه کوی، هم دا وجه ده چې په دې دنیا کښې پیغمبران ﷺ او اولیاءکرام ﷺ دخپلې خپلې درجې په جوړد تولو څخه زیات په مصیبتونو کښې ګرفتاروی [څومره چې درجه ئې اوچته وی هغومره به ئې مصیبتونه زیات وی]، اوهغوئی سره ددې بیا هم ډیرپه تسلئ بلکه په اکثرووختونو کښې خوشحاله ښکاری.

نشود نصیب دشمن که شود هلاك تیغت  سردوستان سلامت که خنجر آزمائی

**ترجمه**: نه دې شي د دشمن نصیب چه ستا توره وریاندې ماته شی، د دوستانو سر دې روغ وی چه ته خپله توره آزمائې.

**هر مصیبت د ګناه سزا نه وی**:- غرض داچه دنیاوی مصیبتونه دبدعملئ اودنیوی عیش اوعشرت دحق اورشتینولئ یقینی نښه نه ده صرف د خبرداره کولودپاره یوه نمونه وی لکه الله تعالی په خپل کلام پاک کښې فرمائی: ﴿وَلَنُذِيقَنَّهُمْ مِّنَ الْعَذَابِ الْأَدْنَىٰ دُونَ الْعَذَابِ الْأَكْبَرِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ﴾ یعنی مونږ په خلقو ته د [آخرت] دلوئې عذاب نه وړاندې [کله کله] په د نیا کښې یو عذاب ورکوؤ، دې دپاره چې دوئ منع شی.

اوبل ځائې ارشادفرمائی ﴿كَذَٰلِكَ الْعَذَابُ ۖ وَلَعَذَابُ الْآخِرَةِ أَكْبَرُ ۚ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ﴾ داسې وی عذاب او د آخرت عذاب به ډیرلوئی وی که دوئ پوهیدلې:

غرض داچه دنیوی راحت اومزې خوکله امتحان وی اوازمیښت وی اوکله عذاب هم وی خو دا دعمل پوره بدله نه وی بلکه یوه نمونه وی، ولې چې دادڅوورځواوعارضی وی اصلی راحت او تکلیف هغه دې چې همیشه پاتې کیدونکې وی چې ددې عالم دختمیدونه پس په عالم آخرت کښې به راتلونکې وی چې دورخې دجزاپه نوم یادیږی،

**دقیامت راتلو عقلی دلیل** ددې تفصیل په بناءدعدل اوانصاف اوعقل تقاضه داده چې د نیک او بد تر منځه فرق اوشی اوددې دواړو جزا او سزا دپائداره وی هغه به داشان کیدې شی چې جزا اوسزادپاره یوبل عالم[جهان]وی چې په انصاف سره پائیداره جزا اوسزاورکړې شی، لکه قرآن کریم چې په سورت مؤمن کښې په وضاحت سره بیان کوی ﴿وَمَا يَسْتَوِي الْأَعْمَىٰ وَالْبَصِيرُ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَلَا الْمُسِيءُ ۚ قَلِيلًا مَّا تَتَذَكَّرُونَ ۝ إِنَّ السَّاعَةَ لَآتِيَةٌ لَّا رَيْبَ فِيهَا وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُونَ﴾ یعنی په سترګوروغ اوړوند اوهغه خلق چې ایمان ئې راوړې دې اوکړی ئې دی ښه عملونه اوبدکاره خلق سره یوتربله برابرنشی کیدې تاسوډیرکم پوهیږئ قیامت خامخا راتونکې دې هیڅ شک په کښې نشته خوزیات خلق ئې نه منی.

**مالک څوک دی** قوله تعالیٰ: ﴿مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ﴾ کښې دغورکولودویمه خبره داده چې هر عقلمند دپاره داخبره بدیهی اوبلکل ښکاره ده چې دټولو کائناتودذرې ذرې مالک یواځې هغه ذات دې چاچه دا پیدا کړل، وده ئې ورکړه، پالنه ئې اوکړه اوملکیت ئې په هرڅیزمکمل دې، په ظاهر باندې هم اوباطن باندې هم مړا باندې هم وژوندی باندې هم. او ملکیت ئې ابتدااوانتهانه لری، ددې په عکس دانسان ملکیت ابتدا اوانتها لری اول هم نه وؤبیا به هم نه وی، په ظاهرئې ملکیت شته په باطن ئې نشته، په ژوندی ئې شته په مړئې نشته، ځکه دبصیرت خاوندان په دې یقین لری چې یواځې دجزا د ورځې ملکیت الله لره نه دې بلکه په دنیا کښې حقیقی ملکیت هم یواځې د الله تعالیٰ دې بیاپه دې آیت کښې الله تعالیٰ لره خاص د ورځې دجزامالک ثابتول څه حکمت لری؟

**جواب:-** جواب ئې دادې چې دقرآن بل یوآیت چې په غورسره اوګورونومعلومه به شی چې په دنیاکښې هم حقیقی اوکامل ملکیت په کائناتوباندې یواځې د پروردګارعالم دې خودخپل کرم اوحکمت بالغه له مخه ئې په دنیاکښې یوقسم ناقص ملکیت انسان ته هم ورکړې دې او د دنیا په قوانینوکښې دده دملکیت کافی احترام هم کیدې شی، نن ددنیاوی مال اودولت، زمکې، جائداد، کوټهئ، بنګلې، فرنیچر[دلرګې کرسئ وغیره]، خادمانواونوکرانوپه ناقص ملکیت کښې انسان په نشه کښې دې حالانکه دا د ازمیښت په ډول ورکړې شوی دی، نوپه [﴿مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ﴾] فرمائیلوسره الله تعالیٰ داسې معذوره بنده خبردارکړوچه داملکیتونه، ټول تعلقات اوروابطې صرف دڅوورځودی، داسې یوورځ راتلونکې ده چې څوک به په ظاهری شان هم دڅه مالک نشی پاتې کیدې، نه به څوک خادم پاتې شی اونه مخدوم، دآقااوغلام فرق به پاتې نشی دټولو کائناتو مالکیت اوملک به یواځې دالله تعالیٰ وی.

**دالله تعالیٰ د مالکیت تفسیر:-** ددې آیت پوره تفسیراودجزادورځې وضاحت دسورة مؤمن په دې آیتونوکښې دی ﴿يَوْمَ هُمْ بٰرِزُوْنَ ۚ لَا يَخْفٰى عَلَى اللّٰهِ مِنْهُمْ شَيْءٌ ۗ لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ ۗ لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ۝ اَلْيَوْمَ تُجْزٰى كُلُّ نَفْسٍۭ بِمَا كَسَبَتْ ۗ لَا ظُلْمَ الْيَوْمَ ۗ اِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ۝﴾ په کومه ورځ به چې ټول خلق دالله په وړاندې رامخکښې شی چې ددوئ هیڅ خبره به د الله څخه پټه پاتې نشی، نن ورځ به دچاحکومت وی، یواځې دالله تعالیٰ به وی چې بیمثله اوغالب دې، هرچاته به نن دخپلو کړوبدله ورکړې شی نن به هیڅ ظلم[په چا]نه وی الله تعالیٰ ډیرزرحساب اخستونکې دې.

د سورة فاتحه په شروع کښې بیان شوی وو چې ددې سورت په اولنی دریو آیتونو کښې د الله ﷻ د حمد او ثناء بیان دې. ددې درې واړو آیتونو تفسیر اوشو، او ددې تفسیر هم تاسو ته ښه معلوم شو چې ددې په ړومبی دوؤ آیتونو کښې د حمدوثناء په ضمن کښې د ایمان بنیادی اصول، دالله ﷻ د وجود باري تعالیٰ، او د د الله ﷻ دتوحید بیان هم په ډیره معجزانه طریقې سره راغلې دې. ددې دریم آیت مبارك په تفسیر کښې تاسو معلوم کړل چې ددې په دوؤ لفظونو کښې د حمد وثناء نه سره سره د اسلام عظیم الشان انقلابی عقیدې یعنی د آخرت او قیامت بیان په دلیل سره بیان شوې دې. اوس د څلور آیت مبارك بیان کیږی.

**دعبادت معنی** قوله تعالیٰ: ﴿اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَاِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ﴾ دې آیت کریمه کښې یو اړخ ته دستائینې اوثنابیان دې، اوبل اړخ ته دعااوخواست بیان دې، ﴿نَعْبُدُ﴾ دعبادت نه مشتق دې، دبیحده تعظیم اومحبت له کبله دچاپه وړاندې دخپلې انتهائی عاجزئ فرمانبرداریٔ اظهارکول دعبادت معنی ده[﴿نَسْتَعِيْنُ﴾]

**داستعانت معنی** داستعانت نه مشتق دي،د چاڅخه مددغوښتل ئی معنی ده دټول آیت شریف ترجمه داشوه. مونږیواځې ستا عبادت کوواوهم ستاڅخه مدد غواړو،

**د انسان درې حالتونه** په انسان درې حالات راځی، ماضی، حال، مستقبل، دړومبو درېؤ آیتونو څنې په﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾او ﴿الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ﴾ کښې انسان په دې خبردارکړې شوې دې چې دې په خپل ماضی اوحال کښې یواځې دالله تعالی محتاج دې هغه داسې چې په ماضی کښې ئی دنیشت نه شته کړو، اوورته ئی دټولو سادارو خیزونو نه زیات بهترین شکل، صورت، عقل، او بصیرت، ورکړواوپه حال کښې ئی تربیت اوپالنه جاری ده،او په ﴿مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ﴾ کښې ئی دا اوښودل چې مستقبل کښې هم دې الله تعالی ته محتاج دې ځکه چې دجزا په ورځ به دالله تعالی څخه سوا د هیچا هیڅوک مددګارنه وی،

**دالله تعالی د عبودیت عقلي دلیل**:- هرکله چې درې واړوآیتونوداخبره واضحه کړه چې انسان دخپل ژوند په درې واړوزمانوکښې یواځې الله تعالی ته محتاج دې نودې طبعی اوعقلی تقاضا داده چې عبادت دې هم صرف دالله تعالی اوکړې شی،ځکه چې عبادت ددې خبرې نوم دې چې انتهائی تعظیم اومحبت سره خپله انتهائی عاجزی اوذلت دچاپه وړاندې ښکاره کړې شی اوداسوادالله تعالی څخه بل چاله نه ښائی،ددې لازمی نتیجه داده چې یوعاقل انسان څخه کړی چې مونږه ستانه سوادبل چاعبادت نه کوؤاود طبیعت داتقاضا په﴿اِيَّاكَ نَعْبُدُ﴾ کښې ښکاره کړې شوې ده،هرکله چې معلومه شوه چې حاجت روایواځې ذات دالله تعالی دې نوبیاعقلی اوطبعی تقاضا هم داده چې په خپلوټولو کارونوکښې مددهم دالله تعالی نه اوغوښتلې شی چې په﴿وَاِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ﴾کښې ذکرکړې شوې ده [روح البیان](۱)

**په ذواتو فاضلؤ سره د توسل جواز**:- غرض داچه په څلورم آیت کښې یواړخ ته دالله تعالی حمداوثناده چې دعبادت اومدد لائق ذات یواځې هغه ذات دې اوبل اړخ ته دبنده دعااوخواست دې چې زمونږ مدد اوکړی،په دې کښې دریم اړخ هم شته هغه داسې چې انسان ته ښودنه شوې ده چې انسان دې دَ الله تعالی څخه سوا دبل چا عبادت نه کوی اوپه حقیقی شان سره دې بل هیڅوک حاجت روانه ګڼړی،د چاپه وړاندې دې د سوال لاس نه اوږدوی خود چانبی یاولی په وسیله دالله تعالی څخه دعاغوښتل دې سره سمون خوری شی.

**په هر څیز کښې دالله څخه مدد غوښتل**:- په دې آیت کښې داوئیل هم اهمیت لری چې مدد غوښتلو دپاره څه کارنه دې ښودلې شوې چې په هغې کښې ترې مدد غواړو،جمهورمفسرین په دې باره کښې وائی چې دا عموم اړخ ته اشاره ده مطلب داچه مونږپه عبادت هردینی،دنیوی کار او هر مقصد کښې یواځې ستا څخه مددغواړو،

**دعبادت لس قسمونه** بیا عبادت یواځې دمونځ روژې نوم نه دې،امام غزالی رحمه الله په خپل کتاب اربعین کښې دعبادت لس قسمونه لیکلی دی ① مونځ② زکواة③ روژه ④ حج⑤ دقرآن مجید تلاوت ⑥ هرحال کښې دالله تعالی ذکرکول ⑦ حلالې روزۍ دپاره کوشش کول، ⑧ دګاونډی [همسایه] اوملګری حقوق اداکول ⑨ خلقو ته دنیکو کارونوحکم کول اودبدکارونونه ئی منع

---

۱) تفسیر روح البیان: ۱/ ۱٤

کول، ⑩ درسول الله ﷺ دسنتوتابعداری کول[1].

**په عبادت کښې دشرک مفهوم:** په دې بناء په عبادت کښې چالره الله تعالی سره دنه شریکولو معنی دا شوه چې نه د چا سره محبت داسې وی څنګه چې الله تعالی سره وی، نه دچا څخه په ویره کولو کښې برابروی، نه د چا څخه په امید کولوکښې برابر وی، په اطاعت، خدمت، او کار کولو کښې دې هم برابری نه کوی، د الله تعالی د نوم پشان دې دبل چاپه نوم دې منښته [دروږ] نه کوی، نه دې د بل چا په وړاندې داسې مکمله عاجزی اوخواری ظاهروی څنګه چې دالله تعالی په وړاندې ئې ښکاره کوی، نه دې داسې کارونه بل چا دپاره کوی چې د انتهائی خوارئ ظاهرولو نښه وی، لکه رکوع اوسجده شوه،

آخری درې آیتونه دانسان له اړخه په دعااوخواست مشتمل دی اودیوخاص دعاتلقین په کښې دې چې دادې:

**قوله تعالی:** ﴿اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ ۙ صِرَاطَ الَّذِيْنَ اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ ۙ غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ ۚ﴾ اوښایه مونږته لاره نیغه. لاردهغوخلقوچه تا پرې انعام کړې دې چې قهریدلې پرې نه ئې اونه هغه چې لارئی ورکه کړې ده]

ددې درېؤ آیتونوڅوضروری خبرې:

## دهدایت ددرجوپوره تفصیل

**دهدایت باوجود دهدایت سوال ولې:** دلته قابل غور خبره داده چې دصراط مستقیم دهدایت دپاره په دعا کولوڅنګه چې ټول انسانان اوعام مؤمنان ماموردی دغه شان انبیاءکرام او اولیاءالله هم مامور دی چې بې دڅه شک څخه هدایت موندونکی څه چې د نورودپاره دهدایت لوئ چینې دی نوسوال دا پیدا کیږی چې حاصل شوی اوموندلی شوی هدایت دپاره د بیا بیادعاکولوڅه مطلب دې؟

**مقدمه د جواب:-** ددې په جواب پوهیدل هله کیدې شی چې دهدایت پوره حقیقت معلوم کړې شی څکه ئې تفصیلی بیان کول غواړم، چه ددغه سوال حل کیدونه علاوه دهغه ټولواشکالاتوجواب هم معلوم شی چې دهدایت دمفهوم په باره کښې دقرآن کریم په مختلفومقاماتوکښې عموما مخې ته راځی څکه چې دهدایت دحقیقت څخه ناواقف خلق دقرآن کریم په ډیرو آیتونوکښې یود بل ترمنځه ټکراؤاواختلاف محسوسوی..

**دهدایت معنی:-** دهدایت د لفظ یوډیره غوره تشریح امام راغب اصفهانی په مفردات القرآن[2] کښې لیکلې ده، خلاصه ئې داده چې داصلی معنی له مخې هدایت دې ته وئیلې شی چې چاته منزل مقصود اړخ ته په مهربانئ سره لاربښودنه اوکړې شی اودحقیقی معنی په لحاظ چاته هدایت کول، یواځې دالله تعالی فضل دې چې مختلفې درجې لری:

**د هدایت اوله درجه:-** عامه درجه: چه د کائناتو او مخلوقاتو ټولو قسمونو جماداتو، نباتاتو او حیوناتو ټولوسره تعلق لری، دلته داخیال مه کوئ چې د بې ساه اوبې شعوره څیزونو هدایت سره څه کاردې څکه چې دقرآنی تعلیماتوله مخه دکائناتودا ټول قسمونه بلکه ذره ذره دخپل

---

[1] ) کتاب الاربعین فی أصول الدین: ۲۶ نه ۸۹ پورے۔
[2] ) المفردات فی غریب القرآن: ۵۳۸ تا ۵۴۱

شان مناسب ژوند، احساس، عقل او شعور لري اگرچه دکم زيات فرق په کښې شته

**دعقل او شعور په اعتبار سره د مخلوق درې قسمونه:-** ① دا بيله خبره ده چې په کومو کښې چې دا جوهر ډير کم دې هغه بې ساه او بې شعوره بللې شي او هم په دې بناء دغه څيزونه د احکام الٰهيه مکلف هم نه شو، ② او په کومو مخلوقاتو کښې چې د ژوندنخښې نښانې واضحې دی او عقل او شعور واضح نه لرې دې ته بې زبانه، بې عقله او بې شعوره وئيلې شی ③ او په کوم مخلوق کښې چې د ژوند نخښو نښانو سره عقل او شعور په واضح شان موجودوی دوئ ته ذوی العقول [دعقل خاوندان] وئيلې شی او هم ددې کمئ بيشئ او واضح فرق له کبله د ټولو کائناتو څنې يو اخې پيريان او بنيادم د شريعت د حکمونو مکلف او ټاکلې شو.

**هر يو څيز شعور لري:-** د کائناتو ټول مخلوق سره د فرق عقل او شعور لري څوک کم څوک ترې زيات لکه الله فرمائي: ﴿وَإِن مِّن شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِ وَلَٰكِن لَّا تَفْقَهُونَ تَسْبِيحَهُمْ﴾ داسې هيڅ څيز نشته چې دالله پاکی تسبيح به نه بيانوی خو تاسو دهغې په پاکئ بيانولو نه پوهيږئ،

په سورت نور کښې ارشاد دې:

﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ يُسَبِّحُ لَهُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَالطَّيْرُ صَافَّاتٍ ۖ كُلٌّ قَدْ عَلِمَ صَلَاتَهُ وَتَسْبِيحَهُ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِمَا يَفْعَلُونَ﴾ تا ته پته نشته چې دالله تعالی پاکی بيانوی ټول هغه چې په آسمانونو او زمکه کښې دی او هغه مارغان هم چې وزرونو خواره کړی [الوځی] ټولو ته خپل خپل مونځ او دعا معلومه ده او الله تعالی ته دهغوی په کړو پوره علم دې،

**دالله تعالی د معرفت ضرورت:-** ښکاره خبره ده چې دالله تعالی حمد او ثناء او پاکی بيانول دالله تعالی په پيژندلو اړه لري او دالله تعالی پيژندګلی دټولو څخه لوئ علم دې، چه بغير دعقل او شعور څخه نشي حاصليدې ځکه داوئيل بې ځايه نه دی چې دکائناتو هر مخلوق روح او ژوندلری لکه چې وړاندې هم واضح کړې شو، دقرآن دافيصله دهغه وخت ده چې په دنيا کښې څوک فلسفی نه وؤ او نه دَ فلسفې څه کتابونه ليکلی شوی وؤ ورپسې راتلونکو فلسفيانو هم ددې تصديق جاری اولرو په قديم فلسفه کښې هم ددې خيال خلق تيرشوی دی جديد فلسفيانو او سائنس پوهانو هم پوره وضاحت سره داثابت کړی دی،

**دهدايت عامه درجه هر څيز ته حاصل ده:-** الغرض دهدايت دادرجه دکائناتو په هر قسم مخلوق کښې شته لکه الله تعالی په خپل کلام مبارک فرمائي: ﴿أَعْطَىٰ كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهُ ثُمَّ هَدَىٰ﴾ [الله تعالی هر څيز ته د هغې خلقت او بخښلو بيائی ورته دهغې مناسب هدايت او کړو]

دامضمون په سورت اعلی کښې څه داسې شان دې: ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى ۝ الَّذِي خَلَقَ فَسَوَّىٰ ۝ وَالَّذِي قَدَّرَ فَهَدَىٰ ۝﴾ دخپل عاليشان پروردګار پاکی بيانوه چې ټول مخلوقات ئې پيدا کړل او درست ئې کړل او چاچه تجويز او کړو بيائې لارا وښودله،

يعنی الله تعالی دهر څيز دمزاج مطابق خاص خاص فرائض ورلره تجويز کړل او هر يو ته ئې د هغې مناسب هدايت او کړو، ددې عام هدايت په نتيجه کښې هر يو مخلوق خپل خپل ټاکلی فرض په ډيرښه شان سره اداکوی په دې طريقه چې عقل ورته حيرانيږی لکه مولانائی روم فرمائی:

خاک وبادوآب وآتش بنده اند　　بامن وتومرده باحق زنده اند

**ترجمه:-** [خاورې، اوبه، هوا او ټول بندګان دخدائې دی: ما او تاته مړه او الله تعالی سره ژوندی دی]

د ژبې نه راختلې آواز پوزه او سترګې نشي را الندکولې سره ددې چې ژبې ته نژدې دي الله دا کار غوږونو ته سپارلې دې، هغه د ژبې څخه راوتلې خبره اخلي او پوهه ترې اخلي، دانائې روم رحمه الله فرمائي چې:

مرزبان رامشتري جزگوش نیست    واقف این راز جزبيء هوش نيست

**ترجمه**: دغه شان د غوږونو څخه د کتلو یا بویولو کار نشي اغستلې، د پوزې څخه د کتلو یا اوریدلو کار نشي اغستلې، په سورت مریم کښې دا بیان څه داسې شوې دې:

﴿اِنْ كُلُّ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اِلَّآ اٰتِي الرَّحْمٰنِ عَبْدًا﴾ داسې څوک په آسمان او زمکه کښې نشته دې چې رحمن ته د بنده په شکل نه راځي

**دهدایت دویمه درجه**:- دهدایت دویمه درجه یواځې د عقل لرونکو سره تعلق لري چې انسانان او پیریان دي داقسم هدایت د پیغمبرانو او آسماني کتابونو په ذریعه هر انسان ته رسي نو ددې قبلونکي مسلمان او نه قبلونکي کافر بللې شي،

**دهدایت دریمه درجه**:- دریمه درجه دهدایت ددې څخه هم خاصه ده چې یواځې مؤمنانو او متقیانو سره تعلق لري دالله تعالی له اړخ څخه نیغ په نیغه [ډرایك، سیدها] ئې انسان ته فیضان کیږي،ددې بل نوم توفیق هم دې،مطلب ئې داسې حالات او سباب پیدا کول دي چې قرآني هدایت قبلول او په هغې عمل کول آسان شي او خلاف کول ئې ګران شي،

**د دریمې درجې وسعت**:- دابیحده وسیع درجه ده چې درجات ئې د شمیر څخه بهر دي،دادرجه دانسان دترقۍ میدان دې نیکو عملونو سره په دې درجه کښې په مخه زیاتې راځي.

① لکه قرآن کریم فرمائي: ﴿وَالَّذِيْنَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ هُدًى﴾ (۱) دهدایت موندونکو هدایت زیاتوي. چاچه په الله ایمان راوړونو دهغه زړه ته هدایت کوي،

② ﴿وَمَنْ يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ يَهْدِ قَلْبَهٗ﴾ څوک چې په الله تعالی په باندې ایمان راوړي دهغه زړه ته هدایت کوي.

③ ﴿وَالَّذِيْنَ جَاهَدُوْا فِيْنَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا﴾ او کوم خلق چې زمونږ په لار کښې مجاهده کوي نو هغوئ ته دخپلو لارو نور هم هدایت ورنصیب کوؤ.

دا یو داسې میدان دې چې دټولو نه لوې دې دالله تعالی دوست خولاڅه کوې د ټولو څخه لوړې رتبې والا پیغمبر ﷺ په دې کښې تر آخره عمر پورې د زیات څخه زیات هدایت او توفیق طلبګار پاتې کیږي. دهدایت ددې مقام باره کښې مولانا رومي فرمائي چې:

اے برادرے نهایت درگهے ست    هرچه بردے مرسی بردے مایست(۲)

او سعدي شیرازي رحمه الله فرمائي چې:

نگویم که برآب قادر نیند    که برساحل نیل مستسقي اند(۳)

**د پیغمبر دپاره هم د هدایت طلب بکار دې**:- د هدایت د درجاتو د دې تشریح نه معلومه شوه چې حاصل شوی هدایت کښې لوئ نه لوئ انسان هم دزیات څخه زیات هدایت حاصلولو په فکر او کوشش کښې وی څکه په سورتِ فاتحه کښې دټولو څخه غوریزه دعا دهدایت اوټاکلې

(۱) ترجمه: کومو خلقو چه د هدایت لاره اختیار کړی نو ده الله تعالی دوی ته نور هم هدایت ورکړی دی۔
(۲) ترجمه: اے روره! ددے درګاه هیڅ انتها نشته، ته چه چرته هم اورسیږی نه هغه آخری اوګڼه او هلته کښی ادریګه۔
(۳) ترجمه: څه دا نه وایما چه دوی سره اوبه نشته بلکه هغوی د نیل په کناره باندے دی مګر بیا هم د اوبو طلب ګار دی۔

شوه چې دیو ادنی مسلمان دحال مناسب ده اولوئ نه لوئ ولي اوپیغمبرلره هم ډیره اهمه ده،هم دغه وجه ده چې په سورت فتح کښې الله تعالی دفتح مکې فائدوبیانولوسره داهم اشاره اوفرمائیله ﴿وَيَهْدِيَكَ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا﴾ مطلب ئې داراوځي چې الله تعالی مکې مکرمې لره ستاسو په لاس په دې وجه فتحه کړه چې درته دصراط مستقیم هدایت وی،په دې بناءهرکله چې سیدالانبیاء ﷺ صرف هدایت موندونکې نه بلکه نورودپاره هم ګویاکښې یوهدایت وؤ،نوپه دې موقع ورته دهدایت کیدوبل هیڅ مطلب سِواددې څخه نشی کیدې چې دغه ورته دهدایت څه ډیرلوړمقام حاصل شو،

**دمذکوره تحقیق فائدې**:دهدایت دې تشریح سره په قرآن پوهیدوکښې ډیرې فائدې حاصلې شوې،
① یوداچه چرته خوهم مؤمن اوکافربلکه ټول مخلوقاتو دپاره هدایت عام ښودلې شوې دې،او کله ئې متقینوسره خاص کړې دې چه ناواقف ته په کښې ټکراؤښکاریدو،نودهدایت عام اوخاص درجې بیانولوسره دغه قسم ټکراؤاوشبهې پخپله ختمې شوې،
②دویمه فائده ئې داده چې هغه شبهات پرې هم ختم شول چې دې څخه پیدا کیدل چې یوځائې کښې خوالله تعالی فرمائی چې فاسقانواوظالمانوته هدایت نه کوی. بل طرفته ارشاد دې چې الله ﷻ ټولو ته هدایت کوی. ددې جواب هم د درجاتو د تفصیل سره واضح شو چې عام هدایت ټولو ته کولې شی، او د هدایت دریمه مخصوص درجه ظالمانو او فاسقانو ته نه نصیب کیږی.
③دریمه فائده ئې داده چې داولې اودریمې درجې هدایت نیغ په نیغه دالله تعالی فعل دې چې یونبی اورسول هیڅ دخل په کښې نه وی البته ددویمې درجې په هدایت کښې ئې دخل وی، چرته چې انبیاءکرام هدایت کونکې ښودلې شوی دی هغه د دویمې درجې دهدایت په اعتبار سره اوچرته چې ارشاد دې، [اِنَّكَ لَا تَهْدِيْ مَنْ اَحْبَبْتَ] یعنی ته چې چاته غواړې نو هغه ته هدایت نشې کولې.نوهلته ددریمې درجې هدایت مراددې چې توفیق دهدیت ورکول هغوی ﷺ نشوکولې،
غرض داچه ﴿اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ﴾داسې یودعا ده چې هرانسان ورته حاجت لری اوددین دنیادواړوکامیابی بغیرد صراط مستقیم څخه هیڅ نه ده،دنیاوی پریشانوکښې هم دا دعاد تجربه شوې کارورکوی خوخلق خیال نه کوی،

## صراط مستقیم کومه لار ده؟

**د صراط مستقیم تعریف**:- نیغه لارهغه کیدې شی چې کوږوالې په کښې نه وی،دلته ترې مراد ددین هغه لارده چې دټاکلی حدزیاته کمه نه وی،

**هدایت یافته خلق**:- ورپسې دوؤآیتونوکښې صراط مستقیم په ګوته کړې شوې دې نو فرمائی قوله تعالی:﴿صِرَاطَ الَّذِيْنَ اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ﴾لاردهغه کسانوچه انعام دپرکړې دې] داسې کسان په بل آیت کښې ښودلې شوی دی فرمائی:﴿اَلَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنَ النَّبِيّٖنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَآءِ وَالصّٰلِحِيْنَ﴾ [یعنی پیغمبران، صدقینو، شهداء اوصالحین چې دالله په دربارکښې مقبول خلق دی] دې څلورقسمه خلقوکښې ① انبیاء ﷺ دټولوڅخه دلوړې مرتبې خاوندان دی ② او صدیقین هغه خلق دی چې د انبیاء ﷺ په امت کښې د ټولو نه اوچتې درجې والا دی، او په هغوئ باطنی کمالات هم وی چې په عرف کښې هغوئ ته اولیاء کرام وئیلې کیږی ③ شهداء هغه دی چې ددین په محبت کښې ئې خپل ځان قربان کړې وی،④اوصالحین هغه خلق دی چې دشریعت پوره تابعداروی

[په واجباتو او مستحباتو کښې] دوئ ته په عرف کښې نیک او دیندار خلق وئیلې شي داپه ایجابي طریقې سره صراطِ مستقیم تاکل دی او په آخری آیت کښې سلبي طریقې سره تاکلې شوې ده،[۱]

**مغضوب علیهم څوك دي؟** فرمائی قوله تعالیٰ: ﴿غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ﴾ او نه دهغه خلقو لاره چې په هغوئ ستا غضب اوکړې شو او نه دهغه خلقو لاره چې ګمراه شوی دی ﴿مَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ﴾ هغه خلق دی چې دینی احکامو باندې دخبرېدو باوجود د ضد او شرارت له کبله دهغې خلاف وی، په نورو ټکو کښې داهغه خلق دی چې د الله تعالیٰ د حکمونو په تعمیل کښې کوتاهی کوی څنګه به چې عمومایهود وو په داشان کول چې ددنیاد ذلیلو مفادو دپاره به ئې دین قربانولو او دانبیاء ﷺ سپکاوې به ئې کولو،

**ضالین څوك دي؟:-** ضالین نه مراد هغه خلق دی چې په ناخبری او ناپوهئ کښې په غلطه لار روان وی څنګه چې عام طور د نصاراؤ حالت دې، دوئ د دین دتاکلو حدونو څخه بهر او وتل تردې چې پیغمبر ته ئې د خدائي درجه ورکړه، داځو مره ظلم او زیاتي دې چې یو طرفته خود پیغمبرانو حکم نه منی، دهغوی په وژلو هم صرفه نه کوی او بل اړخ ته پیغمبرته دخدائي درجه ورکوی.

دآیت مطلب او خلاصه دا شوه چې مونږ هغه لارنه غواړو چه دنفساني غرضونو دتابعدارو، بد عملو او دین کښې دکمی کونکوده اونه هغه لار غواړو چه دجاهلانو او په دین کښې دزیاتی کونکوده بکله هغه درمیانه لار غواړو چه په کښې هیڅ کمي زیاتي نشته او دنفساني خواهشاتو او غرضونو دتابعداری نه، او دشبهاتو او خرابو عقائدونه پاکه وی، دسورت فاتحې خلاصه داده چې اې الله مونږته د ﴿صِرَاطَ مُسْتَقِيْمَ﴾ هدایت اوکړې او چونکه په دنیا کښې د ﴿صِرَاطَ مُسْتَقِيْمَ﴾ پیژندل دټولونه لوئ علم او غټه کامیابی ده چې دا اونه پیژندې شي او غلطی په کښې اوشي نو ددنیا قومونه ورسره تباه کیږی څکه چې دالله مونډلوله پاره کفار هم ډیر ریاضتونه او مجاهدات کوی خو دهدایت په ځائ ګمراهي حاصله کړی نو ځکه الله تعالیٰ د ﴿صِرَاطَ مُسْتَقِيْمَ﴾ دواړه اړخونه [ایجابي او سلبي] پوره وضاحت سره بیان کړل.

**صراط مستقیم هله موندې شي چه کتاب الله اورجال الله یوځائ کړې شي** دلته په ژور نظر کولو سره په بنده دعلم یولویه دروازه پرانستې شی [خلاصیږی] هغه داسې چې پکار دا وؤ چې صراط مستقیم تاکلوله دپاره لنډ او واضح ټکی صراط القرآن یاصراط الرسول استعمال شوې وې چې مختصر هم وو او واضح هم څکه چې پوره قرآن کریم په حقیقت کښې دصراط مستقیم تشریح ده اودرسول الله ﷺ تعلیمات ددې پوره تفصیل دې، لیکن د قرآن پاك په دې مختصر غونډې سورت کښې د اختصار او وضاحت اړخ پریښودلو سره د صراط مستیم د تعین دپاره الله ﷻ په مستقل دوؤ آیتونو کښې ایجابي او سلبي اړخ سره یې صراط مستقیم داشان متعین کړو چې که نیغه لاره غواړه نو هغه خلق اولټوئ اودهغوئ طریقه اختیار کړئ، څکه چې یواځې کتاب دانسان دتربیت دپاره کافی کیدې نشی او نه یې دا اوفرمائیل چې درسول الله ﷺ لاراختیار کړئ ځکه چې تل دپاره به نبی کریم ﷺ په دنیا کښې موجودنه وی او نه وریسې بل رسول یانبی راتلونکې

[۱] د ایجابي مطلب دا دې چې کوم کسان په صراط مستقیم روان وی په هغوی کښې به دا صفاتو موجود وی اود سلبي مطلب دادې چې په هغوی کښې به دا صفات نه وی ازمترجم-

شته دي بلکه دنبیانو ﷺ نه علاوه ئې پکښې داسې حضرات هم شامل کړل چې ترقیامته پورې به ئې سلسله یوبل پسې جاري وي لکه صدقین اوشهداء اوصالحین خلق چنانچه داطریقه پخپله رسول الله ﷺ هم اختیارکړې ده لکه په یوه موقعه رسول الله ﷺ اوفرمائیل زماامت به هم دوراندامتونوپشان په اویاؤډلو کښې تقسیمیږي صرف یوه ډله به پکښې په حقه وي نوصحابه کرامو ﷺ تپوس اوکړوچه په حقه ډله به کومه یوه وي. په دې باندې چې نبی کریم ﷺ کوم جواب ورکړې دې په هغې کښې هم درجال الله لارمعیارمقررکړه. فرمائی چې: ﴿ماعلیه واصحابی﴾ یعنی هغه ډله به په حق وي چې کومه زما او زما د صحابه کرامو په شان وي(۱).

دا اشاره دې خبرې ته هم ده چې دانسان تعلیم اوتربیت یواځې په کتابونو اوروایتونوسره نشي کیدې بلکه دماهرینورجالو په صحبت کښې اوهغوئ نه په زده کړه کیدې شي، مطلب داشوچه دانسان معلم اوتربیت کونکې یواځې انسان کیدې شي. محض کتاب معلم او مربی نشي کیدې، اکبر وائی چې:

کورس تو لفظ ہی سکھاتے ہیں آدمی، آدمی بناتے ہیں

**ترجمه**: نصاب او کورس خو صرف د الفاظو خودنه کوي، حالانکه سړی سړي جوړوي

اودا یو حقیقت دې چې ددنیاټول کارونه هم په دې طریقه روان دی چې صرف په کتاب په مطالعه کولو سره نه څوك كپړا جوړولې شی او نه خوراك پخولې شی، او نه د ډاکټرئ په کتاب څوك ډاکټر جوړیدلې شی، او نه د انجنیرئ د کتاب په مطالعه کولو سره څوك انجنیر جوړیدلې شی، داشان دقرآن وحدیث مطالعه صرف د انسان د اخلاقي تربیت دپاره کافي نه ده تر کومې چې دا دیو محقق ماهر نه زده نه کړې شی. د قرآن وحدیث په معامله کښې ډیر لیك لوست والا خلق په دې مغالطه کښې دی چې صرف ترجمه یا تفسیر کتلو سره به د قرآن پاك ما هر جوړ شی.دا بالکل د فطرت خلاف تصور دې. که صرف کتاب کافي وو نو بیا درسول کریم ﷺ د رالیږلې ضرورت نه وو. معلم جوړول او بیا کتاب ورکول، او د صراط مستقیم متعین کولو دپاره دخپلو مقبولو بندګانو فهرست ورکول ددې یو دلیل دې چې صرف د کتاب مطالعه د تعلیم او او تربیت دپاره کافي نه ده بلکه د یو ماهر نه ددې زده کول ضروري دی.

دلته داخبره واضحه شوه چې دانسان د اصلاح اوکامیابئ دپاره دوه څیزونه ضروري دي:

① کتاب الله،چه په کښې دانسان دژوندهراړخ سره تړلي احکام موجوددي.

② رجال الله خو یاد ساتل پکاردي چې هغه رجال الله مراددي چې د کتاب الله په اصولو درست وي، د هغوئ د استفادې صورت دادې چې د کتاب الله په معروف اصولو باندې هغوئ اوکتلې شي، کوم په دې معیار باندې پوره نه وي نو هغوئ ته رجال الله نه وائی او کوم چې په صحیح معنو کښې د رجال الله وئیلې حقدار دی هغوئ نه دې د کتاب الله د مفهوم او په دې باندې د عمل کول کار واخستلې شی.

**د ډلو داختلافاتولویه وجه**: چرته چې یواځې کتاب الله یایواځې رجال الله معیارګڼړلې شوي دي هلته دګمراهئ نه بغیربل څه نه دي حاصل شوي،چه دادواړه دکتاب الله په اصولو یوځای شي هله کارسمیږي.

---

(۱) جامع الترمذی، أبواب الإیمان، افتراق هذه الامة: ۲/ ۹۲

**د سورتِ فاتحې په باره کښې احکام او مسائل:** په سورت فاتحه کښې اول د الله تعالی حمد او ستائینه ده، بیا یو اځې د الله تعالی د عبادت کولو اقرار دې او د اظهارول دی چې د الله تعالی نه سوا مونږ بل هیڅوک حاجت روانه ګنړو، د ادوفادارئ یو سو ګند پورته کول [اقرار کول] دی چې بنیادم ئې د الله تعالی په وړاندې پورته کوی، دې نه پس داسې یو دعاده چې د انسان ټول مقصدونه او ضروریات پکښې شامل دی، په سورتِ فاتحه کښې ضمنا نورې ډیرې مسئلې او فائدې راغلی دی چې یو څو ترې دادی،

**د دعا کولو طریقه:** په سورت فاتحه کښې په یو خاص طریقه انسان ته د دعا کولو تعلیم ورکړې شوې دې چې سوال کولو نه وړاندې د الله تعالی حمد او ثناء اوکړې. د الله تعالی نه سوا، بل هیڅ څوک د عبادت لائق ګنړو او نه بل څوک مشکل کشا او حاجت روا ګنړو، په دې طریقه د دعا د قبلیدو قوی امید وی، [احکام القرآن د جصاص رحمه الله] [1]

او په دعا کښې هم یو داسې جامع دعا اختیار کړئې چې د اختصار سره سره په هغې ټول مقاصد شامل شی، لکه د صراط مستقیم هدایت کښې که د دین او دنیا په هر کار کښې د انسان لار نیغه شی نو دې به هیڅ کله ډغرې نه خوری او نه به د هٔ ته څهٔ نقصان رسی. دې ځائې کښې د الله ﷻ د خپل حمد و ثناء د بیانولو اصل مقصد انسان ته تعلیم ورکول دی.

**د الله تعالی حمد و ثناء کول د انسان فطری فرض دی:** د دې سورت په ړومبئ جمله کښې الله تعالی د خپلې ستائینې کولو تعلیم او ترغیب ورکړې دې، خو ستائینه د څه نعمت یا صفت په بنیاد کیدې شی چې د لته هغه په دې وجه ټاکلې شوې نه دې چې د الله تعالی د بې شمیره نعمتونو بیان د انسان په وس کښې نه دې، لکه قرآن فرمائی ﴿وَإِنْ تَعُدُّوا نِعْمَةَ اللَّهِ لَا تُحْصُوهَا﴾ [که تاسو د الله تعالی نعمتونه شمیرل غواړئ نو نه ئې شئ شمیرلې] که انسان خپل بدن ته فکر او کړی نو د ابه ورته یوه وړه دنیا ښکاره شی چې د لوئ دنیا ټولې نمونې پکښې شته دې، د بدن مثال ئې د زمکې دې، په دې باندې ویښته د بوټو، ګیاګانو [وښو] ، او هډوکی ئې د غرونو مثال لری، د بدن رګونه ئې چې وینه پکښې جاری وی، زمکه کښې د چینو، ولوا و نهرونو مثال لری،

انسان د بدن او روح نه جوړ دې د غوروالی له مخه روح، اصل، اعلی او زیات بهتر دې چې بدن ئې تابع او دلاندې درجې څیز دې، د دې ادنی جزء [بدن] ماهران، طبیبان او ډاکټران وائی چې الله تعالی په دې بدن کښې پنځه زره ښیګړې او فائدې ایښې دی، په دې کښې د درې سوؤنه زیات داسې پیوندونه دی چې د الله په کامل قدرت سره په زیات حرکت سره هم نه سولیږی، او نه ئې مرمت [جوړولو] ته ضرورت شته عموما د انسان عمر شپیته او یا کاله وی د اټول عمر د ده د انرم او نازک اندامونه او پیوندونه په داسې شان هر وخت حرکتونه کوی که فولاد و هم داسې حرکتونه کولې نو سولیدلی به وؤ لکه الله تعالی فرمائی ﴿نَحْنُ خَلَقْنَاهُمْ وَشَدَدْنَا أَسْرَهُمْ﴾ [هم مونږه انسان پیدا کړو او هم مونږه د ده پیوندونه او بندونه مضبوط کړل] د انسان یوې سترګې ته هم که خیال او کړې شی نو په دې کښې به الله تعالی د حکمت بالغه دومره قدرې مظاهر [د ظاهریدو ځایونه] محسوس کړی چې ټول عمر خرچ کړی نو پوره به ئې معلوم نکړې شی

---

[1]) أحكام القرآن: ۱/ ۲۳

بیا دسترگي ددې یو عمل په لیدو که حساب اولګولي شي نو اندازه به او شي چې په دې کښې دالله تعالی څومره نعمتونه کارکوی، یوځل دسترګي کار [لیدلو] ته چې خیال او کړې شي نو معلومه به شي چې دننه [دبدن] طاقتونو چه دې کښې څومره کارکړې دې هومره د بهر طاقتونو هم په کښې کړې دې؟ مطلب دا چه دنمردرڼا نه بغیر دسترګواندرونی رڼا کارنشی ورکولې، دا شان نمرته دفضاضرورت دې، نظردپاره دغذا [خوراک] ضرورت وی په داشان دټول جهان طاقتونه په دې کښې کارکوی، دادیوځل کتلو اندازه ده نو بیا دټول عمر کتلو اندازه لګول ناممکن دی، داشان غوږونه، ژبه، لاسونه، پښې، دې چې څومره کارونه دی په هغې کښې د ټول عالم قوتونه شامل دی او پوره کار کوی. دانسانی بدن دټولو اندامونو هم دا حال دې بې شمیره اوبې اندازې طاقتونه پکښې کارکوی داهغه نعمتونه دی چې الله تعالی بې دڅه فرق نه هرقسم انسان ته ویړیا ورکړې دی. په دې کښې د شاه او ګدا، امیر او غریب هیڅ فرق نشته اوداسې نورټول سا دارمخلوق، دآسمان، زمکې اوددې ترمنځه ټول څیزونه، نمر، سپوږمۍ، ستورو، هوا اوفضانه فائده اخلي.

دې نه پس دالله ﷻ خاص نعمتونه چې د انسانانو دپاره دی، دا د حکمت د تقاضې مطابق کم او زیات ورکړې کیږي. مال دولت، عزت او مرتبه، راحت او آرام ټول ټول قسمونه په دې کښې شامل دی. او اګر چې دا خبره بالکل صحیح ده چې عام نعمتونه انسانانو ته مساوی طور یو شان او مشترك دی، لکه آسمان، زمکه او ددې ټول مخلوقات، دا نعمتونه د خاص نعمتونو یعنی مال او دولت په نسبت زیات اهمیت لري، خو دا انسان دې عامو نعمتونو ته هډو توجه نه کوی چې دا هم ګنی نعمتونه دی. ددهٔ نظر صرف په چاپیر چل کښې موجود معمولی د خوراك څکاك او استوګنې څیزونو باندې وی.

بهر حال دا یوه سرسری شان جاج دې. دا کوم نعمتونه چې د انسان دپاره هر وخت موجود دی، ددې په نتیجه کښې په انسان دا لازم دی چې انسان دې ددې په د خپل رب کریم او احسان کونکی او انعام کونکی هر وخت حمدوثناء کوی. د فطرت د تقاضې د تلقین دپاره د قرآن پاك د اولنی سورت اوله کلمه الحمد لله راوړې شوه. ځکه چې حمداوثناء په عبادت کښې ډیر لوړ مقام لري، رسول کریم ﷺ فرمائیلی دی چې کله الله ﷻ خپل یو بنده ته یو نعمت ورکړی او هغه په دې باندې الحمد لله اووائی نو دا داسې شو لکه ده کوم څیز اخستې دې، ددې نه یې افضل څیز ورکړو. [قرطبی، از ابن ماجه په روایت د انس ﷺ] (۱)

**د الله ﷻ حمدوثنا، یانول هم ځانله یو لوئې نعمت دې:** په یوبل حدیث شریف کښې راغلی دی ځوک که د دنیادټولو حاصل شوؤ نعمتونو په شکریه کښې صرف الحمدالله اووائی نو دابه ددغه ټولو نعمتونو نه غوره وی. قرطبی دځنې علماؤنه نقل کړی دی چې مطلب ددې حدیث شریف دادې چې په ژبه الحمدلله وئیل هم دالله تعالی یو نعمت دې چې دټولې دنیادنعمتونو نه غوره دې، په صحیح حدیث شریف کښې راغلی دی چه الحمدلله سره دعمل دمیزان نیم چابړې [پله] ډکیږی (۲)، حضرت شقیق بن ابراهیم دحمدحقیقت دابیان کړې دې: چې کله الله تعالی څه درکړی نو اول درکونکې ذات مبارك اوپیژندل، بیا دهغه په دې ورکړه راضی شه، بیا چه تر څو په

(۱) ابن ماجه، أبواب الأدب، باب فضل الحامدين: ۲/ ۲۷۰
(۲) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب فضل الوضوء: ۱/ ۱۱۸

بدن کښې دهغه درکړې نعمت موجودوی نو دهغه نافرمانۍ ته نزدې هم مه ورځه[قرطبی]( ۱ )
بله کلمه[لله]ده ددې په سرکښې لګیدلی لام ته دعربیت په قاعده کښې لام داختصاص وئیلې شی چې د څه حکم یاوصف په خصوصیت دلالت کوی،دلته ئې مطلب داراوځی چې حمداوثناءکول یواځې د انسان فرض نه جوړېږی بلکه حقیقت دادې چې حمداوثناءدغه ذات اقدس سره خاص اوګڼړی هغه داسې چې په حقیقت کښې دحمداوثناءمستحق ددغې ذاتَ مبارک نه بغیر هیڅوک نشی کیدې،البته داهم دالله تعالی انعام دې چې انسان ته ئې دتهذیب اواخلاقوښودلوپه غرض داحکم هم ورکړوچه زمادنعمت درارسولودواسطوهم شکریه هم ادا کوه ولې چې ددغې واسطې[مجازی محسن]چه څوک شکریه دادانکړی هغه دالله تعالی شکرهم نه اداکوی،

**دخپل ځان ښځله ستائینه کول انسان لره روانه دی:** ③ پخپله خپله ستائینه کول چامخلوق لره جائزنه دی لکه دقرآن کریم ارشاددې﴿فَلَا تُزَكُّوٓا اَنۡفُسَكُمۡ ؕ هُوَ اَعۡلَمُ بِمَنِ اتَّقٰى۠﴾ تاسودخپلې پاکۍ اوصفاۍ دعوی مه کوئ،یواځې الله تعالی پیژنی چې تقوی دارڅوک دې]مطلب داچه دیوبنده دتعریف اوستائینې اداړه په تقوی ده چې حال ئې یواځې الله تعالی پیژنی،[چه څوک څومره تقوی داردې؟]هرکله چې څوک پخپله دخپلې تقوی په اندازه نه پوهیږی نودالله تعالی دحمداوثناءپه حق اداکولوبه څنګه پوه شی په دې وجه الله تعالی خپله حمداوثناءپخپله بیان کړه[چه بنده ته دحمدکولوتعلیم هم دې]لکه رسول ﷺفرمائی:لااحصی ثناءعلیك[زه ستادثناءحق نشم اداکولې]( ۲ )

**رب،دالله تعالی یوخاص نوم دې بل مخلوق ته رب وئیل ناروادی:** ④ رب،داسې ذات ته وئیلې شی چې دیوڅیزمالک دهغې دتربیت،خیرښیګړې پوره سارنه،خصمانه اوانتظام کوی، نو ښکاره خبره ده چې داسې دټولوجهانونودپاره سوا د الله تعالی نه بل څوک نشی کیدې چې دلفظ رب اطلاق په اوشی یعنی هرکله چې مضاف نه وی نواطلاق ئې په بل چا نشی کیدې چنانچه په صحیح مسلم شریف کښې راغلی دی چې څوک غلام یانوکردخپل آقاته رب نه وائی البته چې مضاف شی نواطلاق ئې په بل چاکیدې شی لکه رب المال،رب الدار،وغیره[قرطبی]( ۳ )

**داستعانت دمسئلې تشریح اودتوسل دمسئلې تحقیق:** ⑤﴿اِيَّاكَ نَعۡبُدُ وَاِيَّاكَ نَسۡتَعِيۡنُ۠﴾ددې معنی، مفسرقرآن حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهداسې بیان کړې ده:مونږصرف ستاعبادت کوؤ ستانه سوادبل هیڅ چاعبادت نه کوؤاویواځې تانه مددغواړو،تانه سوادبل هیچانه ئې نه غواړو، [ابن جریر،ابن ابی حاتم]( ۴ )
څنې تیروشوؤنیکانوبزرګانوفرمائیلی دی چې سورة فاتحه دټول قرآن راز[خلاصه] ده اود سورة فاتحه راز[خلاصه] قوله تعالی: ﴿اِيَّاكَ نَعۡبُدُ وَاِيَّاكَ نَسۡتَعِيۡنُ۠﴾آیت دې،ځکه چې ددې ړومبۍ جمله کښې دشرک نه دبرائت اعلان دې،په بله جمله کښې دخپل قوت اوقدرت دویزاره کیدواظهاردې هغه داسې چې عاجزبنده،دالله تعالی دامدادنه بغیرهیڅ نشی کولې چې قرآن

---

۱ ) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ۱/ ۱۳٤
۲ ) جامع الترمذی، أبواب الدعوات، باب ما جاء فی عقد التسبیح بالید: ۲/ ۱۸٦
۳ ) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ۱/ ۱۳٦، ۱۳۷
٤ ) تفسیر ابن ابی حاتم رقم الحدیث: ۲۷

کریم کښې ځائ په ځائ ددې هدایت شوې دې لکه فرمائی: ﴿فَاعْبُدْهُ وَتَوَكَّلْ عَلَيْهِ﴾ [هود] (۱) ﴿قُلْ هُوَ الرَّحْمٰنُ اٰمَنَّا بِهٖ وَعَلَيْهِ تَوَكَّلْنَا﴾ [سورة ملك] (۲) ﴿رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ فَاتَّخِذْهُ وَكِيْلًا﴾ [المزمل] (۳)
ددې ټولو آیتونو خلاصه دا راؤځی چې مؤمن د په هرعمل کښې په خپل ځان یا په خپل قابلیت تکیه نه کوی او د بل چا په امداد تکیه کوی بلکه دده تکیه د سراسری په الله تعالی وی ولې چې یو اځې هم دهغه ذات مطلق کارسمونکې دې.
ددې نه دوه مسئلې د اصول عقائد ثابت شوې اوله دا چې:

**د الله تعالی نه سوا دهیچا عبادت کول جائزنه دی اوده په عبادت کښې بل څوک شریکول قطعی حرام اوداسې جرم دې چه معاف کیدل ئې نشته**: دعبادت معنا کانې پورته معلومی شوی دی چې د یو ذات سره دانتهائی عظمت او محبت په بنا د هغه په مخکښې انتهائی عاجزی او تذلل ښکاری کړی، ددې معنی په رڼړا کښې دغسې معامله بل مخلوق سره کول قطعاناروادی چې شرک بللې شی،شرک یواځې دې ته نشی وئیلې چې بت پرستو خلقو پشان کانړې وغیره دخدائی اختیاراتو مالک اوګنړلې شی بلکه دچالوئ لویی بیانول ورسره محبت او اطاعت ئې په داسې درجه کښې کول چې یو اځې دالله تعالی حق کیدې شی،هم ښکاره شرک بللې شی لکه الله تعالی چې یهودوا ونصاراؤ په باره کښې فرمائی: ﴿اِتَّخَذُوْٓا اَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ دې خلقو خپلو دینی عالمانو لره ارباب [پروردګاران] جوړکړی دی] حضرت عدی بن حاتم رضی الله عنه چه نصرانیت نه اسلام ته را اؤړیدلې وؤ هغه رضی الله عنه د رسول ﷺ په خدمت کښې عرض او کړو چه مونږه خود خپلو علماؤ عبادت نه کولو نو مونږ پورې داخبرې ولې راتړلې شی، هغوی ﷺ ورته اوفرمائیل: ستاسو علماؤ به داسې ډیرڅیزونه حلال نه ګرځول چې الله تعالی به حرام کړی وؤ او داسې ډیرڅیزونه به ئې حرام نه ګرځول چې الله تعالی به حلال کړی وؤ او تاسو به [الله دحکم په ځائ] هم ددوئ په خبره عمل کولو؟ حضرت عدی رضی الله عنه ددې خبرې اقرار اوکړو، نو رسول ﷺ اوفرمائیل: داسې کول هم ددوئ علماؤ عبادت کول دی (۴)،
ددې نه ښکاره شوه چې هر کله حلالول او حرامول خالص دالله تعالی حق دې. څوک چې په دې کښې بل څوک شریکوی او ده ته دا معلوم وی چې دا حلال او حرام صرف دالله ﷻ د طرفه دی او ددې باوجود دې دالله ﷻ په خلاف د بل چا قول لره واجب الاتباع اوګرزوی نو دا داسې شو لکه چې دې د هغه عبادت کوی او په شرک کښې اخته دې.
کوم مسلمانان چې نیغ په نیغه [یعنی پخپله] دقرآن او سنت په مطلب نه پوهیږی اونه تر داحکام شرعیه راویستلو توفیق لری، داسې کس چې دا امام، مجتهد یا عالم مفتی په خبره اعتماد او عمل کوی نو دا آیت په هغه څکه نشی چسپان کولې څکه چې داهم په قرآن او سنت عمل کول دی او داحکام خداوندی په ځائ راؤړل دی [دغه عالم مجتهدئی دځانه نه کوی بلکه دقرآن او سنت تشریح کوی] لکه چې پخپله الله تعالی پخپل کلام پاک کښې ددې هدایت کړې دې [﴿فَسْئَلُوْٓا

---

(۱) ترجمه: لهذا (اے پیغمبرا) ده هغه عبادت کوه، او په هغه باندے بهروسه کوه۔
(۲) اویا چه هغه رحمٰن زات دی او مونږ په هغه باندے ایمان روړی دی او په هغه باندے بهروسه کړی ده۔
(۳) ترجمه: هغه ذات د مشرق او مغرب مالک دی، او د هغه نه علاوه بل څوک د عبادت لائق نشته د دی وجے نه هغه کارساز جوړ کړی۔
(۴) المعجم الکبیر للطبرانی رقم الحدیث: ۱۳۶۷۳

﴿فَسْئَلُوٓا أَهْلَ الذِّكْرِ إِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ﴾ که پخپله[په احکام الهیه]نه پوهيږئ نو دعلم خاوندانو نه تپوس کوئ.
دحلال اوحرام گرځول حق دالله تعالی نه بغیربل چالره گنړلي شرک دي،دغه شان دچامخلوق دنوم منښته کول،حاجت روا اومشکل کشائي گنړل،تردعاغوښتل،داټولي دشرک خبري دی،ځکه چې دعاته هم په حدیث شریف کښې عبادت وئیلي شوي دي، همدا شان هغه عملونه اوکارونه چې دشرک نخښې نښاني گنړلي شی،دشریعت له مخه دهغې کول هم شرک دي لکه حضرت عدی رضی الله عنه فرمائی چې هرکله[دمسلمانیدونه پس]زه دحضور صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضرشوم اوزماپه غاړه کښې دسولئ[صلیب] شکل آویزان وؤنوهغوئ راته اوفرمائيل:دا بت دخپلې غاړې نه بيرته کړه([1]).
دمسلمانیدونه پس اگرچه دعدی بن حاتم رضی الله عنه عقیده دسولئ باره کښې هغه پاتې نه وه کومه چې دعیسایانوده خوسره ددي هم رسول صلی الله علیه وسلم نخښه دشرک اوبلله اودهغې دبیرته کولوحکم ئی اوکړو،په اوسنی هغه مسلمانانوافسوس دي چې دسولئ په نخښه ريډکراس] استعمالولو باندې فخر کوی حالانکه دادشرک نخښه ده،اووائي چې عقیده مودشرک نه ده،داشان چاته رکوع کول،سجده کول،بیت الله نه سوادبل چاپیره طواف کول،ټول دشرک نخښې نښاني دی بلکه عین شرک دي چې ترې ځان ساتل د﴿إِيَّاكَ نَعْبُدُ﴾دلوظ اواقراربرخه ده،دامسئله هم دې سره تړلې ده چې بل مخلوق نه امدادغوښتل یافریادرس ئی گنړل هم روانه دی.
**د مدد غوښتلواودوسیلې گرځولوتحقیق او ددې د احکامو تفصیل**:مددغوښتلودامسئله زيات وضاحت غواړی هغه داسې چې ددنیانظام په دې روان دی چې یوانسان دبل انسان نه په داسې طریقه امدادغواړی چې مادی وسیله ئی لري لکه یوکاریگراودکانداراوصنعت کار او مالدار یو تربله چې امدادغواړي،نوداخوپه هیڅ دین یاشریعت کښې منع نه دی،داهغه قسم [ابې وسیلې مادی] امدادنه دي چې الله سره مخصوص دي،داشان د غیر مادی وسیلو ، ذریعو او اسبابونه، کوم ولی،بزرگ اونبی صلی الله علیه وسلم نه ددعامددغوښتل،یاددوئ په وسیله باندې الله تعالی نه نیغ په نیغه دعاغوښتل،داحادیثودرواياتواودقرآن کریم دارشاداتونه ددي رواوالي ثابت دي.
داهغه قسم امدادغوښتل نه دی چې یواځې الله لره مخصوص اوغیرالله نه ئی غوښتل حرام اوشرک دي،هغه امدادغوښتل چې الله سره مخصوص دی اوغیرالله نه حرام اوشرک دی دوه قسمه لري، یو دا چې د الله ﷻ نه سوا د یو فرښتې یا پیغمبر یا یو ولی او یا یو بل انسان لره قادر مطلق او مختار کل اوگنړی او دهغه نه خپل حاجت طلب کوی، نو دا خو ښکاره کفر دي. او دې ته عام مشرکام او بت پرست هم کفر وائی. دا کافران هم خپلو بتانولره قادر مطلق او مختار کل نه مني.
بل هغه قسم امدادغوښتل دی چې کفارو او مشرکانو اختیار کړی دی اوقرآن اواسلام ئی باطل اوشرک گرځوی،په﴿إِيَّاكَ نَسْتَعِينُ﴾کښې دغه مراددی چې مونږ داسې مدد او استعانت صرف دالله ﷻ نه سوا دبل چا نه غواړو. هغه دا چې د الله دیو مخلوق فرښتې یا ولی یا د بل یو بت متعلق دا عقیده لرل چې اگر چې قادرمطلق اومختارمطلق یواځې الله ﷻ دي او د الله ﷻ لره کامل اختیار دي، خوورسره داعقیده لری چې څه اختیارات ئی خپل فلانی بنده ته هم

---

[1]) جامع الترمذی، أبواب التفسير ومن سورة التوبة: ۲/ ۱۴۰

ورکړې دي، او هغه په هغه دائره کښې خود مختار دی، هم دا هغه استعانت دې چې په کافر او مؤمن کښې او اسلام او کفر کښې فرق راڅرګنده کوی. داسې عقیده لرل قرآن کریم حرام اوشرک ګرځولې ده، بت مشرکان ددې قائل او په دې باندې عمل کوؤنکی دی.

دې کښې دهوکه داشان معلومیږی چې الله تعالی ډیروفرښتوپه لاس ددنیاوی نظام ډیر کارونه جاری کوی، اوچا ته چې دا معلومات شی نو هغه داسې وائی چې دا الله ﷻ دې فرښتې ته ذمه واری ورکړې ده. یادانبیاکرامونه داسې کارونه کیږی چې دعاموخلقودوس نه بهروی لکه معجزې شوې.یاداولیاءالله په ذریعه چې ډیرکارونه مخې ته راځی لکه کرامات شو،بې غوره خلق چې دې ته اوګوری نوخیال ئې راشی چې ددې کارونوپوره اختیارالله تعالی دوئ ته ورکړې دې،څکه خوددوئ په لاس کښې داکارونه کیږی،اودې نه په غلطئ کښې پریوتو سره، فرښتې، انبیاء ﷺ اولیاء ﷺ دمختارپه درجه کښې دګنړلوعقیده لری، حالانکه معجزې اوکرامات، نیغ په نیغه دالله تعالی فعل وی، صرف د پیغمبرانو ﷺ او اولیاء کرامو ﷺ په لاس یې ظاهرې کړی، پدې کښې دپیغمبر او ولی هیڅ قسمه اختیارنه وی،څنګه چې دقرآن کریم ډیرآیتونه پدې ګواه دی، مثلاً ﴿وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ﴾ چه پکښې درسول الله ﷺ د هغه معجزې ذکرشوې دې چې هرکله په یوموقع نبی کریم ﷺ دکانکرویوموټې په دښمن وراوویشتواود الله ﷻ په قدرت سره د ټول لښکرسترګوته هغه ور اورسیدل نوالله تعالی اوفرمائیل چې داستاویشتل نه وؤبلکه دالله تعالی ویشتلی وؤ، ددې نه صفامعلومه شوه چې یوه معجزه چې د نبی د لاسه ظاهریږی دا په حقیقت کښې دالله تعالی فعل وی،

داشان هرکله چې حضرت نوح ﷺ خپل قوم ته اوئیل،په مونږهغه عذاب راوله چې ته مونږ ترې نه ویروې، که ته ریښتني ئې،نوحضرت نوح ﷺ ورته اوفرمائیل ﴿إِنَّمَا يَأْتِيكُم بِهِ اللَّهُ إِن شَاءَ﴾ [دمعجزې په شکل کښې آسمانی عذاب راوستل زماپه اختیارکښې نه دی که الله اوغواړی نوعذاب به راشی چې تاسوبه ترنشئ تښتیدلې]،

په سورة ابراهیم کښې دانبیاؤاورسولانودیوجماعت داقول بیان کړې شوې دې ﴿وَمَا كَانَ لَنَا أَن نَّأْتِيَكُم بِسُلْطَانٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ﴾ یعنی څه معجزه ښکاره کول زمونږداختیارخبره نه ده،دالله تعالی داجازت اوارادې نه بغیرهیڅ نشی کیدې،یعنی څه معجزه یاکرامت ښکاره کول،دهیڅ پیغمبریاولی په اختیارکښې نه وی،که قرآن کریم اوګورئ نورسول الله ﷺ نه مشرکانوډیرې اومختلفې معجزې غوښتې وې مګرکومې چې الله تعالی اوغوښتې ښکاره ئې کړې او چې کومه یې نه غوښتله هغه یې ښکاره نه کړه. ټول قرآن پاک ددې د شهادتونو نه ډک دې.

ددې په سترګو لیدلې یومثال دا اوګنړئ چې په سرسری نظرخورنړا اوهواکول دبلب اوپکې [پنکهې] کار ښکاری خوحقیقت کښې دا دهغه کرنټ اوطاقت کاردې چې دتارونوپه ذریعه دپاور هاؤس نه راځی چرته چې بجلی پیداکیږی کله چې داجوړیوسیکنډقدرې دوینته برابرفاصله کښې هم قطع[کټ]اشی نوبجلی اوپکې [پنکهې] هیڅ کارنشی کولې. څکه چې په حقیقت کښې هغه عمل د بلب او د پکی نه دې بلکه د بجلئ د کرنټ دې، کوم د پاؤر هاؤس نه دې خائې ته رارسی. انبیاء کرام ﷺ او اولیاء کرام ﷺ او ټولې فرښتې په هر عمل په وخت کښې دالله ﷻ محتاج دی، د الله ﷻ په قدرت او حکم سره هر یو کار سر ته رسی اګر چې ددې ظاهریدل د بلب او پکی پشان د انبیاء کرامو ﷺ او اولیاء کرامو ﷺ په لاس کیږی.

ددي مثال څخه دا هم واضح شو چې ددې څيزونو په ښکاره کيدو او په وجود کښې د راتلو اختيار د انبياء عليهم السلام او اولياء كرامو نه دي، خو داسې هم نه چې ګڼي په دې کښې دهغوئ د وجود څه عمل دخل نشته، لکه څنګه چې دپکې [پنکهې] او بلب بغير تاته هوا او رڼا نشی دررسيدلی. دا معجزې او کرامات هم د حضرات انبياء كرامو عليهم السلام او اولياء كرامو نه بغير نه ملاويږی اګر چې دا فرق ضرور شته دې چې د صحيح فيټنګ اودرست کنکشن نه باوجود تاته د د بلب نه بغير رڼا او د پکی نه بغير هوا ملاويدل ناممکن دی، او په معجزو او کراماتو کښې الله جل جلاله ته دا قدرت حاصل دې چې بغير د څه واسطې نه يو پيغمبر يا ولی ته هم دا ورکړی خو دالله جل جلاله عادت مبارکه هم دادې چې ددې ښکاره کول بغير د واسطې د پيغمبرانو عليهم السلام او اولياء كرامو نه نه کيږی. څکه چې دداسې خوارقو او عادتو د اظهار چې کوم مقصد دې هغه ددې نه بغير نه پورا کيږی. دې سره سره د انبياء كرامو عليهم السلام او د اولياء كرامو د عظمت او ضرورت اعتراف هم پکار دې څکه که دا نه وی نو ددې نه بغير به دې د الله جل جلاله د رضا او د الله جل جلاله د احکامو نه محروم وی. لکه څنګه چې يو کس سره د پکی او بلب قدر نه وی او دې دا ضائع کړی نو دې به خامخا د رڼا او هوا نه محروم پاتې کيږی.

دوسيلې، استعانت، اومددغوښتلوپه مسئله کښې خلقوته ډيرمشکل راپيښيږی، اميددې چې تيرشوی تفصيل سره به اصل حقيقت واضح شوې وی اوداهم ترِمعلوميږی چې انبياء او اولياء عليهم السلام لره وسيله جوړول نه مطلقاروا دی اونه مطلقاناروادی يعنی ديومختارِمطلق په ډول ئې وسيله جوړول شرک اوحرام دی اومحض ديوواسطې اوذريعې په ډول ئې وسيله جوړول روا دی.

والله اسال الصواب والسداد وبيده المبدا والمعاد

**دصراطِ مستقيم هدايت په دين،دنياکښې دکاميابئ کنجی ده:** ⑨ په اصل تفسيرکښې دا خبره په ښکاره راغلې وه چې قرآن کريم کومه دعاچه دهرچا،دهرکاردپاره په هرحال کښې تاکلې ده هغه دصراطِ مستقيم دهدايت دعاده څنګه چې دآخرت کاميابی په صراطِ مستقيم موقوفه ده چې انسان لَره جنت ته بوځی،که ژورنظراوکړئ شی نوددنياپه ټولوکارونوکښې کاميابی حاصلول هم په صراطِ مستقيم اړه لری،په کوم کارکښې چې هغه ټول آلات اوسامان استعمال کړې شی په کومو چه مَقصدحاصليدل عادتالازمی وی نوکاميابی به هم عادتالازمی وی،چرته چې انسان په څه مقصدکښې کامياب نشی او که په هغه کښې غور اوکړې شی نو معلومه به شی چې دکارپه يوه مرحله ده څه غلطی کړې ده،صحيح لاره ئې دلاسه وتې وه څکه ناکام شو،

خلاصه ئې داشوه چې دصراطِ مستقيم هدايت يواځې دآخرت اودين کارونوسره تعلق نه لری بلکه دټولودنياوی کارونودرَستی اوکاميابی هم په دې موقوفه ده څکه دادعادغاړې هارجوړول په کاردی خوشرط دادې چې توجه برابره وی اونيت خالص وی يواځې الفاظ ئې لوستل نه وی، والله الموفق والمعين،

دالله په امداددسورت فاتحه تفسيرختم شو.

ولله الحمداوله آخره وظاهره وباطنه

## سُوْرَةُ الْبَقَرَة

**نوم اوداَيتونوشمير:** ددې نوم سورت بقره دې اوپه دې نوم سره په احاديثو اودصحابو كرامو ﷺ په آثاروكښې ئې ذكرموجوددې، كوم روايت كښې چې دې ته سورت بقره وئيل منع شوى دى هغه صحيح نه دې، [ابن كثير](۱) آيتونه ئې دوه سوه شپږاتيا اوكَلمات يې شپږزره،دوه سوه اويوويشت اوحروف ئې پنځويشت نيم زره دى،[ابن كثير](۲)

**دنزول زمانه ئې:** دا سورت مدنى دې،مدينې منورې ته دهجرت كولونه پس نازل شوې دې اګرچه ددې ځنې آيتونه مكه مكرمه كښې دحج په موقع نازل شوى دى،خودمفسرينو داصطلاح په بناهغې ته هم مدنى وئيلې شى.

سورت بقره دقرآن كريم دټولونه لوئ سورت دې اوپه مدينه منوره كښې دټولونه اول ددې نازليدل شروع شوى دى اوبياپه مختلفوموقعواومختلفووختونوكښې ئې مختلف آيتونه نازليدل،تردې چې دربا [سود] باره كښې آيتونه ئې درسول الله ﷺ په آخرى عمركښې دفتح مكې نه پس نازل شوى دى،اوددې يوآيت، ﴿وَاتَّقُوْا يَوْمًا تُرْجَعُوْنَ فِيْهِ اِلَى اللهِ﴾خودقرآن كريم بالكل آخرى آيت دې چې په ۱۰ هـ كښې دذې الحجې په لسمه نيټه،دمنى په مقام كښې نازل شو،كله چې رسول الله ﷺ دحجة الوداع په فرائضواداكولوكښې مصروف وو [قرطبى](۳) اتيا ،نوى،ورځې پس تررسول الله ﷺ وفات شواودوحى الهى سلسله تل دپاره ختمه شوه،

**دسورت بقره فضيلتونه:** دادقرآن كريم دټولونه لوئ سورت دې چې ډيراحكام پكښې راغلى دى، رسول الله ﷺ فرمائيلى دى، د سورت بقره تلاوت كوئى ځكه چې لوستل [وئيل] ئې بركت اوپريښودل ئې افسوس اوبدنصيبى ده آواهلِ باطل په دې قابونشى بياموندلې(۴)،امام قرطبى ﷫ دحضرت معاويه ﷜ نه نقل كړى دى چې دلته اهلِ باطل،جادوګرته وئيلې شوى دى،په دې بنامطلب ئې داراوځى چې ددې سورت په لوستونكودچاجادونشى چليدلې، [قرطبى دمسلم نه په روايت دابوامامه باهلى](۵)

رسول ﷺ دې باره كښې فرمائى:په كوم كوركښې چې سورت بقره لوستلې [وئيلې] شى هلته نه شيطان تښتى [ابن كثيردحاكم نه](۶) رسول الله ﷺ اوفرمائيل سورةِ بقره،سنام القرآن دې،سنام اوذروه دهرڅيز،بهترين او اعلى برخې ته وئيلې شى ددې هرآيت به چې نازليدونو ورسره به اتيافرښتې به ددې په جلوه كښې نازليدې [ابن كثيردمسند احمدنه](۷)

---

۱) تفسير ابن كثير: ۱/ ۱۵۶
۲) تفسير ابن كثير: ۱/ ۱۴۹
۳) ۱/ ۱۵۲
۴) صحيح مسلم، كتاب فضائل القرآن، باب فضل قراءة القرآن وسورة البقرة: ۱/ ۲۷۰
۵) صحيح مسلم، كتاب فضائل القرآن، باب فضل قراءة القرآن وسورة البقرة: ۱/ ۲۷۰
۶) مستدرك حاكم رقم الحديث ۲۰۶۰، ومسند أحمد رقم الحديث ۷۴۸۷
۷) مسند أحمد رقم الحديث ۱۹۴۱۵، وتفسير ابن كثير : ۱/ ۱۵۰

اوحضرت ابوهريره رضی الله عنه په روايت يوبل حديث کښې راغلی دی چې په دې سورت کښې داسې يوآيت دې چې دټول قرآنی آيتونونه غوره اوبهترين دې چې آيت الکرسی ده.[ابن کثيردترمذی نه]([1])

حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه اوفرمائيل:دسورة بقره لس آيتونه داسې دی چې څوک ئی د شپې اووائی نودغلته به په دغه شپه،پيريان اوشيطانان نشی ورننوتې اوپه دغه شپه به هغه ته او دهغه بال بچ ته،هيڅ آفت،رنځ،بيماری،اوغم وغيره ناخوښه قسم څيزونه نه ورپيښيږی که دغه آيتونه په ليونی اولوستلې شی نوهغه به جوړشی،هغه لس آيتونه دادی دسورة بقره دشروع څلورآيتونه،درې آيتونه دمنځ،يعنی آيت الکرسی او ورپسې دوه آيتونه، بيا د آخر د سورت درې آيتونه([2]).

## احکام اومسائل

دمضامينواومسائلوله مخه هم سورة بقره يوخاص شان لری،ابن عربی وائی چې مادخپلو بزرګانونه اوريدلی دی چې په سورت بقره کښې يوزرامر،يوزرنهی،يوزرحکمتونه،يوزرخبرونه اوقيصې دی،[قرطبی وابن کثير]([3]) په دې وجه حضرت فاروق اعظم رضی الله عنه سورت بقره سره دتفسيرلوستلوباندې دولس کاله لګولی وؤ.اوحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه داسورت په اته کاله کښې لوستلې وؤ[قرطبی]([4])

سورت فاتحه په حقيقت کښې دټول قرآن کريم خلاصه ده،ددې بنيادی مضامين درې دی، ① د الله تعالی ربوبيت [چه الله تعالی دټول جهان پروردګاردې] ② هم داذات دعبادت مستحق دې اوسواده نه بل هيڅوک دعبادت مستحق نه دی ③ طلب دهدايت.دسورت فاتحه آخری مضمون دصراطِ مستقيم هدايت غوښتل دی اودرحقيقت پوره قرآن کريم ددې جواب دې،يعنی غوښتلې شوې صراطِ مستقيم هم په قرآن کريم کښې موندلې شی،په دې وجه سورت فاتحه پسې رومبې [اولنۍ]سورت، سورت بقره کيښودې شو.اوپه ذلک الکتب شروع کولو سره ئې دې اړخ ته اشاره ورکړه چې کوم صراطِ مستقيم چې تاسولټوئ هغه داکتاب دې،

ورپسې په دې سورت کښې اول دايمان بنيادی اوصول،توحيد،رسالت،آخرت،په اجمالی طوراوپه آخردسورت کښې ايمان مفصل بيان کړې شوې دې اوپه منځ کښې ئی دژوند دهراړخ عبادات معاملات،معاشرات،اخلاقواوډظاهرباطن باره کښې دهداياتوبنيادی اصول اوورسره ډيرجزئيات بيان شوی دی،

---

[1]) جامع الترمذی، أبواب فضائل القرآن، باب ما جاء فی سورة البقرة وآية الكرسی: ۲/ ۱۱۵
[2]) شعب الإيمان رقم الحديث: ۲۳۱٤
[3]) تفسير ابن كثير: ۱/ ۱٥٤ و تفسير القرطبی: ۱/ ۱٥۲
[4]) تفسير القرطبی: ۱/ ۱٥۲

| ركوع كاني | | سورة البقرة مدنية وهي مـائتـان وست وثمـانون اية | | اٰياتونه |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | | |
| ۴۰ | | شروع كوم په نوم د الله چه ډېر مهربان　زيات رحم كونكې دې | | ۲۸۶ |

د الله په نوم شروع كوم چه ډېر مهربان او زيات رحم كونكې دې

الٓمّٓ ۚ ذٰلِكَ الۡكِتٰبُ لَا رَيۡبَ ۛۚ فِيۡهِ ۛۚ هُدًى لِّلۡمُتَّقِيۡنَ ۙ

ا ل م | دا | كتاب دې | نشته دې | شك | په دې كښې | لارښودنكې دې دپاره د پرهيزګارو

الم دا [دالله] هغه كتاب دې چې هيڅ شک شبه په كښې نشته هغې پرهيزګارو ته

الَّذِيۡنَ يُؤۡمِنُوۡنَ بِالۡغَيۡبِ وَيُقِيۡمُوۡنَ الصَّلٰوةَ وَمِمَّا

دا هغه خلق دی | چې ايمان راوړي | په ناليده څيزونو | او قائموی | مونځ | او د هغه مالونو نه

دالله] او [د رسول] لار ښائي چې په ناليده څيزونو ايمان راوړي او صحيح مونځونه ادا كوي او كوم مالونه

رَزَقۡنٰهُمۡ يُنۡفِقُوۡنَ ۙ وَالَّذِيۡنَ يُؤۡمِنُوۡنَ بِمَاۤ

چې وركړې دې مونږ هغوی ته | خرچ كوی | او هغه خلق دی | چې يقين ساتی | په هغه كتاب

چې مونږ دوی ته وركړی دی دهغې نه [حقدارو ته] وركړي او كوم كتاب چه په تا باندې نازل شوې

اُنۡزِلَ اِلَيۡكَ وَمَاۤ اُنۡزِلَ مِنۡ قَبۡلِكَ ۚ وَبِالۡاٰخِرَةِ هُمۡ

چې نازل شوې دې | تا ته | او په هغه كتابونو | چې نازل شوی وو مخكښې ستا نه | او په اخرت باند هغوی

هغه هم منی او هغه ټول كتابونه هم منی چې ستا نه مخكښې [انبيانو باندې] نازل شوي وو او د قيامت په

يُوۡقِنُوۡنَ ؕ اُولٰٓئِكَ عَلٰى هُدًى مِّنۡ رَّبِّهِمۡ ۚ وَاُولٰٓئِكَ

يقين ساتی | داسې خلق | په صحيح لار قائم دی | د طرفه د رب خپل نه | او دا خلق چې دی

ورځ پوخ يقين لری دغه كسان د خپل پروردګار په توفيق سره په سمه لار [روان] دی او هم دوی

هُمُ الۡمُفۡلِحُوۡنَ

هم دوئ | كامياب دی |

په دنيا او آخرت كښې كامياب دی

**آسان ترجمه قرآن**

الٓمّٓ . دا كتاب داسې كتاب دې چه په دې كښې هيڅ شك نشته . دا هدايت دې هغه ويريدونكو دپاره چه په ناليدلو څيزونو باندې ايمان راوړی او مونځ قائموی، او كوم څه چه مونږ دوی ته وركړي دي دهغې نه (دالله تعالیٰ د رضا په كارونو كښې) خرچ كوی او څوك چه په هغه (وحی) باندې ايمان راوړی كومه چه په تا باندې نازله شوې ده او په هغې باندې هم كومه چه ستا نه مخكښې نازله شوې ده او دوی په آخرت

باندې مکمل یقین ساتي دا هغه خلق دي چه د خپل رب د طرف نه په صحيح لاره دي او دا هغه خلق دي چه کاميابي موندونکې دي.

## خلاصه تفسیر

﴿الٓمّٓ ۚ ذٰلِكَ الْكِتٰبُ﴾ الم، دا داسې کتاب دے ﴿لَا رَيْبَ ۛ فِيْهِ﴾ چه هیڅ شك په کښې نشته [يعنى په دې کښې هيڅ قدرې شك نشی کیدې چه قران کریم دالله ﷻ له طرفه دې اګر چه څوك ناپوهه په دې کښې شك کوی خکه چه يقيني خبره کښې که څوك شك هم اوکړی نو په حقیقت کښې هغه په خپل ځائې یقینی پاتې کیږی]. ﴿هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ ۙ﴾ لاره خودونکې دې دالله ﷻ نه ويريدونکو دپاره ﴿الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ﴾ چه یقین لری په پټو څیزونو [يعنى کوم څیزونه چه د ددوی د حواسو او عقل نه پټ دی صرف د الله ﷻ اوؤرسول الله ﷺ په وینا مبارکه ئےصحيح منی] ﴿وَيُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ﴾ او قائموی مونځ [قائم لرل دادی چه پابندئ سره يئ ادا کوی، سره دپوره شرائطو او ارکانو] ﴿وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ۙ﴾ او څه چه مو ورته ورکړی دی دهغې خښې [خخه دوی لګوی [يعنى په نيکو کارونو کښې] ﴿وَالَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ﴾ او دا خلق دا شان دی چه یقین ساتی ﴿بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ﴾ په هغه کتاب چه تاتهٔ نازل شوې دې ﴿وَمَآ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ﴾ اوپه هغه کتابونو هم چه تا نهٔوړاندې نازل شوی دی [مطلب داچه په قران يئ هم ايمان دې اوپه ړومبو[مخکینو] کتابونو هم، ايمان ربښتيا ګنړلو ته وئيلې شی، عمل کول بله خبره ده په ړومبو[مخکینو] پیغمبرانو ﷺ چه څومره کتابونه الله ﷻ نازل کړی دی دهغې ربښتيا ګنړل فرض اود ايمان شرط دې يعنى دادې ګنړی چه څنګه الله ﷻ نازل کړی دی هغه صحيح دی، غرضيانو خلقو چه ځان دپاره په کښې کوم بدلون راوستې دے هغه غلط دې، خو عمل به يواځې په قران وی، ړومبی ټول کتابونه منسوخ شوی دی او عمل کول پرې ناجائز دې] ﴿وَبِالْاٰخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ ۝﴾ اودغه خلق په آخرت هم یقین لری ﴿اُولٰٓئِكَ عَلٰى هُدًى مِّنْ رَّبِّهِمْ﴾ نو هم دا خلق په سمه لار دی چه دخپل پروردګارله اړخه ورته حاصله شوې ده ﴿وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ﴾ اوهم داخلق پوره کامیاب دی. [يعنى دې خلقو ته په دنيا کښې دحق لارې نعمت حاصل شو او آخرت کښې هر شان کامیابی هغوی لره ده]

**حلّ اللغات:** [ذٰلِكَ] دا د يو لرې څيز طرفته اشارې کولو دپاره استعاليږی [لَارَيْبَ] شك، شبه، [هُدًى] د هدايت نه مشتق دې، او دهدايت معنى ده رهنمائی کول [مُتَّقِيْنَ] چا کښې چې د تقوی صفت وی. دتقوی لفظی معنی ده بچ کیدل، مراد ترې دالله ﷻ د نافرمانئ نه بچ کیدل دی [غَيْب] ددې لفظی معنی داده، هر هغه څيز چې د انسان د نظر او نوروحواس او سماعت وغيره نه بهر وی. [يُقِيْمُوْنَ] د اقامت نه دې، ددې معنى ده نيغ اودريدل، او د مونځ نيغول او سيدها كول دادی چې دا آدابو او خشوع او خضوع سره ادا کړې شی [رَزَقْنٰهُمْ] د انفاق نه مشتق دې، د خرچ کولو په معنی کښې راځی [اٰخِرَة] دا په لغت کښې مؤخر او روستو راتلونکی څيز ته وائی. دې ځائې د عالم دنیا په مقابله کښې د عالم آخرت دپاره وئيلې شوې دې. [يُوْقِنُوْنَ] د ايقال څخه دې، او دا د يقين نه جوړ شوې دې، او يقين دې ته وائی چې په هغې کښې د څه شك ګنجائش

نه وي. [مُفۡلِحُوۡنَ] دا د فلاح څخه دي، او دا په اصل کښې فَلَاحٌ نه جوړ دي، د فلاح معنی ده پوره کامیابی.

## معارف او مسائل

**د ډېرو سورتونو په اول سرکښې دحروف مقطعه باره کښې تحقیق:** ﴿الٓمٓ﴾ دډېرو سورتونو په اول سر کښې ديوڅو حروفونه مرکب يوکلمه راوړلې شوې ده لکه ﴿الٓمٓ﴾ ﴿حم﴾ ﴿آلمص﴾ وغيره، دې ته په اصطلاح کښې حروف مقطعه وئيلې شي، په دې کښې هريوحرف ځان ځان له اوساکن وئيلې شي لکه الف، لَام، ميم.

څنې مفسرين فرمائی چې ديوسورت په اول سرکښې راتلونکی حروف مقطعه ددغې سورتونو نومونه دی، څنې حضرات فرمائی چې دالله تعالی دنومونومبارکواشارې دی، خو جمهور صحابه رضي الله عنهم تابعين رحمهم الله اودعلماءامت په نزدغوريزه خبره داده چې داحروف اشارې اورازونه دی چې علم ئی سوا دالله تعالی نه هیچاته نشته اوکیدې شی چې رسول الله ﷺ ته ددې علم ديو رازپه ډول ورکړې شوی وی اوامت ته ددې دښودلونه منع کړې شوی وی، په دې وجه رسول الله ﷺ نه ددې حرفونو تفسيراوتشريح منقول نه ده،

دتفسيرامام قرطبی رحمه الله په خپل تفسيرکښې هم داخبره غوره کړې ده. دهغه دبيان خلاصه داده چې: عامر شعبی رحمه الله، سفيان ثوری رحمه الله، او د محدثينو يو جماعت وئيلی دی چې په هر آسمانی کتاب کښې دالله ﷻ څه خاص رموز او اسرار وی، همداشان داحروف مقطعات په قرآن کريم کښې دحق تعالی رازونه دی، په دې وجه دا په متشابهاتوکښې شمارلې شی چې هغه علم ئی يواځې حق تعالی لری مونږلره په دې کښې بحث اوخبرې کول هم جائزنه دي خوسره ددې زمونږدپاره دفائدې نه خالی نه دی يوه فائده پر ايمان راوړلوکښې ده اوبله فـائده ئې داده چې ددې لوستل ثواب عظيم دې نورې فائدې ددې دلوستلومعنومې فائدې اوبرکات دی چې مونږته معلومه نه دی خودغيب نه هغه مونږته رسی.... بيانې اوفرمائيل.

**د حروف مقطعاتو متعلق د صحابه کرامو رضي الله عنهم عقيده:** ددې حروفوپه باره کښې دصديق اکبر رضي الله عنه فارق اعظم، عثمان غنی، علی المرتضی، عبدالله بن مسعودوغيره دجمهورصحابه رضي الله عنهم هم داعقيده وه چې دادالله تعالی رازونه دی، مونږلره په دې ايمان راوړل دی چې دادالله تعالی له اړخه راغلی دی اوڅنګه چې راغلی دی ددې تلاوت هغسې کول پکاردی خودمعنې معلومولوپسې ئی لګيدل درست نه دی(۱)،

ابن کثيرهم د قرطبی وغيره نه نقل کړې دې او مضمون لره ترجيح ورکړې ده(۲)، څنو لويو علماؤنه چې ددې حروفومعنې منقول دی هغې نه صرف تمثيل، خبرداری اوآسانی کول مقصود دی، داسې نه ده چې هم ترِدادالله تعالی مراد دی څکه دغې ته غلط وئيل هم دعلماؤ د تحقيق نه خلاف دی،

**قوله تعالی:** ﴿ ذٰلِكَ الۡكِتٰبُ لَا رَيۡبَ ۛ فِيۡهِ ۛ ﴾ کښې لفظ دذٰلِكَ څه لرې څيزونوته داشارې کولودپاره استعماليږی، الکتب، نه مراد قرآن کريم دې د ،ريب، معنی شک شبه ده، مطلب داشوچه

---

(۱) تفسير القرطبی: ۱/ ۱۵٤

(۲) تفسير ابن کثير: ۱/ ۱۵٦

داکتاب داسې دي چې پکښې هيڅ شک شبه نشته، دا ځائې خو په ظاهره د لرې اشارې دپاره ځکه نه وؤ چې داقرآن کريم دخلقوپه وړاندې[نژدې] دې خودلرې اشارې کولونه معلومېږي چې په سورت فاتحه کښې دکوم صراط مستقيم چې خواست شوې وؤداټول قرآن ددغې خواست جواب دې [خوهله چې قبول شی] او د صراط مستقيم تشريح اوتفصيل دې، خلاصه ئې داراؤځي [ګوياکښې الله تعالى اوفرمائيل چه] چې مونږدعاواؤريدله اوقرآن مودراوليږلوچه دهدايت نمردې، څوک چې دهدايت طلبګاروی، دادې لولی ځان دپر پوهه وی اووددې په مقتضاد عمل کوی،

اوبياددې متعلق ارشاددې،چه په دې کښې هيڅ شک شبه نشته ځکه چې په څه کلام کښې شک شبه ددواؤ وجهونه راتلې شی،① يوه داچه کلام کښې پخپله غلطی وی نوشک شبه پکښې کيږی،② بله داچه دپوهيدونکی په پوه کښې غلطی وی په دې صورت کښې کلام دشک شبهې ځائ نشی جوړيدې،صرف هغه څوک پکښې شکمن کيږی چې پوه کښې ئې کوړوالې ياکمې وی ددې ذکرپخپله قرآن کريم کښې دخوآيتونونه پس ﴿وَإِنْ كُنْتُمْ فِي رَيْبٍ﴾ آيت کښې راغلې دې، په دې بناکه زرګونه کم فهمه ياکج فهمه خلق پر اعتراضات اوشبهې څرګندې کړی خوبياهم داوئيل صحيح دی چې دې کتاب کښې هيڅ شک شبه نشته.

**قوله تعالى:** ﴿هُدًى لِلْمُتَّقِينَ﴾ هدايت دې الله تعالى نه ويريدنکودپاره يعنی هغه مخصوص هدايت چې دآخرت دنجات ذريعه جوړيږی هغه دمتقيانوپه برخه دې اګرچه دقرآن کريم هدايت ېراځې انسانانودپاره نه بلکه دکل کائناتودجهان دپاره عام دې،دسورة فاتحه په تفسيرکښې بيان شوی دی چې دهدايت درې درجې دی،①يودرجه ټولو انسانانوبلکه دټول سادارمخلوق دپاره عام اوشامله ده،دويمه ② درجه مؤمنانولره خاص ده،اودريمه ③ درجه خاصانومقربينولره مخصوص ده،د درجوخوئې څه حدياپائ نشته،دقرآن کريم په مختلفوموقعوکښې چرته خو دهدايت عامه ذکرراغلې دې،چرته دهدايت خاصه ذکرراغلې دی دلته دهدايت خاصه ذکردې ځکه دمتقين تخصيص شوی دې په دې داشبه نه دی کول پکارچه دهدايت زيات ضرورت خوهغه خلقوته وی چې متقيان نه وی ځکه چې دلته دمتقيانودتخصيص نه دانه لازمېږی چې قرآن کريم غيرمتقيانو خلقودپاره هدايت نه دې،

**دمتقينوخاص صفات** ورپسې په دوؤآيتونوکښې دمتقيانومخصوص صفات اوعلامات بيانولو سره دا اوښودلې شوچه داجماعت هدايت موندنکې دې،ددوئ لارصراط مستقيم ده،څوک چې دسمې اونيغې لارې طلبګاروی هغه دپه دې جماعت کښې شامل شی،د دوئ ملګرتيا د کوی، ددوئ عقيدې،نظريات،اعمال اواخلاق دخپل نصب العين اومطلوب جوړ کړی.

غالباهم داوجه کيدې شی چې دمتقينومخصوص صفاتوبيانولونه پس ارشادشوې دې **قوله تعالى:** ﴿أُولَٰئِكَ عَلَىٰ هُدًى مِنْ رَبِّهِمْ ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ﴾ همداخلق په سمه لاردی هغه چې د دوئ د پروردګارداړخه ورته ملاؤده اوهم داخلق پوره کامياب دی] په دې آيتونوکښې د متقينو د صفاتو بيانولوپه ترس کښې دايمان اجمالی تعريف اوددې بنيادی اصول هم راغلی دی او د عمل صالح بنيادی اصول هم،په دې وجه دغه صفات څه قدرې وضاحت سره بيانولې شی.

قوله تعالى: ﴿الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ وَيُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ﴾ يعنى الله تعالى نه ويريدنكى خلق داسې دى چې يقين لرى په ناليدنكوځيزونواوقائم لرى مونځ او كومه روزى موورکړې ده، دهغې ځنې خه لګوى اخرڅ كوى] په دې آيت كښې دمتقينودرې صفات بيان شوى دى:

① ايمان بالغيب] ② مونځ قائمول] ③ دالله وركړى ځيزونه دهغه په لاره كښې لګول، ددې په ترس كښې ډيرې ضرورى مسئلې راغلى دى څكه په تفصيل سره ليكلې شى،

**رومبئ مسئله دايمان تعريف.** د ﴿يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ﴾ صرف دوؤ لفظونه سره قرآن كريم دايمان تعريف پوره بيان كړې دې د ايمان او غيب په معنى پوهيدلوسره دايمان پوره حقيقت اوتعريف په پوره كښې راځى.

دلغت له مخه خه خبره، دچاپه اعتماد، په يقينى ډول دمنلونوم ايمان دې په دې وجه په محسوساتواوليدلو كتلوځيزونو كښې دچادقول تصديق كول ته ايمان نشى وئيلې مثلاځوك سپينې ياتورې جامې ته سپينه ياتوره وائى اوبل ئى تصديق اوكړى نودې ته به تصديق وايو ايمان راوړل به ورته نه وايو څكه په تصديق كولو كښې په ويونكى داعتمادهيڅ دخل نشته ولې چې دادليدلو كتلوپه وجه تصديق كول دى اودشريعت په اصطلاح كښې ايمان دهغه تصديق كولونوم دې چې بغيردليدلو كتلوخبر باندې صرف په درسول الله ﷺ اعتماد په يقينى طورسره اومنلې شى، دغيب لفظ په لغت كښې داسې ځيزونودپاره استعماليږى چې انسان ته په بديهى ډول [بې دځه سوچ غورنه] معلوم نه وى، انسان ئى په سترګونشى ليدلې، په غوږونوئى نشى اوريدلې په پوزه ئى نشى بويولې، نه ئى په لاس وراوړلو معلومولې شى.

په قرآن كريم كښې دلفظ غيب نه مطلب ټول هغه ځيزونه دى چې خبر ئې رسول الله ﷺ وركړې دى، نه ئې عقل سمدستى معلومولې شى نه په حواس خمسه سره معلومولې شى، په دې كښې دالله تعالى ذات اوصفات هم راځى، تقديرى امور، دجنت، دوزخ حالات، دقيامت اوپه هغې كښې دارپيښيدونكې واقعات، فرښتې، ټول آسمانى كتابونه اوټول رومبى پيغمبران هم راځى چې تفصيل ئې دسورة بقره په آخرى آيتونو، [اٰمَنَ الرَّسُوْلُ] كښې بيان شوې دې، ګوياكښې دلته دايمان مجمل بيان شوې دې اوآخرى آيت كښې دايمان مفصل.

نواوس دايمان بالغيب معنى داشوه چې درسول الله ﷺ راوړلى شوى تعليمات اوهدايات په يقينى ډول دزړه نه اومنلې شى، خوهله چې دغه هدايات اوتعليمات درسول الله ﷺ نه په قطعى [يقينى] ډول ثابت وى، [عقيده طحاوى، عقائدنسفى وغيره] په دې تعريف كښې د منلو نوم ايمان ښودلې شوې دې، دې نه دا هم معلومه شوه چې يواځې پيژندلوته ايمان نشى وئيلې څكه چې داسې پيژندل خوابليس، شيطان، اوډيروكفاروته هم حاصل دى، هغه داسې چې هغوئ په رسول الله ﷺ باندې دصدق يقين لرى مګرمنى ئې نه اوپه دې وجه مؤمنان نه دى،

**دويمه مسئله دمونځ قائم لرلو.** داقامت معنى يواځې مونځ كول نه دى بلكه اقامت دې ته وائى چې دهرارخ اوهرحيثيت نه درست كړې شى چې پكښې دمونځ ټول فرائض، واجبات مستحبات په ځائ راوړلې شى، اوبيائې هميشه اوپابندئ سره اداكوى، صحيح خبره داده چې دلته مونځ نه مراديو خاص مونځ نه دې، بلكه فرض، واجب نفل ټول قسم مونځونه تر مراددى،

خلاصه د خبرې داشوه چې هغه خلق دشرعی قواعدو مطابق دمونځونوپابندی کوی اوددې ټول آداب هم په ځائ راوړی،

**دريمه مسئله دالله په لاركښې مال لګول:** دلته هم صحيح اوتحقيقی خبره هغه ده چې جمهوروخوښه کړې ده چې هرقسم هغه مال لګول مراددی چې دالله په لارکښې لګولې شی فرض زکوة وی اوکه نورې واجب يافرض صدقې اوخيراتونه وی،ولې چې قرآن شريف کښې دانفاق [لګولو] لفظ عمومانفلی صدقاتودپاره ياعامه معنی کښې استعمال شوې دې،فرض زکوة دپاره عموماهم دزکوة لفظ استعمال شوې دې،

په دې لنډه جمله کښې د قوله تعالٰی:﴿وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ﴾ په لفظ غوراوکړئ نوبوا اړخ ته دالفظ دېوشريف انسان په زړه کښې،دالله په لارکښې دمال لګولومضبوطه جذبه پيداکوی اودائې عقيده جوړه وی چې دده داټول مال دالله ورکړه اودهغه امانت دې که مونږ دغه خپل ټول مال دالله درضادپاره دالله په لارکښې اولګوؤ نوحق اوپه ځائې به وی اوپه دې کښې به زمونږ هيڅ احسان نه وی

جان دی،دی ہوئی اسی کی تھی...... حق تو یہ ہے کہ حق ادانہ ہوا

ځان دالله په لارکښې قربان کړوچه هم دده ورکړه وه...حقه خبره داده چې بيائې هم حق ادانه شو:

په دې باندې نوره اضافه د﴿مِمَّا﴾ لفظ اوکړه،مطلب ئې دادې چې دالله ټول ورکړې مال ټول د الله ﷻ په لار کښې خرچ کول بلکه دهغې څه برخه دالله په لارکښې لګول دی،

دلته دمتقينويوصفت ① ايمان بالغيب ذکرشو،② بيامونځ قائمول،③ اودالله په لارکښې مال لګول ذکرکړې شو،دايمان اهميت خوټولوته معلوم دې چې هم داصل الاصول اود ټولو اعمالو مقبوليت باندې دارومداردې،ليکن چې کله ايمان سره داعمالوبيان کولې شی نوددې لړئ اوږده ده او د فرائضواود واجباتو شمير ډيرګنړدې،دلته داسوال پيداکيږی چې داعمالوځنې [څخه] صرف دمونځ اومال لګولوذکرکولوکښې څه رازدې؟

په دې کښې غالبادې ته اشاره ده چې څومره اعمال په انسان باندې فرض ياواجب شوی دی د هغو تعلق ياخودانسان د ذات اوبدن سره دې يادده مال سره،دبدنی اوذاتی عباداتوځنې په ټولوکښې زيات اهم مونځ دې ځکه دايواځې ذکرکړې شواومالی عبادات ټول په لفظ دانفاق کښې داخل دی لهذاپه حقيقت کښې دايواځې ددوؤاعمالوذکرنه بلکه د ټولو اعمالو او عباداتوذکردې،دپوره آيت معنی داشوه چې متقين هغه خلق دی چې ايمان اواعمال دواړه ئې کامل دی،اودادواړه چې يوځائ شی نوداسلام نوم اختيارکړی،ګويا کښې داشان دايمان مکمل تعريف سره داسلام مفهوم ته هم اشاره اوشوه ځکه راته مناسب ښکاره شوچه دلته داسلام اوايمان ترمنځه دفرق وضاحت اوکړم،

**په ايمان اواسلام کښې فرق:** په لغت کښې ايمان ددې نوم دې چې دڅه څيزتصديق دزړه نه اوشی اواسلام دغاړې ايښودلواوفرمانبرداری نوم دې،دايمان ځائ زړه دې،اوداسلام ځائ هم زړه دې سره دټولواندامونواوجوارحو نه،خودشريعت له مخه ايمان بغيرداسلام نه اواسلام بغير دايمان نه معتبرنه دې،يعنی دالله اودهغه درسول تصديق يواځې په زړه سره ترهغې معتبرنه دې ترڅو پورې چه ژبې سره ددې تصديق اظهاراوداطاعت اوغاړې ايښودلو اقرار اونکړی،

دغه شان دتصديق اظهاريادفرمانبردارئ اقرارترهغې معتبرنه دي ترڅوچه په زړه کښې دالله او د هغه درسول ﷺ تصديق نه وی،

خلاصه ئې داشوه چه دلغت له مخې داسلام اوايمان بيلې بيلې معنې دی اوهم په دې بنا،په قرآن اوحديث کښې ددې د فرق ذکرهم شته،خوشرعًا اسلام بغيردايمان نه اوايمان بغيردأسلام نه معتبرنه دي.

هرکله چې اسلام يعنی [ظاهری اقراراوفرمانبرداری] سره ايمان نه وی نودقرآن په اصلاح کښې ورته دنفاق [منافقت] نوم ورکړې شوې دې اودښکاره کفرنه ئې جرم سخت ګڼړلې شوې دې لکه فرمائی: ﴿إِنَّ الْمُنٰفِقِينَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ﴾ منافقين به دجهنم دټولونه لاندې درجه کښې وی داشان دايمان يعنی دزړه تصديق سره که اقراراواطاعت نه وی نوهغې لره هم قرآنی نصونوکفرتاکلې دې لکه فرمائی: ﴿يَعْرِفُونَهٗ كَمَا يَعْرِفُونَ أَبْنَآءَهُمْ﴾ يعنی داکفاررسول الله ﷺ اود دوئ حقانيت لره په داسې يقينی شان پيژنی څنګه چې خپل ځامن پيژنی،اوبل ځائ کښې فرمائی: ﴿وَجَحَدُوْا بِهَا وَاسْتَيْقَنَتْهَآ أَنْفُسُهُمْ ظُلْمًا وَّعُلُوًّا﴾ يعنی داخلق زمونږ دآيتونو انکارکوی،حالانکه د دوئ په زړونوکښې په دې يقين کامل دې اود دوئ داحرکت محض دظلم اوتکبرپه وجه دې.

زماعزتمنداستاذحضرت العلامه سيدانورشاه کشميری رحمه الله به دامضمون داشان بيانولوچه دايمان اواسلام مسافت يودې فرق صرف په اول اوآخرکښې دې،يعنی دايمان شروع دزړه نه ده چې په ظاهری عمل ختميږی اواسلام دظاهری عمل نه شروع شی اوزړه ته په رسيدومکمل شی،که دزړه تصديق، ظاهری اقراراوفرمانبرداریٔ ته اونه رسی نوداتصديق [ايمان] معتبرنه دې اوکه ظاهری اقراراوفرمانبرداری دزړه تصديق ته اونه رسی نوهغه اسلام معتبرنه دې،

دامام غزالی رحمه الله اوامام سبکی رحمه الله تحقيق هم دادې اوامام ابن همام په مسامره کښې،په دې تحقيق،دټولواهل حق،اتفاق ذکرکړې دې،

قوله تعالی: ﴿وَالَّذِينَ يُؤْمِنُوْنَ بِمَآ أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمَآ أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ ۚ وَبِالْاٰخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ﴾ يعنی متقيان داسې خلق دی چې ايمان په هغه کتاب هم لری چې تاته نازل شوې دې اوپه هغه کتابونوهم چې ستانه وړاندې نازل کړې شوی دی اوپه آخرت باندې هم،داخلق يقين لری.

په دې آيت کښې دمتقينودپاتې نوروصفاتوبيان دې چې پکښې د ايمان بالغيب څه قدرې تفصيل اوپه آخرت د ايمان راوړلوذکردې،حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اوحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه فرمائی:درسول الله ﷺ په زمانه کښې دوه قسمه مؤمنان متقيان وو،① هغه چې شرک نه اسلام ته راوړېدلی وو،② هغه چې ديهوديت اونصرانيت نه اسلام ته راوړليدلی وو، ددې نه ړومبی آيت کښې دړومبئ ډلې ذکروو اوپه دې آيت کښې د دويمې ډلې ذکردې څکه په قرآن کريم باندې ايمان راوړلوسره په پخوانوآسمانی کتابونوباندې ايمان راوړل هم په ښکاره بيان شوچه ديوحديث دښکاره بيان مطابق دغيرګ ثواب مستحق دی،يوثواب ددې د چې پخوانی کتابونوپه زمانه کښې ئې په پخوانی آسمانی کتابونوباندايمان راوړې اوعمل ئې پرکړې وو،اواوس دقرآن کريم په زمانه کښې ئې په قرآن کريم ايمان راوړو،اوپه دې عمل کوی، په پخوانی آسمانی کتابونوباندې ايمان راوړل نن هم هرانسان لره لازمی دی،فرق صرف دومره دی چې په پخوانوکتابونودايمان راوړلومطلب دادې چې په هغې کښې د الله تعالی نازل کړی احکام حق اومنی اوپه دغه زمانه کښې په هغې عمل کول واجب ګڼړی خودقرآن کريم د نازليدو

نه پس دپخوانی کتابونومنل به په دي شان وی چي عمل به صرف په قرآن کریم وی ځکه چي ددي په نازلیدو سره پخوانی ټول آسمانی کتابونه اوشریعتونه منسوخ شوی دی،

**دختم النبوت دمسئلي واضح دليل:** دآیت کریمه ددي قسم بیان نه یو اهمه اصولي [بنیادي] مسئله هم مخي ته راغله هغه داچه رسول الله ﷺ آخري نبي دي اوپه دوئ ﷺ نازله شوي وحی آخري وحی ده، ځکه چي که ددي نه پس څه آسمانی کتاب یاوحی نازلیدونکي وي نوڅنګه چي په پخوانوآسمانی کتابونوایمان راوړل ضروری ټاکلي شوی وؤپه آئنده کښي په نازلیدونکو کتابونو اووحی باندي به هم ایمان راوړل ضروری ښودلی شوی وؤ بلکه دابه زیات ضروری ځکه وؤچه په پخوانوآسمانی کتابونوایمان راوړل دوارندي نه جاری اومعلوم وؤ، که درسول کریم ﷺ نه پس هم د وحی سلسله او نبوت جاری ساتل وي نو ضرورت ددي خبري وو چي ددي کتاب او ددي نبي ﷺ ذکر به په اهتمام سره کیدو چي کوم روستو راتلونکی وو چي د چا ته په دي کښي څهٔ شك نه وی.

خو قرآن کریم چي کوم ځائي کښي د ایمان ذکر کړي دي نو هغه ځائي کښي يي د نبي کریم ﷺ نه د وړاندي وحی او د اولنو نبیانو ﷺ ذکر فرمائيلي دي. دي نه روستو د راتلونکي وحی یا نبي ذکر يي بالکل نه دي کړي. بیا صرف په دي آیت مبارك کښي نه بلکه قرآن پاك کښي دا مضمون د اول نه تر آخره پوري په مختلفو ځایونو کښي څلویښتو پنځوستو آیتونو کښي راغلي دي. ټولو کښي د نبي کریم ﷺ نه وړاندي د نبیانو ﷺ، اولنو وحی، د وړاندینو کتابونو ذکر دي.په یو آیت هم دا اشاره نشته دي چي راتلونکی وخت کښي به یو نبي یا وحی رازي چي په هغي به ایمان راوړل وی. لکه ارشا ددي چي:

﴿وَمَآ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ قَبۡلِكَ﴾ [سورة نحل:۴۳] ﴿وَلَقَدۡ اَرۡسَلۡنَا رُسُلًا مِّنۡ قَبۡلِكَ﴾ [سورة مؤمن:۷۸] ﴿وَلَقَدۡ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ قَبۡلِكَ رُسُلًا﴾ [سورة روم:۴۷] ﴿وَمَآ اُنۡزِلَ مِنۡ قَبۡلِكَ﴾ [سورة نساء:۶۰] ﴿وَلَقَدۡ اُوۡحِیَ اِلَيۡكَ وَاِلَى الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِكَ﴾ [سورة زمر:۶۵] ﴿كَذٰلِكَ يُوۡحِيۡۤ اِلَيۡكَ وَاِلَى الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِكَ﴾ [سورة شورىٰ:۳] ﴿كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِكُمۡ﴾ [بقره:۱۸۳] ﴿سُنَّةَ مَنۡ قَدۡ اَرۡسَلۡنَا قَبۡلَكَ مِنۡ رُّسُلِنَا﴾ [سورة بني اسرائيل:۷۷].

په دي یاپه داسي قسم نوروآیتونوکښي دمن قبلِ اومن قبلک الفاظ موجوددی خودمن بعد اشاره قدري هم چرته نشته که دختم النبوت یاهرقسم وحی بندیدوذکرپه آیتونوکښي صراحتاهم نه وي نودقرآن کریم داطرز، ددي مضمون دګواهئ دپاره کافي وؤ، که دختم النبوت په مسئله کښي د قرآن تصریحات، داحادیث متواتره ګواهی اودامت اجماع په تفصیل سره کتل وی نوزماختم النبوت نومي رساله داو کتلي شي.

**دمتقين په تفسيرکښي دايمان بالاخرة صفت:** په دي آیت کښي د متقینوبل صفت دابیان کړي شوي دي چه، دوئ په آخرت ایمان لری، آخرت نه مراد دارآخرت دي چي په قرآن کریم کښي د دارالقرار، دارالحیوان اوعقبی په نومونوذکرشویدي اوټول قرآن ددي دذکر او د هیبتناکو حالاتو نه ډک دي،

**په آخرت ایمان راوړل یوانقلابي عقیده ده!** په آخرت ایمان راوړل اګرچه دایمان بالغيب په لفظ کښي راغلي دي خوپه ښکاره ډول بیاځکه ذکرکړي شوچه دایمان په اجزاؤکښي داپه دي لحاظ سره دټولونه اهم جزدي.چه په مقتضاء دایمان جذبه پیداکول یواځي ددي اثردي،اوپه اسلامي

عقائدو کښې داهغه انقلابی عقیده ده چې ددنیانقشه ئې بدله کړه اوپه آسمانی تعلیم باندې عمل کوونکوته ئې اول په اخلاقواواعمالو کښې اوبیاددنیاپه سیاست کښې هم د دنیاَ د ټولوقومونوپه مقابله کښې یوځانګړې مقام په لاس ورکړواوداعقیده دتوحیداورسالت دعقیدې پشان دټولوانبیاء ﷺ اوټولوشریعتونوترمنځه شریکه راروانه ده چې هیڅ اختلاف په کښې چیرې نه دې راغلې،

ددې وجه ښکاره داسې ده چې دکوموخلقوپه وړاندې د دنیاژونداوددې عیش وعشرت دمقصودپایۍ ده،صرف دنیاوی تکلیف اوآرام ئې په نظرکښې وی دآخرت ژوند،حساب کتاب اوجزاسزانه منی،کله چې داخلق اوګوری چې دحلالو،حرامو،رښتیاؤ،دروغوترمنځه فرق ددوئ په عیش عشرت کښې خلل غورځوی، او د جرمونو ددوئ د منع کولو دپاره هیڅ یو څیز نه وی.د حکومت تعزیری قوانین د جرمونو ختمولو او د اخلاقو د اصلاح دپاره کافی نه دی، کوم چې عادی مجرمان وی هغوئ دې سزا سره اموخته شی. که څوک شریف انسان یواځې دحکومت اودهغې دتعزیری قوانینودویرې خپل خواهشات په ښکاره پرېږدی چرته چې دحکومت اودحکومتی دغه قوانینورسائ نشی کیدې هلته ئې په ډاګه یابه ئې دحکومتی قوانینوپه حدودکښې په پټه یاپه ګتکو[دهوکو] سره پوره کوی نوبل داسې څه صورت کیدې شی چې دغه خلق به دجرمونونه بند کړې شی؟

داکاریواځې دآخرت عقیده اوخداوندی ویره ترسره کولې شی چې ددې په وجه دانسان ظاهری اوباطنی حالت اوډاګې اوپټې صورت یوشان کیدې شی،څکه چې هغه دایقین لری چې دمکان دبندودروازوشاته،دهغه لګولو چوکیدارانو، او بل اړخ ته دشپې په تیروکښې هم دده څوک لیدونکې ذات شته اوڅوک لیکونکې ئې دغلته هم په دغه حالت کښې لیکی.داهغه عقیده ده چې پرپوره عمل کولوله کبله،داسلام په ړومبی دورکښې داسې پاکه معاشره مخې ته راغله چې دمسلمانانوپه لیدواودهغوئ دکردارپه کتوخلق داسلام شیدایان شول.

په دې آیت کښې، [الاخرة] سره [یؤمنون] نه بلکه د یوقنون لفظ راوړلې شودا چه ایمان په مقابله کښې د تکذیب اودایقان په مقابله کښې شک اوترد ددې دې کښې اشاره ده دې خبرې ته چې دآخرت دژوندیواځې تصدیق کولوسره مقصدنه پوره کیږی بلکه دې باره کښې داسې پوخ یقین لرل ضروری دی چې ګویاداپه خپلوسترګووینی،چنانچه دمتقینوداصفت اوښودلې شوچه آخرت کښې د الله ﷻ په وړاندې دپیش کیدو،دحساب کتاب اودجزاسزانقشه هروخت د دوئ په وړاندې وی،

څوک چې دبل حق لاندې کولوپه غرض د دروغومقدمې جنګوی،په دروغه ګواهی کوی، د الله تعالی دحکم خلاف په حرام مال ګټلو،اوخوړلو کښې لګیااوړم وی،د دنیا د ذلیلو مقصدونو پوره کولودپاره دشریعت خلاف ذریعې استعمالوی که داسې کس په زرګونوواره په آخرت دایمان راوړلواقرارکوی،او دشریعت له ظاهرله مخه دې په مؤمن سره هم یادکړې شی خودقرآن هغه غوښتنه د ایقان ده ته حاصل نه ده دکوم په برکت چې دانسان په ژوند کښې انقلاب راځی اودکوم په نتیجه کښې متقینوته چې دهدایت اودکامیابۍ هغه انعام ورکړې شوې دې،چه ذکرئې دسورة بقره په پنځم آیت کښې دې ﴿أُولَٰئِكَ عَلَىٰ هُدًى مِّن رَّبِّهِمْ ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ﴾ یعنی یواځې هم داخلق په هغه سمه لاردی چې د دوئ دپروردګارله اړخه ده اوداخلق پوره کامیاب دی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِنَّ | الَّذِينَ | كَفَرُوا | سَوَاءٌ | عَلَيْهِمْ |
| بیشکه | هغه خلق | اچی انکار ئي کړي دي | ایوشان ده | هغوئ دپاره |
| بیشکه چاچي [ستا ددي خبرو دمنلونه] انکار کړي دي [التي رسوله] د هغوی په | | | | |
| ءَأَنْذَرْتَهُمْ | أَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ | لَا يُؤْمِنُونَ ۝ | خَتَمَ اللَّهُ | |
| که ته ویروې هغوئ | یا نه ویروې هغوئ | خونه راوړی ایمان هغوئ | مهرلګولي دي الله | |
| حق کښي ستا ویرول اونه ویرول دواړه برابر دی [هغوئ ایمان نه راوړی] الله تعالی د هغوی په زړونو او غوږونو | | | | |
| عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ | وَعَلَىٰ سَمْعِهِمْ ۖ | وَعَلَىٰ أَبْصَارِهِمْ | غِشَاوَةٌ ۖ | |
| دهغوئ په زړونو باندي | او دهغوئ په غوږونو باندي | او دهغوئ په سترګو باندي | پرده ده | |
| باندي مهر لګولي دي | او دوی په سترګو ئي پرده غوړولي ده | | | |
| وَلَهُمْ | عَذَابٌ | عَظِيمٌ ۝ | | |
| اودي هغوئ دپاره | عذاب | لوئ | | |
| اوهغوئ لره لویه سزا مقرر ده | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

بې شکه هغه خلق چه هغوی کفر خپل کړې دې د هغوی په حق کښې دواړه خبرې برابرې دي که ته ویروې هغوی لره او که نه ویروې هغوی ایمان نه راوړي الله تعالیٰ د هغوی په زړونو او غوږونو باندې مهر لګولې دې او د هغوی په سترګو باندې پرده دې او د هغوی د پاره زبردست عذاب دې.

## خلاصه تفسیر

﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ بیشکه کوم خلق چه کافران شوی دی ﴿سَوَاءٌ عَلَيْهِمْ﴾ برابره ده دهغوی په باره کنبي ﴿ءَأَنْذَرْتَهُمْ﴾ که ته یئ ویروے ﴿أَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ﴾ اوکه ته یئ نه ویروے ﴿لَا يُؤْمِنُونَ ۝﴾ دوی ایمان نه راوړی [داخبره دهغه کافرانو باره کنبي ده چه الله ﷻ ته ددي علم وو چه دهغوی خاتمه به په کفر وی، عام کافر ترې مراد نه دی کومو نه چه ډیر خلق دي نه پس هم مسلمانان شول] ﴿خَتَمَ اللَّهُ﴾ مهر لګولي دي الله ﷻ ﴿عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ﴾ دهغوی په زړونو ﴿وَعَلَىٰ سَمْعِهِمْ﴾ اودهغوی په غوږونو ﴿وَعَلَىٰ أَبْصَارِهِمْ﴾ او دهغوی په سترګو ﴿غِشَاوَةٌ﴾ پرده ده ﴿وَلَهُمْ﴾ او دوی لره سزا ﴿عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾ لویه ده.

## معارف اومسائل

**دمضمون خلاصه اوربط:** دسورة بقره په ړومبو [اولینو] پنځو آیتونو کښي دابیان ؤوچه قرآن کریم دهدایت کتاب اوهرقسم شک، شبهونه پورته دې، بیاد هغه خوش قسمتو خلقو بیان ؤوچاچه ددې کتاب دهدایت نه پوره فائده پورته کړه دوئ ته دقرآن کریم په اصلاح کښې دمؤمنانو او متقیانو لقب ورکړې شوې دې، داشان ددې خلقو مخصوص صفات اوعلامات هم بیان کړې شو، ورپسې پنځلسو آیتونو کښې دهغه خلقو ذکر دې، چاچه داهدایت قبول نکړو او د انکار او عناد رویه یې اختیار کړه،

بیا ددې قسمه خلق دوه ډلې وې یوې ډلې په ښکاره دانکار او مخالفت لار اختیار کړه دوئ ته دقرآن کریم په اصطلاح کښې کافر او وئیلې شو بلې ډلې دکچه اخلاق او د دنیا د ذلیلو غرضونو کبله داجراءت هم اونکړې شو چه دخپل زړه آواز او عقیده ئې په ښکاره ډول بیان کړې وې بلکه دتګئ او فریب لاره ئې اختیار کړه، مسلمانانو ته به ئې داوئیل مونږ مسلمانان یو قرآن اردی هدایات منو، مونږ تاسو سره یو خو په زړونو کښې ئې انکار روو، دکفارو مجلسونو ته چې به لاړل نو وئیل به ئې، مونږ ستاسو په عقیده هم تاسو سره یو، مسلمانانو له دهوکې ورکولو او دهغوئ د رازمعلومولو د پاره مونږ هغوئ سره ملاوېږو، دقرآن کریم په اصطلاح کښې ددې ډلې نوم منافقان دی، داپنځلس آیتونه دقرآن کریم دنامنونکو په باره کښې نازل شوی دی، په دؤو آیتونو کښې دښکاره کافرانو ذکر دې او دیارلس آیتونو کښې دمنافقانو، د دوئ دحالاتو، علامتونو او انجام ذکر دې.

**ټول آیاتونه په یو نظر کښې**: ددې ټولو آیتونو په تفصیل په یوځائې نظر اچولو سره معلومیږی چې قرآن کریم دسورة بقره په رومبو شلو آیتونو کښې یو خو اخو دهدایت دچینې پته ورکړه چې قرآن دې او بل اړخ ته ئې د دنیا ټول قومونه په دې معیار تقسیم کړل چې څوک دغه هدایت منی او څوک ئې نه منی نو منونکې ئې په مؤمنانو متقیانو او بللې شو او نامنونکې ئې په کفارو یا منافقانو سره اوبللې شو.

رومبې قسم هغه خلق دی چې قوله تعالٰی: ﴿صِرَاطَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ﴾ سره ئې لاره غوښتلې شوې ده او دویم قسم هغه خلق دی چې قوله تعالٰی: ﴿غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ﴾ سره ئې دلارې نه پناه غوښتلې شوې ده.

دقرآن کریم ددې تعلیم نه یو اصولی مسئله دا هم راؤختله چې په اصولو باندې د اثر غورخولو په لحاظ، ددنیا د قومونو، په برخو یا ډلو کښې تقسیمیدل، یوائې د اصولو او نظریاتو په اعتبار کیدې شی نه چې دنسب، وطن، رنګ، جغرافیائی حالاتو په اعتبار، په دې باره کښې دقرآن کریم واضحه فیصله په سورت تغابن کښې ذکر شوې ده، فرمائی: ﴿فَمِنْكُمْ كَافِرٌ وَمِنْكُمْ مُؤْمِنٌ﴾ الله تعالی ټول پیدا کړئ نو څه مخلوق ستاسو نه مؤمنان او څه کافران شو.

دلته په دې دوؤ آیتونو کښې حق تعالی دهغه کافرانو بیان کړې دې چې په خپل کفر او انکار کښې دضد او عناد درجې ته رسیدلې وو، او ددې په وجه هغوئ دڅه حق خبرې اوریدو او دروښانه دلیل لیدو ته هم تیار نه وؤ، دداسې خلقو په باره کښې دالله تعالی طریقه داده چې په دې جهان کښې ورته دانغده سزا ورکولې شی چې په زړونو ئې مهر لګولې شی، غوږونه او سترګې ئې دحق اوریدو او کتو لپاره بندولې شی ګویا کښې دهغوئ په عقل، نظر او په اوریدو کانړې راپریوتې دې، په آخر کښې دا بیان دې چې داسې خلق به په لوئ عذاب کښې ګرفتاره وی.

**دکفر تعریف؟** دکفر لفظی معنی پټول دی، ناشکری کول هم ځکه کفر دې چې داحسان کونکی احسان پټول دی، دشریعت په اصطلاح کښې دهغه څیزونو نه انکار کول کفر بللې شې په کوم څیزونو چه ایمان راؤړل فرض وی، مثلا دایمان خلاصه دالله له اړخه رسول الله ﷺ ته دراغلی ټولو څیزونو د زړه نه تصدیق کول او حق ئې ګڼړل دی، خو چه ددغه څیزونو ثبوت قطعی او یقینی وی له داسې څیزونو څنې که یوهم څوک حق اونه ګڼری یا یقین نه کوی نو هغه به کافر وی.

**د انذار معنی** ویره راوستونکې څه خبر ورکول انذاربللې شی څنګه چې خوشحالی راوستونکې خبرورکول، ابشاربللې شی، دانذار معنی صرف ویرول صحیح نه ده بلکه هغه ویرول چې دشفقت او رحمت په بناوی لکه چې خپل اولادلره داور د سوځیدونه، ښیرونکو ځناوروياماراړم نه چې ویرولې شی، هغه ډاکو، غل، ظالم اوزورورچه خلق ویروی نذیرنشی بللې انبیاء ﷺ ته په خصوصیت سره دالقب ځکه ورکولې شی چې هغوئ دشفقت اوزړه سواندئ په بناخلقولره دراتلونکومصیبتونونه ویروی، دانبیاء ﷺ دپاره نذیرلفظ اختیارولو کښې داهدایت دې چې مصلح مبلغ لره ضروری دی چې په خیرخواهئ اوهمدردئ مخاطب سره خبرې کوی یواځې څه خبرورکول رسول ئې مقصودنه وی.

رسول الله ﷺ ته دتسلئ ورکولوپه غرض، په دې آیت کښې داښودلې شوی دی چې داناړامه ضدیان کافران سره ددې چې حقیقت پیژنی خوبیاهم په کفراوانکارټینګ دی یادخپلې لوئ اوناړامې رائ په بناحق خبرې اوریدو اوروښانه دلیلونه آوریدوته تیارنه دی، د دوئ دأصلاح اوایمان په باره کښې ستاسوکوشش هم کار نه کوی بلکه ستاکوشش اوخواری کول یانه کول دواړه په دې باره کښې یوشان دی، ددې وجه په راتلونکی آیت کښې داښودلې شوې ده چې الله تعالی د دوئ په زړونو اوغوږونو مهر لګولې دې په سترګوئې پرده پرته ده، دسوچ فکراوشدبدتولې لارې پربندې دی، ځکه دوئ نه داصلاح طمعه امیدلرل سردردې دې.

په یوځیزدمهرلګولومطلب داوی چې دبهرنه دننه نورڅه ورننشی نودلته په زړنو اوغوږونو مهر لګولو مطلب هم دادې چې د دوئ په زړونوکښې دحق قبلولوهیڅ څه ځائ پاتې نه دې، ددې حالت ښرګندولودپاره ئې په زړونواوغوږونومهرلګولو سره تعبیر اوکړو مګرپه سترګوئې دپردې راتلو ذکر اوکړوپه دې بیلتون کښې حکمت دادې چې په زړونوکښې راتلونکی خیالات دیوارڅه نه بلکه دهراړخ راځی، داشان په غوږونوکښې آوازهم دهراړخه راتلې شی، نوددې بندولوطریقه داده چې پرمهراولګولې شی خوهرکله چې سترګه صرف دیواړخ [وړاندې] نه لیدل کولې شی نومخامخ پردې اچولوسره دسترګوکار[لیدل] بندولې شی، [مظهری]([1])

① **دګناهونودنیوی سزاد توفیق اغتیل دی** : ددې دواړوآیتونونه معلومه شوه چې د کفر او هر ګناه اصل سزاخوبه په آخرت کښې ملاؤیږی مګردځنې ګناهونوڅه قدرې سزاپه دنیاکښې هم ملاؤیږی اوداکله په دې شان ورکولې شی چې توفیق سلب [بیرته واغستې] شی چې انسان بیا دآخرت دحساب کتاب نه بې فکره کیدوسره په نافرمانواوګناهونوکښې په مخه زیاتیږی، دبدئ احساس ئې هم دزړه نه ختم شی، دداسې حال باره کښې ځنې بزرګانوفرمائیلی دی؛ ان من جزاء السیئة السیئة بعدها وان من جزاء الحسنة الحسنة بعدها، دګناه یوقسم سزاپه دنیاکښې داسې هم کیدې شی چې ګناه پسې بله ګناه کولې شی لکه چې دنیکئ نغد بدله داده چې یونیکئ پسې بله نیکی اوکړې شی] په یوحدیث شریف کښې راځی، هرکله چې انسان څه ګناه اوکړی نوپه زړه ئې یو تور داغ اولګی نوڅنګه چې انسان ته په سپینه کپړه تورداغ لګول ناخوښه وی دغه شان په ړومبی تورداغ سره هم انسان پریشان وی، که انسان ددغې ګناه نه توبه اونکړی اوبله ګناه ورپسې اوکړی نوبل تورداغ پرِاولګی اوداشان هریوګناه سره په مخه پرِتورداغونه لګی تردې چې ټول

[1]) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة: ١/ ٢٤

زړه لړه ئې تورولي راګیرکړي، داهغه حال دي چې انسان بیابنه ځیزبنه نشي ګنړلې اونه خراب ځیزخراب ګنړلي شي،غرض داچه دنیکئ اوبدئ ترمنځه دبیلتون کولوتوفیق ئې د زړه نه ختم شي اوبیائي اوفرمائیل ددې تیرې [تورالی] نوم په قرآن کریم کښې ران یارین راغلې دې،لکه فرمائی ﴿كَلَّا بَلْ رَانَ عَلَىٰ قُلُوبِهِم مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ﴾(۱)[مشکوة دمسند احمد اوترمذی نه](۲) اوترمذي په صحیح سندسره دحضرت ابوهریره رضی الله عنه په روایت نقل کړی دی چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل کله چې انسان ګناه اوکړی نوزړه ئې تورشی بیاکه توبه اوکړي نوزړه ئې صفاشي [قرطبی]

② **نصیحت کولوره،هرحال کښې نصیحت کول فائده منددي که مخاطب ئې مني که نه مني** په دې آیت کښې ازلي کافرانودپاره درسول الله ﷺ وعظ اونصیحت کول یانه کول دواړه برابر ښودلې شوي دی،خودې سره د﴿عَلَيْهِمْ﴾ قید لګولوسره ئې اوښودل چې دابرابری دکفاروپه حق کښې ده،درسول الله ﷺ په حق کښې نه ده،بلکه هغوئ ته به د خلقو د تبلیغ، تعلیم، او اصلاح دکوشش ثواب په هرشان ملاؤیږي ځکه خوپه ټول قرآن کریم کښې دیوآیت نه هم دانه ثابیږي چې رسول الله ﷺ لره داسې خلقوته دایمان دعوت ورکولونه منع کړې شوی وی دې نه معلومه شوه چې څوک د دین د دعوت اواصلاح کارکوی نوهغه ته به ئې هرومرو[خامخا] بهر حال ثواب ملاؤیږی خواه هغه اثرکوی اوکه نه کوی،

**دیوشبې جواب:** ددې آیت مضمون هم هغه دې کوم چې دسورت مطففین ددې آیت دې ﴿كَلَّا بَلْ رَانَ عَلَىٰ قُلُوبِهِم مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ﴾ [یعنی داسې نه ده بلکه دهغوئ په زړونو باندې د دې عملونوزنګ ختلي دې] په دې سره داحقیقت واضح شوچه په زړه دزنګ ختوباعث دَدوئ بدعملیانې اوسرکشئ دی چې په تیرشوی آیت کښې ترنه په مهریا پردې سره تعبیرکړې شوې دې نوداشبه هم بیانشی کیدې چې هرکله الله تعالی دهغوئ په زړونومهراووهلواوحواس ئې دهغوئ بیکاره کړل نو دوئ په خپل کفرکښې معذوره شونوعذاب به ئې ځنګه وی، نو ددې وجه داده چې دوئ پخپلوشرارتونو،بدعملونو،عنادونو اوپه خپل اختیارسره خپل استعدادبربادکړې دې نوځمه وارئې پخپله دوئ دی خوالله تعالی دمهرلګولو نسبت خپل ځان ته په دې وجه اوکړوچه هغه دافعالودبندګانوخالق هم دې او دالله طریقه دا جاری ده چې هرکله څوک خپل استعدادپخپله خراب کړی نوالله تعالی ددغې بداستعداد کیفیت دهغوئ په زړونو او حواسو کښې پیداکړی

| وَمِنَ النَّاسِ | مَنْ | يَّقُوْلُ | اٰمَنَّا |
|---|---|---|---|
| اوخینی دخلقو نه | هغه څوک دی | چې وائی | ایمان راوړی دې موږ |

اوخینی خلق داسې دی چې[په خولې]اوائی چې موږ په الله او په ورځ

| بِاللّٰهِ | وَبِالْيَوْمِ | الْاٰخِرِ | وَمَا | هُمْ | بِمُؤْمِنِيْنَ ۞ | يُخٰدِعُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په الله | اوپه ورځ | اخرت باندې | اوحال داچې نه دی | هغوئ | مومنان | دهوکه کوی هغوئ |

دآخرت ایمان راوړلی دې[ خودوئ[په رښتیا] مسلمانان نه دی[.دوئ[پخپل ګمان کښې[

۱ ) ترجمه:بلکه هریو عمل چه دوی کوی هغه ددوی په زړونو باندے زنګ لاګوی.

۲ ) مشکوٰة، باب الاستغفار والتوبة: ۱/ ۲۰٤

اللّٰهَ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْاۚ وَمَا يَخْدَعُوْنَ اِلَّآ اَنْفُسَهُمْ

الله سره | اوهغه کسانو سره | چې ايمان ئې راوړې دې | خو نه کوي دهوکه | مګر | ځانونوخپلوسره

د الله پاک او مسلمانانو سره ټګي کوي | خو په اصل کښې خپلو ځانونو ته دهوکه ورکوي

وَمَا يَشْعُرُوْنَؕ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌۙ فَزَادَ هُمُ اللّٰهُ

او نه لري | هغوئ پوهه | په زړونو دهغوئ کښې | مرض دې | نو زيات کړل | هغوئ لره | الله |

او پوهيږي پرې نه | ددوئ په زړونو کښې | د نفاق | مرض دې نو الله | دقانون قدرت مطابق | ددوئ مرض

مَرَضًاۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌۢۙ بِمَا كَانُوْا

د حيثيت د مرض نه | اودې دهغوئ دپاره | عذاب | دردناك | په سبب دهغې | چې ووهغوئ

زيات کړو | اودوئ دپاره د دوی د دروغو ونيلو په وجه دردناکه سزا مقررشوې ده

يَكْذِبُوْنَ۝ وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ لَا تُفْسِدُوْا فِي الْاَرْضِۙ

چې دروغ ئې ونيل | اوهر کله | چې اوونيلې شي هغوئ ته | چې مه کوئ فساد | په زمکه کښې

اوهر کله چې دوئ ته [د اصلاح دپاره] اوونيلې شي چې د زمکې په مخ فساد مه کوئ [او نفاق پريږدئ]

قَالُوْٓا اِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُوْنَ۝ اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُوْنَ

وائي دوئ | بيشکه مونږ | اصلاح کونکي يو | خبردار | بيشکه هم دوئ | فساد کونکي دي

نو دوئ وائي مونږ خو [خپله] لګيايو [د خلقو] اصلاحوکوؤ | خبردار | هم دوئ ښکاره فساديان دي

وَلٰكِنْ لَّا يَشْعُرُوْنَ۝ وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ اٰمِنُوْا كَمَآ

خو | نه لري دوی پوهه | اوهر کله | چې اوونيلې شي هغوئ ته | چې ايمان راوړئ | لکه څنګه

خو [پخپلو ځانونو] نه پوهيږي | اوهر کله چې دوئ ته اوونيلې شي چې داسې [ربښتيني] ايمان راوړئ لکه

اٰمَنَ النَّاسُ قَالُوْٓا اَنُؤْمِنُ كَمَآ اٰمَنَ

چې ايمان راوړې دې | نو روخلقو | نو وائي دوی | آيا مونږ ايمان | راوړو | لکه څنګه چې | ايمان راوړې دې

چې نورو مسلمانانو] خلقو راوړنی دې نو وائي [ښه] داسې ايمان ايمان راوړو

السُّفَهَآءُؕ اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ السُّفَهَآءُ وَلٰكِنْ

بيوقوفانو | خبردار | په حقيقت کښې | دوئ چې دي | دوئ پخپله بيوقوفان دي | خو |

لکه دې کم عقلو خلقو چې راوړنی دې | واورئ چې هم دوئ پخپله بې عقله دي خو [پخپلې بې عقلئ هم]

لَا يَعْلَمُوْنَ۝ وَاِذَا لَقُوا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

نه پوهيږي دوئ | او کله چې | ملاويږي دوئ | دهغه خلقو سره | چې ايمان ئې راوړې دې

نه پوهيږي [ځکه دوئ نورو خلقو ته بې عقله وائي] اوهر کله چې دوئ مسلمانانو سره ملاو شي

قَالُوْٓا اٰمَنَّا ۚۖ وَاِذَا خَلَوْا اِلٰى شَيٰطِيْنِهِمْ ۙ قَالُوْٓا

نو وايئ | چې ايمان راوړې دې مونږ | اوکله چې | ځانله شي | دشيطانانو ملګروخپلو سره | نو وائي

نو [مسلمانانو ته] وائي چې مونږ [هم] ايمان راوړنې دې اوهرکله چې خپلوشيطانانو [يارانو] سره يوازې شي نو وائي

اِنَّا مَعَكُمْ ۙ اِنَّمَا نَحْنُ مُسْتَهْزِءُوْنَ ﴿۱۴﴾ اَللّٰهُ يَسْتَهْزِئُ

په حقيقت کښې مونږ | تاسو سره يو | بيشکه مونږ | توقې کونکي يو | الله | بدله د توقو ورکوی

چې مونږ خو ستاسو ملګری يو مونږ خو په مسلمانانو پورې توقې کوؤ | الله دوئ ته ددې توقوسزاورکوی

بِهِمْ وَيَمُدُّهُمْ فِيْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ﴿۱۵﴾

دوئ ته | اومهلت ورکوی | دوئ ته | ددوئ په سرکشئ کښې | سرګردان دی |

او دوئ ته مهلت ورکوی | چې پخپله سرتيزئ کښې سروهلي بروهلي [سرګردانه] ګرځي.

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الضَّلٰلَةَ بِالْهُدٰى ۠ فَمَا رَبِحَتْ

داهغه خلق دی | چې اخستلی ئي ده ګمراهي | په بدله دهدايت کښې | خو اونۀ کړه | ګټه

داهغه کسان دي چې د هدايت په بدل کښې ئې ګمراهي په بيعه اخستې ده خو ددوی سوداګرئ ګټه

تِّجَارَتُهُمْ وَمَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ ﴿۱۶﴾ مَثَلُهُمْ كَمَثَلِ الَّذِى

سوداګرئ ددوئ | اونۀ دی دوئ | صحيح لاړموندونکی [پيداکوونکی] | مثال ددوئ | پشان دمثال | دهغه کس دې

ګټه او نکړه | اونه دوی [دحق] لاړموندونکی دی | ددې درغلو [دهوکه بازو] خلقو مثال دهغه چا پشان دې

اسْتَوْقَدَ نَارًا ۚ فَلَمَّآ اَضَآءَتْ مَا حَوْلَهٗ ذَهَبَ اللّٰهُ

چې بل کړې ئې وی | اور | نو هرکله | چې روښانه کړوادې وور | خو اوشاتول ځائې دهغه | نو واخستلو الله

چې اور ئې په تيارۀ کښې بل کړو | نو هرکله چې ګيرچاپيره ځائې ئې رڼرا کړو | نو الله پاک د دوی

بِنُوْرِهِمْ وَتَرَكَهُمْ فِيْ ظُلُمٰتٍ لَّا يُبْصِرُوْنَ ﴿۱۷﴾

طاقت د رڼرا دهغوئ | اوپريښودل ئې هغوئ | په تياروکښې | چې نه وينی هيڅ څيز

رڼرا ختمه کړه | اوپه تورو تيارو کښې ئې پريښودل | چې هيڅ نه وينی [دوی]

صُمٌّۢ بُكْمٌ عُمْىٌ فَهُمْ لَا يَرْجِعُوْنَ ﴿۱۸﴾ ۙ اَوْ كَصَيِّبٍ

کانړه دی | چاراګان [ګونګيان] دی | راندۀ دی | اوس دوئ | نۀ واپس کيږی | يائې مثال | پشان دشيبو باران دې

کانړه، ګونګيان او راندۀ دی | نو داخپلې ګمراهئ نه | بيرته نه راګرځي | يا ددوئ مثال دهغه چادې چې د آسمان نه په شيبو شيبو

مِّنَ السَّمَآءِ فِيْهِ ظُلُمٰتٌ وَّرَعْدٌ وَّبَرْقٌ ۚ يَجْعَلُوْنَ

چې وريږي د آسمان نه | چې په هغې کښې | تيارې | اوتندر | اوبريښناوی | ږدی هغوئ

باران وريږی | چې په کښې ځوځو تيارې وی اوګرزهار اوبريښنا وی | نو دوئ خپلې ګوتې په غوږونو

اَصَابِعَهُمْ　فِيْٓ اٰذَانِهِمْ　مِّنَ الصَّوَاعِقِ　حَذَرَ الْمَوْتِ ؕ　وَاللّٰهُ

گوتې خپلې | په غوږونو خپلو کښې | دوجې د گړزارې نه | د وجې د يرې د مرگه | الله

کښې ترمبې | دتندر دگړزهار دلاسه | د هلاکت د ويرې نه | او الله پاک [پخپل قدرت سره]

مُحِيْطٌۢ　بِالْكٰفِرِيْنَ ۝　يَكَادُ　الْبَرْقُ　يَخْطَفُ اَبْصَارَهُمْ ؕ

په گيره کښې اخستونکې دې | دحق منکرو خلقو لره | نزدې ده | چې دا بريښنا | ويسې نظر دسترگو دهغوئ

دکافرانو نه راتاؤشوې دې | نزدې ده چه بريښنا ددوئ دسترگو نظر اوتختوی [اونظرنې کار پريږدی]

كُلَّمَآ　اَضَآءَ　لَهُمْ　مَّشَوْا　فِيْهِ ۙ　وَاِذَآ　اَظْلَمَ　عَلَيْهِمْ　قَامُوْا ؕ

کله چې | رڼا شی | هغوئ ته | نوروان شی | په هغې کښې | او کله چې | تياره شی | په هغوئ باندې | نو ودريږی

هر کله چې لره رڼا شی نو دوئ په کښې روان شی | او چې پرې تياره شی نو بيا په تپو ودريږی

وَلَوْ　شَآءَ　اللّٰهُ　لَذَهَبَ　بِسَمْعِهِمْ　وَاَبْصَارِهِمْ ؕ

او که چرې | غوښتلې | الله | نو اخستلې به نې وې | قوت داوريدو دهغوئ | او دليدو دهغوئ |

او که د الله تعالی رضا شوې وه | نو [سره دهر قسم حفاظت نه] به نې ددوئ غوږونه کاڼه سترگې ړندې کړې وې

اِنَّ اللّٰهَ　عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ　قَدِيْرٌ ۝ ع

بې شکه چې الله | په هر څيز باندې | قادر دې |

بيشکه الله تعالی په هر څيز پوره پوره قدرت لری |

## آسان ترجمه قرآن

ځنې خلق هغه دي چه وائی مونږ په الله او په آخرت باندې ايمان راوړې دې حالانکه هغوی (په حقيقت کښې) مؤمنان نه دي هغوی الله ته او هغه خلقو ته چه هغوی (واقعي) ايمان راوړې دې دهوکه ورکوی او (حقيقت خو دادې) چه دوی د خپلو ځانونو نه سوا بل چاته دهوکه نه ورکوی ليکن دوی ته ددې خبرې احساس نشته ددوی په زړونو کښې مرض دې الله ددوی په مرض کښې نور هم زياتوالې کړې دې او ددوی دپاره دردناک عذاب تيار شوې دې ځکه چه دوی به دروغ وئيل - او کله چه ورته وئيلې شی دوی ته چه په زمکه کښې فساد مه کوئ نو دوی وائی چه مونږ خو اصلاح کوونکی يو - ياد اوساته چه هم دا خلق فساد خورونکي دي ليکن دوی ته ددې خبرې احساس نشته او کله چه دوی ته ووئيلې شی چه تاسو هم داسې ايمان راوړئ لکه څنګه چه نورو خلقو ايمان راوړې دې نو دوی وائی چه آيا مونږ هم داسې ايمان راوړو لکه څنګه چه دي بې وقوفه خلقو ايمان راوړې دې؟ ښه واورئ چه دا خلق بې وقوفه دی ليکن دوی په دې خبره نه پوهيږي او چه کله دوی دهغه خلقو سره ملاؤ شی چه کومو ايمان راوړې دې نو وائی چه مونږ ايمان راوړې دې او چه کله خپلو شيطانانو سره ځانله لاړ شی نو وائی چه مونږ تاسو سره يو مونږ خو ټوقې کولې - الله تعالی دوی سره دټوقو (معامله) کوی او دوی ته داسې مهلت ورکوی چه دوی په خپله سر کشۍ کښې حيران اوسی دا هغه خلق دي چه دوی دهدايت په بدله کښې ګمراهي اخستې ده لهٰذا نه ددوی په

تجارت کښې څه نفع وشوه او نه دوی ته صحیح لاره نصیب شوه ـ ددوی مثال د هغه کس پشان دې چه هغه یو اوړ بل کړو بیا چه کله هغه (اور) د هغه ماحول روښانه کړو نو الله تعالیٰ ددوی نه رڼرا واخسته اودوی ئې په تیارو کښې پریښودل چه دوی هیڅ نه وینې ـ دوی کاڼره دي، ګونګیان دي، ړانده دی، نو اوس به دوی واپس رانشي یا بیا (ددې منافقانو مثال داسې دې) لکه چه د آسمان نه باران راوریږي چه په هغې کښې تیارې وي او ګړز ګړوز او بریښنا هم وي هغوی د تندر په آواز باندې دمرګ د ویرې نه خپلې ګوتې په غوږونو کښې ننباسی ـ او الله تعالیٰ کافران راګیر کړي دي داسې ښکاري چه بریښنا به ددوی نظرونه واخلي چه کله هم بریښنا دوی لره رڼرا کړي نو دوی په هغې (رڼرا) کښې تلل کوی او چه کله تیاره کړي نو دوی اودریږي او که الله تعالیٰ غوښتل نو ددوی د اوریدو او لیدلو طاقت به ئې اخستې وو بې شکه الله تعالیٰ په هر څیز قادر دې ـ

## خلاصه تفسیر

﴿وَمِنَ النَّاسِ﴾ اوپه خلقو کښې ﴿مَنْ يَقُولُ﴾ ځینې داسې هم دی چه وائی ﴿اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَبِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ﴾ مونږ ایمان راوړې دې په الله ﷻ اودآخرت په ورځ ﴿وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِيْنَ﴾ حالانکه هغوی بې خی ایماندار نه دی ﴿يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ﴾ بلکه] تګی کوی الله ﷻ سره ﴿وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ او هغه خلقو سره چه ایمان ئې راوړې دې ﴿وَمَا يَخْدَعُوْنَ اِلَّآ اَنْفُسَهُمْ﴾ اوپه واقع کښې هیچا سره تګی نه کوی سوا دخپل ځان نه. ﴿وَمَا يَشْعُرُوْنَ﴾ او هغوی پرې نه پوهیږی [یعنی ددې تګئ ناکاره انجام به پخپله په خپل سر اخلی] ﴿فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ﴾ دهغوی په زړونو کښې لوئې مرض دے ﴿فَزَادَهُمُ اللّٰهُ مَرَضًا﴾ نو نور هم زیات کړو الله ﷻ مرض دهغوی [په دې مرض کښې دهغوی بداعتقادی اود اسلام او د مسلمانانو په ترقئ لیدو په حسد کښې سوزیدل او هر وخت، دخپل کفر ظاهریدلو په فکر اوپریشانئ کښې کیدل داټول داخل دی، دمسلمانانو په ترقئ کولو سره دهغوی حسد نور هم زیاتیدل واضح دی] ﴿وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ﴾ او هغوی لره دردناك عذاب دے ﴿بِمَا كَانُوْا يَكْذِبُوْنَ﴾ په دې وجه چه دروغ به يئ وئيل [یعنی پدروغه به يئ دایمان دعوی کوله] ﴿وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ﴾ او کله چه هغوی ته اووئیلې شی ﴿لَا تُفْسِدُوْا فِي الْاَرْضِ﴾ چه فساد مه کوئی په زمکه کښې ﴿قَالُوْٓا اِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُوْنَ﴾ نو وائی چه مونږ خو اصلاح کوونکی یو [دهغوی دوه مخیز عملونو سره هر کله چه فتنې او فسادونه راپورته شول او چا خیرخواه د پوهولو په غرض ورته اووئیل چه داسې کارونه کول د فساد باعث جوړیږی، مه کوئی نو دهغې په جواب کښې هغوی خپل ځان د فساد کوونکو په ځائې مصلح بولی یعنی خپل فساد لره اصلاح ګڼړی] ﴿اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُوْنَ﴾ یادلرئ بیشکه هم دغه خلق فسادیان دی ﴿وَلٰكِنْ لَّا يَشْعُرُوْنَ﴾ لیکن هغوی پرې نه پوهیږی [داخو دهغوی دناپوهنی او غبی کیدو بیان دې چې خپل عیب لره هنر ګڼړی. وراندې دبلې ناپوهنې بیان دې چې دنورو هنریعنی خالص ایمان لره عیب او سپك ګڼړی ﴿وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ﴾ او کله چه ورته اووئیلې شی ﴿اٰمِنُوْا كَمَآ اٰمَنَ النَّاسُ﴾ چه تاسو هم هغسې ایمان راوړئی څنګه چه ایمان راوړې دې نورو خلقو، ﴿قَالُوْٓا اَنُؤْمِنُ﴾ نو وائی چه آیا مونږ ایمان راوړو ﴿كَمَآ اٰمَنَ السُّفَهَآءُ﴾ لکه څنګه چه ایمان راوړې دې بیوقوفانو، ﴿اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ السُّفَهَآءُ﴾ یاد لرئ چه بیشکه هم هغوی بیوقوفان دی ﴿وَلٰكِنْ لَّا

﴿يَعْلَمُوْنَ۝﴾ خو پوهیږی نه [یعنی منافقانو به غالبًا داسې ښکاره خبره د غریبو مسلمانانو په باره کښې کوله چه سترګه به یې ترې نه سوزیدله یعنی څه خطره به ئې ترې نه کیدله ګنې هغوی خو به عمومًا خپل کفر پټ ساتلو] ﴿وَإِذَا لَقُوا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ اوکله چه یوځائې شی دغه منافقان هغه خلقو سره چه ایمان ئې راوړې دې ﴿قَالُوْٓا اٰمَنَّا ۚ﴾ نو وې وئیل چه مونږ ایمان راوړې دې ﴿وَإِذَا خَلَوْا إِلٰى شَيٰطِيْنِهِمْ ۙ﴾ اوکله چه خانله شي خپلو شیطانانو ملګرو سره ﴿قَالُوْٓا إِنَّا مَعَكُمْ ۙ﴾ نو وې وئیل بیشکه مونږ تاسو سره یو ﴿إِنَّمَا نَحْنُ مُسْتَهْزِءُوْنَ۝﴾ مونږ خو [مسلمانانو پورې] صرف ټوقې کوونکی یو [یعنی مونږ مسلمانانو ته دټوقو په ډول وایو چه مونږ هم ایمان راوړې دے ورنه مونږ خوستاسو د ډلے نه یو.[اوس دې پسې د دوی دټوقو جواب دے چه﴿اَللّٰهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ﴾ الله ﷻ ټوقې کوی هغوی پورې ﴿وَيَمُدُّهُمْ﴾ او ورته ډیل یعنی مهلت ورکوی ﴿فِيْ طُغْيَانِهِمْ﴾چه هغوی په خپلې سرکشئ کښې ﴿يَعْمَهُوْنَ۝﴾سرګردان او حیران وی [دالله ﷻ ورپورې ټوقې کول دادی چه ورته ډیل ورکولےشی چه هر کله په کفر کښې پاخه شی او جرم یې مضبوط شی نو دغه وخت به ناګاهانه راګیر کړې شی، هر کله چه دالله ﷻ داسې کول دهغوی دټوقو په مقابله کښې وو ځکه ئې دې ته هم ټوقې اووئیلې] ﴿أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ﴾ دا هغه خلق دی ﴿اشْتَرَوُا الضَّلٰلَةَ بِالْهُدٰى ۪﴾چه ګمراهی ئې واخستله په بدله د هدایت سره ﴿فَمَا رَبِحَتْ تِّجَارَتُهُمْ﴾ نوسود مند [فائده مند] نه شو د هغوی د ا تجارت ﴿وَمَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ۝﴾ او نه وو په سمه لاره روان [یعنی د سوداګرئ چل هم نه ورځی چه د هدایت غوندې دقیمتی څیز په بدله کښې ګمراهی اخلی]. ﴿مَثَلُهُمْ كَمَثَلِ الَّذِي﴾دهغوی حالت دهغه چا د حال پشان دے ﴿اسْتَوْقَدَ نَارًا ۚ﴾ چه چرته یې هور بل کړې وی ﴿فَلَمَّآ أَضَآءَتْ﴾ بیا چه روښانه کړې وی دغه هور، ﴿مَا حَوْلَهٗ﴾دهغه سړی ګیر چاپیره ټول څیزونه، ﴿ذَهَبَ اللّٰهُ بِنُوْرِهِمْ﴾په دغه حالت کښې الله ﷻ بیرته اخستی وی رڼړا د هغوی ﴿وَتَرَكَهُمْ فِيْ ظُلُمٰتٍ﴾او پریښې ئې وی هغوی په تیرو کښې ﴿لَا يُبْصِرُوْنَ۝﴾چه څه ئےلیدلے کتلے نشو [نو څنګه چه دغه کس او دده ملګری د رڼړا نه پس په تیاره کښې پاتې شوی دی دغه شان منافقان هم دحق واضح کیدو سره مخے ته راتللو نه پس د ګمراهئ په تیرو کښې راګیر شو او څنګه چه د هور بلوونکو سترګے، غوږونه اوژبه په تیرو کښې بیکاره شول دغه شان دګمراهئ په تیرو کښې د راګیریدو نه پس دا حالت شو چه ګویا کښې هغوی] ﴿صُمٌّۢ بُكْمٌ عُمْيٌ﴾ کانړه دی، ګونګیان دی، ړانده دی ﴿فَهُمْ لَا يَرْجِعُوْنَ۝ۙ﴾نو اوس به هغوی نه راواپس کیږی [ځکه چه حواس ئے دلیدلو، اوریدلو او پوهیدلو قابل پاتې نشو دامثال خو دهغه منافقانو وو چه دزړه داخلاصه په کفر ټینګ وی، کله ئې په زړه کښې دایمان راوړو خیال هم نه رازی.دې پسې د منافقانو دهغې ډلے مثال دې چې په رښتیا په شک کښې ووکله کله به داسلام دحقانیت په لیدو دې ته مائل کیدل بیا به چه د نفسانی غرضونو غلبه پرې اوشوه نو دغه مائله کیدل به یې هم ختم شو] ﴿ أَوْ كَصَيِّبٍ مِّنَ السَّمَآءِ ﴾یا ددغه منافقانو مثال داسې دے لکه د آسمان د اړخه چه باران وی ﴿ فِيْهِ ظُلُمٰتٌ وَّرَعْدٌ وَّبَرْقٌ ۚ ﴾ په دې کښې تیاره هم وی او ګړزار او بریښنا هم وی [څوک چې دې باران کښې روان وی نو] ﴿يَجْعَلُوْنَ أَصَابِعَهُمْ فِيْٓ اٰذَانِهِمْ﴾ ورمنډی خپلې ګوتے په خپلو غوږونو کښې ﴿مِّنَ الصَّوَاعِقِ﴾ د ګړزارو له وجې ﴿ حَذَرَ الْمَوْتِ ۭ﴾ دمرګ له ویرې ﴿وَاللّٰهُ مُحِيْطٌۢ بِالْكٰفِرِيْنَ۝﴾ اوالله ﷻ په ګیره کښې راوستلی دی کافران، ﴿يَكَادُ الْبَرْقُ﴾

دبریښنا دا حال دے چه معلومیږی داسې ﴿يَخْطَفُ أَبْصَارَهُمْ﴾ چه اوس ئے دادې د دوی نظریورو، ﴿كُلَّمَا أَضَاءَ لَهُمْ﴾ چرته چه د بریښنا لږ شان بریښیدل اوشو ﴿مَشَوْا فِيهِ﴾ نو دهغې په رڼا کښې روان شو ﴿وَإِذَا أَظْلَمَ عَلَيْهِمْ قَامُوا﴾ او چه پرې تیاره شوه نو ولاړ په ولاړ پاتې شو ﴿وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ﴾ اوکه الله ﷻ اراده کړې وې ﴿لَذَهَبَ بِسَمْعِهِمْ وَأَبْصَارِهِمْ﴾ نو دهغوی غوږونه او سترګې به یې ټولې بیرته اخستې وې، ﴿إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ بیشکه الله ﷻ په هر څیز قادر دې [نو څنګه چه دا خلق کله په طوفان، باد او باران کښې په پټه اودریږی اوکله څه قدرې روان شی دغه حال د هغې شك کوونکو منافقانو دې]

## معارف اومسائل

**دآیتونوترون:** دتیرشوی بیان مطابق دسورت بقره په شروع کښې دابیان اوشوچه قرآن کریم دشك اوشبهې نه بالاتردې،بیاپه شلوآیتونو کښې ددې دمنونکواونامنونکوحالات ذکرشوی دی په اولوپنځوآیتونوکښې دمتقینوپه عنوان سره دمنونکو،اوبیاپه دوؤآیتونوکښې دهغه نامنونکوذکردې چې په ښکاره ئې دضدله کبله دقرآن نه انکارکولواوپه دې دیارلسو آیتونو کښې دداسې منکرانواکافرانوذکردې چې په ظاهره خوئې د مسلمانئ اومؤمن والی دعوی کوله مګرپه حقیقت کښې مؤمنان نه وؤچې په قرآن کریم کښې دمنافقانوپه نوم یادیږی.

ددې آیتونوځنې په ړومبودوؤآیتونوکښې دمنافقانوباره کښې فرمائی:چې خلقو کښې ځنې داسې هم شته چې وائې مونږایمان راوړوپه الله حالانکه هغوئ بیخی ایماندارندی بلکه ګټکې کوی الله سره اوهغه خلقوسره چې ایمان ئې راوړې دې اوپه واقع کښې چاسره هم ګټکې [دهوکې] نه کوی سوادخپلوځانونونه خوشعورئې نه لری،

په دې کښې ئې ددوئ دایمان دعوی غلطه اوښاکله اودائې هم اوښودل چې د دوئ دغه دعوی بیخی دفریب ده،دا ښکاره خبره ده چې الله تعالی ته دهوکه ورکول نشی کیدې چې غالبادغې خلقوهم داسې خیال وؤمګررسول الله ﷺ اومسلمانانوسره دهوکې ورکول په یو حیث الله سره دهوکه کول اوګڼرلې شو، او دا اوفرمائیلې شو چې دا خلق الله سره دهوکه کوی.[قرطبی دحسن نه](۱).

**د روحانی انو جسمانی بیمارو تعریف:** پدې وجه نتیجه دا اوښودلې شوه چې هرکله الله ته دهوکه ورکول نشی کیدې،ځکه چې الله ﷻ د هر قسم فریب او دهوکو نه بالاتر دې، رسول الله ﷺ او مؤمنان هم الله تعالی دوحی په ذریعه د دهوکودنقصان نه محفوظ پاتې کیږی، هیڅ نقصان دوئ ته نه رسیږی، البته ددوئ ددهوکووبال په دنیاکښې اوآخرت کښې به هم په دوئ وی.په دریم آیت کښې فرمائی:ددوئ په زړونوکښې لوئ مرض دې نوالله تعالی د دوئ مرض نورهم زیات کړو، مرض اوبیماری هغه حالت دې چې پکښې انسان دخپل مناسب اعتدال او توازن نه اوځی، اوپه افعالوکښې ئې خلل راشی چې آخری نتیجه ئې هلاکت اومرګ وی،دقرآن اوحدیث په اصطلاح کښې هغې نفسیاتی کیفیاتوته هم مرض وئیلې شی چې دنفس انسان په کمال کښې خنډونه پیداکوی اودې په مخه دانسانی عملونونه بندوی چې نتیجه ئې روحانی مرګ اوهلاکت دې.

۱) تفسیر القرطبي تحت هذه الآية: ۱/ ۱۹۵

حضرت جنید بغدادی رحمه الله فرمائیلي دی چې دزړونورنځ دنفساني خواهشاتومنلوسره پیدا کیږی څنګه چې دجسم اوبدن رنځ دجسماني اجزاؤاودبې سموئ او بې داعتدالئ نه پیداکیږی، په دې آیت کښې د دوئ دزړونوپټ کفرمرض څکه اوبللې شوچه په روحاني اوجسماني دواړولحاظوسره لوئ مرض دې دروحاني مرض کیدووجه ئې بالکل ښکاره ده چې دخپل پیداکونکی اوپروردګار[پالونکی] ناشکری اوداحکامونه ئې مخ اړول [چه په کفریادیږی] د انساني روح لوئې مرض اودانساني شرافت دپاره ډیرناکاره داغ دې اود دنیوی اغراضوپه خاطرددې پټ لرل اودخپل زړه خبره ډاډه یعنی زړورتیا سره نه ښکاره کول هم رذیل توب اوخسیس توب دې چې روحاني لوئ مرض دې،نفاق،جسماني،مرض کیدل په دې وجه دی چې منافق همیشه په ناکراره وی چې هسې نه اصلي حالت مې ښکاره شی،په دې فکرکښې په مخه پاتې کیدل پخپله یوجسماني مرض دې چې لازمی نتیجه ئې حسددې ولې چې دمسلمانانوپه ترقئ او وده لیدلومنافق سوځي خودزړه داسوځیدل ښکاره کولې هم نشی دې نه بې غمه کیدې شی دخفګان له کبله پرویلی کیږی چې جسماني مرض دې.

دالله تعالی دافرمائیل،الله تعالی د دوئ مرض نورهم زیات کړو،هم دغه مطلب لری،په څلورم اوپنځم آیت کښې دمنافقانودا دهوکه کول بیان شوی دی چې فسادته اصلاح وائی اوخپل ځانونه مصلحان بولی نوقرآن کریم ئې داخبره ردکوی چې وراني اوجوړښت په تشودعوؤاړه نه لری ولې چې هسې خوغل،ډاکوهم خپل ځان ته ورانکارې نه وائې خبره دکارکولوده چې څوک وران کارکوی هغه به ضرورورانکارې بللې شی خواه دهغه نیت دورانکارئ هم نه وی،

**د صحیح ایمان معیار څه دې؟** په شپږم آیت کښې دمنافقانومخې ته دصحیح ایمان پیمانه دا کیښودلې شوه ﴿اٰمِنُوْا كَمَآ اٰمَنَ النَّاسُ﴾ داسې ایمان راوړی څنګه چې نوروخلقوایمان راوړې دې] دلته دمفسرینو په اتفاق سره دالناس نه مرادصحابه کرام رضی الله عنهم دی چې دقرآن دنازلیدوپه موقع هم دغه خلقوایمان راوړې ووچه الله تعالی په نزدهم دا ایمان راوړل دی،بل شان ایمان راوړل معتبرنه دی،دادهغه کانړی [محک] مثال دې چې ښه اوخراب زرپرِمعلومولې شی،کوم عمل اوعقیده چې ددوئ رضی الله عنهم دعمل اوعقیدې مطابق وی نوهغه به صحیح وی،ورنه غلطه اوبې کاره به وی اګرچه په ښه نیت سره اختیارکړې شی،منافقانودهرې زمانې دګمراهانودستورمطابق صحابه کراموته بیوقوفان اوئیل خوقرآن کریم فرمائی چې په حقیقت کښې هم دوئ بیوقوفان څکه دی چې په داسې ښکاره نخښنوهم ایمان نه راوړی،

**د منافقانو رویه د مسلمانانو سره:** په اوؤم آیت کښې دمنافقانودمنافقت اودوه مخئ بیان داسې شوې دې چې،،هرکله مسلمانانوسره یوځائ شی نووائی چې مونږمؤمنان مسلمانان شوی یو،اوچه خپل قوم [کافرانو] سره به یوځائ ملاؤشونو وئیل به ئې:مونږخوتاسوسره یو، [ستاسودقوم غړی یو] اومسلمانانوسره هسې دټوقومسخروپه غرض ورشوچه شودګان یعنی کم عقلان ئې جورکړو.

په اتم آیت کښې ددې خبرې په جواب کښې الله تعالی فرمائی:داسې شوده کم عقل خلق دا ګڼړی چې مسلمانانونه شودګان جوړوی حالانکه پخپله شودګان جوړیږی خوالله تعالی په خپل زغم یعنی برداشت اوکرم سره تاخیر یعنی مهلت ورکړوچه دوئ پورې الله ټوقې اوکړی،ولې

چې په عذاب کښې د ډيل يعنې مهلت راتلوپه وجه به دوئ ترېې فکره شي، زياته سرتيزي به په مخه کوي چې جرم ئې ډيرلوئ شي ناڅاپه به راټينګ کړې شي هرکله چې داعمل به ورسره د دوئ دټوقوپه بدل کښې کولې شي، ځکه ترېه ټوقوکولوسره تعبيراوکړې شوورنه الله تعالی داستهزاء اودټوقوکولونه منزه اوپاک دې.

په نهم آيت کښې دمنافقانوباره کښې داذکردې چې هغوئ اسلام هم دنژدې نه اوليدو خوندئې اوڅکلو، کفرکښې خو مخکښې څخه اخته وو، چه کفراواسلام ئې يوتربله ښه اوپيژندل بيائې هم دخپلوذليلودنيوی غرضونوپه خاطرداسلام په بدل کښې کفرله ترجيح ورکړه چې قرآن کريم ورته دتجارت نوم ورکړواودائ اوفرمائيل چې دسوداګرئ چل هم منافقانوته نه ورځی ولې چې دبهترين قيمتی څيز[ايمان] په بيعه ئې بيکاره اونقصانی څيز[کفر] واغستلو،

په آخری څلوروآيتونوکښې دمنافقانود کرګجنئ يعنی نفرت د حال دوه مثالونه ئې په دې بناورکړل چې منافقان دوه قسمه خلق وؤيوخوهغه چې په کفرکښې بالکل پاخه وؤصرف د دنيوی مصلحت په غرض ئې ايمان ښکاره کولوحالانکه ايمان اواسلام سره به ئې هيڅ واسطه نه وه، بل قسم داسې وؤ، چه څه وخت به ئې دمسلمانيدواراده هم کوله خودنياوی غرضونه به ئې رامخې ته شواودې ارادې نه به ئې منع کړل اوتل دپاره په ناکراره کښې پاتې کيدل، ددې په ترس يعنی ضمن کښې ظالمانوته دادړکه او خبردارې ورکړې شو چې دوئ ټول دځيرمې ديوه مخه دالله ﷻ دقدرت د دائرې نه بهرنه دی هغه هروخت په هرحالت کښې هلاکولې شي اودليدوآؤريدوطاقت ئې راويستې اوشوکولې هم شي.

دا ديارلس آيتونه د منافقانو په حال او مثال باندې مشتمل دی، په دې ډير احکام، مسائل او اهم هدايات هم دی.

① **کفراونفاق يواځې دحضور ﷺ په زمانه کښې وواوکه اوس هم شته**: په دې معامله کښې صحيح خبره داده چې دمنافق منافقت او هغه باندې د منافقت د حکم کولوبه په دوؤ طريقو پيژندلې شو،

① يوداچه دوحی په ذريعه به رسول الله ﷺ ته ښودلې شوبله ② داچه دهغه دخبرې ياعمل نه به دامعلوميدلو يعنی اسلام مخالف څه خبره ياعمل به ترڅرګند او ښکاره ثابت شو.

رومبې صورت خودحضور ﷺ دوفات نه پس ځکه نشی کيدې چې وحی بيخی بنده شوه خودويم صورت اوس هم کيدې شي هغه داسې چې دچانه دڅه خبرې يافعل په ذريعه داسلامی عقائدومخالفت، هغې پورې ټوقې کول ياڅه بدلون ترېکښې ثابت شي اوسره ددې هغه داسلام اوايمان دعويداروی نو هغه به منافق ګڼرلې شي، دقرآن کريم په اصطلاح کښې داسې منافق ته ملحدوئيلې شي لکه فرمائی ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ يُلْحِدُوْنَ فِيْٓ اٰيٰتِنَا﴾ اوحديث شريف کښې ورته زنديق وئيلې شوې دې خوهرکله چې دده کفرپه دليل سره ثابت شونوحکم به ئې دټولوکفاروپشان وی، ځانله مستقل حکم يې نشته. اوهم په دې وجه دعلماء امت دافيصله ده چې رسول الله ﷺ نه پس دمنافقانوجنجال ختم شواوس چې څوک مؤمن نه وی هغه به کافربه وی، حضرت امام مالک رحمه الله نه په [عمده] شرح دبخاری کښې نقل کړې شوی دی چې دنبوت دزمانې نه پس دنفاق صرف داصورت دې چې پيژندلې شی، او داسې کار کوونکی ته منافق وئيلې شی.

**دایمان اوکفر حقیقت:** په تیروشوؤ آیتونو کښې ژورنظرکولوسره دایمان اسلام، اوبل اړخ ته دکفرپوره حقیقت په ډاګه کیږی، ولې چې په دې آیتونو کښې دمنافقانودعوی دایمان، په ﴿اٰمَنَّا بِاللّٰهِ﴾ کښې اودقرآن کریم له اړخه د دوئ دعوی ته غلط وئیل په، ﴿وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِيْنَ﴾ کښې ذکر شوی دی، دلته یو څو خبرو باندې دژورنظراچولوضرورت دې،

یو ① داچه په قرآن کریم کښې ذکرشوی منافقان یهودیان وؤ، چه د دوئ په مذهب کښې په الله تعالی اوپه ورځې دقیامت ایمان راوړل ثابت اومنلې شوی دی خودکوموڅیزونوعقیده ئې چې نه لرله په خپله خبره کښې ئې دهغې بیان اونکړوچه په رسول الله ﷺ ایمان راوړل اونبوت ئې منل وؤ، بیاقرآن کریم په، کښې دوئ لره ولې دروغجن اوګڼړل او ددوئ د ایمان څخه ئې انکار اوکړو خبره داده چې صرف دخپل زړه په خوښه په الله تعالی اوپه ورځ دآخرت، دایمان راوړلواقرارکول ایمان ځکه نه دې چې مشرکان هم په څه ناڅه اندازکښې الله تعالی لره منی اوټولونه لوئ قادر مطلق ئې هم منی، دهندوستان مشرکان خود [پرلو] په نوم دقیامت یونمونه هم منی، لیکن دقرآن په نظرکښې دا ایمان نه دې بلکه ایمان هغه معتبردې چې ددې ښودلې ټولوصفاتوسره وی، او په آخرت ایمان راوړل هغه معتبردی چې دقرآن کریم اورسول الله ﷺ د ښودلو شوؤ حالاتو او صفتونوسره وی.

ښکاره خبره ده چې په دې لحاظ سره دیهودونه خوپه الله ایمان وؤاونه په آخرت، ولې چې یواړخ ته دوئ حضرت عزیر ﷺ لره دالله تعالی ځوئ بولی اودآخرت په باره کښې داعقیده لری چې دوئ دپیغمبرانو ﷺ نیازبین اولاد دی څه ګناه چې کوی په آخرت کښې به دهغې تپوس ترنه وی که عذاب وی نو هغه به هم ډیرمعمولی،

**د کفراو ایمان ضابطه:** دقرآن کریم په اصطلاح کښې ایمان هغه دې چې ذکرئې د سورت بقره په دیارلسم آیت کښې راغلې دې، فرمائی: ﴿وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ اٰمِنُوْا كَمَآ اٰمَنَ النَّاسُ﴾ یعنی معیارئې دصحابه کرامو ﷺ ایمان دې په دې تول پوره به مؤمن، اودې نه بهربه مؤمن نه وی مثلاقادیانیان دختم النبوت دعقیدې منلودعوی لری خودې کښې درسول الله ﷺ دهدایاتواودصحابه کرامو ﷺ دایمان نه بالکل مختلف په ډاګه بدلون په دې غرض راولی چې دمرزاغلام قادیانی دپاره څه ځائ راوباسی، نو د قران پاك ددې تصریح مطابق دوئ هم مؤمنان نه دی، خلاصه داشوه که څوک دصحابه کرامودایمان خلاف دیوعقیدې بل څه مطلب راوباسی، اوپه دې بنادعوی دایمانداریٔ لری دمسلمانانوپه مونځ روژه کښې شریکیږی بیاهم دقرآن کریم دې تشریح مطابق هغوئ هم ددې مستحق دی چې ﴿وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِيْنَ﴾ یعنی دوئ دې آیت مبارك له مخې مؤمن نشی کیدې.

③ **یوه شبه لرې کول:** د حدیث اوفقهې مشهوره مقوله ده چه، اهلِ قبله ته کافرنه شی وئیلې کیدې، ددې مطلب هم ددغې تیرشوی آیت له مخه متعین شو چې داهلِ قبله نه یواځې مراد هغه خلق وی چې دضروریات دین څنې دهیڅ څیزمنکرنه وی ولې چې منافقانوته هم صرف په دې وجه بې ایمانه اووئیلې شوچه ایمان ئې دصحابه کرامو ﷺ دایمان مطابق نه وؤحالانکه دمسلمانانوپشان مونځونه ئې هم دهغوی قبلې ته کول مګر یوازې قبلې ته مخ کولو سره مونځ کول ددوئ د ایمان دپاره په دې بنا کافی نه شو چې ددوئ ایمان د صحابه کرامو ﷺ په شان

ددین په ټولو ضروری څیزونو باندې نه وو.

**[۴] دروغ ډېر خراب څیز دې**: دلته د منافقینو په قول ﴿اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَبِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ﴾ باندې غور اوکړئی. دا خلق د زړهٔ د کومې کافران دی او ددې باوجود هم د دروغو څخه د خپل ګمان مطابق پرهيز کوی. ځکه چې دعوی دايمان دپاره صرف دالله ﷻ او د قيامت په ورځ د ايمان ذکر کوی. دا يمان بالرسول ذکر ځکه نه کوی چې هسې نه دروغ شی. ددې څخه معلوم شو چې دروغ داسې خراب او ګنده څيز دې چې يو شريف سړې که هغه کافر وی، که فاسق وی خو هغه دروغ نه خوښوی.

**انبياؤ او اولياؤسره بدسلوک کول الله تعالى سره بدسلوک کول دی**: پورته تيرشوی آيتونو کښې دمنافقانو يوحال داهم ذکرشوچه ﴿يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ﴾ [الله تعالی سره دهوکه کوی] حالانکه هغوئ هيچرې الله سره ددهوکو کولواراده نه لرله اونه ئې داعقيده وه بلکه حقيقت دا وؤ چې دې خلقو رسول کريم ﷺ او صحابه کراموﷺ ته د دهوکه ورکولو په قصد سره بې کاره حرکتونه کول نو الله ﷻ په آيت مذکوره کښې رسول الله ﷺ او مؤمنانو سره دهوکې کول خپل ځان ته منسوب کولوسره اوښودل چې رسول ياولی دخدائ سره بداوخراب سلوک کول ګوياکښې الله تعالی سره بداوخراب سلوک کول دی اوداشان ورسره د رسول الله ﷺ لوئ شان ئې هم ښکاره کړوچه د دوئ په شان کښې بې ادبی کول داسې جرم دې څنګه چې دالله تعالی په شان کښې بې ادبی کول جرم دې.

⑥ **د دروغو وئيلو وبال**: په تيرشوی آيت کښې دمنافقانودعذاب اليم وجه، ﴿بِمَا كَانُوْا يَكْذِبُوْنَ﴾ دروغ وئيل ښودلی شوی دی سره ددې چې د دوئ د کفراو نفاق جرم ددې نه زيات وؤ، مسلمانانو سره دحسد کولواودهغوئ دسازشونوکولو جرمونه ئې هم وؤخوهرکله چې ددې ټولو لويو جرمونو بنيادی سبب دروغ وئيل وؤداټول غټ جرمونه اوګناهونه د دروغوپه سبب ترکيدل په دې وجه ئې دعذاب اليم سبب دروغ اوښودلې شواوهم داوجه ده چې قرآن کريم، دروغ وئيل بت پرستئ سره اوتړله لکه فرمائی: ﴿فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْاَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوْا قَوْلَ الزُّوْرِ﴾، ځان ساتئ دبدپرستئ، دپليتئ نه اوځان ساتئ د دروغووئيلونه،

**[۷] داصلاح او فساد تعريف او دمصلح اومفسد پيژندګلی**: پورته ذکرشوی آيتونوکښې قرآن کريم منافقانوته فرمائی چې دخپل نفاق په ذريعه،زمکه کښې فسادمه خوروئ نوهغوئ به په ډيرزورداروالفاظوکښې وئيل ﴿اِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُوْنَ﴾، په انما،لګو وسره [چه لفظ دحصردې] مطلب ئې داشوچه مونږخوصرف اصلاح کونکی يوبل هيڅ غرض مونشته خوقرآن کريم ددې په جواب کښې فرمائی: ﴿اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُوْنَ وَلٰكِنْ لَّا يَشْعُرُوْنَ﴾ [يادلرئ چې هم داخلق ورانکاری او فساديان دی خودوئ ئې شعورنه لری] دې نه دوه داخبرې معلومه شوې ① دمنافقانوحرکات حقيقتاپه زمکه کښې دفتنې فسادخورولواسباب وو، ② منافقانوبه دغه حرکات دفتنې فساد خورولوپه اراده نه کول بلکه داهم ورته معلومه نه وه چې ددې نتيجه فتنه اوفساددې لکه چې قرآن په ښکاره فرمائی: ﴿وَلٰكِنْ لَّا يَشْعُرُوْنَ﴾ وجه ئې داده چې هغه څيزونه چې فتنه، فساد ترخوريزی ځنې دهغې نه داسې دی چې هرڅوک ئې فتنه اوفسادګنړی لکه قتل، ډاکه،غلا، دهوکه، فريب، اغوا، بدکاری وغيره شوه چې هريوپوهيدنکې انسان ئې شراوفسادګنړی او هرشريف انسان تر

خان ساتي. اوځنې داسې ځيزونه دی چې په ظاهره خوځه فتنه اوفسادنه وي خودهغې په وجه دانسانانو اخلاق برباديږي اودغې بداخلاقۍ نه فتنې اوفسادونه راپورته کيږي، دغه منافقانو هم دغلا، ډاکې، وغيره ځخه به ځان ساتلو. په دې وجه ځان ته ښه په ډاډه ئې فساديان [ورانکاري] نه وئيل بلکه مصلحان ئې ځان ته وئيل.

**د فسادونو ذرائع او سد باب** خونفاق، کينه، حسداودې سره تړلې دشمنانانوسره سازشونه کول، دا ځيزونه دانسان اخلاق داسې تباه کوي چې دځناورونه ئې هم ښکته درجې ته راغورځوي او داسې کارونه شروع کوي چې ځوک شريف ئې کولوته تيارنه وي، کله چې انسان، انسانی اخلاق اوبائيلي نودانسانی ژوندپه هره شعبه کښې سراسر فسادوی اوفسادهم دومره لوئ چې نه د ځيرونکوځناورونه اميد کيدې شي اونه دډاکوانواوغلونه، ځکه چې د دوئ فساد دقانون او حکومت په زور قابوکولې شي البته قانون لره انسان جاري کوي کله چې دې پخپله انسان پاتې نشي نودقانون چې کومه طريقه جوړيږي دهغې تماشه نن په غړېدلوسترګوهرځوک، په هره محکمه اواداره کښې کتې شي، نن د دنياتمدن په ترقئ دې دزدګړې داداروجال ترکلو پورې خوردې، دتهذيب الفاظ دهرچاپه خله دی، دقانون سازئ دمجلسونوبازارګرم دې، دقانون جاري کولوبې شماره اداري داربونوروپوپه خرچ قائمې دی، د دفتري انتظاماتوزوردې خوبياهم جرمونه اوفسادونه ورځ تړورځه په مخه زياتيږي، ددې وجه سواددې نه بله نه ده چې هيڅ يو قانون پخپله چليدونکې څه مشين نه دې بلکه انسان ئې چلوَی، کله چې انسان دانسانيت نه راګوزار شو نوبيادې فسادعلاج نه په قانون سره کيدې شي نه دحکومت اومحکموپه چکر سره. په دې وجه دانسانيت دټولونه لوئ محسن رسول الله ﷺ خپله ټوله مخه دې ته راګرځولې ده چې انسان لره په صحيح شان سره انسان جوړکړې نوفسادونه، ګناهونه، او جرمونه پخپله ختميږي، نه د پوليسو زيات ضرورت پاتې کيږي او نه دعدالتونوپه دنياکښې د دومره خوريدوضرورت پيښيږي، ترڅوپورې چې ددنياپه کومه يوه برخه کښې د دوئ ﷺ په هداياتواوتعليماتوعمل کيدلو، دنياهغه امن اوامان اوليدوچه مثال ئې نه وړاندې ليدلې شوې وژاونه ددغې هداياتو او تعليماتوپريښودونه پس به اوليدې شي،

دنبی ﷺ په تعليماتو باندې دعمل کولوروح، دالله تعالی نه ويريدل دی، دقيامت دورځې دحساب کتاب ذکردې، ددې نه بغيرهيڅ يوقانون اودستوراوهيڅ يومحکمه، مدرسه، او پوهنتون انسان لره دجرمونونه نشي ايسارولې،

په ننئ دنياکښې، دچاپه لاس کښې چې دواک اختياراوکي دی، هغوئ دجرمونو دبندولو دپاره نوې نوې طريقې په فکر، سوچ کښې راولي. خوهرکله چې دالله ويرې نه په زړه دی بلکه ددې دفناکولواوختمولوپه انتظام کښې دی چې نتيجه يې تل دپاره داسې وی چې جرمونه په مخه زياتيږي اودکميدونوم نه اخلي.

### مرض بڑھتا گیا جوں جوں دوا کی

**ترجمه:** علاج کولو سره مو مرض نور هم زيات شو.

په ډاکه چې ځوک غله، بدمعاشان ډاکې ماروغيره دی دهغوئ علاج خوآسان دې مګر د انسانيت هيرونکو انسانانو فساد داصلاح په رنګ کښې وی، هغوئ زړه پورې اوزړه غولونکي اصلاحي سکيمونه هم دخلقوپه وړاندکړې اوخالص ذاتی ناکاره غرضونولره داصلاح رنګ

ورکوی، د ﴿إِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُونَ﴾ نعرې په مخه وهي، په دې وجه الله تعالى چې چرته د فساد نه منع کړې ده هغې سره دا هم فرمائيلي دي ﴿وَاللَّهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ﴾ [صرف الله تعالى په دې پوهيږي چې مصلح څوک او مفسد څوک دې]، په دې سره دې خبرې ته هم اشاره اوشوه چې د فساد او اصلاح اصل حقيقت الله تعالى پيژني چې د زړونو د رازونو او نيتونو نه هم خبردار دې او د هر عمل خواص او نتيجې ورته هم معلومې دي، په دې وجه اصلاح د پاره صرف د اصلاح نيت کافي نه دې بلکه د عمل رخ هم د شريعت په جوړ صحيح کيدل ضروري دي، ځنې وختونو کښې څه عمل پوره نيک نيتئ سره د اصلاح په اراده کولې شي خو نتيجه ئې شر او فساد ځکه وي چې طريقه کارئې د شريعت مطابق نه وي.

| |
|---|
| يَاأَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوا رَبَّكُمُ الَّذِي |
| اے \| خلقو \| عبادت کوئ \| د رب خپل \| هغه رب |
| اے خلقو د هغې پروردګار عبادت کوئ |
| خَلَقَكُمْ وَالَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿۲۱﴾ |
| چې پيدا ئې کړئ تاسو \| او هغه خلق \| چې وو وړاندې ستاسو نه \| دې د پاره چه تاسو \| پرهيزګار جوړ شئ |
| چې تاسو ئې پيدا کړې يئ او ستاسو نه پخوانئ ئې پيدا کړې دي \| چې په دې طريقه تاسو خان د عذاب نه بچ کړئ |
| الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ فِرَاشًا وَالسَّمَاءَ بِنَاءً وَأَنْزَلَ |
| هغه [رب] چې \| جوړه کړې ئې ده تاسو د پاره \| زمکه \| فرش \| او آسمان \| چت \| او وې وروله |
| الله تعالى هغه لوئې ذات دې چې زمکه ئې تاسو د پاره بستره ګرځولې ده \| او آسمان ئې د رباندې چت جوړ کړې دې \| او د آسمان |
| مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجَ بِهِ مِنَ الثَّمَرَاتِ رِزْقًا لَكُمْ فَلَا |
| د آسمان نه \| اوبه \| او راوې ويستې \| په دې سره \| هر قسم ميوې \| د پاره د خوراک \| ستاسو \| نو مه |
| [د طرفه] اوبه راليږي \| نو په هغې سره ئې ستاسو د خوراک د پاره رنګ رنګ ميوې پيدا کړې دي نو اوس مه |
| تَجْعَلُوا لِلَّهِ أَنْدَادًا وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿۲۲﴾ |
| جوړوئ الله سره \| مقابل \| او حال دا چې تاسو \| پوهيږئ \| |
| پيدا کوئ د الله تعالى سره شريکان \| حال دا چه تاسو پوهيږئ \| |

## آسان ترجمه قرآن

اې خلقو! د خپل هغه رب عبادت وکړئ چه هغه تاسو او هغه خلق پيدا کړي دي چه تاسو نه مخکښې تيره شوې دي دې د پاره چه تاسو پرهيزګار شئ ــ هغه ذات چه هغه تاسو د پاره زمکه بستره جوړه کړې ده او آسمان چت او د آسمان نه ئې اوبه راوروليې دي بيا د دې په ذريعه ئې ستاسو د خوراك د پاره ميوې راوښکلې دي لهٰذا د هغه سره شريك مه جوړوئ حالانکه تاسو (په دې ټولو خبرو) پوهيږئ.

## خلاصه تفسير

﴿ يَاأَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوا ﴾ اې خلقو عبادت کوئ ﴿ رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ ﴾ د خپل پروردګار، چا چه تاسو پيدا کړي ﴿ وَالَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ ﴾ او هغه خلق هم چه تاسو نه وړاندې تير شويدي ﴿ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴾ عجيبه نه

ده چه تاسو دوزخ نه بچ شئ [په بادشاهی محاوره کښې "عجیبه نه ده" لفظ دوعدې په موقع وئیلې شی] ﴿ الَّذِیْ جَعَلَ لَکُمُ الْاَرْضَ فِرَاشًا ﴾ هغه پاك ذات داسې دې چې جوړه ئې کړه تاسو دپاره زمکه فرش ﴿ وَّالسَّمَآءَ بِنَآءً ﴾ او آسمان چت ﴿ وَّاَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ﴾ او وارول د آسمان نه اوبه ﴿ فَاَخْرَجَ بِهٖ مِنَ الثَّمَرٰتِ رِزْقًا لَّکُمْ ﴾ او بیایئ [دنیشت د پردې نه] رابر سیره کړې په ذریعه ددې اوبو، دمیوو نه خوراك ستاسو دپاره، ﴿ فَلَا تَجْعَلُوْا لِلّٰهِ اَنْدَادًا وَّاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴾ نو اوس مه جوړوئی د الله ﷻ مقابل او تاسو خو پوهیږئ [یعنی تاسو په دې پوهیږئی چه ددې تصرفاتو د الله ﷻ نه سوا بل څوك کوونکې ندې نوبیا دالله په مقابله کښې نورو څیزونو لره معبودجوړل څنګه صحیح کیدې شی]

## معارف اومسائل

**دآیتونو ترون:** دسورت په دویم آیت کښې دهغې دعااوخواست جواب وۀچه په سورت فاتحه کښې راغلې دې یعنی ﴿ اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِیْمَ ﴾ هغه صراط مستقیم چې تاسوئې خواست کوئ په دې کتاب کښې دی ځکه چې قرآن کریم داول نه ترآخره پورې سراسر دصراط مستقیم تشریح دې.

وروستو دقرآنی هدایاتو قبلوونکی اونه قبلوونکی انسانان په دریوډلوکښې اوښودلې شو،په ړومبودریوآیتونوکښې دمؤمنانومتقیانوذکراوشوچه قرآنی هدایات ئې خپل اصل مقصدجوړکړو،وروستو په دوؤآیتونوکښې ئې دهغه ډلې ذکراوکړوچه په ښکاره ئې ددغې هدایاتو مخالفت اوکړو،وروستو دیارلسوآیتونوکښې دهغه خطرناک ټولی حالات بیان کړې شو چې په حقیقت کښې خودقرآنی هدایاتومخالف وۀمګرددنیاد ذلیلوغرضونوپه خاطر، یا مسلمانانو ته دنقصان رسولوپه خیال ئې خپل کفراومخالفت پټ کړی وۀ،مسلمانانوکښې ئې ځانونه شامل کړی وۀاوخپل ځانونه به ئې مسلمانان ښکاره کول،

**د انسانانو د تقسیم او ویش د مذهب اعتبار سره:** په دې ډول دسورة بقره ړومبوشلوآیتونوکښې دهدایت قبلولواونه قبلولوپه اعتبار،ټول انسانان په دریو ډلوکښې اوویشلې شو،په دې کښې دې خبرې ته هم اشاره شوه چې دانسانانوډلئیزاوقومی ویش،دنسب،وطن ژبې اورنګ په بنیادنه بلکه دمذهب په بنیادصحیح دې،یعنی هدایات منونکی یوقوم اونامنونکی بل قوم شوچه په سورت حشرکښې دحزب الله اوحزب الشیطن په نوم سره یادکړې شوی دی،غرض داچه دسورت بقره په ړومبوشلوآیتونوکښې دقرآنی هدایاتومنلواونه منلوپه بنیادانسانانو په درې قومونوکښې تقسیم شواودهریوځه حال بیان کړې شووروستو دې یوویشتم اودویشتم آیتونو کښې درې واړوډلوته په خطاب کولوسره هغه بلنه وړاندې کړې شوې ده دکومې دپاره چې قرآن کریم نازل شوې دې په دې کښې مخلوق پرستئ نه دمنع کیدواودیوخدائ عبادت اړخ ته په داسې اندازکښې بلنه ورکړې شوې ده چې پکښې دعوې سره دهغې واضح دلیلونه هم موجوددی چې که پکښې دمعمولی پوهې خاوندانسان هم لږشان ژورنظراوکړی هغه به دتوحیدپه اقرارکولومجبوره شی،

په ړومبی آیت کښې خطاب د ﴿ یٰٓاَیُّهَا النَّاسُ ﴾ نه شروع شو ﴿ النَّاسُ ﴾ په عربی ژبه کښې دمطلق انسان معنی ورکوی ځکه پکښې دغه ذکرشوې درې واړه ډلې داخلې شوې چې ورته خطاب داسې فرمائی: ﴿ اعْبُدُوْا رَبَّکُمُ ﴾ دعبادت معنی داده چې خپل پوره طاقت په مکملې فرمانبردارئ

کښې تیروي، دچادویرې اولوئ والې په خاطر دهغه نافرمانئ نه لرې پاتې کیږي، [روح البیان][۱]

درب لفظ دپروردگارمعنی ورکوي [چه پوره تشریح ئې تیره شوېده] ترجمه ئې داسې شوه عبادت کوئ دخپل رب، دلته د [رب] په ځائ داسماءِ حسنی څخې بل یونوم هم راوړلې کیدې شو مګرخاص په دې ځائ کښې ددې لفظ دراوړلو حکمت دادې چې په دې لنډې جمله کښې دعوې سره دلیل هم راغلوځکه چې دعبادت حقداریوائې هغه ذات کیدې شي چې دانسان دپالنې ذمه واروي چې یوې قطرې [څاڅکې] ته درجه په درجې پالنې سره ترداسې روغ موټ سم دم، اوریدونکې، لیدونکې، عقل اوادراک، والاماهرانسان جوړکړي اودهغه دبقااو ترقئ ذریعې برابرې کړي.

انسان که هرڅومره جاهل وي، خپل بصیرت ئې بربادکړې وي خوبیاهم چې غوراوکړي نوپه دې یقین کولوبه مجبوره شي چې دربوبیت [پروردګارئ] داشان سوادالله تعالی نه دبل چانشي کیدې، په انسان باندې دپالنې انعامات دکانړي تراشلی بت نه دي کړي اونه بل کوم یو مخلوق کړي دي، او دابه څنګه اوکړې شي هرکله چې ټول په خپل وجوداوبقاکښې دهغې واحدذات محتاج دي، یومحتاج دبل محتاج څه حاجت پوره کولې شي اوکه په ظاهرې ډول اوکړي نودابه هم په حقیقت کښې دهغه ذات پالنه وي کوم ذات ته چې دادواړه محتاج دي،

غرض داچه دې لفظ [رب] راوړلوسره داخبره واضحه کړې شوه چې دچا دپاره دعبادت بلنه ورکړې شوې ده دهغه نه سوابله یوهستی دعبادت مستحق هډو[دسره] کیدې نشي، په دې جمله کښې دانسانانو درې واړوډلوته خطاب دي اوهرمخاطب دپاره ددې جملې معنی اومطلب جداجدادې مثلاداچه اووئیلې شوچه دخپل پروردګارعبادت کوئ نوکفارودپاره ددې خطاب معنی داشوه چې مخلوق پرستی پریږدئ اودتوحیدلاراختیارکړئ، منافقانودپاره ئې دامعنی شوه چې نفاق پریږدئ اخلاص پیداکړئ، ګناهګارومسلمانانودپاره ئې دامعنی شوه چې ګناه نه راؤاوړئ اوکامله بندګی اختیارکړئ، متقی مسلمان دپاره ئې دامعنی شوه چې په خپل طاعت اوعبادت همیشه پاتې کیږه اوپه دې کښې د ودې کولوکوشش کوه [روح البیان][۲]

وریسې د ،،رب،، څوخاص صفتونوذکرکولوسره ددې مضمون زیات وضاحت اوکړې شو فرمائي: ﴿الَّذِي خَلَقَكُمْ وَالَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ﴾ یعنی ستاسوپروردګارهغه دې چې تاسوئې پیداکړئ اوهغه خلق هم چې تاسونه مخکښې تیرشوي دي، په دې کښې د رب هغه صفت ښودلې شوې دې چې دالله تعالی نه سواپه بل مخلوق کښې ئې دموندلو، دهیچاوهم اوګمان هم نشي کیدې، یعنی دنشت نه شته کول، بیادمورپه ګیډه په تیاراوګندګوکښې داسې یوخکلې، ښائسته، پاک اوصفاانسان جوړول چې فرښتې ئې هم په پاکئ رشک کوي، داسوادذات حق نه دبل چاکارکیدې شي؟ چه پخپله دچامحتاج نه دې اوټول دده محتاج دي،

په دې آیت کښې ﴿خَلَقَكُمْ﴾ سره د ﴿وَالَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ﴾ په اضافه راوړلویوخوئ دا او ښودل چې ستاسو، اوستاسودپلارانونیکونوبلکه دټولوانسانانوپیداکونکې هم دغه پروردګار دې، یواځې ﴿مِن قَبْلِكُمْ﴾ فرمائیل او ﴿مِنْ بَعْدِكُمْ﴾ نه فرمائیل دې خبرې ته اشاره ده چې امت محمدیه

---

۱) روح البیان: ۱/ ۵۱

۲) تفسیر روح البیان تحت هذه الآیة: ۱/ ۵۱

علی صاحبها الصلوة والسلام نه پس څه بل امت یا ملت به نه وی ځکه چې خاتم النبیین ﷺ نه پس نه به څوک بل پیغمبر رالیږلې شی اونه به ئې څه بل نوې امت وی،

وروستي ددې آیت آخری جمله ده ﴿لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ﴾ یعنی په دنیاکښې دګمراهئ اوپه آخرت کښې دعذاب نه دخلاصی موندلو امید تاسولره په هغه صورت کښې کیدې شی چې توحید اختیار کړئ اوشرک نه منع شئ،

بیا وروستي آیت کښې د رب دنوروصفتونوبیان په داشان شوې دې ﴿الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ فِرَاشًا وَالسَّمَاءَ بِنَاءً وَأَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجَ بِهِ مِنَ الثَّمَرَاتِ رِزْقًا لَكُمْ﴾ یعنی رب ستاسو ،هغه ذات دې چې تاسودپاره ئې زمکه فرش اوآسمان چت جوړکړې دې اودآسمان نه ئې اوبه راوروولی دی،بیائې په دغه اوبودعدم دپردې نه دمیوؤخوراکه ستاسودپاره راؤښکله. ددې نه په وړاندې آیت کښې دهغه انعاماتوذکروؤچه دانسان د ذات سره تړون لری اوپه دې آیت کښې دهغه انعاماتو ذکر دې چې دده خواؤشاڅیزونوسره تعلق لری،یعنی په ړومبی آیت کښې د انفسی اوپه دویم آیت کښې د آفاقی نعمتونوذکرکولو سره ئې دټولونعمتونواحاطه اوفرمائیله.دآفاقی نعمتونو په لړئ کښې دزمکې دپیداکولوذکردې چې انسان دپاره ئې فرش جوړ کړو ،دابوپه شان نرمه هم نه ده چې پردپارسه څه ایساردې [تینګیدې] نشی اونه داوسپنې اوکاڼړی پشان سخته ده چې خپل ضرورت دپاره ئې استعمالول آسان کارنه وی بلکه دزیات سخت اونرم ترمنځه ئې داسې جوړه کړه،چه دانسان دژوند په عاموضروریاتوکښې پکارراوستې شی،

دفراش دلفظ نه دالازمیږی چې زمکه دې ګرده [غونډه] [ګردې] نه وی ځکه چې دزمکې داعظیم الشان غونډسکه [بال] سره دګړدوالی نه په کتوکښې اوږده اوپلنه سطحه ښکاری او دقرآن کریم عام طرز[طریق] دادې چې دهرڅیزهغه شان بیانوی چې هرکتونکې، عالم، جاهل، ښارې، کلی وال پرې پوهیږی.

دویم نعمت دادې چې آسمان ئې ښائیسته کړې شوې اوزړه خوشحالونکې چت جوړ کړو، دریم نعمت دادې چې آسمان نه ئې اوبه راو وروولې دآسمان نه داوبوراوورولودپاره داضروری نه ده چې دوریځې واسطه دې ترمنځه نه وی بلکه محاوره کښې پورته نه هرراتلونکی څیزته دآسمان نه راتلونکې وئیلې شی،چنانچه پخپله قرآن کریم په ګڼرومقاماتوکښې دوریځونه داوبو ورولوذکرکړې دې مثلاً ارشاد دې،

﴿ءَأَنْتُمْ أَنْزَلْتُمُوهُ مِنَ الْمُزْنِ أَمْ نَحْنُ الْمُنْزِلُونَ﴾ آیادباران اوبه دسپینووریځونه تاسوراښکته کړی دی اوکه مونږه ئې راښکته کونکی یو بل ځائ کښې فرمائی: ﴿وَأَنْزَلْنَا مِنَ الْمُعْصِرَاتِ مَاءً ثَجَّاجًا﴾ مونږراښکته کړې اوبونه ډکووریځونه په لپاوبه.

څلورم نعمت په دې اوبو سره میوې پیداکول دی چې دانسان خوراکه وی، دپروردګار عالم، څلوردغه صفاتوکښې ړومبئ درې خبرې خوداسې دی چې پکښې دعمل اوکوشش خولاځه کوی چې دده د وجودپه کښې هم دخل نشته،دعاجزانسان نوم نشان هم نه وؤچه زمکه آسمانونه پیداشوی وؤپه دې باره کښې خود یوناپوه جاهل شک هم نشی کیدې چې الله تعالی نه سواداکارونه به بل مخلوق،بت یاانسان وغیره کړی وی،البته زمکې نه دمیوؤاومیوؤنه انسانی خوراکې راؤښکلوکښې چاساده او کم عقل بنده ته داشبه کیدې شوه چې دادانسان د

عمل کوشش او دانشمندانه تدبیرونو نتیجه به وی ولې چې انسان دزمکې په نرمولو سمولو، قلبه یعنی یوې کولو، پکښې تخم اچولو بیاددې په زرغونولو، ددې په پالللو حفاظت کولو کښې خواری محنت کوی، خو قرآن کریم په دویم آیت کښې داخبره هم صفاکړه چې دانسانی کوشش، خوارئ وغیره داونې [د درختی] په زرغونولو یاددې په پالنه اوساتنه کښې بیخی څه دخل نشته بلکه دده دټولو تدبیرونو اومحنتونو حاصل دومره قدرې کیدې شی چې دې ترخندونه بیرته کوی اوبس، هغه داسې چې زرغونه سمه کړی، وده ښه اوکړی، میوه ښه اونیسی، مطلب داچه انسان صرف دپیداکیدونکې اونې دلارې نه خنډونونه لرې کولې شی، په نورڅه کښې ئې هیڅ دخل نشته، زرغونول، لویول، میوه پکښې لګول، وغیره صرف دالله کارونه دی، کروندې دپاره زمکه تیارول، بې کاره بوټې ترلرې کول، للون اوګوډ [پوجی] پکښې کول، اوبه خورئ کول، سره ورکول [انبار ورکول] وغیره دکرونده ګرروميي کاردې، خو زرغونول، پکښې پاڼې ګلونه غوړګې، غوټۍ اومیوې پیداکول صرف دالله کاردې، د کروندګر دویم کارپه زمکه کښې تخم اچول، بیائې حفاظت کول، دراټو کیدونکې تیغ دګرمۍ، یخنۍ اوڅاروونه بچ کول دی، خو نور کارټول دالله دې څنګه موچه پورته خبره سپینه کړه اوبه دالله تعالی پیداوښت دې د کروندګر کارصرف دادې چې دغه اوبه دالله تعالی پیداکړې اونې ته مناسب وخت اومناسب مقدار کښې اورسوی، چنانچه دامضمون قرآن کریم داسې بیان کړې دې: ﴿أَفَرَءَيْتُم مَّا تَحْرُثُونَ ۝ ءَأَنتُمْ تَزْرَعُونَهُۥٓ أَمْ نَحْنُ ٱلزَّٰرِعُونَ ۝﴾ [راته اوښائې چې څه تاسو کرئ هغه تاسو راټوکوئ یائې مونږه رازرغونوؤ.

دقرآن کریم، ددې سوال جواب د انسان سره سوا ددې نه بل نشته چې دا الله تعالی رازرغونوی، ددې ټول تفصیل نه واضحه شوه چې څنګه دزمکې آسمانونو پیداکولو کښې اودبریښنااو باران په پیودلی سلسله کښې دانسان دسعی اومحنت هیڅ دخل نشته داشان اونې، فصل، ګلونه میوې پیداکولو اودې نه دانسان غذا [خوراکه] تیارولو کښې دانسان هیڅ دخل نشته دانسان دخل په کښې صرف برائ نام دې چې بیابیامو واضح کړو.

خلاصه ئې داشوه چې دې آیت کښې دالله تعالی څلورداسې صفتونه ذکرکړې شوی دی چې دده نه سواپه بل هیڅ یومخلوق کښې نشی موندې، هرکله چې انسان لره دنیشت نه شته کول اوداسې نورټول کارونه چې تفصیل سره پورته ذکرکړې شو، دالله تعالی نه سوادبل هیچاکارنه دې نوانسان لره په دې خبره یقین راوستونه سوابل هیڅ صورت نشته چې دعبادت او فرمانبردارئ لائق اومستحق هم یوائې داذات اوګڼړی، هرکله چې دانسان دشته کولو اوبقاټول انتظام الله تعالی کړې دې نوداځومره غټ ظلم دې چې غافل انسان دِ دنوروپه درشلو در ګاهونو سجدې کوی، دبل چابندګئ کولو کښې مشغول شی:

نعمت راخورده عصیان میکنم　　نعمت ازتومن بغیري می تنم

[نعمت ئې خورم نافرمانی ئې کوم، نعمت ستادې خو نسبت ئې بل ته کوم]

الله تعالی انسان لره دټول مخلوق سرداردې دپاره جوړکړې وڅه ټول کائنات دې د ده خدمت کوی اودې دیوائې د رب کائنات په خدمت اوعبادت کښې مشغول اوسی اوبل هیچاته دې ګوری هم نه چې دارنګ اختیارکړی،

بګذرازیادګل ګلبن که هیچم یادنیست　　درزمین وآسمان جزذکرحق آبادنیست

دګل اوګل بوټی یادګیرنه پریږده ولې چې هیڅ مې یادنه دی... په آسمان اوزمکه کښې سواد

الله تعالى ديادونه بل څه آبادنه دي خوچه غافل انسان دخپلي بيوقوفئ له کبله الله تعالى هير کړونو ديوذات الله تعالى دغلامئ په ځائ داوياکړوړوديوتاگانوغلام شو.

ایک در چھوڑ کے ہم ہو گئے لاکھوں کے غلام　　ہم نے آزادی عرفی کا نہ سوچا انجام

**ترجمه:** د يو در پريښودو باندې د لکهونو شوؤ غلامانو، مونږ د عرفئ آزادئ انجام ته فکر او نه کړو.

دغيرودغلامئ نه خلاصي ورکولودپاره ددې آيت په آخرکښې الله تعالى ارشاداوفرمائيلو ﴿فَلَا تَجْعَلُوْا لِلّٰهِ اَنْدَادًا وَّاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ﴾ نو اوس خومه جوړوئ دالله تعالى مقابل، اوتاسوخوپوهيږئ، هرکله چې په دې پوه شوئ چې الله تعالى دنشت نه شته کړئ ستاسودپالنې ټول انتظامات ئې اوکړل، ديوڅاڅکى نه ئې ښکلى اوښائيسته انسانان جوړ کړئ اوترآخره پورې ئې تاسودپاره هرقسمه انتظامات مکمل کړل [چه په تفصيل سره بيان شوا نوالله تعالى نه سوا، دعبادت اوبندګئ بل څوک کيدې شي؟چه دالله تعالى مقابل، حصه داريا شريک ئې جوړ کړلې شي، په لږشان فکرکولوسره هم داخبره واضحه کيږي چې هرکله داټول کارونه اوانتظامونه الله تعالى کوي نوددې نه به زيات ظلم، اوبيوقوفي، بې عقلي به بله کومه وي چې دالله تعالى ذات پريږدى، دهغه مخلوق پورې زړه اوتړي اوپه مخلوق تکيه اوکړي.

آنا نکه بجزروی تو جائے نگر انند　　کوته نظر انند چه کوته نظر انند

[هغه چې ستادمخ څخه سواد ګرځيدو ځائې ګنړي، تنګ نظري ئې څه عجيبه تنګ نظري ده]

خلاصه داشوه چې دې دوؤآيتونوکښې دهغه څه بلنه ورکړې شوې ده چې دټولوآسماني کتابونواوټولوپيغمبرانودليږلواصل مقصددې، يعنى ديوائې، الله عبادت اوبندګى ده چې نوم ئې توحيددې،

داهغه انقلابى نظريه ده چې دانسان، ټولواعمالو، حالاتو، اخلاقواومعاشرت باندې ژور اثر غورځوي، ځکه چې په يقين کولوسره چې دټولومخلوقاتو، خالق، مالک اودټول جهان انتظام سنبالونکې اوپه ټولوځيزونو باندې قادرصرف يوذات دې، دده دارادې اورضانه بغير هيڅ ذره هم نه حرکت کولې شي اونه چاته ضرريافائده رسولى شي نوپه هرمصيبت، راحت، تنګئ، اوفراخئ کښې به دده مخه صرف يوذات اړخ ته وي اوداسې بصيرت به ورته حاصل شي چې دهغې په ذريعه به داحقيقت اوپيژنى چې د اسبابودالړئ، په حقيقت کښې يوپرده ده چې شاته ئې د قدرت لاس کارکوي،

برق اوبړاس ته سرښکته کونکې، ديورپ عقلمندان که داحقيقت اوپيژني نوورته به معلومه شي چې دې رڼرا او بړاس څخه وړاندې هم څه داسې حقيقت شته چې دهغې پشان زوراوطاقت په برق اوبړاس کښې نشته بلکه دټولوطاقتونواوقوتونوسرچينه ددغه ذات حق په لاس کښې ده چاچه دابرق اوبړاس پيداکړو، په دې خبره پوهيدلودپاره دبصيرت ضرورت دى، چاچه داحقيقت اونه پيژندوپه دنيا که هغه ډيرلوئ سائنسدان پوه اوعقلمندفلاسفرشميرلې شي خودده مثال دهغه کلې وال او صحرائى بيوقوف پشان دې چې داورګاډى په يوسټيشن ئې اوليدل چې دګارډپه لاس په شنه جنډاخوځولو [خورولو] ګاډې روان شواوپه سره جنډه خوځولوئ ګاډې اودريدونوهغه دغه جنډوته په سجده پريوتودائ اوګڼړل چې دومره غټ اودروند ګاډې دغرهومره روانول اواودرول ګوياکښې دجنډو کاردې ځکه چې دنيادداسې

کس په بيوقوفئ خاندی چې دې ددې خبرې نه هم خبرنه دې چې جنډائي صرف يونخښه ده او کار په حقيقت کښې د ډرائيوردې چې ريل ګاډې روانوی او اودروی ئې بلکه دده کارهم نه دې دمشين دپرزو کاردې، اوڅوک چې نورهم ژورنظراوکړی نودې خوائې هم نظرلاړشی چې په حقيقت کښې ددې چلول نه دډرائيورکاردې اونه دانجن دمشين دپرزوکار دې بلکه اصل طاقت دهغه اسټيم دې چې انجن کښې دننه پيداکيږی، داشان مؤحدهم په دې ټولوعقلمندوپورې خاندی چې لږشان تيزنظراوکړې شی اوژورنظرنه کاروا غستې شی نو معلومه به شی چې بړاس، اوراوبه هم څه شې نه دې، طاقت اوقوت دهغه ذات دې چې اوبه اواور ئې پيداکړې دې اوهم دده په اراده اوحکم دا ټول څيزونه خپل خپل فرض اداکوی

خاك و باد وآب وآتش بنده اند　　بامن وتومرده ، با حق زنده اند

خاؤره، هوا او ا وبه او هور دا ټول بندګان دی، څما او ستا په نزد خو مړهٔ دی خو دالله ﷻ په نزد ژوندی دی.

**دچاعمل دهغه دنجات اوجنت يقيني سبب نه دې:** ﴿لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ﴾ په دې جمله کښې د ﴿لَعَلَّ﴾ لفظ داميدپه معنی راځی اوپه داسې موقعوئيلې شی چرته چې دفعل واقع کيدل يقينی نه وی، د ايمان اوتوحيدپه نتيجه کښې دالله تعالی دوعدې په جوړ، جنت حاصليدل خلاصې يقينی دې، ليکن ددغه يقين څيز، داميدپه عنوان سره بيانول داحکمت لری چې دانسان هيڅ يو عمل پخپله دخلاصی اودجنت قيمت نشی جوړيدې بلکه ددې اصل سبب دالله تعالی فضل دې دايمان راوړلواودعمل کولوتوفيق ورکول ددې فضل خداوندی يوه نخښه ده اوعلت نه دې،

**يواځې دتوحيدعقيده دنياکښې دامن اوامان سکون اواطمينان ضمانت ورکوی:** د توحيد عقيده چې داسلام دټولونه رومبئ بنيادی عقيده ده، دايواځې يونظريه نه ده، بلکه په صحيح معنی کښې دانسان دجوړولويواځينئ ذريعه ده، چه دانسان ټول مشکلات پرحل کيږی اوهرحالت کښې انسان دپاره دپناه ځائ اوپه هرغم اوفکرکښې دده غمخواره ده، څکه چې دتوحيدعقيدې حاصل دادې چې دعناصروموجوديدل اوختميدل اوپه دې کښې هرقسم بدلون راتلل يواځې ديوهستئ په اراده اړه لری اودهغه دحکمت دظاهريدوځائ دې.

ہر تغیر ہے غیب کی آواز　　ہر تجدد میں ہیں ہزاروں راز

[هر تغير دې د غيب آواز په هر تجدد کښې دې په زرګونو رازونه]

ظاهره ده چې کله چې داعقيده دچاپه زړه اودماغوکښې مضبوطه کښېنی، اودهغه حال جوړشی نوهم دادنياورله جنت جوړيږی ټولې جګړې اوفسادونه ختم، دهر فساد بنيادونه به وران ويجاړشی څکه چې دهغه په وړاندې داسبق وی،

ازخدادان خلافِ دشمن ودوست　　که دل هر دودرتصرفِ اوست

هم دالله تعالی له اړخه ګڼړه د دوست دشمن خلاف څکه چې ددواړوزړونه دده په قبضه کښې دی ددې عقيدې خاوند، دټولې دنيانه بې پروا، دهرخوف اوخطرنه په امن ژوندتيروی چې حال ئې داوی.

موحد چه برپائے ریزی زرش　　چه فولادهندی نهي برسرش

امید و هر اسش نباشد زکس　　همین است بنیاد توحید بس

دمؤحد په خپو کښې که سره زرشيندې اوکه هندي فولادي توره ئې په سراړدې دهغه دهيچا نه طمعه او ويره نه وي هم دا دتوحيد بنياد دې نه چې نورڅه لاإلهَ إلاالله ته دتوحيد کلمه وئيلې شي خو يواځې په ژبه دتوحيد اقرارکول پوره نه دی،ترڅوچه دزړه دا خلاصه ددې يقين خپلې مخې ته رانولی څکه چې توحيد ،يوالله ليدل دی نه چې يوالله وئيل دی[1].

دتوحيد کلمه لاإلهَ إلاالله ويونکی دکروړونو په شمير کښې نن په دنياکښې موجود دی او دومره دی چې چرې هم دومره نه وؤخود دوئ توحيد يواځې دژبې دې دتوحيد پوره رنګ په دوئ ختلی نه دې که دا رنګ پرېپورته ختلې وې نوحال به ئې دپخوانو بزرګانو پشان وؤنه به څه يوډيرلوئ طاقت،دوئ په رعب کښې راوستې شو اونه به ګڼرشميرقومونو په دوئ څه اثرغورځولې شو،نه به څه لوئ سلطنت اودولت د دوئ زړونه،دحق خلاف خپل ځان ته راښکلې شو،يوپيغمبربه راؤلاړشو،ټولې دنياته به ئې په ډاګه چيلنج ورکړوچه تاسوزماهيڅ نشئ کولې، ﴿ ثُمَّ كِيْدُوْنِ فَلَا تُنْظِرُوْنِ ﴾[2] انبياء عليهم السلام صحابه رضي الله عنهم اوتابعين رحمهم الله چې په لږه موده کښې په دنياخواره شو د هغوئ طاقت اوقوت ددې حقيقي توحيدپه اډانړه او بنياد قائم ؤ،الله تعالى دې مونږ ټولو مسلمانانو ته دا دولت نصيب کړي،آمين.

**دمحمد ﷺ د پيغمبرئ ثابتول دقرآني اعجازپه رڼا کښې**

وَاِنْ كُنْتُمْ فِيْ رَيْبٍ

| اوکه چرې | يئ تاسو | په شک کښې

| اوکه ستاسو د هغه کتاب په حقله

مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلٰى عَبْدِنَا فَاْتُوْا بِسُوْرَةٍ مِّنْ مِّثْلِهٖ

د هغه کتاب نه | چې نازل کړې دې مونږ | په بنده خپل باندې | نوراوړئ | يو سورة | پشان ددې

څه شک شبه پاتې وی | چې مونږ خپل بنده | محمد ﷺ | باندې نازل کړيدې | نو تاسو هم ددې پشان يو وړوکې سورة راوړئ

وَادْعُوْا شُهَدَآءَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ

او راوغواړئ | ملګری مددګاران خپل | ماسوا دالله نه | که چرې | يئ تاسو | رښتينی |

او د يو وړکوټی سورت پشان جوړولو کښې | بې دالله نه نور ټول خپل مددګاران راؤبلئ که تاسو رښتونی يئ

فَاِنْ لَّمْ تَفْعَلُوْا وَلَنْ تَفْعَلُوْا فَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِيْ وَقُوْدُهَا

خوکه | اونه کړو تاسو داکار | اوهرګز نې نشئ کولې | نو اويريږئ | د وورنه | هغه | چې خشاک دهغې

اوکه تاسو داکار اونکړې | او بالکل به نې اونه کړې شئ | نوځان دهغه اور نه بچ اوساتئ چې دهغې خشاک

النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ اُعِدَّتْ لِلْكٰفِرِيْنَ

خلق دی | اوکانړی | چې تيار شوې دې | دپاره د کافرانو

| کافر | خلق اوکانړی [بتان] دی | دغه اور د کافرانو دپاره تيار شوې دې |

---

[1] ترجمه: د خدا توحيد يو کړل دی، يو ويل نه دی.
[2] ترجمه: بيا زما خلاف څه سازش اوکړی او ماته مهلت مه راکوی.

## آسان ترجمه قرآن

او که چرې تاسو ددې (قرآن) په باره کښې ذره غوندې هم په شك کښې یئ چه کوم مونږ په خپل بنده (نبي) باندې رالیږلې دې نو ددې پشان یو سورت راوړئ او که چرې تاسو رېښتینې یئ نو د الله نه سوا خپل ټول مدد ګاران راوبلئ۔ بیا هم که چرې تاسو دا کار ونکړئ او یقیناً چرې هم نه شئ کولې نو وویرېږئ د هغه اور نه چه د هغې خشاك به بنیادم او کانړي وي او هغه د کافرانو دپاره تیار کړې شوې دې۔

## خلاصه تفسير

﴿وَاِنْ كُنْتُمْ﴾ که تاسو یئ ﴿فِيْ رَيْبٍ﴾ په څه شك کښې ﴿مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلٰى عَبْدِنَا﴾ ددې کتاب باره کښې چه مونږ نازل کړې دې په خپل خاص بنده باندې نو بښه ده ﴿فَاْتُوْا بِسُوْرَةٍ﴾ بیا تاسو جوړ کړئ څه قدرې ټکړه ﴿مِّنْ مِّثْلِهٖ﴾ چه ددې سره برابرے خوری [ځکه چه تاسو هم عربی ژبه باندې پوهېږئ او ددې په نظم اونثر کښې ماهر ئے او پیغمبر ﷺ په دې کښې څه خواری نه ده کړې، که تاسو سره ددې نه دقران کریم دیوے ټکړې په مثال جوړ نه کړې شو نو که انصاف اوکړئ نو سمدستی به درته ثابته شي چه دا معجزه د الله ﷻ له طرفه ده او محمد ﷺ د الله ﷻ پیغمبر دې] ﴿وَادْعُوْا شُهَدَآءَكُمْ﴾ او راوبلئ خپل شریکان ﴿مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ [چه] د الله [نه مو] بیل [بیل د ځانه جوړ کړي دی] ﴿اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ﴾ که تاسو رښتونی ئے ﴿فَاِنْ لَّمْ تَفْعَلُوْا﴾ بیا که دا کار مو اونه کړو ﴿وَلَنْ تَفْعَلُوْا﴾ او تر قیامته یئ هم نشی کولے ﴿فَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِيْ﴾ نو بچ اوسئ د دوزخ نه ﴿وَّقُوْدُهَا النَّاسُ﴾ چه خشاك ئے بنیادم ﴿وَالْحِجَارَةُ﴾ او کانړی دی ﴿اُعِدَّتْ لِلْكٰفِرِيْنَ﴾ تیار ساتلے شوې دې د کافرانو دپاره.

## معارف او مسائل

**دآیتونو ترون او د مضمون خلاصه:** دا د سورت بقره درویشتم او څلیریشتم آیت دې ددې نه وړاندې دوؤ آیتونو کښې د توحید ثبوت وؤ، په دې دواړو آیتونو کښې د محمد ﷺ د پیغمبرئ ثابتول دی، دقرآن کریم د راؤړلی شوی هدایت دوه اډانړې او ستنې دی، ① توحید او ② رسالت، په ړومبو دوؤ آیتونو کښې الله تعالی د څه خاصو څیزونو ذکر کولو سره توحید ثابت کړې وؤ، او س په دې دوؤ آیتونو کښې الله تعالی خپل کلام پیش کولو سره د محمد ﷺ پیغمبری ثابته کړې ده، د دواړو د ثابتولو طریقه یوه ده هغه دا سې چې ړومبو آیتونو کښې څه داسې کارونه ذکر شوی وؤ چه الله تعالی نه بغیر بل هیچا نشو کولې، مثلاً، زمکه، آسمان، پیدا کول، آسمان نه اوبه رابنکته کول او ابو سره ګلونه او میوې پیدا کول،

او ددې دلیل جوړولو خلاصه ئې دا وه چې هرکله دا کارونه سوا د الله تعالی نه بل څوک نشی کولې نو دعبادت حقدار هم سوا دده نه بل څوک نشی کیدې، او په دې دواړو آیتونو کښې او س داسې کلام پیش کړې شوې دَې چې دا الله تعالی نه سوا د بل چانشی کیدې، او هیڅ یو انسان ئې ځانله یا په ګډه مثل او مثال نشی راؤړلې، څنګه چې دَزمکې آسمان د جوړښت د اوبو راورولو او په دې سره بیا د ګلونو او میوؤ راویستلو نه د انسانی طاقت پاتې راتلل ددې دلیل وؤچه دا کار ونه یواځې د الله تعالی دی، دغه شان د کلام الهی د مثل یا مثال راؤړلو نه د ټول مخلوق عاجز راتلل هم ددې خبرې دلیل دې چې دا کلام یواځې د الله تعالی دې د بل هیڅ مخلوق نه دې، قرآن کریم په دې آیت کښې د ټولې دنیا انسانانو ته په خطاب کولو سره چیلنج ورکړو چه که

تاسو داکلام د الله تعالى نه بلكه د چا انسان كلام گنړئ نو بيا تاسو خو هم انسانان ئي پكاردي چې تاسو هم داسې كلام پيش كړې شئ، ليكن پوره كلام خولا څه كوئ ددې پشان يو وړه ټكړه خو پيش كړئ او په دې كښې تاسو لره دا آسانتيا هم دركولې شي كه يواځې څوك انسان داكارنشي كولې نو دټولې دنيا خپل مرستيالان او امداديان راجمع كړئ،يو غالى كانفرنس اوكړئ او ددې قرآن ديو وړكوټى سورت مثال خو پيش كړئ.

بيائ په بل آيت كښې دا غيرت وركړو چه داكارنشي كولې،چه نه ئي شئ كولې او خپله ځان بې وسه گنړئ نو داددې خبرې صفادليل دې،چه داد داسې هستئ كلام دې چې كامل قدرت ئي د ټولو د پاسه دې،چې په هغه باندې ايمان نه راوړل،دخپله لاسه،ځان له جهنم د اوسيدو ځائې جوړول دى،نو دجهنم نه ځان ساتئ.

**د نورومعجزو په مقابله كښې د قرآن پاك د تخصيص وجه:** حاصل دكلام داچه په دې دواړو آيتونو كښې قرآن كريم لره د رسول الله ﷺ يوه اعلى معجزه اوښودلې شوه او دهغوئ ﷺ دپيغمبرئ ثبوت پيش كړې شو،هركله چې معجزې درسول الله ﷺ بيشميره دى خودلته،په علمى يوه لويه معجزه [قرآن] باندې بس والى كولو سره دا اوښودلې شو چه دهغوئ ﷺ دټولونه لويه معجزه قرآن كريم دې،اودې معجزې ته،دنوروانبياء ﷺ دعامومعجزو په مقابله كښې داخصوصيت حاصل دې چې دادنورو پيغمبرانو ﷺ دمعجزاتو په شان داسې نه ده چې هغه پيغمبر به دنيانه سفراوكړو نو معجزه به هم ورسره ختمه شوه بلكه دامعجزه نه ختميدونكې او ترقيامته پاتې كيدونكې ده.

**قوله تعالى:** ﴿وَاِنۡ كُنۡتُمۡ فِىۡ رَيۡبٍ﴾ په اردو او پښتو كښې د ﴿رَيۡبٍ﴾ ترجمه شک كولې شى،خو امام راغب اصفهانى رحمه الله فرمائى چې ريب په حقيقت كښې هغه تردد او وهم ته وائى چې هيڅ بنيادنه لرى او په لږشان فكركولو سره دمنځه اوځى په دې وجه قرآن كريم د ريب نفى داهلِ علمونه كړې ده اگرچه غيرمسلم وى لكه چې فرمائى:﴿وَلَا يَرۡتَابَ الَّذِيۡنَ اُوۡتُوا الۡكِتٰبَ وَالۡمُؤۡمِنُوۡنَ﴾ په دې وجه دسورة بقره شروع كښې دقرآن كريم باره كښې فرمائى ﴿لَا رَيۡبَ فِيۡهِ﴾ په دې كښې دشک كولو ځائې نشته او په دې آيت كښې فرمائى [كه تاسو په شک كښې ئي]

حاصل دخبرې داشو چه اگرچې قرآن كريم د واضحو معجزانه دليلونو په بناد څه شک ياتردد ځائ نه دې ليكن ستاسودنا وافقيت له كبله موكه بيا هم څه تردد پكښې وى نو واوړئ ﴿ فَاۡتُوۡا بِسُوۡرَةٍ مِّنۡ مِّثۡلِهٖ ﴾ دسورت معنى څه محدوده ټكړه ده داد قرآن كريم هغه خاص برخې ته وئيلې شى چې دوحى په ذريعه ځانگړې او بيله كړې شوې وى

په قرآن كريم كښې ټول څوارلس دپاسه سل سورتونه دى چې لوئ واړه پكښې شته دې دلته سورة بغير الف لام نه راوړو كښې دا اشاره ده چې وړكوټى نه وړكوټې سورت هم په دې حكم كښې شامل دې،معنى ئې داده كه تاسو بيا هم په دې كښې تردد كوئې چې قرآن كريم دالله تعالى كلام نه دې او دا مو خيال دې چې گوندى دادرسول الله ﷺ يادبل انسان جوړكړې شوې دې نو ددې فيصله په ډيرې آسانئ سره داشان كيدې شى چې تاسو هم ددې ټولونه ديو وړكوټى [كشنى] سورت پشان راوړئ كه دې كښې كامياب شوئ نو حق لرئ چې قرآن كريم ته دانسان كلام اووائې اوكه دې نه پاتې راغلئ نو اوگنړئ چې دانسان دطاقت نه بهر خالص دالله تعالى كلام دې،

**یوه شبه او دهغې جواب:** دلته خو چاداسي وئیلې شو چه زمونږ پاتې راتلل ددې خبرې دلیل نشي جوړیدې چې ټول انسانان دپاتې راشي کیدې شي چې بل څوک بنیادم یاد دوئ یوه ډله داکار او کړی په دې وجه ئې ارشاد او فرمائیلو ﴿ وَادْعُوْا شُهَدَآءَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ ﴾ شُهَدَآءَ د شاهد جمع ده چې معنی ئې حاضرده ګواه ته هم شاهد ځکه وئیلی شی چې عدالت کښې دده حاضریدل ضروری وی،دلته دشهداء نه مراد یا خو عام حاضرین دی،مطلب داچه په دنیاکښې دټولو موجود حاضرینونه چې تاسو په دې کار کښې چانه مددغواړئ نواغستې شئ یاترمراده دوئ هغه بتان دی چې دقیامت په ورځ دوئ د هغه بتانو دسفارش کولوځان دپاره عقیده لری.

وروستي آیت کښې دوئ او ویرولې شو که داکار موا و نکړو او هیڅ کله یې هم نشی کولې نو بیا د جهنم دداسې اورنه د ځان ساتلو انتظام اوکړئ چې سکروټې به ئې بنیادم اوکانړی وی او ستاسو پشان دا نکار کونکو دپاره تیاکړې شوې دې اوددې جملې په مینځ کښې ئې کیدونکې واقعه هم داسې ذکرکړه ﴿ وَلَنْ تَفْعَلُوْا ﴾ یعنی که تاسوځان ځانله یاپه شریکه زوراولګوئ بیاهم ددې دمثال جوړولونه پاتې راځئ،

که غوراوکړې شی نو د اسلام اوقرآن هغه مخالفین چې ددې غورځولو او ورکولو پسې شوی وۀ په دې کوشش کښې خپل ځان،مال،آبرو،او اولاد،هرڅه قربانولو دپاره تیارۀو،هغوئ ته دا آسانه موقعه ورکولې شی چې دقرآن دټولونه دوروکوټی سورت په مثال جوړکړی هله خپل مطلب کښې کامیابیدې شی اوپه دې وئیلوسره د دوئ غیرت راپورته کولې شی چې هیڅرې به داکار اونکړې شئ خو ټول قوم کښې هیڅوک هم ددې کاردپاره رامخې ته نه شو، نو دخپلې عاجزئ اودقرآن کریم دالله تعالی دکلام کیدوددې نه زیات بل څه اقرار اوثبوت کیدې شی؟معلومه شوه چې قرآن کریم درسول الله ﷺ داسې ښکاره معجزه ده چې دټولو سرتیزو او سرکشو خلقو خټونه ئې راښکته کړل.

**قرآن کریم ترقیامته پورې پاتې کیدونکې یوۀونډئ معجزه ده:** دټولو انبیاء ﷺ معجزې به یواځې دهغوئ ترژونده پورې وې خو دقرآن معجزه درسول الله ﷺ دوفات نه پس هم داشان قائمه ده چې یوادنی اوکم ترمسلمان هم دټولې دنیادعلم اوعقل خاوندانوپه وړاندې ښه په چغه دادعوی وړاندې کولې شی چې ددې مثال نه چاوړاندې پیش کړې شواونه ئې بیاپیش کولې شی،که چاکښې همت وی راواړندې دی شی،مفسر دجلالین،شیخ جلال الدین سیوطی ﷫ په خپل کتاب خصائص کبری کښې درسول الله ﷺ د دوۀ معجزو باره کښې دحدیث شریف په حواله لیکلی دی چې دا ترقیامته پورې باقی دی،یو دا قرآن کریم معجزه،بله داچه رسول الله ﷺ نه ابوسعید خدری ﷛ تپوس اوکړو،یارسوالله :دحج په ورځو کښې په دریۀ جمروپه لاکهونو خلق درې ورځو پورې په مخه دکانړو ګیټکۍ او شګې اولی 'ددې ګیټکو او شګو اوچتونکې [الرې کونکې] هم څوک نه وی،اوداویشتلې ګیټکۍ بیاویشتل هم منع دی ځکه خو هرحاجی ځان دپاره دمزدلفې نه نوې ګیټکۍ راوړی،پکار داوۀ چه په یوکال دغلته دګیټکو داسې ډیرې [انبار] جوړشوې وې چې جمرې پکښې پټې شوې وې اوپه څو کالو کښې ترغرجوړشوې وې،نورسول الله ﷺ اوفرمائیل خبره صحیح ده خوالله تعالی څه فرښتې دې دپاره مقررکړی دی چې دچاحج قبول شی دهغوی ویشتلې ګیټکۍ دغه ځائ نه پورته کړې شی نواوس دغلته دهغه کم نصیبو ګیټکۍ پاتې کیږی چې حج ئې نه وی قبول شوې، ځکه دغلته

پرتې ګیتکۍ ډیرې کمې وی که داسې نه وې نو یقیناغربه ترجورشوې وؤ[په حواله دسنن بیهقی] ( ۱ )
دې حدیث شریف سره درسول الله ﷺ رشتینولی هم کیدې شی چې په لکونوخلق هرکال دغلته ګیتکۍ اولی اوخني جاهلان خوغټ غټ کاڼی پرِوراولی،ددې دپورته کولو او صفا کولو هم دحکومت له اړخه انتظام نشته،اوبیاهم جمروسره یوڅوګیتکۍ پرتې وی،چه درسول الله ﷺ رشتینوالی ترهرکال کیږی سره ددې چې څوارلس سوه کاله پرتیرشو،آوریدلی دی چه اوس ددغه ګیتکوډپورته کولوانتظام شوې دې خوبیاهم دیارلس سوه کاله درسول الله ﷺ د تصدیق دپاره کافی دی،
غرض داچه قرآن کریم همیشه دپاره پاتې کیدونکې معجزه ده،نه ئې درسول الله ﷺ په زمانه کښې څه نظیریامثال پیش کړې شو او نن هم نشی پیش کولې اوبیابه هم ترقیامته پورې پیش نکړې شی،
**دقرآني اعجازتشریح**: ددې اجمالی بیان څخه پس تالره دامعلومول پکار دی چې په کوم بنیاد باندې، قرآن کریم لره درسول الله ﷺ معجزه اوټاکلې شوه،داعجازوجوهات ئې څه دی؟اوولې ئې ټوله دنیادمثال پیش کولونه پاتې راغله؟
بله داچه دمسلمانانودادعوی چه په څوارلسوسوؤکالوکښې دقرآن کریم دزبردست چیلنج باوجود، هیچاهم ددې یاددې دڅه ټکړې مثال پیش نکړې شو،څه تاریخی اهمیت اووزن لری؟
دا دواړه خبرې اوږدبحث اوتفصیلی بیان غواړی.
**دقرآني اعجازوجوهات**: ① قرآن کریم ته ولې معجزه وائی،② اودنیاولې ددې دمثال پیش کولو نه عاجزه ده،په دې باندې پخوانواو اوسنوعلماؤمستقل کتابونه لیکلی دی، او هر مفسرپه خپل خپل طرزکښې دامضمون بیان کړې دې،زه په لنډویوڅوضروری خبرې بیانوم.
ول به په دې ژورنظروا چوؤچه داعجیبه،دټولوعلمونوجامع کتاب،چرته،کوم ماحول کښې اوپه چانازل شوې دې؟اوآیاهلته په هغه وخت څه داسې علمی سامان موجودوؤچه دهغې په ذریعه داسې بې مثله اوبې مثاله کتاب تیارشوې دې چې د آولینواوآخرینودعلوموجامع دې، او دانسانی ژونددیواړخې اودجمع دهراړخ بهترین هدایات ئې پیش کړی دی؟ داسې کتاب چې پکښې دانسان دجسمانی اوروحانی تربیت مکمل نظام وی،دتدبیرمنزل نه چې راواخلې، د ملکونو دسیاست پورې دهرنظام بهترین اصول پکښې موجوددی.
چرته اوپه چاچه دامقدس کتاب نازل شو،دهغې جغرافیائی اوتاریخی حالت چې معلوموې نو یو شګلنې،ګرمې اوخشکې علاقې سره به دِواسطه پیبنیږی چې په بطحاءمکه یادیږی،زرعی او صنعتی ملک نه دې،ددغې ملک آب اوهواهم داسې زړه پورې نه ده چې دبهرنه هلته څه وخت تیرولو دپاره خلق اوسیلانیان راځی،دراتلوآسانې لارې ورته هم نشته،دزیاتې دنیانه بیله یوجزیره نماده چرته چې داوچوکلکوغرونواوګرم ریګ نه سِوابل څه نشته،لرې پورې نه چرته آبادی ښکاری،نه څه پټې،فصل یااونه ښکاری،

( ۱ ) السنن الکبری للبیهقی، باب أخذ الحصٰی لرمی جمرة العقبة: ۵/ ۱۲۸

په دي ټوله علاقه کښي څه لوئ لوئ ښارونه هم نشته، واړه واړه [کشنی کشنی] کلی دی چې هلته خلق، اوښان اوچيلۍ بيزو ساتلوباندې خپل ژوندتيروی چرته چې صرف په نوم يوځو ښارونه وی د هغې ورکوټی کلی به څوک ولې ګوری؟دغه قسم،صرف دنوم په ښارونوکښې دعلم اوتعليم هيڅ چرچه نشته،نه هلته څه سکول کالج شته اونه څه لويه يونيورسټی [يادارالعلوم] شته،دهغه ځائ استوګنوته الله تعالی صرف قدرتی اوپيدائشی دفصاحت او بلاغت فن ضرور وربخښلي دې چې دهغې په وجه هغوئ په ټوله دنيا غالب او پورته راځی، دوئ په نظم اونثردواړوداسې قادردی چې دوينا په وخت دآسمانی ګړزهارپشان ګړزيږی اودوريځې پشان وريږی ددغه ځائ وړې وړې [کشنې کشنې] جينکۍ [انجونې] داسې فصيح بليغ شعرونه وائی چې اديبان ورته حيرانيږی،

خوداټول د دوئ فطری فن دې،چه په سکول مکتب يامدرسه کښې نشی حاصليدې،غرض داچه هلته دزدکړې ورکولونه څه سامان شته اونه ددغه ځايونوخلق ورسره څه تړون اوشوق لری.دښارونوخلق ئې سوداګردی مختلف اجناس خرڅولواواغستلودپاره بهرته اوړی راوړی.ددې ملک دمکې مکرمې په ښارکښې په يوشريفه کورنئ کښې هغه ذات مقدس پيداکيږی چې وحی د نزول ځائې دې،هغه چې قرآن کريم پرنازل شوې دې اوس ددغه مقدس ذات حال واورئ،

دپيدائش نه وړاندې دوالدسيورې [سايه] ئې دسرنه اوچت شويعنی دپيدا کيدونه وړاندې يتيم شو، لا داوؤکالوعمرته هم نه وؤرسيدلې چې والده ئې هم فوت شوه،دموربی بی دغيږ ګواره [پالنه] ئې نصيب نه شوه،پلاران،نيکونه ئې زيات سخيان وؤځکه ئې په کورکښې داسې څه پنګه [سرمايه] نه وه پاتې چې ديتيم پالنه اودآئينده ژونددپاره ئې څه انتظام پرکولې شو،ډيرلنډتنګ ژوندئې تيرولو د مور پلارسيورې ئې هم په سرنه وؤپاتې،په داسې حالاتوکښې هغوئ اوپاللې شو،داد هغوئ دعمرمبارک ړومبئ برخه وه،چه دزدکړې اصلی وخت دې،بالفرض که دغلته په دې وخت کښې څه سکول ياکالج هم وې نوهم به ترفائده پورته کول ګران وؤخودتيرشوی بيان مطابق دغلته هيڅ علمی شغل نه وؤ،اونه ورسره څه شوق لرلې شو،ځکه داخلق په امينو [آميانو]سره يادېدل، اوقرآن هم ورلره دالفظ استعمال کړې دې،ددې نتيجه لازماداراووتله چې دهرقسم زدکړې حاصلولونه دوئ ﷺ بې خبره پاتې شول،دغلته څوک داسې لوئ عالم هم نه وؤچه قرآنی قسم علوم ترحاصليدې شوې،بياقدرت الهی دعادت نه بهريومعجزه ښکاره کول غوښتل،هغوئ ﷺ دپاره خصوصی انتظامات اوشومعمولی ليکل،لوستل ئې هم اونکړل بالکل سوچه امی پاتې شوچه خپل نوم قدرې ئې هم نشو ليکلې، دعربو مخصوص فن دشعر اوخبروکولووؤهغې له پاره خاص جمعې [غونډې] جوړيدلې، مشاعرې به قائميدې اوهرچابه په کښې دځان وړاندې کولو کوشش کولو،الله تعالی ورته داسې فطرت اوطبيعت وربخښلې ووچه دې څيزونوسره ئې هم شوق نه وؤ،نه ئې څه شعرياقصيده اوليکله اونه چرته په داسې مجلس کښې شريک شو،

دا امی محض ذات،څلويښت کاله پورې دخپلې رورولئ [قوم] په وړاندې اوسيدلو،دڅه بل ملک سفربه ئې هم نه کولوچه دچاخيال پرراتلې چې هلته ئې علوم حاصل کړل،صرف دشام دملک په دوؤ سفرونوتلې وؤچه دشميريوڅوورځې جوړيدلې اودڅه زدکړې امکان په کښې

نشو کیدې، دامئی محض ذات مبارک په مکه مکرمه کښې خپل څلویښت کاله عمردخپلو رونړو[قوم] په منځ کښې داسې تیر کړل چې چرته کتاب یاقلم ته ئې لاس ورنه وړلونه څه مکتب ته تللې وؤ ،نه ئې په څه مجلس کښې قصیده یاشعروئیلي وؤ ،پوره څلویښت کاله پس ئې په ژبه مبارکه هغه کلام راغلوچه په قرآن کریم سره یادیږي، داعقل حیرانوونکې فصاحت، بلاغت لري،اودمعنوی علوموا وفنونوپه لحاظ سره عقل حیرانوونکې کلام دې ،که معامله تردې حده پورې وې نویومنصف بنده ته په دې کښې څه شبه نشوه کیدې،چه دایوه معجزه ده مګرخبره ددې نه هم تردې حده پورته لاړه چې ټولې دنیاته ئې چیلنج ورکړوکه چاته په دې کښې څه شبه وی چې داکلام الهی دې، اوس یو طرفته د قرآ کریم چیلنج دې او بل طرفته ددنیامخالف طاقتونه چې اسلام اوپیغمبراسلام ته دشکست ورکولوپه غرض دخپل مال اوسر،اولاداو آبروورکولونه پرورتیروؤ ،خود دومره کارکولوجرات چانشوکولې چې دقرآن کریم دیوورکوټی سورت مثال پیش کړې شی،بالفرض،که داکتاب بې مثاله اوبې نظیره هم نه وې،بیاهم دیوخاص امی دزبان نه داسې کلام ظاهریدل نه څه کم نه وؤچه هرعالم اوجاهل پرېپوهیږي.

**دقرآني اعجازدویمه وجه:** اوس دقرآني اعجازبله نخښه اوګورئ،هغه داسې چه تاسو ته معلومه ده، اود قرآن پاك اعجاز دموجوده د اعجاز تفصیل کښې د تللو نه بغیر هم دقرآن پاك معجزه کیدلو دپاره چې قرآن اوددهٔ احکام ئې دټولې دنیادپاره راغلل لیکن براه راست اوړومبی مخاطب ئې عرب وؤ،بل څه علم اوفن ئې لرلواوکه نه خوفصاحت اوبلاغت د دوئ فطری هنراوپیدائشی صفت وؤاوددې په وجه په ټوله دنیابرکترلې شو ،دغه خلقولره قرآن کریم مخاطب جوړلوسره چیلنج ورکوی که زماپه کلام الهی کیدوکښې ستاسوڅه شک وی نو تاسو زما دیوسورت مثال جوړکړئ اووې ښائې،که دقرآن داچیلنج یواځې دمعنوی حسن [حکیمانه اصولو، علمی معارفواوآسرارو] ترحده پورې وې نوامیین قوم که ددې دمثل پیش کولونه بیاعذرکړې وې دابه معقول وولیکن قرآن کریم صرف دهغوئ حسن سره متعلق چیلنج نه دې ورکړې بلکه دلفظی فصاحت اوبلاغت په اعتبارسره یې ټولې دنیاته چیلنج ورکړوچه زیات مستحق ئې عرب وو،که په واقع کښې داکلام دبشری طاقت نه بیخی بهردبل یوطاقت کلام نه وې نودعربو ،دغه فصیحانو اوبلیغانودپاره داڅه مشکله خبره نه وه چې دیوامی بنده دکلام مثال بلکه ددې نه بهتر کلام ئې سمدستی پیش کړې وې،حالانکه قرآن کریم ورته دا آسانی هم ورکړه چې که یویادوه کسان، داکارنشی کولې نوټول قوم ئې په جمع اوکړئ،بیاهم دقرآن کریم په لوړ آواز دعوې اوقسما قسم غیرتونوورا وروړلو نه پس بیا هم ټول قوم داسې خاموش دې لکه چې ماربوئ کړې وی اوڅوکرښې ئې هم په مقابله کښې پیش نه کړې شوې،

**کافرانو د ډیرو ځلو ځلو باوجود د قرآن پاك چیلنج قبول نه کړو:** عربوسردارانو ،دقرآن اواسلام ړنګولو دپاره اودپیغمبراسلام ﷺ درالاندې کولودپاره چې څومره زورلګولې ووهغه د یو لیکونکی، لوستونکی نه پټ نه دې پاتې،په شروع کښې هغوئ ﷺ ته اودهغوئ ﷺ ملګروته ئې قسماقسم تکلیفونه په دې غرض وراورسول چې داسلام کلمه پریږدی،مګرچه وي لیدل چې دلته هغه نشه نشته چې ترشئ سره ختمه شی نوخوشامندې ئې شروع کړې،دعربویوسردارعتبه بن ربیعه دقوم له اړخه هغوئ ته راغلو ،دعربودپوره دولت، حکومت اودښکلوجینکو [انجونو] پیشکش ئې دې دپاره ورته اوکړوچه هغوئ ﷺ دداسلام تبلیغ پریږدی،هغوئ ﷺ ورته دقرآن

یوځوآیتونه واوړل اونورڅه ئې اونه فرمائیل: بیا چې دهغوئ داچل هم بې اثره شونو ورسره جنګ اومقابلې کولوته تیارشو، دهجرت نه وړاندې روستوئې په دې باره کښې سرومال د ورکولو په اولاد، آبروقربانولوئې سرفه اونکړه خودقرآن دغه چیلنج ئې قبول نکړې شوچه یوځوکرښې یایوځوآیتونه ئې په مقابله کښې پیش کړې وې، نو په دې حالاتوکښې ټول عرب چې مقابله کښې پاتې راغلل دا ددې خبرې ثبوت نه دې چې دادانسان کلام نه بلکه دالله تعالی کلام دې چې نظیرپیش کول ئې یواځې دانسان نه بلکه دټول مخلوق دقدرت نه بهردی؟ یواځې دانه چې عرب ئې نظیرپیش کولونه پاتې راغلل بلکه ټولوپه خپلوخاصومجلسونو کښې ددې دبیمثله کیدواقراراوکړواوپه دوئ کښې منصف مزاج خلقودا اقرارپه ډاګه هم اوکړوچه څنې ترمسلمانان شواوڅه په دې وجه کافرپاتې شول چې د پلارانو، نیکونو د رسمونونه اوړیدلې نشویا ئې دعبدمناف سره ضدلرلو په وجه د اسلام قبلولونه سره د اعتراف کولو محروم پاتې شو، چنانچه دقریش عرب تاریخ په دې واقعاتوګواه دې، یوځوداسې واقعات دلته بیانوم چې هغوئ دقرآن کریم باره کښې منلې ووچه دایوبې مثله اوبې نظیره کلام دې اودشرمند کیدوله کبله ئې ددې دمثال پیش کولوجرات اونشوکړې.

**د رسول الله ﷺ او دکلام الله متعلق د کافرانو سردارانو مشوره او رائې:** کله چې درسول الله ﷺ اوقرآن شوربت دمکې مکرمې نه بهردحجازپه نورومقاماتوکښې خورشو دحج موسم راغلو، دمکې قریش فکرمن شوچه هرکله بهرنې عرب راشي، دحضور ﷺ داکلام واوری نوبیحده به ئې خوښ شي، غالب خیال دادې چې مسلمانان به شي، ددې دبندیزاومخ نیوی دپاره قریشویواجلاس راوغښتوپه دې کښې لوئ لوئ سرداران موجودوو، ولیدبن مغیره په کښې دټولونه مشروولوئ عقلمند ګنړلې شو، ټولومغیره ته دامشکل راوړاندې کړوچه اوس به د ملک دګوټ ګوټ [کونج کونج] نه خلق راځي مونږنه به دمحمد ﷺ په باره کښې تپوس کوی هغوئ ته به څه وایو؟ نو دوئ هغه ته ئې اوئیل مونږته څه داسې خبره اوښایه چې ټول ئې په یوشان سره وایو، هسې نه چې زمونږخبرې دیوبل نه بدلې وی اواثرئې خراب پریوځي، ولیدبن مغیره اووئیل تاسواووائي چې څه ورته وئیل پکاردی،

خلقواووئیل ټول به داسې وایوچه محمد ﷺ معاذالله لیونې دې، خبرې ئې دلیونتوب دی، ولیداووئیل داسې بیخي اونه وائئ ځکه چې که داخلق هغوئ ﷺ ته ورشي، ورسره ملاقات اوخبرې اترې اوکړی اویوفصیح بلیغ عقلمندانسان ئې بیاموموی نوستاسود دروغووئیلویقین به ئې راشي، بیادغه خلقواووئیل شاعربه ورته وایو، ولیددې نه هم منع کړل، وې وئیل هرکله چې دغه خلق ئې کلام واوری، چه دشعراوشاعرئ ماهران دی نویقین به ئې اوشي چې داشعرنه دی اونه رسول کریم ﷺ شاعردې نودروغجن به اوګنړلې شئ، بیاپکښې ځااووئیل چه کاهن به ورته اووایو، هغه چې دشیطانانواوپیریانانوپه اوریدلوسره دغیبوخبرونه ورکوی، ولیددې ته هم غلط اووئیل او وې وئیل چې دهغوئ ﷺ په کلام اوریدوبه یقین اوکړی چې دادیوکاهن خبرې نشي کیدې اوتاسوبه دروغجن اوګنړی، بیادقرآن کریم باره کښې دولیدبن مغیره تاثرات داسې بیان کړې شویدی،

قسم په خدائ، هیڅوک په تاسوکښې، شعروشاعری اوعربوپه اشعاروکښې زماهومره واقف نه دی قسم په خدائ. په دې کلام کښې یو خاص قسم خوږوالې دې اویوخاص رونق دې چې زه ئې

د چا شاعر یا فصیح بلیغ په کلام کښې نه وینم.
بیا مغیره ته قوم اووئیل بنه ته اووایه چې مونږ به دغه خلقوته څه وایو. ولید اووئیل زه به د سوچ کولو نه پس څه جواب درکړې شم، دډیرغورفکرنه پس ئې اوئیل ساحرورته وائی چه دجادوپه زوردپلار خوئ اودښځې خاوندترمنځه جدائي راولي. دقوم په دې خبره تسلي اوشوه اومتفق شواوټولوهم داویناشروع کړه مګرد الله تعالی بله کړې ډیوه په پوکونه مري، کله چې بهرنی خلق راغلل قرآن ئې واؤرید وډیرپکښې مسلمانان شول اوپه عربو کښې اسلام خورشو [خصائص کبری]
داشان یو قریشي سردارنضربن حارث، یوځل خپل قوم ته خطاب اوکړو، وې وئیل:
اې قریش قومه: نن تاسو یو مصیبت کښې ګیرئې، ددې نه وړاندې درته داسې هیڅ یو مصیبت نه دې پیښ شوي، محمد ﷺ ستاسو دقوم یو ځلمې وؤ، د دوئ دعاداتو او اخلاقو تاسو ټول عاشقان وئ، په خپل قوم کښې مودټولونه زیات رښتونې، زیات امانتګرګڼړلواوبللو، اوس ئې چې په سرکښې سپین ویښته اولګیدل، نوبیمثل کلام ئې دالله تعالی دطرفنه پیش کړو، نوتاسو ورته جادوګروئیل شروع کړل، قسم په خدائ هغه ﷺ جادوګرنه دې، مونږجادوګران لیدلی دی، ورسره موناسته پاسته کړې ده، دهغوئ خبرې مواؤریدلی دی، په طریقه ئې پوه یو، هغه بیخی ددې نه بل شان دی، کله موورته کاهن [ترویتی] وئیل شروع کړل، قسم په خدائ هغه ﷺ کاهن هم نه دې، مونږډیر کاهنان لیدلی دی دهغوئ خبرې مواؤریدلی دی دهغوئ خبروسره د دوئ دکلام هیڅ مناسبت نشته، ؛
کله ورته شاعروائی: قسم په خدائ شاعرهم نه دې، مونږپخپله دشعر، شاعرئ ټول فنون ازده کړې دی، پرې پوه شوی یو، دلویو شاعرانو کلام راته یاد دی دهغوئ اود دوئ ﷺ دکلام ترمنځه هیڅ مناسبت نشته، بیاورته کله تاسو لیونئ وائی، قسم په خدائ، لیونې هم نه دې، مونږډیر لیوني لیدلی دی، دهغوئ بیهوده خبرې مواؤریدلی دی، دهغوئ ګنړې اوګډې وډې خبرې مو اؤریدلی دی، خودلته هغسې هیڅ نشته، اې زماقومه: تاسو په انصاف سره دهغوئ په معامله کښې غوراوکړئ، داپه سرسري خبروهسې دټیلې ورکولو څیزنه دې [خصائص کبری جلد ۱ ص ۱۱٤]

**د حضرت ابو ذر رضی اللہ عنہ د ایمان راوړو واقعه**: حضرت ابوذرصحابی رضی اللہ عنہ فرمائی چې یوځل زما رور انیس مکې مکرمې ته لاړو، چه بیرته راغلونوراته ئې اوئیل: مکه مکرمه کښې یو کس دې هغه وائی چې زه دالله رسول یم، ماورته اووئیل: دهغه ځائ خلق دهغوئ ﷺ باره کښې څه رائ لري؟ رورمې اووئیل: څوک ورته شاعر، څوک کاهن اوڅوک جادوګروائی، زمارورانیس پخپله هم لوئ شاعردکهانت وغیره نه واقف وؤ، هغه راته اووئیل: چه ماغورفکراوکړونودخلقودغه ټولې خبرې غلطي دی، دهغوئ ﷺ کلام نه شعردې، نه کهانت، نه دلیونتوب خبرې دی بلکه رشتونې کلام راته ښکاری.
ابوذر رضی اللہ عنہ فرمائی، درورددې خبرواؤریدوسره مې دمکې مکرمې سفراوکړومسجدحرام ته راغلم هلته پریوتم، دیرش ورځې مې هلته داسې تیرې کړې چې سوادزمزم داوبونه م بل څه خیټه کښې پرې نه وتل دادومره ورځې مې نه دلوږې تکلیف محسوس کړونه مې څه کمزوری محسوسه کړه [خصائص ج ۱ ۱۱٦]،
چه واپس لاړونوخلقوته ئې اووئیل: مادروم اودفارس دفصیحانو، بلیغانو کلامونه او مقالې ډیر اؤریدلی دی، دکاهنانو کلمات اودحمیرمقالات مې ډیراوریدلی دی، دمحمد ﷺ د کلام

پشان کلام مې ترې نه دې اؤریدلې،تاسوټول زماخبره اومنئ اودهغوئ ﷺ تابعداری کوئ،
چنانچه دفتح مکه په کال ،هغوئ پوره قوم تقریبایوزرکسان مکې مکرمې ته لاړل اومسلمانان
شو [خصائص جلد ۱ صفحه ۱۱۲]
داسلام اودرسول الله ﷺ دټولونه لوئ دښمن ابوجهل اواخنس بن شریق به هم دخلقونه په پټه
قرآن کریم اؤریدلواودې عجیبه،بې مثل اوبې مثاله اثرات به پرې کیدل،خوچه خپل قوم ورته
اووئیل: چې هرکله ته داکلام داسې بې مثله مومې نوولې ئې نه قبلوې،نوابوجهل دا جواب
ورکړو:چې درته معلومه ده چې دبنی عبدمناف اوزمونږدقبیلې ترمنځه همیشه دپاره درقیب
والی اوهمزولتیامقابله چلیږی هغوئ چې څه کارکښې وړاندې کیدل غواړی مونږهم دهغې
جواب ورکوؤ،اوس هرکله چې مونږاوهغوئ دواړه برابرشان لرُونو اوس هغوئ وائی چې
مونږکښې یونبی پیداشوې دې په هغه دآسمان نه وحی راځی نو مونږ ورسره په دې کښې څنګه
مقابله اوکړوزه خوبه هیڅ کله ددې اقراراونکړم،[خصائص]

خلاصه دکلام داده چې دقرآن په دې دعوه اوچیلنج صرف دانه چې ټولوعربوخپل بیلات او
شکست اومنلواوچپ شوبلکه دا اقرارئې هم کړې دې چې دابې مثله اوبې نظیره دې اوداچه
مونږددې دمقابلې نه پاتې راغلو،که داچرته دانسان کلام وې نوهیڅ وجه نه وه چې ټول عرب،
بلکه ټوله دنیابه ددې دمثل راوړلونه عاجزه شوې وه،

دقرآن اود پیغمبرقرآن په مقابله کښې خودغه خلق دځان اومال اولاداوآبروهرڅه قربانولوته
تیارشو،خودې دپاره څوک وروړاندې نشوچه دقرآن چیلنج ئې قبول کړې وې،اوڅه دوه دوه
کربنې [لیکې] ئې ددې په مقابله کښې پیش کړې وې،

وجه ئې داوه چې دغه خلق جاهلان اوبدعمله،بدکرداره خووؤمګرمنصف مزاج هم وؤ،د
دروغوخوآته به هم نه ورتلل،چه قرآن کریم ئې واؤریدواوپوه شوچه په حقیقت کښې ددې کلام
مثل مونږنه شوراوړې نوبیا ئې دغویمواوهلې ګلې دهوکه بازئ په ډول ئې څه کلام پیش کول،
خپل ځان دپاره شرم اوګنړلو،ولې چې هغوئ په دې پوهیدل که مونږڅه مقابله دپاره پیش هم
کړل نودټول عرب فصیحان،اوبلیغان به دې امتحانی مقابله کښې مونږفیل کړی،اوخواه
مخواه به شرمنده شوځکه ټول قوم غلې شواوچه څوک زیات انصافداره وؤنوهغوئ په صفا
انداز کښې اقراراو منل هم اوکړل چې څه واقعات مودرته وړاندې بیان کړل،

ددې زنځیریوکړئ [واقعه] داده چې دعربویوسرداراسعدبن زراره دحضور ﷺ دتره
دحضرت عباس ﷺ په وړاندې اقراراوکړو،مونږه خواه مخواه دمحمد ﷺ مخالفت کولوسره
خپلې رشتې اوخپلولئ پرینسوې اوتعلقات موخراب کړل،زه یقین سره وایم چې هغوئ ﷺ
بیشکه دالله رسول دې،هیچرې دروغجن نه دې،دهغوئ ﷺ راوړې کلام دبشرکلام نشی
کیدې [خصائص ج ص ۱ ص ۱۱۲]

**د قیس بن نسیبه د ایمان راوړلو واقعه**: دبنی سلیم قبیلې،قیس بن نسیبه نومې سړې درسول الله ﷺ
په خدمت کښې حاضرشو، هغوئ ﷺ نه ئې قرآن واؤریدوخوتپوسونه ئې تراوکړل جواب ئې
چې رسول الله ﷺ ورکړو هغه سمدستی مسلمان شواوبیاچه خپل قوم ته واپس لاړو نو خلقوته
ئې اووئیل: ماد روم اودفارس دفصیحانو ،بلیغانو کلامونه اؤریدلی دی،د ډیرو کاهنانو د
کلماتو آؤریدو تجربه مې شوې ده دحمیرمقالات مې په مخه آؤریدلی دی، خو د محمد ﷺ

دكلام په مثل، ما ترنځه چرته نه دي اوريدلي، تاسوټول زما خبره اومنئ او دهغوئ ﷺ تابعداري اوكړئ، د دوئ په تحريک اوښودنه د دوئ دقوم يوزركسان دفتح مكه په موقع درسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضرشو اوپه اسلام راوړلوسره مشرف شو. [خصائص جلد ۱ صفحه ۱۱۲]

داقسم اقرار او تسليم يوازې دهغه خلقو څخه منقول نه دى چې درسول كريم ﷺ د معاملاتو څخه ځان له او غير جانبدار وو بلكه هغه خلق چې هر وخت او هر قسم درسول الله ﷺ په مخالفت كښې به لګيدلي وو او دقرآن پاك متعلق د هغوئ هم دغه حال وؤ چې د خپل ضد او حسد په وجه به ئې ددې اظهار دخلقو په مخكښې نه كولو.

**د كفارو سردارانو دقرآن د آوريدو كيفيت:** علامه سيوطي رحمه الله په خصائص كبرى كښې دبيهقي په حواله نقل كړى دى چې يوځل ابوجهل اوابوسفيان اواخنس بن شريق دشپې د خپلو خپلو كورونو نه په دې غرض راووتل چې په پټه د رسول الله ﷺ دخلې مباركې نه قرآن واورى، دا درې واړه بيل بيل وتلى ووچه يوبل نه خبرنه وؤ، دوئ په بيل بيل ګټونو [كونجونو] كښې ناست قرآن ئې په پټه آوريدو، داسې پكښې محوشوچه ټوله شپه پرتيره شوه چې صباشواو واپس شونواتفاقاً په لاره كښې سره يوځائې شواوهريو دبل قيصه واوريدله نوخپل منځ كښې ئې يوبل ملامته كولوچه تاسو داخراب حركت ولې اوكړواويو پكښې داسې هم اووئيل چې بيادداسې هيڅوک نه كوى هسې نه چې عرب عوام پرخبرشي نوټول به مسلمانان شي.

دې خبروكولو او آوريدلونه پس ټول خپلو خپلو كورونوته لاړل چې بله شپه راغله نودهريوپه زړه كښې دغه جذبه بيا راولاړه شوه چې قرآن واورى، هغوئ هريوقرآن په پټه واوريدوشپه پرهم هغسې تيره شوه صباكښې چې راواپس شول نويو اخې شواويوبل ئې ملامته كړل اود دې كارپه پرينښودلوټولواتفاق اوكړو، په دريمه شپه دقرآن كريم خونداوخوږوالى هريولره په دغه كاربيا مجبوره كړوشپه ئې ټوله تيره كړه صباكښې چې راواپس شونوپه لاره كښې يوځائې شوخپل منځ كښې ئې دبيانه راتللولوظ اوقول اوكړوپه راتلونكى شپه خپل دغه لوظ قول ئې پوره كړوصبا له اخنس بن شريق لښته راواغسته، ابوسفيان له ړومبې راغلوچه وايه كنه، ددغې كارپه باره كښې ستاڅه رائ ده، هغه په اشارو اشاروكښې دقرآن كريم دحقانيت اقراراوكړونواخنس اووئيل: قسم په خدائ زه هم دارائ لرم، بيا ابوجهل له ورغلوهغه نه ئې هم دغسې تپوس اوكړو نوابو جهل ورته اووئيل: چې صفا خبره داده چې زمونږاودعبدمناف دخاندان ترمنځه، هميشه داسې توره سپينه راروانه ده، عبدمناف خاندان چې چرته په سردارئ، ليډرئ كښې مونږنه وړاندې كيدل غواړى، مونږئې مقابله كوؤپه قوم داثرغورځولوډپاره په سخاوت اوبخشش كښې چې هغوئ مونږنه وړاندې كيدل اوغوښتل نومونږترنه په هغې كښې ځان وړاندكيدل اوغوښتل، هغوئ چې دخلقوذمه وارئ په خپل سرواغستې نومونږپه هغه ميدان كښې هم دهغوئ نه روستوپاتې نشوتردې چې عرب خلق ټول مونږدواړه برابراويوشان ګڼړى،

په دې دوران كښې دعبدمناف خاندان له اړخه دا آوازراپورته شوچه مونږكښې نبى ﷺ راپيدا شوچه آسمان نه پروحى راځى، نواوس دهغوئ مقابله په دې كښې مونږڅنګه كولې شو، اوس مونږخپل منځ كښې داخبره غوټه كړې ده چې په زوراوطاقت كښې به د دوئ مقابله كوؤ او هيچرې به پرايمان نه راوړو [خصائص ج ۱ صفحه ۱۱۵]

دا دقرآن هغه معجزه چې دشمنانوئې هم اقراراوکړو ،داټول واقعات جلال الدين سيوطي رحمه الله
په خصائص کبرى کښې نقل کړى دى،

**دريمه وجه** داعجازقرآن دريمه وجه داده چې دغيبو اوراتلونکوواقعاتوډيرخبرونه قرآن کريم
ورکړى دى چې هوبهوپوره شوى دى،مثلاقرآن کريم داخبرورکړې ووچه دروم اوفارس مقابله
کښې به اول اهل فارس غالب کيږى اوروميان به پاتې راځى خوورسره ئې داخبرهم ورکړوچه
دلسو کالوتيريدونه پس وړاندې به پرروميان غالب شى،دمکې سردارانوپه دې خبره
دکاميابۍ او ناکامۍ شرط حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه سره کيښودو ،هرکله چې دا خبر هوبهو
صحيح راؤختلو د مکې سردارانو خپل بيلات اپروالى] اومنلواوپه شرط کښې تړلې مال ئې
حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه ته اداکړلوخورسول الله صلى الله عليه وسلم دغه مال ځکه قبول نکړوچه داپوقسم
جوارى وه، او ابوبکر صديق رضي الله عنه ته به يې حکم اوکړو چې دا صدقه کړه نو هغه صدقه کړه.
داشان نورې ډيرې پيشنګويانې دقرآن کريم درستې ثابتې شوې،

**څلورمه وجه** دقرآن کريم د اعجازڅلورمه وجه داده چې قرآن کريم کښې دپخوانوامتونو دهغوئ
دشريعتونواوتاريخى حالاتوداسې يادګيرنه موجود ده چې ددغه زمانې ديهودواو نصاراؤهغه
عالمانوته هم معلومه نه وه کوم چې دپخوانوآسمانى کتابونوماهرګڼرلې شو ،رسول الله صلى الله عليه وسلم نه
چرته مکتب،مدرسه کښې قدم مبارک اويښې وؤ ،نه ئې چاعالم سره ناسته پاسته کړې وه،نه
ئې څه کتاب ته لاس مبارک وراوړې وؤنوبياد دنيادشروع کيدونه تردغه زمانې پورې دټول
جهان دقومونوتاريخى حالات په پوره صحيح اورشتيااندازکښې بيانول اودهغوئ
دشريعتونوتفصيلات بيانول ښکاره خبره ده چې دادالله تعالى دکلام نه دې او هغه خبرونه دى
چې په دوئ صلى الله عليه وسلم نازل کړې شوې دې،

**پنځمه وجه** دقرآن کريم په ګڼرو آيتونوکښې دخلقودزړونوپټې خبرې ښودلې شوى دى چې
داقراريه ذريعه دهغې درستى اورشتينى ثابته شويده،دې نه ثابتيږى،چه قرآن دالله تعالى
کلام دې ځکه چې يوبشرداسې قسم خبردخپله ځانه نه شى ورکولې ولې چې دهغه هيڅ دا قسم
طاقت نشته لکه قرآن کريم فرمائى: ﴿إِذْ هَمَّتْ طَّآئِفَتَانِ مِنكُمْ أَن تَفْشَلَا﴾ کله چې ستاسودوؤډلوپه زړه
کښې دمخ په شاکيدواراده اوکړه ﴿وَيَقُولُونَ فِىٓ أَنفُسِهِمْ لَوْلَا يُعَذِّبُنَا ٱللَّهُ بِمَا نَقُولُ﴾هغوئ په زړونوکښې
وائى چې زمونږ دانکارله کبله مونږ ولې الله تعالى نه عذابوى؟

داهغه خبرې دې چې ددغې خلقودخلونه هيچاته نه وې اوتلې الکى اوصرف قرآن کريم
ښکاره کړې

**شپږمه وجه** داعجازقرآن شپږمه وجه هغه آيتونودى چې قرآن کريم دهغې په ذريعه ديوقوم ياکس
باره کښې داسې پيشګويانې کړى دى چې فلانې کاربه اونکړې شى اوهغوئ سره دقدرت
لرلونه هغه کاراونکړې شو ،لکه ديهودومتعلق قرآن کريم اعلان کړې وؤچه که په واقع کښې
هغوئ،خپل ځانونه دالله تعالى دوستان ګڼرى نوالله سره تلودپاره دهغوئ مينه پکارده، ښه
نوهغوئ خوددمرګ آرزولرى کنه،اوبياارشادفرمائى ﴿وَلَن يَتَمَنَّوْهُ أَبَدًا﴾ هغوئ به هيچرې دمرګ
آرزواونکړې شى،دمرګ آرزوڅه ګران کارنه ووخصوصاهغه خلقولره چې په قرآن ئې د دروغژن
والى تورپورې کولو ،دقرآن کريم دارشادپه وجه دمرګ په آرزوکولو کښې خوهغوئ ته هيڅ ويره

تره نه وه، مسلمانانو ته ئې دماتې ورکولو د پاره دا موقعه لوئ غنیمت وه چې سمدستی ئې په هر مجلس کښې دمرګ د آرزو اعلان کولې، مګر یهود دې او که مشرکان، که هر څومره دوئ په قرآن کریم کښې د دروغو تور پورې کولو خوز زړونو کښې ئې یقین وو چه قرآن کریم رشتونې دې هیڅ یو خبره ئې غلطیدې نشی، که مونږ د مرګ آرزو او کړه نو سمدستی به مړه شو، ځکه ئې د دې زړه او نشو کړې،

**اووَمه وجه**: دقرآن کریم په آوریدو سره هر خاص وعام، کافر او مؤمن باندې یو خاص کیفیت او حالت طاری کیږی، لکه حضرت جبیر بن مطعم رضی الله عنه [چه لا مسلمان شوې نه وؤ] چې د رسول الله ﷺ نه ئې د ماښام په مانځه کښې سورت طور لوستل واؤریدل نو هغه پخپله فرمائی چې ګویا کښې زما زړه په الوتو شوا اووائی چې دا هغه رومبئ ورځ وه چې په زړه کښې م اسلام اثر او کړو، هغه آیتونه دا دی ﴿ اَمْ خُلِقُوْا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ اَمْ هُمُ الْخٰلِقُوْنَ ۝ اَمْ خَلَقُوا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ ۚ بَلْ لَّا يُوْقِنُوْنَ ۝ اَمْ عِنْدَهُمْ خَزَآئِنُ رَبِّكَ اَمْ هُمُ الْمُصَيْطِرُوْنَ ۝ ﴾ آیا دوئ پخپله [دخانه] جوړ شوی دی یا هم دوئ جوړونکی دی یا دوئ جوړ کړی دی آسمانونه او زمکه [هیڅ څه داسې خبر نشته] خو یقین نه لری، آیا دوئ سره خزانې د پروردګار ستا دی یا هم دوئ داروغګان او نګهبان [میتان] دی؟

**اتمه وجه**: دقرآن کریم په بیا بیا لوستلو او آوریدلو ترنه هم دچا زړه نه پورته کیږی بالکل زیات لوستلو او آوریدلو سره ئې شوق نور هم زیاتیږی د دنیا بل څه کتاب چې که ډیر ښکلې او زیات خوندناک هم وی که هغه دوه څلور ځله او وئیلې شی نو طبیعت تراوچتیږی [مړیږی] بیائې لوستلو او آوریدلو ته دچا زړه نه کیږی، دا خصوصیت یوائې دقران کریم دې چې په بیا بیا لوستلو او آوریدلو سره ئې شوق په مخه زیاتیږی چې د دې خبرې ثبوت دې چې دا کلامِ الهی دې

**نهمه وجه**: دقرآن کریم اعلان دې چې د حفاظت ذمه ئې الله تعالی اغستې ده، تر قیامته پورې به پکښې هیڅ بدلون، کمې یا زیاتې نه راځی، دالله تعالی دا وعده او ذمه په داشان پوره کړه چې دقرآن د نازلیدو راسې څوارلس سوه کاله او شو په هرې صدئ او هره زمانه کښې داسې په لکونو انسانان موجود دی چې په سینو کښې ئې قران په داسې شان محفوظ پاتې کیږی چې د زور یا زیر قدرې غلطی پکښې هم نه کیږی، او هره زمانه کښې زنانه، نارینه، بوډاګان او ماشومان دقرآن کریم حافظان موجود وی که یو لوئ عالم د دې په زور، زیر وغیره کښې غلط شی نو ورکوټې [کشنئ] عالم ئې غلطی نیوې شی، د دنیا هیڅ مذهب دخپل مذهبی کتاب باره کښې د دې مثال خو لاڅه کوې لسمه برخه هم نشی پیش کولې، دډیرو مذهبی کتابونو خو دا پته لګول هم ګران شوی دی چې اصل کتاب په کومه ژبه کښې راغلې وو او څومره حصې او برخې ئې وې، په کتابی شکل کښې په هره صدئ او هره زمانه کښې څومره چې قرآن خور شوې دې دومره د دنیا هیڅ کتاب ته خوریدل نصیب شوی نه دی حالانکه تاریخ ګواه دې چې په هره زمانه کښې د مسلمانانو شمیر په دنیا کښې د کافرانو نه ډیر کم پاتې شوې دې او د خورولو او چاپ کولو ذریعې چې څومره کافر لری دومره څه چې په سلمه حصه ئې هم مسلمانان نه لری، خو سره د دې هم د دنیا هیڅ یو کتاب په دومره ګڼ شمیر کښې خور شوې او چاپ شوې نه دې څومره چې قرآن کریم چاپ شوې او خور شوی دی،

دقرآن کریم حفاظت الله تعالی یوائې په کتابی شکل کښې او نکړو چه د سوځیدو، ورانیدو او خرابیدو امکان ئې وو بلکه دخپلو بندګانو په سینو کښې ئې محفوظ کړو، [معاذ الله] که د دنیا

بول قرآنونه په سوځولو ورانولو وغیره سره ورک کړې شي نوداکتاب الله به بیاهم په سینو کښې محفوظ پاتې وي، یوځو حافظان چې راجمع شي نو په یوځو ګینټو کښې ئې بیاهم پوره کره قرآن کریم لیکلې شي، دابیمثله حفاظت دقرآن کریم خصوصیت دې اوددې ښکاره ثبوت دې چې داکلام الهی دې، څنګه چې الله تعالی تل دپاره باقي پاتې کیدونکې دې دهیڅ مخلوق پرهیڅ قسم لاس نه رسي دغه شان دالله تعالی کلام هم همیشه قائم پاتې کیدونکې دې، دهیچاهیڅ قسم لاس پرنشي رسیدې، څوارلس سوه کاله اوشوچه دقرآن کریم داپیشنګوئ، خلق پوره کیدل ویني، ګوري اوترقیامته پورې به ئې هم داشان ویني ګوري، ددې ښکاره معجزې نه پس بیاهم دچابه قسمته داشک راتلې شي چې کښې داد الله تعالی کلام نه دې؟

**لسم وجه:** هغه علوم اومعارف دی چې ترننه پورې هیڅ یو کتاب دهغې احاطه نه ده کړې شوې اونه به ئې بیااوکړې شي چې دومره مختصروپانړواودشمیرپه کلماتوکښې دومره علوم اوفنون راجمع کړې شي چې دټولو کائناتوپه دائمی ضروریاتو باندې حاوی وی اودانسان د ژوند د هر اړخ اوهرحال سره متعلق په پوره ترتیب سره بهترین نظام پیش کړې شي، داسې چې دشخصی عائلي، قبائلي، ښاري ژوند، په عمرانیاتو، اجتماعیاتو اودملکونودسیاست په هراړخ حاوی نظام پیش کړې شي

بیایواځې علمی اونظری شان سره نظام پیش کول نه دی، په عملی ډول ددې رواج موندل او دټولې دنیاپه نظامونو غالب راتلوسره دقومونوپه مزاج، اخلاقو، اعمالو، معاشرت اوتمدن کښې هغه لوئ انقلاب راوستل چې تیرشوؤاوراتلونکو کښې ئې مثال موندل ممکن نشواونه به شي، آیا دا حیرانوونکي انقلاب دچاانسان دقدرت اوحکمت عملی نتیجه کیدې شي، خصوصا چه دغه انسان پخپله امی اوقوم ئې هم امی وی،

مخدرات سراپرد هائے قرآني     چه دلبرندکه دل مي برندپنهاني

[یعنی دپټو خبرو څخه ډکې دی قرآنی پردې، عجیبه زړه راښکونکې دی چې زړه راکاږي] داهغه عقل حیرانوونکی تاثیرات دی چې دهغې له کبله هرهغه انسان، دقرآن، په کلام الهی منلو باندې مجبوردې چې عقل اوبصیرت ئې تعصب اوعنادبیخی بربادکړې نه وی تر دې چې ددې ماده پرستئ د دورهغه عیسائی مصنفین هم دقرآن کریم په بې مثله اوبې نظیره کتاب کیدوپه اقرارکولو باندې مجبوره شوی دی کوموچه دغورفکرنه کاروا‌غستو،

دفرانس یومشهورمستشرق، ډاکټرماډریس [چه دحکومت فرانس، وزارت تعلیم ده لره دقرآن کریم د دوؤشپیتوسورتونوپه فرانسیسی ژبه کښې په ترجمه کولو ماموره کړې وو] اقرار کړې دې چې اردوترجمه ئې داده،

بې شکه دقرآن کریم دبیان طرزد خالق جل وعلاطرزدې، بیشکه په کومو حقیقتونو اومعارفو چې داکلام حاوی دې هغه یواځې کلام الهی کیدې شي، اوواقعه داده چې په دې کښې شک، شبه کونکې هم چې کله ددې عظیم تاثیراووینی نو په غاړه ایښو اواقرارکولو باندې مجبوره شي، پنځوس کروړه مسلمانان چې دزمکې په مخ په هره برخه خواره دی، په هغوئ کښې دخاص تاثیر لیدلوپه وجه، په مسیحی مشن کښې کارکوونکي په اتفاق سره دا اقرارکوی چې یوواقعه هم داسې نشي پیش کولې چې کوم مسلمان په اسلام اوقرآن پوه شي، هغه مرتدشوې یادقرآن کریم منکرشوې وی،

مسلمانانو کښې دقرآن کریم دتاثیراقرار، یومسیحي مستشرق په داسې یودورکښې کوي چې پخپله مسلمانان داسلام اوقرآن نه بیګانه، ددې دتعلیماتونه لرې، ددې دتلاوت نه غافله شوي دي، کاش دې مصنف، داسلام اوقرآن هغه دورلیدلې وې چې دمسلمانانودژوند په هراړخ کښې په قرآن عمل ووا وپه ژبوئ قرآنی آیتونه ؤو، داشان نوروَمنصف مزاجو مسیحي مصنفینو هم اقرارونه کړې دي،

مسټرولیم میورپه خپل کتاب حیات محمد کښې په ښکاره ډول ددې قسم اقرارکړې دې،

ډاکټرشبلی شمیل په دې مضمون یوه مستقله مقاله لیکلې ده،

**د قرآن مجید په حیثیت د کلام الله باندې یو اجمالي نظر:** په دې باره کښې د قرآن کریم په کلام الهی او د رسول الله ﷺ معجزه کیدلو لس وجوهات ستاسو د نظره تیرشو، په آخرکښې یو اجمالي نظرپه دې واچوئ، چه حضرت محمد ﷺ دپیدائشي یتیم په شکل کښې دنیاته تشریف راوړو، ټول عمرئې په مکتب، مدرسه کښې قدم نه دې ایښی، قلم اوکتاب ته ئې لاس نه دې وراوړې، خپل نوم مبارک ئې هم پخپله نشولیکلې، په دې حالت کښې ځوان شو بوځواته دیواځې ژوند تیرولو طبیعت ئې لرلو، لوبو، تماشوجلسو، جلسونو او هنګاموکښې دشاملیدوعادت ئې هم نه وؤ، شعروسخن سره ئې هم څه نسبت اومناسبت نه لرلو، په څه قومي اجتماع کښې خطبه لوستل او تقریرکول ئې هم چرته نه وؤکړې، د څلویښتو کالو د عمرنه پس چې دپوخ عمرشو او د علم ازده کولووخت ئې هم عادتاختم وؤ، په داسې وخت کښې داسې عقل حیرانوونکې حقیقتونو، فصاحتونو اوبلاغتونونه بهر پوره او ډك اعجازنما کلام د رسول اکرم ﷺ په ژبه مبارکه باندې راتلل، چه دیولوئ عالم، ماهراوفصیح، بلیغ په وس کښې هم نه وی اوبیادهغې په ذریعه عربوفصیحانو اوبلیغانوته ئې خطاب فرمائیل، دهغوئ په جلسو کښې ئې دخطبې ورکول، پوره [ټولې] دنیاخصوصاعربوته ئې داچیلنج ورکول [چه که څوک داشبه کوي چې قرآن کریم کلام الهی نه دې نو] ددې قرآن کریم د ټولونه یوورکوټې حصې جوړکړې مثال دپیش کړي، په دې باندې ټول قوم خاموشه پاتې کیږي او عاجزه کیږي.

کوم قوم ئې چې ددې نه وړاندې په امین سره یادولواوتعظیم تکریم به ئې کولوهغه ئې سراسر مخالف کیږي، ددې کلام دتبلیغ کولونه دایسارولوپه غرض، د دولت، حکومت، او د نفسانی، خواهشاتو دټولوخیزونو پیشکش ورته کوي، دوئ ﷺ په دې کښې یوهم نه قبلوی، ټول قوم دوئ ﷺ اودملګروصحابه کرامو ﷺ په تنګولو، پرډظلم کولوهیڅ صرفه نه کوي، دوئ ﷺ داټول هرڅه زغمی خوددغې کلام تبلیغ کول نه پریږدي، قوم د دوئ ﷺ دوژلو سازشونه کوي، جنګ، جګړې ورسره کوي، دوئ ﷺ مدینې منورې ته لاړشي خپل مورنې وطن مکه مکرمه پریږدي، اوقوم ئې هلته هم ورپسې لګیدلې وی په آرام ئې نه پریږدي.

ټول عرب اواهل کتاب ئې په مخالفت کولوراجمع شی، په مخه په مدینه منوره چپاؤنه اوحملې کوي، یعنی داټول هرڅه کوی خودقرآن داچیلنج نه قبلوی چې دقرآن کریم، دیوورکوټی سورت په مثل جوړکړې پیش کړي، قرآن کریم ورته غیرت ورکوی خودارګ ئې هم ټوپ نه وهی، یواځې دانه چې ټول عرب دقرآن کریم دمثال پیش کولونه پاتې راغلی دی بلکه پخپله هغه ذات مبارک هم ددې کارنه پاتې راغلوپه چاچه داکلام الهی نازل شوی وؤمطلب داچه د ده هغه ټول کلام یعنی حدیث چې هر څنګه خو ددې نه کلام الله ډیرزیات لوړاواعلی مقام لری،

لکه قرآن کريم فرمائي:
﴿قَالَ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا ائْتِ بِقُرْاٰنٍ غَيْرِ هٰذَآ اَوْ بَدِّلْهُ ؕ قُلْ مَا يَكُوْنُ لِيْۤ اَنْ اُبَدِّلَهٗ مِنْ تِلْقَآءِ نَفْسِيْ ۚ﴾ څوک چې آخرت کښې زمونږ دمخامخ کيدو نه منکردی هغه وائی چې ددې پشان بل قران جوړ کړه يائې بدل کړه تاسو ورته اوفرمائی چې زه دا نشم کولې چې بدل ئې کړم دخپل ځانه يوخود قرآن کريم دا ښکاره معجزې دی چې ددې په کلام الهی کيدو باندې ګواه دی اوبل خوا ددې مضامين، مضمرات، حقائق، اومعارف ئې هم ډيرزيات حيرانوونکې معجز څيزونه دی،

**قرآن د تعليماتو خوريدو موده:** دقرآن کريم دنازليدو ړومبی دورکښې څوکاله خوداسې تيرشوچه قرآنی تعليمات، په ښکاره ډول پيش کول هم ناممکن وو، رسول الله ﷺ به پټ په پټه خلقوته د قرآنی اصولو دعوت ورکولو، بيادګنړوګواخونو اومخالفتونوپه ګيره کښې څه قدرې ښکاره دعوت ئې هم شروع کړوخودقرآن کريم دتجويزکړی قانون دنافذکولوپه ظاهره هيڅ امکان نه وؤ، مدينې منورې ته دهجرت کولونه پس لس کاله داسې ملاؤشوچه دمسلمانانودآزادئ زمانه ورته وئيلې شی، پکښې دقرآن کريم مکمل تعليم ورکړې کيدې شو، ددې داحکامونافذ [جاری] کولوکوشش اوڅه تعميری کارپه کښې کيدې شو،

خوپه دغه لسوکالوکښې هم که په تاريخې اسلام نظرواچولې شی نومعلومه به شی چې د ابتدائی شپږکاله د دشمنانوپه ګيره کښې دمنافقانواودمدينې منورې ديهودوپه سازشونو کښې تعميری کارچرته کيدې شو، دټولې دنيامختلف بلکه متوازی نظام چرته کيدې شو؟ دمسلمانانوخلاف لوئ لوئ جنګونه هم په دې شپږوکالوکښې راپيښ شو، غزوهٔ بدر، غزوهٔ احد اواحزاب هم په دې شپږوکالوکښې راپيښ شو، دهجرت په شپږم کال لسوکالودپاره د حديبئې صلح نامه اوليکلې شوه اوصرف يوکال پورې دعربوقريش په دې معاهده قائم پاتې شول، بيائې داهم ماته کړه اوبيادجنګ جهادسلسله شروع شوه،

دظاهری اسبابوله مخه رسول الله ﷺ ته قرآنی دعوت لره عام کولودپاره ددې نظام جاری کولودپاره صرف يويادوه کاله په لاس ورغلی ووچه په هغې کښې ئې د دنيالويولويو بادشاهانو ته خطونه اوليګل، قرآنی دعوت ئې هغوئ ته اورسولو، دقرآنی نظام قائمولو او خورولوکوشش ئې اوکړواودرسول الله ﷺ آخری عمر مبارک پورې ددې آزادئ صرف څلورکاله کيږی، چه دفتح مکه جهادپکښې راپيښ شواومکه مکرمه فتح شوه، اوس ددې څلوروکالولږې مودې ته اوګورئ اودقرآن په دې نفوذاواثر باندې نظر واچوئې چې درسول الله ﷺ دوفات په وخت په پوره جزيرة العرب دقرآن کريم حکومت وؤ، يوارخ ته دروم ترسرحد پورې اوبل اړخ ته عراق پورې دريم اړخ ته عدن پورې رسيدلې وو،

که مونږدې ته هم اونه ګوروچه رسول الله ﷺ امی وؤ، دې نه هم سترګې پټې کړوچه د دوئ قوم هيڅ کله هم ديوبادشاه فرمانبرداری نه وه قبوله کړې، داهم هيره کړوچه ټوله دنيا دهغوئ خلاف وه تردې چې دعرب مشرکان، يهوداونصاری ټول په شريکه رسول الله ﷺ اوقرآن کريم لره د دنيانه ورکولوپسې شوی وؤ، بکل سمه دمه فضااومنوبياهم چې اوګورو نود نوی نظام، نوی قانون اونوی اصولوتدوين اوترتيب دپاره، بيادې دتعليم اوپوهولودپاره، بيادې عملاجاری کولودپاره اوددې په ذريعه يوپاکبازه معاشره اوامن وسکون راوستو دپاره څومره سرمايه اوڅومره سړی به پکار وی، اوبياداهم اوګورئ چې آياداټول څيزونه رسول الله ﷺ ته

حاصل هم وو؟ که اوسني نظامونه اوګورئ، حساب ئې اولګوئ نو دیوروند سترګې به پرانستې شي چې دانفوذ، اواثر، داروحاني تاثیرسوادخاص قدرت الهیه نه بغیر سرته نشي رسیدې.

داعجازقرآني پوره وجوهات، اوتفصیلات بیانول یوډیراوږدبحث دې، علماءِ امت په دې باره کښې سوؤنو مستقل کتابونه هره زمانه کښې په مختلفوژبوکښې تصنیف کړي دي.

دټولونه ړومبې په دریمه هجري صدئ [پیړۍ] کښې جاحظ دنظم القرآن په نوم یومستقل کتاب اولیکلو بیادڅلورمې هجري صدئ په ړومبي سرکښې ابوعبدالله واسطي اعجازالقرآن په نوم یوکتاب تصنیف کړو، بیاهم دې صدئ کښې ابن عیسی رباني داعجازالقرآن په نوم یولنډه شان رساله اولیکله، قاضي ابوبکرباقلاني دپنځمې صدئ په ړومبي سرکښې داعجازالقرآن په نوم یومفصل او اوږدکتاب اولیکلو، علامه جلال الدین سیوطي رحمه الله په اتقان اوخصائص کبری کښې امام رازي رحمه الله په تفسیرکبیرکښې قاضي عیاض په شفاء کښې په ډیر تفصیل سره دا مضمون اولیکلو، په آخري دورکښې مصطفی صادق رافعي مرحوم، د اعجازالقرآن په نوم، او جناب سید رشیدرضامصري، دالوحي المحمدي ﷺ په نوم، مستقل، جامع اوتفصیلي کتابونه اولیکل، په اردوژبه کښې استاذمحترم شیخ الاسلام حضرت مولاناشبیراحمد عثماني رحمه الله داعجازالقرآن په نوم یورساله تصنیف کړې ده،

داهم دقرآن کریم په خصوصیاتوکښې شمیرلې شي چې ددې په یویومسئله دمکمل تفسیرونو نه علاوه مستقلې رسالې اوکتابونه دومره لیکلې شوي دي چې نظیرموندل ئې مشکل دي،

غرض داچه دامضمون په خپل پوره تفصیل سره خودلته نشي بیانیدې بیاهم، بیان شوې خبرې هم یومنصف مزاج، انسان لره په دې مجبوره کولودپاره کافي دي چې قرآن کریم لره دالله تعالی کلام اودرسول الله ﷺ عظیم الشان معجزه اومني،

**یو خوښې اوجوابونه:**: ځنې خلق وائي چې کیدې شي، دقرآن کریم په مقابله کښې کتابونه او مقالې لیکلې شوي وي خومحفوظ نه وي پاتې شوې، که دانصاف نه کاروا غستې شي نو ددې احتمال هیڅ ځائې ځکه نشي جوړیدې، چه دقرآن کریم دنازلیدونه تراوسه پورې په ټوله دنیاکښې قرآن منونکي ډیرکم اونامنونکي ئې ډیرزیات دي، داخبره هم ده چې دنشراواشاعت ذرائع څومره چې دقرآن کریم منکرینوته حاصل دي دقرآن منونکي خلق تقریبادهغې نه بې برخه پاتې شوي دي، قرآن کریم دخپلو مخالفینونه په وړاندې دومره په جهرغیته دعوی کوي، چیلنج ورکوي، غیرتونه اوننګونه ورته اړوي، مخالفین خلق ددې په مقابله کښې سرومال اواولادیعني هرڅه قربانولوته تیاریږي، نوکه دوئ دقرآن چیلنج په دې شان قبول کړې وې چې ددې په مقابله کښې ئې ددې په مثل څه پیش کړې وې هغه به ځنګه پټ پاتې شوې وې چې په دنیاکښې به نه وو خورشوې اومنکرانو دقرآن به دمسلمانانو په مقابله کښې هروخت مخې مخې ته نه کولې اود مسلمانانوله اړخه به دهغې په تردیدکښې په سوونوزرګونو کتابونه نه وولیکلې شوي څه؟

داسلام په ړومبئ صدئ کښې دمسیلمه کذاب یمني یوواقعه راپیښه شوې وه هغه دبې حیائې څوکلمات لیکلې وواودائې وئیلې ووچه داد آسماني وحې پشان دي، لیکن دنیابه پوهیږي چې دهغه کلماتوڅه انجام شو، پخپله دهغه قوم، هغه دده په مخ وراوویشتې، دغه کلمات دومره دشرم اوبې سرپیتوبئ وې چې دسرپیتوب په یومعاشره کښې هغه څوک بیانولې

هم نشي، بهرحال هر څنګه چې وي ترننه پورې په کتابونو کښې په مخه ليکلې شي، که بل چاد قرآن په مقابله کښې څه ښه کلام پيش کړې وې نو هيڅ وجه نه وه چې دنيابه هغې لره سراسر هير کړې وؤ او د قرآن منکرانو به په هر ډول دهغې محفوظ ساتلو کوشش نه کولې؟

هغه خلق چې دقرآن کريم په مقابله کښې هروخت بېرولاړوؤ، دقرآن کريم ددې چيلنج په جواب کښې ئې قسماقسم خبرې اوکړې، قرآن هغې لره نقل کړې اوجواب ئې ورکړوخوداسې يو واقعه هم نشته چې څه کلام دپه مقابله کښې پيش کړې شوې وی اووئيلې شوې وی چې دادقرآن مثل دې، يورومی غلام په مدينه منوره کښې دلوهارئ [آهينګرۍ] کارکولوچه تورات او انجيل ئې هم لوستلی وؤ، کله به هغه رسول الله ﷺ سره ملاويدو، د عربو يو څو جاهلانو د تعصب په بناداخبره مشهوره کړه چې رسول الله ﷺ ته قرآنی مضامين دغه غلام ورښودلی دی قرآن کريم د دوئ دغه اعتراض نقل کولونه پس پخپله دهغې جواب داسې ورکوی چې د کوم سړی طرفته چې تاسو د ورخودلو نسبت کوئ، هغه خلق عجمی دی هغه عربی څه پيژنی؟ اودا قرآن پاك خو انتهائی بليغ کتاب دې، دسورت نحل آيت نمبر ۱۰۳ اوګورئ فرمائی:

﴿لِسَانُ الَّذِیْ یُلْحِدُوْنَ اِلَیْهِ اَعْجَمِیٌّ وَّهٰذَا لِسَانٌ عَرَبِیٌّ مُّبِیْنٌ۝﴾ مونږ پوه يوچه مخالفين داسلام دا وائی، تاسو ﷺ ته داقرآن يوسړې ښائی [حالانکه] هغه عجمی دې اوقرآن کريم يوفصيح اوبليغ زبان کښې دې،

ځنې خلقو دقرآن دچيلنج په جواب کښې داسې اووئيل: ﴿لَوْنَشَآءُ لَقُلْنَا مِثْلَ هٰذَآ﴾ که مونږ غوښتې نو مونږ به هم دقرآن پشان کلام وئيلې وی.

څوک داتپوس اوکړی چې بياولې مونه غوښتل، دقرآن کريم دمقابلې دپاره خو تاسو خلقو دسرخپوزوراولګولو، دسرومال قربانی مو ورکړه که تاسو دقرآن په مثال څه کلام ليکلې يا وئيلې شوې نو تاسو بياولې داسهراپه خپل سراونه تړله،

خلاصه داچه دقرآن کريم ددې دعوې نه پس مخالفين دشرافت په رنګ کښې څه چپ پاتې نشو بلکه څه ئې چې په خله راتلل هغه ئې په مقابله کښې وئيل خوداسې هيچاهم اونشووئيلې چې زمونږ فلانی سړی دقرآن پشان فلانې کلام ليکلې دې.

څنو عنادګروداتوتکه او ناخوړته هم اوويشته چې رسول الله ﷺ خوورځودپاره دنبوت نه مخکښې ملاويدونه وړاندې دشام په سفرتلې وو، په لاره کښې ئې دتورات يوماهر بحيرا راهب سره ملاقات اوشو، دهغه نه ئې داټول علوم ازده کړل، خوڅوک د دوئ نه داتپوس اوکړی چې د يو ورځې په ملاقات کښې ئې داټول علوم، معارف، دفصاحت بلاغت اعجاز، اخلاق تربيت، کورنې اوحکومتی نظام ئې څنګه ازده کړو،

دنن صبامعترضينو داسې هم اووئيل چې که ديو کلام مثل جوړنکړې شی، نو داددې خبرې دليل نشی ګرځيدې چې هغه دالله کلام يامعجزه وی، کيدې شی چې ديواعلی درجې ماهرد بلاغت، داسې نظم يانثراوليکی چې نورخلق دهغې مثل راؤنه ړې شی:

دسعدی شيرازی ګلستان اود فيضی تفسيربې نقط ته بې مثله اوبې نظيره کتابونه وئيل ددې خبرې دليل نه دې چې دادمعجزه وی:

ليکن په غورکولوسره معلوميږی چې سعدی اوفيضی وغيره څومره خوارئ کړې دی، دتعليم اوتاليف سامان ورسره په څومره مقدارکښې موجودوو، څومره زمانه کښې هغوئ تعليم

حاصل کړو، په کلونو مدرسو کښې پراته وؤ، شپې ئې ورځ پاره روڼې کړې، ډېره زمانه ئې خوارئ او کړې، دډېر علماؤ په وړاندې ئې دشاګردئ زنګون مات کړو، د کلونو کلونو خوارو کولو او دماغ خوړلو په نتيجه کښې که بالفرض فيضي، حريري، متنبي، يابل څوک، په عربي ژبه کښې سعدي په فارسئ ژبه کښې ملټن په انګريزئ، هومر په يوناني ژبه کښې ياکالي داس په سنسکرت ژبه کښې داسې ووځه کلام ئې دنورو د کلام نه په لوړ مقام کښې وونو دتعجب خبره څکه نه ده اونه ورته معجزه وئيلې شي، څکه چې معجزه هغې ته وائې چې دمقرره اسبابونه بغير وجود ته راشي، آيا دغې خلقو دعلمي مهارت دغه ښکاره اسباب نه ووچه مونږ ذکر کړل په داسې ډول دچا کلام چې نورونه ممتاز شي نودې کښې دتعجب هيڅ خبره څکه نشته چې داهرڅه دظاهري اسبابو لاندې شوي دي، دتعجب خبره خوداده چې چا کتاب او قلم ته لاس نه وي وراوړې، په يو مدرسه يامکتب کښې قدم هم نه وي ايښې او هغه داسې کتاب د دنيا په وړاندې پيش کړي چې په زرګونو سعديان او په لکونو فيضيان په دې باندې قربانيدل دفخر کولو پنګه [سرمايه] ګنړي او خپل حاصل کړې علم او حکمت دهغوئ ﷺ دفيض تعليم اثر ګنړي، بيا دا چه دسعدي او فيضي دکلام مثل پيش کولو ضرورت څه دې؟ آيا دوئ دنبوت دعوي کړې وه، او خپلو کلامونه ته ئې دبې مثله اوبې نظيره کيدو له کبله خپله معجزه وئيلې وه او دنيا ته ئې داچيلنج ورکړې ووچه زمونږد کلام مثال څوک نشي پيش کولې، چه په نتيجه کښې ئې ددې د مقابلې کولو په غرض ددې په مثل پيش کولو خلق مجبوره وې، بيا يواځې دقرآن کريم فصاحت، بلاغت، نظم او ترتيب بې مثله نه دې بلکه دخلقو په زړونو او دماغو، ددې عجيبه تاثيرات کيدل زيات بې مثله او حيرانوونکي دي، ددې په وجه دقومونو مزاجونه بدل شو، انساني اخلاق بيخي په بل مخ واؤړيدل، د عربو تندخويه، جتان دزغم اخلاقو او علم وحکمت استاذان او منلې شو ددې حيرانوونکو انقلابي تاثيراتو او اقرار يواځې مسلمانان نه دموجوده زمانې په سوونو غيرمسلمو هم کړې دې، دېورپ دمستشرقينو مقالې چې دې باره کښې راجمع کړې شي نو يو مستقل کتاب به ترجوړشي، حکيم الامت حضرت مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله په دې موضوع، شهادة الاقوام علی صدق الاسلام نومې يو کتاب ليکلې دې دلته يو څو حوالې دهغه نه نقل کوؤ،

**د کفارو دقلم نه د قرآن پاک د حقانيت آواز:** ډاکټر ګستاولي بان په خپل کتاب تمدن عرب کښې په صفائې سره ددې دحيرانولو اقرار کړې دې دهغه دالفاظو ترجمه په پښتو ژبه کښې داده:

په دې پيغمبر اسلام په دې امي نبي څه حيرانوونکي واقعات تيرشوي دي دهغوئ ﷺ آواز داسې يونا رامه او بدمعاش قوم لره په قابو کښې راوستلو چه ديوبادشاه د حکومت لاندې نه وؤ راغلي، او دې درجې ته ئې اورسول چې هغوئ بيا، د دنيا لوئ لوئ سلطنتونه لاندې باندې کړل، او دا اوخت هم دغه امي نبي دخپل قبر [مبارک] نه، دالله په لکونو بندګان د اسلام په کلمه قائم [ټينګ] لرلي دي،

مسټر وډول کوم چې دقرآن کريم ترجمه په خپل ژبه کښې کړې ده هغه ليکي چه:

څومره څل چې مونږ دا کتاب [قرآن کريم] واړووراواړووا ووې ګورو، هومره په ړومبئ مطالعه کښې ددې ناخوښئ، دنوؤ نوؤ اړخونو نه خپل رنګ خيژوي، ليکن فورا مونږ لره په قابو کښې راولي او په آخر کښې مو په خپل تعظيم کولو آماده کوي، ددې دبيان طريقه ددې

دمضامينواو اغراضوپه اعتبار، پاکيزه، عالي شان اودرکه او زورنه ورکوونکي ده اوځائ په ځائ ددي دخبرو مضامين انتهائي بلندئ ته رسيږي، غرض داچه داکتاب په هره زمانه کښې خپل زور او اثر په مخه ښکاره کوي، [شهادة الاقوام ص۱۳]

دمصريو مشهورمصنف احمدفتحي بک راغلول په ۱۸۹۸ھ کښې دمستېرکونټ هنروي دکتاب الاسلام عربي ترجمه شائع کړې ده، اصل کتاب په فرانسي ژبه کښې وو، په دې کښې مستېرکونټ دقرآن کريم متعلق خپل تاثرات په دې الفاظوکښې ظاهرکړيدي:

عقل حيران دی چې داسې قسم کلام دې دداسې بنده دژبې نه، څنګه اداشي چې بيخي امي وو، ټول مشرق، اقرارکړې دی چې نوع انسان ئې لفظااومعناپه هرلحاظ سره دنظيرپيش کولونه عاجزدي، داهغه کلام دی چې ددې لوړې انشاپردازیٔ او فصاحت اوبلاغت عمربن الخطاب ﷺ لره مطمئن کړواو هغه ئې دخدائ اقراری کړو، داهغه کلام دې چې هرکله دحضرت يحيی عليه السلام دپيدائش باره کښې، دهغې جملې حضرت جعفربن ابی طالب ﷺ دحبشې دبادشاه په دربارکښې اولوستلې نو دهغه دسترګونه بې اختياره اوښکې جاري شوې اوښې په چغه اووئيل: داکلام دهغه سرچينې نه راوتلې دې دکومې نه چې دحضرت عيسی عليه السلام کلام راوتلې وو، [شهادة الاقوام ھ۱۴]

انسائيکلوپيډيابرټانيکاجلد ۱۲ ص ۵۹۹ کښې دي:

دقرآن کريم دمختلفوبرخومطالب ديوبل نه بالکل بدل دی، ډيرسره آيتونه، په ديني اواخلاقي خيالاتومشتمل دی، دمظاهرقدرت، تاريخ اودانبياؤپه ذريعه، په دې کښې دالله تعالی دعظمت، مهربانیٔ اوصداقت يادګيرنه کړې شوې ده بالخصوص دحضرت محمد ﷺ په واسطه، الله تعالی لره واحد اوقادرمطلق ښکاره کړې شوې دې، بت پرستی اومخلوق پرستی بې دځه لحاظ نه نارواټاکلې شوې ده، دقرآن کريم په باره کښې داخبره په ځائ کولې شی چې دادنيا د موجوده کتابونوپه نسبت دټولونه زيات لوستې شي،

دانګلستان يونامورتاريخ پوه ډاکټرګبن په خپل مشهورتصنيف [سلطنت روماکاانحطاط و زوال] جلد ۵ باب ۵۰ کښې ليکي:

دقران کريم په حق کښې دبحراټلانټک نه ترګنګاسيندپورې اوسيدونکو منلې ده، چه دادپارليمنټ [پارلمان] روح دې، اساسي قانون دې، يواځې داصول مذهب دپاره نه بلکه د تعزيراتوداحکامواوقوانينودپاره هم دې، په کوم چې نظام اړه لري اودبنی نوع انسان ژوند ورسره تړلې دې، دانساني ژونددترتيب اوتنظيم سره ئې ژورتړون دې، حقيقت دادې چې د حضرت محمد ﷺ شريعت په ټولوراچاپيره دې، داشريعت په دانشمندانه اصولواوپه داسې قانوني اندازمرتب شوې دې چې په ټول جهان کښې ددې نظيرنشی موندلې:

دلته ديورپ دمستشرقينوټول دسيرمې اود يوه مخه اقوال اواقرارونه رانقل کول څکه مطلوب نه دی چې ځائ نشته، صرف دنمونې دپاره يوڅواقوال نقل کړې شوی دی د هغې نه داواضح کيږی چې دفصاحت اوبلاغت په اعتبار اوداغراضو اومقاصدوپه لحاظ او د علومو او معارفو له مخه دقرآن کريم دبې نظيره اوبې مثله کيدواقراريواځې مسلمانانونه بلکه دهرې زمانې منصف مزاجو غيرمسلموهم کړې دې،

قرآن کريم ټولې دنياته دخپل مثال راوړلو چيلنج ورکړې وڅه رانه ووړلې شو، نن هم هريو

مسلمان په دنیا کښې دعلم او سیاست ماهرانو ته چیلنج ورکولو سره وئیلې شي چې دټولې دنیا په تاریخ کښې یو واقعه راته داسې اوښائې چې دلوئ نه لوئ ماهر حکیم فلسفي دراولاړشي، د ټولې دنیاد عقیدو، نظریاتو، رسمونو او عادتونو خلاف دیونوې نظام خپل هغه قوم ته پیش کړي چې بیخي ناپوه او جټان او بې علمه وي، بیا په ډیره لږه موده کښې ددې تعلیم دومره عام، او عملاً جاري کول دهم داسې حد ته اورسوي چې دهغې نظیر، په ننني مضبوط او پائیدار نظامونو کښې موندل نا ممکن وي،

د دنیا په تیرشوي تاریخ کښې ئې که مثال نشي موندې نودنوې رنړا، دروشن خیالئې او تیز رفتارئ په دې زمانه کښې خود ددې مثال پیش کړي، که یواځې څوک داکارنشي کولې نو خپل قوم بلکه د دنیا قومونه دراجمع کړي او مثال دپیش کړي،

﴿فَإِنْ لَمْ تَفْعَلُوا وَلَنْ تَفْعَلُوا فَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِي وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ ۖ أُعِدَّتْ لِلْكَافِرِينَ﴾ که مثال مودد دې راؤنه ړاو هیچرې ئې نشي راوړې نوبیا دهغه اور دجهنم نه اوویریږئ چې خشاک ئې انسانان او کاڼړي دي چې منکرانو دپاره تیارشویدي.

وَبَشِّرِ　　الَّذِينَ

هغه خلقو ته | اوزیرې ورکړه |

اوچې چا ایمان راوړې دې هغوئ ته |

آمَنُوا　وَعَمِلُوا　الصَّالِحَاتِ　أَنَّ　لَهُمْ　جَنَّاتٍ

چې ایمان ئې راوړې | او | عمل ئې اوکړو | نیک | بیشکه چې | دی دهغوئ دپاره | باغونه

زیرې ورکړه | اودنیکئ کارونه کوي | هغوي لره داسې باغونه تیار کړې شوي دي

تَجْرِي　مِنْ تَحْتِهَا　الْأَنْهَارُ　كُلَّمَا　رُزِقُوا　مِنْهَا　مِنْ ثَمَرَةٍ

بهیږي به | لاندې د هغې نه | نهرونه | هر کله چې | ورکړې شي هغوئ ته | د دغه باغونو نه | څه میوه

چې دهغې د اونو او بنګلو | لاندې همیشه ولې بهیږي | هروار چې دوئ ته د خوراک دپاره ددې باغونو نه څه میوه دانه

رِزْقًا　قَالُوا　هَٰذَا　الَّذِي　رُزِقْنَا　مِنْ قَبْلُ

دپاره دخوراک | نو اوبه وایئ دوئ | چې دا | هغسې میوې دی | چې راکړې شوې وې مونږ ته | وړاندې د دې نه

ورکړې شي | نو دوئ به وائ چې داخو هغه | رنګ | میوه ده چې مونږ ته پخوا | په دنیا کښې | راکولې شوه

وَأُتُوا　بِهِ　مُتَشَابِهًا　وَلَهُمْ　فِيهَا

او ورکولی به شي هغوئ ته | دغه میوې | دیو بل پشان | او وی به دهغوئ دپاره | په هغې کښې

او دامیوې به ورته هم شکل ورکولې شي | او دوی ته به په دغه باغونو کښې پاکدامنې جوړې ورکولې شي

أَزْوَاجٌ　مُطَهَّرَةٌ　وَهُمْ　فِيهَا　خَالِدُونَ

بیبیانې | پاکې | او وی به هغوئ | په هغې کښې | همیشه

[یعنی بیبیانې او د جنت حورې] او دوی به همیشه دپاره په هغې کښې وی

## آسان ترجمه قرآن

او چه کومو خلقو ایمان راوړې دې اوهغوی نیك عمل کړې دې هغوی ته زیرې ورکړه چه دوی د پاره داسې باغونه (تیار) دي چه د هغې نه لاندې به نهرونه بهیږي چه کله هم دوی ته ددې (باغونو) نه څه میوې د خوراك دپاره ورکولې شي نو هغوی به وائي چه دا خوهغه میوې دي چه مونږ ته مخکښې راکړې شوې وې اوهغوی ته به دارزق داسې ورکولې شي چه یوبل سره به په کتلو کښې یو شان وي او هغوی دپاره به هلته پاکې بیبیانې وی اوهغوی به په دې (باغونو) کښې همیشه همیشه اوسیږی.

## خلاصه تفسیر

﴿ وَبَشِّرِ الَّذِينَ آمَنُوا﴾ اوزیرے ورکړه هغه کسانو ته چه ایمان ئے راوړو ﴿وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾ او کارونه یئ اوکړل ښه، ﴿أَنَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ﴾ ددې خبرې چه بیشکه هغوی دپاره باغونه دی ﴿تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ﴾ چه روان به وی د هغې لاندے نهرونه، ﴿كُلَّمَا رُزِقُوا مِنْهَا﴾ کله چه ورکړې شی هغوی ته ددې جنتونو نه ﴿مِن ثَمَرَةٍ﴾ څه میوے ﴿رِّزْقًا﴾ دخوراك ﴿قَالُوا هَٰذَا الَّذِي﴾ نوهر ځل به وائی چه دا خو هغه ده ﴿رُزِقْنَا مِن قَبْلُ﴾ چه مونږ ته ملاو شوې وه ددې نه وړاندې ﴿وَأُتُوا بِهِ مُتَشَابِهًا﴾ او ورکړې کیږی به هغوی ته [دواړه ځله] میوه د یوشان رنګ ﴿وَلَهُمْ فِيهَا﴾ او هغوی دپاره به په دې باغونو کښې ﴿أَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ﴾ بیبیانے وی صفا پاکې کړې شوې ﴿وَهُمْ فِيهَا خَالِدُونَ﴾ اودغه خلق به، دغه باغونو کښې همیشه استوګن وی [هر ځل به دیورنګ میوه ورکول د مزې دپاره وی، دواړه ځل به میوه په یو شکل وی چه هغوی به دا اوګنړی چه ګویا دا دواړه میوې دیو قسم دی خوخوراك کښې به یئ مزې بدلې وی چه خوند او خوشحالی به ورسره زیاتیږی].

**د آیتونو ربط** ددې نه وړاندې آیت مبارك کښې د هغه خلقو دعذب بیان وو کوم چې قرآن پاك نه منی دې آیت مبارك د قرآن پاك منوونکی دپاره د بشارت او خوشخبری ده. او په دې کښې د جنت د عجیبه عجیبه میوؤ او د جنت د حورو بیان دې.

## معارف اومسائل

په جنت کښې بیل بیل خوندوالامیوې په یوشکل کښې دپیش کولوحکمت دسیل کولواومزې اغستوسامان جوړول دی اوځنې مفسرین رحمهم الله ترې دامراداخلی چې شکلونه به ئې د مخکښې دنیا دمیوویشان وی خو خوندنو کښې به ترې ډیرې اعلی وی صرف نوم به ئې د دنیا د میوؤ پشان وی

دصفااو پاکو بیبیانومطلب دادې چې دنیوی،ظاهری،اخلاقی ګندونواوپلیتونه به پاکې وی، لوئ واړه بول،حیض اونفاس به ئې نه وی اونه به پکښې داسې بل څه څیز موندې شی دکومونه چې انسان کرکه کوی،معنوی عیبونه،کوږخوئ اوبیوفائ به هم پکښې نه وی دهغې نه به پاکې وی، په آخرکښې ئې اوفرمائیل دجنت نعمتونه د دنیادنعمتونوپشان تلی، راغلی، فانی مه ګڼرئ چې دختمیدویااوپس اغستوخطره ئې وی،بلکه دوئ سره به دغه نعمتونه تل دپاره وی چې خوشحاله خوش بخته به هلته پاتې کیږی،

دلته دمؤمنانودپاره دجنت زیری ورکولودپاره ایمان سره دعمل صالح قیدلګولې شوې دې ځکه چې ایمان بغیردعمل صالح نه انسان لره ددې زیری مستحق نه جوړوی اګرچه صرف ایمان

هم په جهنم کښې دهمیشه پاتې کیدونه بنده لره بچ کوي یعني که ایمان دارهرڅومره ګناهګار وي دجهنم نه به څه وخت خوخلاصې بیاموmي اودجنت به بیاهمیشه استوګن پاتې کیږي مګرد جهنم دعذاب نه دسره خلاصې به هغه وي چې ایمان سره عمل صالح هم ملګرې کړې شي [روح البیان، قرطبی] (۱)

إِنَّ اللّٰهَ　لَا يَسْتَحْيٖٓ

| بیشکه الله | شرم نۀ کوي |

| بیشکه الله پدې نه شرمیږي |

أَنْ يَّضْرِبَ　مَثَلًا　مَّا بَعُوْضَةً　فَمَا فَوْقَهَا ۭ　فَأَمَّا الَّذِيْنَ　اٰمَنُوْا

چې بیان کړي | مثال | دیو ماشي | یازیات سپك دهغه نه | نو هغه خلق | چې ایمان ئې راوړې دې

چې یومثل بیان کړي | که هغه دماشي وي اوکه د ماشي نه هم کم وړوکې څیز وي | نومؤمنان خو په دې

فَيَعْلَمُوْنَ　أَنَّهُ　الْحَقُّ　مِنْ رَّبِّهِمْ ۚ　وَأَمَّا الَّذِيْنَ　كَفَرُوْا

پوهیږي هغوی | چې دامثال | حق دې | دطرفه درب دهغوئ نه | اوکوم خلق چې | نۀ منونکی دی

دیرښه پوهیږي چې دامثل په ربښتیادالله دطرفنه دې [چې مونږ پرې پوهوی] پاتې شوکافران

فَيَقُوْلُوْنَ　مَاذَآ أَرَادَ　اللّٰهُ　بِهٰذَا　مَثَلًا ۘ　يُضِلُّ　بِهٖ　كَثِيْرًا ۙ

نو هغوئ وائي | چې څه اراده کړې ده | الله | په دې | مثالونو سره دبیانولو | ګمراه کوي | په دې سره | ډیر خلق

نوهغوئ وائي چې په داسې مثل وئیلو کښې دالله څه مطلب دې | په داسې مثلونوسره الله ډیر ګمراه کوي

وَّيَهْدِيْ　بِهٖ　كَثِيْرًا ۭ　وَمَا يُضِلُّ　بِهٖٓ　إِلَّا الْفٰسِقِيْنَ ۙ

اوصحیح لاربښائي | په دې سره | ډیروته | اونۀ ګمراه کوي | په دې سره | مګر فاسقان خلق

اوډیروته پرې سمه لاربښائي | اوپه داسې مثلونو باندې صرف هغه فاسقان ګمراه کوي |

الَّذِيْنَ　يَنْقُضُوْنَ　عَهْدَ اللّٰهِ　مِنْ بَعْدِ　مِيْثَاقِهٖ ۠　وَيَقْطَعُوْنَ　مَآ

هغه فاسقان | چې ماتوي | وعده | دالله | روستو | دمضبوطوالي دهغې نه | اوپریکوي | هغه |

چې دالله سره په ښه شان سره پخه کړې وعده بیابیا ماتوي | اوهغه تعلقات [خپلولي] پریکوي دکوموچه

أَمَرَ اللّٰهُ　بِهٖٓ　أَنْ يُّوْصَلَ　وَيُفْسِدُوْنَ　فِي الْأَرْضِ ۭ

چې حکم کړې دې الله | په هغې سره | چې پیوند دې کړې شي | اوفساد کوي | په زمکه کښې

الله تعالی د ساتلو حکم کړیدې | اوپه ملک کښې فسادونه جوړوي

أُولٰٓئِكَ　هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ۝

هم داخلق | په حقیقت کښې تاوانیان دی |

همدا خلق زیان کاران دی [ښه ئې اوپیژنئ] |

---

(۱) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة: ۱/ ۲۳۸

## آسان ترجمه قرآن

بې شکه الله تعالیٰ ددې خبرې نه، نه شرميږي چه هغه (دځه خبرې د وضاحت دپاره) څه مثال وركړي، كه هغه دماشي (غونډې د معمولي څيز) وي يا دځه داسې څيزوي چه دماشي نه هم زيات (معمولي) وي اوس چه كوم خلق مؤمنان دي هغوى بنه پوهيږي چه دا مثال يو حق خبره ده چه ددوى د پروردګار دطرف نه راغلې دې خوچه كوم خلق كافر دي هغوى وائي چه ددې (حقير) څيزنه د الله تعالیٰ څه مطلب دې؟ (دغه شان) الله تعالیٰ دې مثال سره ډير خلق په ګمراهئ كښې مبتلا كوي او ډيروته هدايت كوي (مګر) هغه هم هغه چالره ګمراه كوي چه كوم نافرمانه وي هغه خلق چه الله تعالیٰ سره وعده پس د پوخ والي نه هم ماتوي اودكومو رشتوچه الله تعالیٰ د پاللوحكم كړې دې هغه كټ كوي او زمكه كښې فساد كوي داسې خلق ډير نقصان كښې دي.

### خلاصه تفسير

ځيني مخالفينو دا اعتراض كولو چه قرآن كريم كلام الهي څكه نشي كيدې چه په دې كښې دماشي او مچ وغيره ذليل قسمه څيزونو ذكر د تمثيلاتو په ډول شوې دې نو الله ﷻ جواب وركوي چه هو ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَسْتَحْيِي﴾ واقعي الله ﷻ نه شرميږي ﴿أَنْ يَضْرِبَ﴾ چې بيان كړي ﴿مَثَلًا مَا بَعُوضَةً﴾ چه څه مثال كه د ماشي وي ﴿فَمَا فَوْقَهَا﴾ يا كه ددې نه دزيات څيز وي [يعنى په سپكوالي كښې د ماشي نه هم زيات وي] ﴿فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا﴾ نو چه كوم خلقو ايمان راوړې دے ﴿فَيَعْلَمُونَ أَنَّهُ الْحَقُّ﴾ [هر څه چه وي] هغوى به هم دا يقين كوي چه بيشكه دا مثال دموقعے زيات مناسب دے ﴿مِنْ رَبِّهِمْ﴾ دهغوى دپروردګار له طرفه. ﴿وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ پاتې شو هغه خلق چه كافران شوى دى [نو هر څه چه كيږي] ﴿فَيَقُولُونَ مَاذَا أَرَادَ اللَّهُ﴾هغوى به په مخه همداسې وائي چه هغه به كوم مطلب وي چه قصد ئې كړې وى الله ﷻ ﴿بِهَذَا مَثَلًا﴾ ددې سپك مثال نه. ﴿يُضِلُّ بِهِ كَثِيرًا﴾ ګمراه كوي الله ﷻ ددې مثال په وجه ډيرو لره ﴿وَيَهْدِي بِهِ كَثِيرًا﴾ او هدايت كوي ددې په وجه ډيرو ته ﴿وَمَا يُضِلُّ بِهِ﴾ او نه ګمراه كوي الله ﷻ په دې مثال سره چالره ﴿إِلَّا الْفَاسِقِينَ﴾ مګر صرف نافرماني كوونكو لره ﴿الَّذِينَ يَنْقُضُونَ عَهْدَ اللَّهِ﴾ چه په مخه ماتوى دا لوظ اوقول، چه الله ﷻ سره يئ كړې وو ﴿مِنْ بَعْدِ مِيثَاقِهِ﴾ددې د مضبوطولو نه پس [يعنى دازل په قول كښې چه ټولو روحونو الله ﷻ سره كړې وو] ﴿وَيَقْطَعُونَ مَا أَمَرَ اللَّهُ بِهِ أَنْ يُوصَلَ﴾ اوپه مخه پريكوى هغه تعلقات چه حكم كړې دې الله ﷻ دهغې د پيوند كولو [په دې كښې ټول شرعى تعلقات داخل دى كه هغه د الله ﷻ او بنده ترمينځه دى او كه د بندګانو خپلوخپلوانو د عامو مسلمانانو او عامو انسانانو ترمينځه وى] ﴿وَيُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ﴾اوپه مخه فساد كوى په زمكه كښې [كفر اوشرك پخپله هم فساد دې په نورو ظلم كول او حق نه پيژندل چه كفر سره لازم دى دا هم فساد كښې شامل دى] ﴿أُولَئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ﴾هم دا خلق په پوره زيان كښې پريوتونكى دى [چه ددنيا آرام اود آخرت د نعمتونو ټولو نه لاس اووينځى ولې چې دحسد كوونكى دنيوى ژوند هم تل دپاره تريخ پاتې كيږي].

### معارف اومسائل

**دآيتونوتړون:** قوله تعالى: ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَسْتَحْيِي أَنْ يَضْرِبَ مَثَلًا﴾ په څو آيتونو وړاندې د قرآن كريم دادعوى

ذکرشوې ده چې قرآن کریم کښې دغه شک ،شبهې ځائ نشته،که دچاداشک وی چې داکلام الهي نه دې نوهغه د ددې ديوورکوټی نه ورکوټی سورت مثل جوړکړی،ښکاره دئې کړی،اوس په دې آيتونوکښې دقرآن کريم دمنکرانو ديوشبهې ذکراودهغې جواب دې،شبه داده چې قرآن کريم کښې د ماشي اومچ غوندې سپکوڅيزونو ذکر راتلل دالله تعالى دکلام دعظمت نه خلاف دی،که دادالله تعالى کلام نو په دې کښې به دداسې سپکو او ذليلوڅيزونوذکرنه وؤځکه چې لوئ خلق د داسې څيزونوديادولونه شرم اوحيا کوی.

جواب ئې په داشان ورکړې شوچه کله د يو حقير او ذليل څيز مثال ورکوی نو دعقل او بلاغت مقتضا ده چې د يوسپک ډت او ذليله څيز په مثال کښې هم سپک ډت څيزذکرکړې شی چې دشرم اوحيانه خلاف نه دی اوځکه الله لره هم په دې څيزونو ذکر کولو شرم نه ورځی، دائې هم اوښودل چې داسې بيوقوفانه شبهې راپورته کول دهغه خلقوکارکيدې شی چې په زړونو او دماغونو کښې ئې دپوهيدوصلاحيت بيخی ختم شوې وی،دايماندارو په زړونو کښې داسې قسم شبهې هيچرې نه راپورته کيږی،

دې نه پس ئې يوحکمت داهم بيان کړوچه داسې مثالونه بيانول دخلقودامتحان په غرض هم وی،فکرونظرلرونکولره دامثالونه دهدايت سامان پيداکوی اودبې پروائې عادت والا خلقو دپاره دزياتې ګمراهئ سبب جوړيږی،ورپسئ ئې د ا اوښودل چې دقران کريم په دې مثالونو سره صرف هغه سرکش خلق ګمراه کيږی،چه الله تعالى سره کړې لوظ قول ماتوی اودکوم تعلق اوتړون پيوندولوچه الله تعالى حکم کړې دې داخلق ئې ماتوی چې نتيجه ئې په زمکه کښې فساد پيدا کول دی.

قوله تعالى - ﴿ بَعُوضَةً فَمَا فَوْقَهَا ﴾ [چه ماشي وی يا ددې نه هم زيات] دلته دزياتوالى نه مطلب په سپکوالى کښې زياتوالې دې [مظهری] (۱)

قوله تعالى - ﴿ يُضِلُّ بِهٖ كَثِيرًا وَّيَهْدِىْ بِهٖ كَثِيرًا ﴾ دقرآن کريم په دې مثالونه سره ډيروخلقوته هدايت کول خوښکاره خبره ده خو په دې باندې د ګمراه کولومطلب دادې چې ځنګه قرآن منونکواوپه دې دعمل کوونکودپاره داد هدايت ذريعه جوړيږی دغه شان دنامنونکواو په د ې باندې دعمل نه کوونکويعنی دې نه دانکارکوونکو دپاره ذريعه دګمراهئ جوړيږی.

قوله تعالى - ﴿ وَمَا يُضِلُّ بِهٖٓ اِلَّا الْفٰسِقِيْنَ ﴾ دفسق لفظی معنی خروج يعنی بهروتل دی،د شريعت په اصطلاح کښې د الله تعالى دفرمانبردارئ نه وتل فسق دې،دالله تعالى دفرمانبردارئ نه وتل دکفراوانکارپه ذريعه هم وی اودعملی نافرمانئې په ذريعه هم،ځکه فاسق لفظ دکافر دپاره هم استعماليږی، لکه قرآن کريم کښې ډيرکرته فاسقين لفظ دکافرانودپاره استعمال شوې دې مؤمن ګنهګارته هم فاسق وئيلې شی ځنګه چې دفقهاؤاصطلاح ده چې د فاسق لفظ دکافرلفظ مقابل استعماليږی يعنی څوک چې لويه ګناه کوی توبه ترينه اوباسی ياوړه ګناه په دوام سره کوی،عادت ئې جوړکړی نودفقهاؤپه اصطلاح کښې دې ته فاسق وائی.[مظهری] (۲) اوڅوک چې دفسق کارونه اوګناه ښه په ښکاره اوزړورتيا سره کوی نوهغه ته فاجروئيلې شی،

---

(۱) تفسير المظهری تحت هذه الآية: ۱/ ۴۲

(۲) تفسير المظهری تحت هذه الآية: ۱/ ۴۳

دآيت معنى داده چې دقرآن دې مثالونوسره ډيروخلقوته هدايت كيږى اوډيروخلقوپه برخه كښې گمراهى راځى مگرپه دې مثالونوسره گمراه كيدل صرف دهغه كسانوپه برخه وى چې فاسقان يعنى دالله تعالى دفرمانبردارئ نه بهروتونكى دى اوڅوک چې دالله تعالى څه قدرې ويره لرى هغوئ هم هدايت حاصلوى.

قوله تعالى- ﴿الَّذِيْنَ يَنْقُضُوْنَ عَهْدَ اللهِ مِنْۢ بَعْدِ مِيْثَاقِهٖ﴾ عهد دمعاملې اومعاهدې هغه صورت ته وئيلې شى چې د دوؤكسانوترمنځه سره شوى وى اوميثاق هغه معاهده ده چې په قسم سره كلكه كړې شى، په دې آيت كښې دړومبى آيت دمضمون نوره زياته تشريح ده اودقرآن كريم دمنكرانودبد انجام ذكردې،يعنى داچه دقرآن په دې مثالونوسره چې مشركانو باندې اعتراض كړې دې يوائې هغه خلق گمراه كيږى چې دحق تعالى داطاعت اوفرمانبردارئ نه سركشى كوى چې د هغې دوه وجې دى:

① داچه دوئ هغه ازلى لوظ او قول ماتوى چې ټولوانسانانوخپل رب سره كړې وؤ،هركله چې الله تعالى دخلقودپيداكولونه ړومبى دهغوئ روحونه راجمع كړل داسوال ئې پرې اوكړو﴿اَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ﴾ [آيازه ستاسو پروردگارنه يم،نو ټولوپه يو آواز وئيلى وؤ] بلى [هو،ته به زمونږ پروردگار ولې نه ئې] داډيرمضبوط اقراردې چې الله تعالى جل شانه،زمونږرب او پروردگار دې، ددې لازمى تقاضاداده چې مونږدهغه دفرمانبردارئ نه وينبته دسرقدرې هم تيرنه شو،په دې وجه دا ازلى لوظ،د الله اودانسان ترمنځه اوشو،بيادنيا كښې پيداكيدونه پس ددې لوظ د نوى كولواوياد گيرنې دپاره انبياء ﷺ اوآسمانى كتابونوددې عملى تفصيلات ښودل، نو چا چه دالوظ مات كړوهغه نه څه اميدكيدې شى چې هغه دِ ديوپيغمبريا آسمانى كتابونو څخه فائده پورته كړى؟

② بله وجه ئې داده چې دې خلقوهغه ټول تعلقات اوشلول چې دهغې ديوځائ اوپيوندلرلوحكم الله تعالى كړې وو،داتعلقات هغه هم كيدې شى چې الله اوبنده ئې خپل منځ كښې لرى اوهغه هم كيدې شى چې دانسان،دهغه دمورپلاراونوروعزيزانوخپلوانوترمنځ دى،هغه تعلقات ترهم مراد كيدې شى چې انسان ئې خپل گاوندى [همسايه]،ملگرى،اوپه كاركښې شريک بنده سره لرى،ددې ټولوحقوقوداداكولونوم اسلام ياشريعت اسلام دې،په دې كښې چې كوتاهى اوشى نوتوله زمكه كښې فسادراځى ځكه ئې دې جملې پسې اوفرمائيل قوله تعالى: ﴿وَيُفْسِدُوْنَ فِي الْاَرْضِ﴾ [داخلق په زمكه كښې فساد راپورته كوى] په آخرى آيت كښې ئې ددې دخراب انجام ذكرداسې اوفرمائيلو: دا خلق په غټ زيان كښې دى.

**دمثال په ډول څه سپک ذليل،ياشرمناک خيزذكركول هيڅ بدبت نه لرى** قوله تعالى: ﴿اِنَّ اللهَ لَا يَسْتَحْيٖٓ﴾ نه ثابته شوه چې دڅه مفيدمضمون دوضاحت په غرض څه سپک،ذليل،ياشرمناک خيزذكر كول د عيب اوگناه خبره نه ده،اونه دويونكى لوئ شان سره بې سمونه ده دقرآن،سنت او د پخوانو علماؤ په اقوالو كښې داسې مثالونه هم راغلى دى چې شرمناک گڼړلې شى خوقرآن اوسنت ددې عرفى شرم اوحياڅه پرواكولونه بغيراصل مقصدلحاظ اوساتلواودې مثالونه پيش كولونه ئې ځان اونه ساتلو قوله تعالى: ﴿يَنْقُضُوْنَ عَهْدَ اللهِ﴾ نه ثابته شوه چې دعهد،معاهدې خلاف كول سخته گناه ده چې په نتيجه كښې ئې دټولونيكيؤنه محرومه كيدل هم شته.

**دتعلقاتو حقوق ترمیه اداکول، واجب دي ددې خلاف کول لویه ګناه ده قوله تعالیٰ:** ﴿وَيَقْطَعُونَ مَآ أَمَرَ اللّٰهُ بِهِ أَنْ يُوصَلَ﴾ نه معلومه شوه چې هغه تعلقات قائم ضروري اوپريکول ئې حرام دي دکومو تعلقاتو قائم لرلوچه اسلامی شريعت حکم کړې دې، که په ژورنظرا وکتلې شي نودين اومذهب ددې حدودواوقيودونوم دې چې دالله تعالی اودبندګانو دحقوق اداکولودپاره مقرردي اوددې عالم درستوالي او ورانوالي په تعلقاتو درست لرلو يا ماتولو پورې اړه لری له دې کبله **قوله تعالیٰ:** ﴿وَيُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ﴾ سره دا اوښودلې شوه چې داتعلقات شلول دعالم دفساداو ورانئ وجه ده، ﴿أُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ﴾ زيان کاره خلق ئې صرف هغه اوتاکل چې دذکرشوواحکامو خلاف ورزی کوی، په دې کښې اشاره ده خبرې ته هم ده چې اصل زيان اونقصان يوائې دآخرت دې، ددنيا زيان داسې نه دې چې مخه ورپسې يوړې شي يعنې توجه ورته اوکړې شي.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | كَيْفَ | تَكْفُرُونَ بِاللّٰهِ | وَكُنْتُمْ | |
| | | څرنګې | تاسو انکار کوئ دالله نه | او حال دا چې وئ تاسو | |
| تاسو دالله [ دوجود نه ] څنګه انکار کولې شئ نه ګورئ چې تاسو | | | | | |
| أَمْوَاتًا | فَأَحْيَاكُمْ | ثُمَّ | يُمِيتُكُمْ | ثُمَّ | يُحْيِيكُمْ |
| مړه | نو ژوندي يې کړئ تاسو | بيا | به مړه کړی تاسو | بيابه | [دوباره] ژوندی کړی تاسو |
| مړه وې نو هغه ژوندي کړئ اوس يوځل بيابه تاسومړه کړی اوبيا به مودوباره ژوندی کړی | | | | | |
| ثُمَّ | إِلَيْهِ | تُرْجَعُونَ | هُوَ الَّذِي | خَلَقَ | لَكُمْ مَّا |
| بيا به | هغه ته | واپس کيږئ تاسو | هم هغه دې | چې پيدا کړے ئې دی | ستاسو دپاره هغه څيزونه |
| اوبيابه هغه ته واپس شئ الله هغه ذات دې چې ستاسو دفائدې دپاره ئې د زمکې ټول نعمتونه | | | | | |
| فِي الْأَرْضِ | جَمِيعًا | ثُمَّ | اسْتَوَىٰ إِلَى السَّمَاءِ | فَسَوَّاهُنَّ | سَبْعَ سَمَاوَاتٍ |
| چې په زمکه کښې دی | ټول | بيائې | توجه اوکړه پورته طرفته | نو برابرئې کړل | اووه آسمانونه |
| پيدا کړل | بيا ئې د آسمان پيدا کولو اراده اوکړه نواووه آسمانونه ئې پيدا کړل | | | | |
| وَهُوَ | بِكُلِّ | شَيْءٍ | عَلِيمٌ | | |
| اوهغه | په هر | څيز | عالم دې | | |
| اوهغه په هرڅه باندې ښه پوهه دې | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

تاسودالله تعالی سره څنګه کفر کوئ حالانکه تاسونيشت وئ هم هغه تاسوته ژوند درکړوبيابه هغه تاسومړه کوی بيابه تاسو(دوباره) ژوندی کوی بيا به تاسوهغه ته واپس کيږئ هم دهغه ذات دې چه په زمکه کښې څه دی تاسودپاره ئې پيدا کړی دی بيا هغه آسمان طرف ته متوجه شو نوهغه ئې د اووه آسمانونوپه شکل کښې صحيح صحيح جوړ کړل او هغه ته د هر يو څيز پوره پوره علم دې.

## خلاصه تفسیر

﴿كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ﴾ بنه ده نو تاسو ولې ناشکری کوئی د الله ﷻ [چه احسانات یې هیرونی او د نورو کلمه وائی] ﴿وَكُنْتُمْ اَمْوَاتًا﴾حالانکه [په دې واضح دلائل قائم دی چه صرف یوازې دالله ﷻ ذات دعبادت مستحق دې لکه داچه] وئی تاسو بې روحه [یعنی نطفه کښې دساه راتلو نه وړاندې] ﴿فَاَحْيَاكُمْ﴾ بیائې ساه دار کړئی﴿ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ﴾ بیا به مو مړه کړی، ﴿ثُمَّ يُحْيِيْكُمْ﴾ بیا به موژوندی کړی [یعنی دقیامت په ورځ] ﴿ثُمَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ﴾ بیا به هم هغه ته واپس شئ [یعنی دقیامت په ورځ په میدان کښې به ورته حاضر کړې شئ] ﴿هُوَ الَّذِيْ خَلَقَ لَكُمْ﴾ دا داسې پاك ذات دې چې پیدا ئې کړل ستاسو د فائدې دپاره ﴿مَّا فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا﴾څه چه په زمکه کښې موجود دی ټول [دې نه مطلب عامه فائده ده، دخوراك څښاك، داغوستو او نورګزران کولو یا دنکاح کولواوروح ته د تازګئی ورکولو وی. دې نه معلومه شوه چه ددنیا داسې هیڅ څیز نشته چه انسان ته به یې فائده نه رسی ددې نه دا نه لازمعلومیږی چه دهر څیز هر قسم استعمال دې حلال وی لکه وژونکی زهر ژن څیزونه هم چه انسان دپاره مفید دی دهغې خوراك د عقلمندو په نزد منع دې] ﴿ثُمَّ اسْتَوٰى اِلَى السَّمَآءِ﴾ بیا ئې توجه اوکړه آسمان طرف ته [یعنی ددې د پیداکولو اومکمل کولو طرف ته] ﴿فَسَوّٰىهُنَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ﴾ نو برابر یې جوړ کړل اووه آسمانونه ﴿وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ﴾او هغه خو په ټولو څیزونو پوهیدونکې اوپالونکې دې.

## معارف اومسائل

**دآیتونوتړون:** قوله تعالی- ﴿كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ﴾ په تیروشوؤآیتونو کښې دالله تعالی دوجود، توحید او رسالت دواضحودلائلو، دمنکرینو، مخالفینودباطلوخیالاتوردذکروو،په دې اوسنی دوؤ آیتونو کښې دالله تعالی احسانات اوانعامات ئې ذکرکړل اوتعجب ئې اوکړوچه سره د دومره احساناتو،داظالمان څنګه په کفراوانکارکښې اخته دی،او پکښې داخبرداري دې که په دلیلونوکښې دغورکولوتکلیف نشی کولې نوکم از کم دمحسن احسان منل،دهغه تعظیم او فرمانبرداری کول خودهرشریف انسان،فطری اوطبعی تقاضاده ددې لارې نه خودالله تعالی فرمانبرداریٔ ته رسی،

په ړومبی آیت کښې دهغه مخصوص نعمتونوذکردې چې دهرانسان په ذات اونفس کښې دننه موجود دی چې اول دبې ساه ذراتوپه شکل کښې ووبیاالله تعالی پکښې ژوندپیداکړو وروسته آیت کښې دهغه عام نعمتونوذکردې چې انسانان اوعام مخلوقات ترې فائده اوچتوی اوهغه دانسان دژونداوبقاءدپاره ضروری دی،دې کښې ئې اول دزمکې اوددې دپیداوارذکراوکړوچه ورسره دانسان نزدې تړون دې،بیادآسمانونوذکراوکړې شوچه ورسره دزمکې ژونداوپیداوار تړلې دې،

**قوله تعالی:** ﴿كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ﴾ [څنګه دالله تعالی انکارکوی] دې خلقواګرچه په ظاهره دالله تعالی انکارنه ووکړې خودالله درسول انکارئې دالله انکاراوبللو اوداسې خطاب اوکړې شو،

**قوله تعالی:** ﴿وَكُنْتُمْ اَمْوَاتًا فَاَحْيَاكُمْ﴾ اموات دمیت جمع ده،مراوبې ساه څیزته وئیلې شی،مراددادې چې که انسان په خپل اصل حقیقت غوراوکړی نو ورته معلومه به شی چې دده دوجودابتداء هغه بې ساه ذرات دی چې څه د چکه او ختنه څیزونو،څه دبهیدونکوڅیزونواوڅه دغذاګانوپه

صورت کښې په ټوله دنیاکښې خواره وو، الله تعالی دغه بې ساه څیزونه دکوم ځای نه راجمع کړل؟
﴿ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ﴾ یعنی چاچه رومبی ځل ستاسو بې ساه ذرات راجمع کړل اوساه ئې پکښې پیداکړه، په دې دنیاکښې چې ستاسودعمرټاکلې وخت پوره شي نومرګ به درکړي اوبیابه څه موده پس په قیامت کښې دغه، شان، ستاسودبدن بې ساه اوخواره واره ذرات راجمع کړي، ژوندي به موکړي داشان یومرګ یعنی بې ساه کیدل ستاسو، په شروع کښې هم وؤ، الله تعالی ژوندي کړئ، دویم مرګ به هغه وخت درکړي چې د دنیاعمرپوره کړئ اوبل ژوندبه مودقیامت په ورځ وي،
دړومبي مرګ اوژوندترمنځه چونکه څه فاصله نه وه ځکه پکښې صرف. فاء استعمال شوه ﴿فَأَحْيَاكُمْ﴾ او چونکه د دنیوي ژونداومرګ ترمنځه اوداشان ددې مرګ اودقیامت ترمنځه ډیره فاصله اووقفه ده نوځکه په دې کښې ﴿ثُمَّ﴾ راوړې شولکه فرمائی ﴿ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ﴾ ځکه چې لفظ د ثم هلته استعمالیږي چې زیاته موده په مینځ کښې وي.
**قوله تعالی:** ﴿ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ﴾ یعنی بیابه تاسو، هغه پاک ذات اړخ ته واپس ځئ، دې نه مراد دحشر، نشراو قیامت وخت دې، په دې آیت کښې الله تعالی دخپل هغه انعام اواحسان ذکرکړې دې چې دهر انسان خپل ځان سره تړلې دې اونورټول انعامات اواحسانات په دې اړه لري، یعنی ژوند د دنیااو آخرت اودزمکې آسمان ټومره نعمتونه چې انسان ته حاصل دی هغه ټول په دې ژوندموقوف دی مګرپه دې آیت کښې ئې مرګ هم ددې نعمتونوپه لړئ کښې ځکه شمیرلې دې چې دادنیوي مرګ دهغه همیشه ژوند[دآخرت] دروازه ده چې روستو ترې بل مرګ نشته، په دې لحاظ دامرګ هم نعمت شو،
د مذکوره مسئلې څخه ثابته شوه چې څوک در سول الله ﷺ دپیغمبرئ څخه منکروي، یا قرآن کریم لره کلام الٰهی نه منی اګرچه داسې بنده په ظاهره دالله تعالی دوجوداودهغه دعظمت نه انکارنه کوی مګردالله تعالی په نزد هغه دالله تعالی دمنکرانوپه لړئ کښې شمیردې،
**برزخي ژوند:** په دې آیت کښې د دنیادژونداومرګ نه پس صرف دیوژوندذکردې چې دقیامت په ورځ به وي، دقبرژوند، دکوم په ذریعه چې دقبرسوال، جواب اوپه قبرکښې دثواب اوعذاب ملاویدل، دقرآن کریم دګنړوآیتونواوحدیث متواترو روایتونونه ثابت دی، په دې آیت کښې ددې ذکرځکه نشته چې برزخي ژوند د دنیوي ژوندیااخروي ژوندپشان نه دې بلکه ددې مثال دیوخوب دې چې ورته د دنیادژوندتکمله اودآخرت دژوندمقدمه هم وئیلی شي، هر کله چې داځانله یومستقل ژوندنه دې ځکه ئې لحاظ او ذکراونکړې شو.
**قوله تعالی** - ﴿هُوَ الَّذِي خَلَقَ لَكُمْ مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا﴾ الله تعالی هغه ذات دی چې داټول څیزونه دسیرمې ئې ستاسودپاره پیداکړل څه چې په زمکه کښې دی، داهغه عام نعمت ذکردې چې ټول انسانان اوحیوانات پکښې هم شریک دی، په دې یولفظ کښې دټولونعمتونواجمال راغلو چه دنیاکښې چاانسان ته حاصل شویاحاصلیدې شي، ځکه چې دانسان غذا، لباس، مکان، دارودرمل [دوا] اودده دآرام اوراحت ټول سامان هم دزمکې پیداواردې،
**قوله تعالی** - ﴿ثُمَّ اسْتَوَىٰ إِلَى السَّمَاءِ فَسَوَّاهُنَّ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ ۚ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾ د استواء لفظي معنی سمیدل دی، مراد ترې دادې چې د زمکې دپیداکولونه پس الله تعالی دآسمانونودپیداکولوسم قصداوکړوچه په دې کښې څوک حائل او مانع نشي. تردې چې د اووه آسمانونو تخلیق ئې

اوکړو، اوهغه په هرڅیزپوهیدونکې دې ځکه دکائناتوپیداکول ورته څه ګران کار نه دي،

**د دنیا هر یو څیز فائده مند دې هیڅ یوڅیزبیکاره نه دې:** په دې آیت کښې د زمکې د ټولو څیزونو، انسان دپاره دپیداکولوبیان شوې دې،دې نه یوه خبره داهم معلومه شوه چې د دنیاهیڅ یو څیزداسې نه دې چې دهغې نه انسان ته په څه شان [بالواسطه یابې واسطه] به څه فائده نه رسی، خواه که دافائده په دنیاکښې ددې استعمال وی یاپه آخرت کښې دعبرت حاصلولو وی، ډیروڅیزونوفائده خوانسان محسوسه کوی لکه غذا،دارو درمل چې په استعمال کښې ئې بلاواسطه راځی،اوډیرڅیزونه داسې دی چې انسان ته ئې فائده رسی خوانسان ترې خبر هم نه وی، تردې چې انسان دپاره مضر ګڼړونکې [ضرری] څیزونه،مثلازهرجن څیزونه،زهرجن حیوانات وغیره په څه شان او حیثیت دانسان دپاره نفع بخش هم وی،اوداشان کوم څیزونه چې انسان دپاره حرام دی په څه بل حیثیت ئې نفع انسان ته رسی،

نہیں ہے چیز نکمی کوئی زمانے میں      کوئی برا نہیں قدرت کے کارخانے میں

**ترجمه:** نشته یو څیز عبث په زمانه کښې .....کوم یو څیزهم بد نه دې د قدرت په کارخانه کښې عارف بالله ابن عطاء ددې آیت په تشریح کښې فرمائیلی دی چې الله تعالی ټول کائنات ستاسودپاره له دې وجې پیداکړی دی،چه داټول کائنات ستاسو دی،اوتاسود الله ئې،ځکه دیو عقلمندانسان داکاردې چې کوم څیزده دپاره پیداکیږی هغه به هم ده ته ملاوېږی ددې په فکر کښې اوسیدوسره دهغه ذات نه دِغافل کیږی نه دکوم دپاره چې دې پیداکړې شوې دې، بحرِمحیط.][۱]

**په دنیوی څیزونوکښې اصل اباحت دې او که حراموالې :** قوله تعالی- ﴿خَلَقَ لَکُمۡ مَّا فِی الۡاَرۡضِ﴾ددې آیت نه ځنې علماؤپه دې خبره دلیل نیولې دې چې په ټولودنیوی څیزونوکښې اصل حلالوالې اومباحوالې دې ځکه چې داټول څیزونه انسان دپاره پیداکړې شوی دی صرف هغه څیزونه به حرام ګڼړلې شی چې شریعت حرام ګرځولی وی،یعنی دکوم څیزحراموالې چې قرآن اوسنت نه ثابت نه وی هغه به حلال اومباح ګڼړلې شی،

لیکن بل اړخ ته نورعلماؤوائی چې آیت نه داثابتیږی چې ټول څیزونه دانسان دفائدې دپاره پیداشوی دی،دې نه دانه لازمیږی چې ټول څیزونه دمباح اوحلال هم وی بلکه داعلماء وائی چې اصل په ټولوڅیزونوکښې حراموالې دې څوپورې چې حلالوالې ئې په قرآن اوسنت سره ثابت نه وی. اوځنې نورعلما باندې چپ پاتې شوی دی یعنی حراموالې اوحلالوالې دې آیت کریمه سره نه تړی،

په تفسیر بحرمحیط کښې ابن حیان فرمائیلی دی، صحیح خبره داده چې دا آیت په حلالوالی اوحراموالی کښې دهیڅ دلیل نشی ګرځیدلې ځکه چې ﴿خَلَقَ لَکُمۡ﴾ کښې لام، د سببیت دپاره دې،یعنی داڅیزونه ستاسوله وجهې پیداشوی دی، دې کښې نه د انسان دپاره ددې څیزونو په حلالیدو باندې څه دلیل قائمیدې شی اونه په حرامیدو باندې بلکه د حرام او حلال جدا جدا احکام بیان شوی دی، او ددې اتباع لازم ده.

---

[۱] تفسیر البحر المحیط تحت هذه الآیة: ۱/ ۱۶۵

په دې آيت کښې ثُمَّ د لفظ نه معلوميږي چې زمکه اول او آسمانونه روستو پيدا شوي دی، چه صحيح خبره هم دا ده، او سورت والنازعات کښې چې ارشاد دې ﴿وَالْاَرْضَ بَعْدَ ذٰلِكَ دَحٰىهَا﴾ يعنی زمکه يې د آسمانونو د پيدا کولو نه پس وغوړول د هغه نه دا نه لازميږي چې د آسمانونو نه روستو زمکه پيدا شوې ده، بلکه هغه مطلب دا دې چې زمکه مخکښې پيدا شوه آسمانونه ورپسې البته د زمکې درستی، ددې نه د پيدا وار و غيره راؤښکلو کار، د آسمانونو د پيدا کولو نه پس دې، اګر چې اصل د زمکې تخليق د آسمانونو نه مخکښې شوی وؤ [بحرمحيط وغيره] (۱)

ددې آيت کريمه نه د آسمانونو شمير اوه ثابتيږي، نو د علم هيئت ماهران چې نهه آسمانونه وائی سوچه بالکل غلطه ده بې دليله او صرف په خيالاتو بنا دی.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاِذْ | قَالَ | رَبُّكَ | لِلْمَلٰٓئِكَةِ | اِنِّیْ | |
| او ياد کړه کله | چې اووئيل | ستا رب | فرښتوته | چې زه | |

او [هغه خبره ياده کړه] چې ستا رب فرښتوته اووئيل چې څه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| جَاعِلٌ | فِی الْاَرْضِ | خَلِيْفَةً ؕ | قَالُوْٓا | اَتَجْعَلُ | فِيْهَا | مَنْ |
| جوړونکي يم | په زمکه کښې | يو خليفه | هغوئ اووئيل | آيا ته جوړوې | په زمکه کښې | هغه څوک |

په زمکه کښې يو نائب جوړوم | هغوئ اووئيل چې [زمونږ ناقص فکروائی چه] داسې مخلوق پرې آبادوې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يُّفْسِدُ | فِيْهَا | وَيَسْفِكُ | الدِّمَآءَ ۚ | وَنَحْنُ | نُسَبِّحُ | بِحَمْدِكَ |
| چې فساد به کوی | په دې کښې | او تويوی به | وينې | او مونږ | تسبيح بيانوو | سره د ثنا ستا |

چې په زمکه کښې به فسادونه کوی | او [د يو بل] وينې به تويوی [او بل خوا] مونږ هر وخت ستا ثنا وايو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَنُقَدِّسُ | لَكَ ؕ | قَالَ | اِنِّیْٓ | اَعْلَمُ | مَا | لَا تَعْلَمُوْنَ ۝ |
| او پاکي بيانوو | تالره | او وئيل الله | بيشکه زه | پوهيږم | په هغه څيزونو | چې نه پوهيږئ پرې تاسو |

او ستا پاکي بيانوو [الله ورته په جواب کښې اووئيل چې زه په هغه کارونو ښه پوهيږم چې تاسو پرې نه پوهيږئ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَعَلَّمَ | اٰدَمَ | الْاَسْمَآءَ | كُلَّهَا | ثُمَّ | عَرَضَهُمْ | عَلَى الْمَلٰٓئِكَةِ ۙ |
| او ښودل [الله] | [آدم عليه السلام] ته | نومونه | د ټولو څيزونو | بيا ئې | وړاندې کړل | هغه فرښتوته |

او الله آدم عليه السلام ته ټول نومونه [د هغه څيزونو] او خودل [چه ورته ضرورت وو] بيا ئې هغه څيزونه فرښتوته وړاندې کړل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | اَنْۢبِئُوْنِیْ | بِاَسْمَآءِ | هٰٓؤُلَآءِ | اِنْ كُنْتُمْ | صٰدِقِيْنَ ۝ |
| او ورته ئې اووئيل | او ښايئ ماته | نومونه | ددې څيزونو | که چرې يئ تاسو | رښتني |

او وې وئيل چې اوس ماته ددې څيزونو نومونه او ښائي [ که تاسو [پخپله دعوی] کښې رښتونی يئ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالُوْا | سُبْحٰنَكَ | لَا عِلْمَ | لَنَآ | اِلَّا مَا | عَلَّمْتَنَا ؕ | اِنَّكَ اَنْتَ |
| او وئيل هغوی | پاکي ده تالره | نشته دې علم | مونږ لره | مګر هغو مره | چې راکړې دې تا مونږ ته | بيشکه ته ئې |

فرښتو اووئيل اې الله ته پاک ئې مونږ په هيڅ خبر نه يو بغير د هغې خبرونه چې تا مونږ ته خودلې دي | بيشکه خاص ته

(۱) تفسير البحر المحيط تحت هذه الآية: ۱/ ۱۶٤

الْعَلِيمُ الْحَكِيمُ ۝ قَالَ يَٰٓـَٔادَمُ أَنۢبِئْهُم بِأَسْمَآئِهِمْ ۖ

په هر څيز پوهه |دحکمت خاوندئي|اووئيل [الله] | اے آدمه| خبر ورکړه دوئ ته| د نومونو ددې څيزونو

په هرڅۀ پوهه اودحکمتونومالک ئې |الله اوفرمائيل ائې آدم ته دوئ ته ددې څيزونونومونه اوښايه

فَلَمَّآ أَنۢبَأَهُم بِأَسْمَآئِهِمْ قَالَ أَلَمْ أَقُل لَّكُمْ

نو کله چې|هغه خبرورکړوهغوی ته | د نومونودهغه څيزونو|اووئيل [الله] |آيانه وو وئيلي ما|تاسو ته

نوهر کله چې هغه فرښتو ته د ټولونومونه اوخودل| نو الله ورته اوفرمائيل ولې ماتاسوته نه ووئيلي

إِنِّيٓ أَعْلَمُ غَيْبَ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ وَأَعْلَمُ مَا تُبْدُونَ

چې زۀ پوهيږم | په پټو | داسمانونو | او دزمکې |اوپوهيږم |په هغه څۀ|چې تاسو ئې ښکاره کوئ

چې زه داسمانونو اوزمکې په پټورازونو ډيرښۀ پوهيږم |اوستاسو په سرګنده خبرو اوپه پټوخيالاتو

وَمَا كُنتُمْ تَكْتُمُونَ ۝

اوپه هغه څۀ|چې تاسو ئې| پټوئ

هم پوهه يم [نوما چه د آدم د پيدائش کومه اراده کړې ده هغه صحيح ده]|

## آسان ترجمه قرآن

او(دهغه وخت تذکره واورئ) چه ستاسو پروردګار فرښتوته ووئيل چه زه په زمکه کښې يو خليفه جوړول غواړم هغوی ووئيل چه آيا ته په زمکه کښې داسې مخلوق پيدا کوې چه په دې کښې به فساد کوی او وينه به توئيوی حالانکه مونږستا تسبيح اوستا په ستائينه اوتقديس کښې لګيا يُو؟ الله تعالی وفرمائيل چه څه په هغه خبرو پوهيږم چه تاسوپرې نه پوهيږئ اوآدم عليه السلام ته (الله تعالی) ټول نومونه وښودل بيائې هغه فرښتوته مخکښې کړل او(هغوی ته) ئې ووئيل که تاسو رښتيني يئ نو ماته ددې څيزونونومونه اوښايئ هغوی ووئيل چه صرف ستا ذات پاک دې تاچه کوم علم مونږته راکړې دې دهغې نه سوا مونږ په څه نه پوهيږو په حقيقت کښې د علم اوحکمت مالک خو صرف ته ئې الله تعالی وفرمائيل چه "اې آدمه ! ته دوی ته ددې څيزونو نومونه اوښايه " پس کله چه هغه ددې نومونه هغوی ته اوښودل نو الله (فرښتو ته) وفرمائيل چه ما تاسوته نه ووئيلي چه څه د آسمانونواو د زمکې په رازونو پوهيږم اوکوم څه چه تاسوښکاره کوئ اوکوم څه چه تاسوپټوئ ماته ددې ټولو علم دې.

## خلاصه تفسير

﴿وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ﴾او څه وخت چه ارشاد اوفرمائيلو ستا رب فرښتو ته [په دې غرض چه هغوی خپله رائې ښکاره کړی، چه په کښې حکمت اومصلحت وو ولې چې الله ﷻ دمشورے هيڅ قسم محتاج نه دې، غرض دا چه الله ﷻ فرښتو ته اووئيل] ﴿إِنِّي جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةً﴾ زه به خامخا په زمکه کښې يو نائب جوړکړم [يعنی هغه به زما په داشان نائب وی چه زما د احکامو د جاری کولو خدمت به ورته اوسپارم] ﴿قَالُوٓا۟ أَتَجْعَلُ فِيهَا مَن يُفْسِدُ فِيهَا﴾ هغوی اووئيل آيا ته پيدا کوے په زمکه کښې داسې خلق چه فساد به کوی ﴿وَيَسْفِكُ الدِّمَآءَ وَنَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ﴾ اووينے به تويوی او مونږ په مخه تسبيح وايوستا اوپاکی بيانوو [دفرښتودا عرض څه،

اعتراض کولو او خپلې حقدارئ ثابتولو دپاره نه وو بلکه فرښتو ته په څه شان پته لګیدلے وه چه په زمکه کښې یو نوې پیدا کیدونکې مخلوق به وی چې په هغه کښې به نیک او بد دواړه قسمه وی، ځینې خلق به دنیابت داکار نور زیات خراب کړی ځکه یئ دتابعدارئی په ډول عرض اوکړو چه مونږ هر خدمت دپاره تیار یو او حاضریو، په فرښتو کښې څوك ګناه کوونکې هم نشته نو دنورو کارنده خلقو اونوی مخلوق څه ضرورت دی. خاص کر په هغه صورت کښې چه نوی مخلوق نه ستا دمرضئ خلاف دکار کولو هم احتمال کیدیشی او مونږ کښې ددې قسمه هیڅ [احتمال نشته] ﴿قَالَ اِنِّیْٓ اَعْلَمُ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ۝﴾ الله ﷻ ارشاد اوفرمائیلو زه پوهیږم په هغه خبره چه تاسو پرې نه پوهیږئ [یعنی تاسو د بنیادم په پیدائش کښې چه کوم څیز مانع او خنډ ګنړئ چه فساد وغیره. ترے کیدل دی هم هغه څیز په حقیقت کښې دهغه د پیدائش اصل سبب دې ځکه چه احکام جاری کول او انتظام کول هم هله کیدیشی چه څوك د حد نه تیریدونکی هم موجود وی یوازے په فرمانبرداره مخلوق راجمع کیدو سره نشی کیدې. داسوال پیداکیږی چه دحد نه تجاوز کوونکې مخلوق [پیریان] دوړاندې نه هم موجود وو د هغوئ څخه داکار ولې وانه خستې شو؟ ددې وجه داده چې ددې کار دپاره موزون هغه مخلوق کیدیشی چې په هغه کښې د شر او فساد ماده اوعنصر موجود خو وی مګر غالب نه وی، په پیریانو کښې دا عنصر غالب وو په دې وجه ئې د آدم ؑ د پیدا کولو تجویز اوفرمائیلو. وروسې ددې حکمت الهی زیات وضاحت داسې اوشو چه دالله ﷻ د نائب کیدو دپاره دیو خاص علم ضرورت دې چه ملائکو سره نشی کیدې چه دهغوئ داستعداد څخه بهر دی. نو وې فرمائیل] ﴿وَعَلَّمَ اٰدَمَ الْاَسْمَآءَ كُلَّهَا﴾ علم ورکړو الله ﷻ آدم ؑ ته [چه پیدا یئ کړو] دټولو څیزونو دنومونو [یعنی دټولو څیزونو قومونو، دهغې دخاصیتونو او اثراتو ټولو علم حضرت آدم ؑ ته ورکړې شو] ﴿ثُمَّ عَرَضَهُمْ عَلَی الْمَلٰٓئِكَةِ﴾ بیا یئې هغه څیزونه دفرښتو مخے ته کړل ﴿فَقَالَ اَنْۢبِـُٔوْنِیْ بِاَسْمَآءِ هٰٓؤُلَآءِ﴾ بیا یئ اوفرمائیل چه اوښایئ ماته نومونه ددې څیزونو[یعنی سره دخاصیتونواو ددې داثراتو] ﴿اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ۝﴾ که تاسو رښتونی ئے. [یعنی په خپله دې وینا کښې رښتونی ئے چه مونږ به دزمکې دخلافت کارونه سرته اورسولې شو] ﴿قَالُوْا سُبْحٰنَكَ﴾ فرښتو عرض اوکړو چه ته خوپاك ئے [ددې الزام نه چه حضرت آدم ؑ ته دې دغه ښکاره کړو او مونږ نه دې پټ اوساتلو] ځکه چه دهیڅ یو ایت یا روایت نه ثابت نه دی چه حضرت آدم ؑ ته علم دفرښتو په غیر موجودګئ کښې ورکړې شوې وو. تعلیم خو دواړو ته یوشان د دواړو په موجودګئ کښې ورکړې شو خو د حضرت آدم ؑ فطرت کښې ددې علم د حاصلولو صلاحیت اواستعداد وو چه حاصل ئے کړو اود فرښتو طبیعت کښې استعدادنه وو ځکه ئے حاصل نه کړې شو] ﴿لَا عِلْمَ لَنَآ اِلَّا مَا عَلَّمْتَنَا﴾ خو مونږ ته علم دسره نشته مګر په هغه اندازه چه تاراته راکړې دې ﴿اِنَّكَ اَنْتَ الْعَلِیْمُ الْحَكِیْمُ۝﴾ بیشکه ته لوئې دعلم اوحکمت خاوند ئے [په څومره کښې دې چې دچا دپاره خیر اوګڼړلو نو هغه هومره علم دے ورکړو، دې نه دفرښتو دا اقرار ثابت شو چه دوی دهغه کارنه عاجز دی کوم چه یو نائب ته سپارل وو. بیا الله ﷻ ته دا منظوره شوه چه د آدم ؑ سره ددې خاص علم مناسبت دفرښتو پهوړاندې ښکاره کړی ځکه] ﴿قَالَ یٰٓاٰدَمُ اَنْۢبِئْهُمْ بِاَسْمَآئِهِمْ﴾ الله ﷻ ارشاد اوفرمائیلو چه ائې آدم ؑ اوښایه دوی ته نومونه ددې څیزونو [یعنی سره د حالاتو او خاصیتونو چه دټولو

فرښتو په وړاندې ئې ورته اوښودل نو فرښتې پوهه شوې چه آدم ﷺ ددې علم ماهر شوې دې] ﴿فَلَمَّآ اَنۡۢبَاَهُمۡ بِاَسۡمَآئِهِمۡ﴾ نوچه اوښودل آدم ﷺ دوی ته ددغه څيزونو نومونه، ﴿قَالَ اَلَمۡ اَقُلۡ لَّكُمۡ﴾ الله ﷻ اوفرمائيل [کورئی] ما درته وئيلی نه وو ﴿اِنِّيۡۤ اَعۡلَمُ غَيۡبَ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ﴾ چه بيشکه زه پوهيږم په ټولو څيزونو دآسمانونو او زمکې ﴿وَاَعۡلَمُ مَا تُبۡدُوۡنَ﴾ اوپوهيږم په هغه خبره چه ښکاره کونی يئ تاسو ﴿وَمَا كُنۡتُمۡ تَكۡتُمُوۡنَ﴾ اوپه هغه چه په زړه کښې يئ لرئ.

## معارف اومسائل

**دآيتونوتړون:قوله تعالیٰ:** ﴿وَاِذۡ قَالَ رَبُّكَ لِلۡمَلٰٓئِكَةِ اِنِّىۡ جَاعِلٌ فِى الۡاَرۡضِ خَلِيۡفَةً﴾ په تيرشوی آيتونوکښې دالله تعالی دخاص اوعام نعمتونوذکراوشو،انسان ته دناشکرئ اونافرمانئ نه دبچ کيدوهدايت اوشو،ددې آيت نه چې واخلئ درکوع ترآخره پورې په لسوآيتونوکښې د حضرت آدم ﷺ قصه هم په دې لړئ کښې ذکرشويده،څکه چې نعمت په دوه قسمه دې،① يوصوری،چه په حس کښې راځی لکه خوراک،څکاک،پيسه،ټکه،مکان جائداد وغيره ② معنوی،لکه عزت، آبرو خوشحالی، علم،وغيره شو،په تيرشوؤآيتونوکښې دصوری اوظاهری نعمتونوذکرووااوپه دې يولسوآيتونوکښې دمعنوی نعمتونوذکردې،هغه داسې چې فرمائی:مونږستاسووالدآدم ﷺ ته دعلم دولت ورکړو،ددې عزت جوګه موکړوچه ملائکوورته سجده اوکړه اوتاسوته مې ددې فخرموقع درکړه چې دهغه په اولادکښې مې راوستئ.

ددې آيت دمضمون خلاصه داده چې هرکله الله تعالی دحضرت آدم ﷺ دپيداکولواوپه دنيا کښې هغه لره دخليفه جوړولواراده اوکړه نوپه ظاهره دازميښت کولوپه غرض ئې په دې باره کښې فرښتوته دا اراده ښکاره کړه چې ورته د دې خبرې اشاره وه چې دوئ پدې باره کښې رائ ورکړي،فرښتودارائ ورکړه چې په انسانانوکښې به داسې خلق هم وی چې فساداووينې توبول به کوی چې ورته دزمکې دخلافت اوانتظام چلولوخبره موپه فکرکښې نه راځی،دې دپاره خو فرښتې ډيرې زياتې مناسبې ځکه معلوميږی چې نيکی کول د دوئ فطرت دې،بدی ترې کيدې نشی،دوئ بيخی تابعدارې دی،د دنياانتظام به هم سم کړې شی،الله تعالی اول د دوئ رائ په حاکمانه اندازکښې غلطه ښکاره کړه هغه داسې چې دزمکې دخلافت په حقيقت باندې تاسونه پوهيږئ،په کامله طريقه په هغې هم زه پوهيږم،

بيائې په حکيمانه اندازکښې دحضرت آدم ﷺ غوروالې فرښتو ته ښکاره کړو،دائې ښکاره کړل چې حضرت آدم ﷺ په علم کښې په دوئ پورته دې،دائې هم ښکاره کړل چې د زمکې دخلافت دپاره اهل به هغه مخلوق وی چې دزمکې دمخلوقاتونومونه پيژنی دهغې خاصيتونه اوعلامات پيژنی چې فرښتوکښې داصلاحيت اواستعدادنشته،

**دحضرت آدم ﷺ دپيداکولوپه باره کښې فرښتوسره خبره کول په کوم مصلحت بناوو:** ژوره کتنه دلته داپکارده،چه دفرښتوپه وړاندې ددې واقعې يادول په څه بناؤو،آيادوئ نه مشوره اغستل مقصودووياورته صرف اطلاع ورکول وو،يادامقصودووچه فرښتې په دې باره کښې دخپلو زړونوخبره [رائ] ويناسره ښکاره کړی،

دمشورې اغستلوضرورت عقلمندو او هوښيارانوسره هلته پيښيږی چې دمسئلې ټول اړخونه په چاروښانه او ښکاره نه وی اونه ئې په خپل علم اوبصيرت باندې مکمل اطمينان وی

یا په دغې باره کښې څوک نورهم برابرحقوق لری لکه چې د دنیاعاموکونسلونوکښې دکونسل دممبرانوچه رائې اغستې شی،خودلته دادواړه صورتونه څکه نشی کیدې چې الله سبحانه وتعالی دکائناتوخالق دې،د ذرې ذرې علم لری پټ اوښکاره هرقسم څیزونه ئې دعلم اوبصرپه وړاندې برابردی نوهیڅ‌چا نه یې دمشورې اغستوضرورت نشته.

دابله خبره هم څکه نشته چې حکومت الهی پارلیمانی نه دې چې ټول ممبران پکښې برابرحق لری اوټولونه مشوره اغستل ضروری وی څکه چې یواځې الله تعالی دټولوخالق اومالک دې، فرښتې جن اوانس اوټول کائنات هم دده مخلوق اومملوک دی،څوک داحق نه لری چې دهغه دڅه فعل باره کښې سوال هم اوکړې شی،مثلاً دااوائی چې دائې ولې اوکړل او هغه ئې ولې اونکړل، لکه فرمائی: ﴿لَا يُسْئَلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْئَلُونَ﴾ [الله تعالی نه دده دڅه کړوباره کښې هیڅ تپوس نشی کیدې خودټولو نه به د دوئ دعملونوباره کښې تپوس کولې شی]

**فرښتو نه تپوس کول خپل بندګانو ته د مشورې تعلیم ورکول وو.** خلاصه دخبرې داشوه چې دلته مشوره اغستل مرادنه وؤ اونه ئې ضرورت وومګردمشورې صورت ئې څکه جوړکړوچه مخلوق ته دسنت مشورې تعلیم ورکړې شی لکه چې رسول الله ﷺ ته، د چانه دمشورې اغستو ضرورت څکه نه ووچه هغه صاحب وحی ووده وحی په ذریعه ورته هرڅه ښودلې شوخوبیاهم قرآن کریم ورته دصحابه کرامونه دمشورې اغستلوتاکیدې هدایت اوفرمائیلو،مطلب ئې داوؤچه امت ته ددې عملی تعلیم ورکړی،

اوس دفرښتوپه وړاندې ددې واقعې اظهارکول دمشورې دتعلیم دپاره وویا[دروح البیان مطابق](۱) فرښتوته داښکاره کول ووچه دوئ نه هم زیات بهترمخلوق الله تعالی پیداکولې شی،ولې چې دقرآنی اشارې مطابق دانسان دپیداکیدونه وړاندې دفرښتوخیال ووچه مونږنه به زیات بهتراوزیات عالم بل مخلوق،الله تعالی پیدانکړی،

اوتفسیرابن جریرکښې دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه په یوروایت کښې داتصریح هم شته چې دحضرت آدم علیه السلام دپیداکیدونه وړاندې به فرښتوخپل مینځ کښې وئیل:لن یخلق الله خلقاً اکرم علیه مناولااعلم[الله به هیڅرې زمونږنه زیات بهتراوزیات عالم مخلوق پیدانکړی](۲).دالله تعالی په علم کښې وه چې یوداسې مخلوق هم پیداکول دی چې دټولومخلوقاتونه غوره اودزیات علم خاوند وی څوک به چې په خپل خلافت اونیابت سره سرفرازکوی،

دغه وجه وه چې دفرښتوپه مجلس کښې دحضرت آدم علیه السلام دپیداکولواوپه زمکه کښې دنائب جوړولوذکراوکړې شوچه فرښتې خپل دغه خیال ښکاره کړی،

چنانچه فرښتودخپل علم اوبصیرت په ډیرې تابعدارئ سره دارائ ښکاره کړه چې کوم مخلوق په زمکه کښې خلیفه جوړول غواړې په هغې کښې دشراوفسادماده هم شته چې هغې سره به داصلاح اوپه زمکه کښې دامن وامان راوستوانتظام څنګه کولې شی چې هغه به پخپله هم وینې توییوونکې وی،ددې بالعکس په فرښتوکښې دشراوفسادهیڅ ماده نشته، د خطاګانواوګناهونوکولونه پاک دی هروخت ستاتسبیح،پاکئ بیانولو،عبادت اوفرمانبردارئ

---

(۱) تفسیر روح البیان تحت هذه الآیة: ۱/ ۶۴

(۲) تفسیر الطبری تحت هذه الآیة: ۱/ ۴۶۵

کولو کښې لګیاوی چې په ظاهره، داخدمت په ښه شان ترسره کولې شی،

غرض داچه دادحق تعالی په فعل باندې [معاذالله] اعتراض نه وو ولې چې فرښتې دداسې خیالاتو اوحالاتونه پاکې دی بلکه مقصدئې صرف دامعلومول ووچه دیوداسې پاکې ډلې په موجودګئ کښې یوبل داسې مخلوق پیداکول چې غیرمعصوم وی،ورته داکارحواله کول اوهغه له غوروالې ورکول په کوم حکمت بنادی،

چنانچه ددې په جواب کښې اول،الله تعالی په اجمالی طوردا اوفرمائیل: قوله تعالی: ﴿إِنِّیٓ أَعۡلَمُ مَا لَا تَعۡلَمُونَ﴾ چې تاسو دخلافت الهیه اودهغې دلوازمونه واقف نه ئې ځکه دارائ لرئ چې یواځې معصوم مخلوق ئې تر سره کولې شی خوددې په پوره حقیقت،هم مونږعلم لرو،

بیاالله تعالی په دې باندې دفرښتودتفصیلی علم راوستودپاره یوخاص واقعه ئې په داشان ښکاره کړه چې د دنیاډټولو کائناتونومونه،دهغې خاصیتونه،نخښې نښانې ټولې حضرت آدم ؑ ته ښودلې شوې اوازده کړې شوې وې چې په هغې دپوهیدوصلاحیت صرف دآدم ؑ خمیرکښې اغږلې شوې وواودفرښتوطبیعت سره ئې سمون نه وو،مثلاد دنیامضراومفید څیزونه،ددې خاصیتونه،نخښې نښانې،دهرسادارا وهرقوم مزاجونه،طبیعتونه اودهغې نخښې نښانې پیژندل،دفرښتوپه طبیعت کښې ځائ کړې شوی نه وو،یعنی فرښتولوږه تنده اوددې تکلیف نه پیژندل،دنفسانی،جذباتوداثرنه خبر نه وو،په دې خبرنه ووچه په څه شان راځی،دمارلړم زهر،په کوم قسم بدن کښې په څه شان اثرکوی،

مطلب داچه دزمکې دمخلوقاتودنومونو،ددې دآثارودمعلومولو،دفرښتوطبیعتونو صلاحیت نه لرلودحضرت آدم ؑ طبیعت سره ئې سمون خوړلوځکه هم ده ته وراوښودلې شو بیا د قرآن کریم نه،نه په ښکاره اونه په څه اشارې سره داخبره معلومیږی چې ګنی داتعلیم حضرت آدم ؑ ته ځانله یواځې ورکړې شوې وی چې فرښتې هلته نه وی بلکه معلومیږی داسې چې داښودنه دفرښتوپه موجودګئ کښې دهغوئ په وړاندې کړې شوې وه خوفرښتوځکه ازده نکړې شو چې دهغوئ طبیعت سره ئې هیڅ سمون اوجوړښت نه وو،اوحضرت آدم ؑ ځکه ازده کړې شو چې دهغوئ طبیعت سره ئې سمون اوجوړښت لرلواوداهم کیدې شی چې دادتعلیم په عامه طریقه نه وولکه استاذچه شاګردانوته تعلیم ورکوی بلکه ددې شان داووچه الله تعالی دحضرت آدم ؑ په خمیرکښې دااغږلی وولکه چې ماشوم څیږیدوسره سمدستی دمورتې رودل اود بطې یعنی هلیئ بچې پیداکیدوسره په اوبوکښې لامبووهل پیژنی اود فرښتو خمیر او طبیعت ددې نه خالی جوړ کړې شوې وو،

**یوانکال او دهغې حل:** یوسوال دلته پیداکیږی چې الله تعالی دفرشتوطبیعت هم داسې جوړولې شوځکه ئې چې دحضرت آدم ؑ جوړکړې وؤاود دوئ په طبیعت اوخمیرکښې ئې هم داقسم علم اینبودې شویاداقسم ازدکړه ئې ورکولې شوه: نو هغوئ ته ولې او نه خودلې شو. جواب ئې دادې چې الله تعالی په خپل حکمت سره دفرشتو اودحضرت آدم ؑ ترمنځه دافرق اینبودې ووچه ددې دواړوترمنځه پدې سره بیلتون راشی اودادواړه بیل بیل قسم مخلوق وګرځولې شی نوداسې قسم سوال کول داالله تعالی په تکوین اوحکمت کښې دخل ورکول دی ځکه چې داسې سوال کول دامطلب لری چې فرشتې،انسانان ولې اونګرځولې شوې.

خلاصه داشوه چې دزمکې دمخلوق نومونه خاصيتونه اوآثارحضرت آدم علیه السلام ته په څه طريقه ورازده کړل چې دفرشتوپه وس کښې نه ووبيائې دغه مخلوقات فرشتومخې ته کړل او ورته ئې اوفرمائيل چې که په دې خبره کښې تاسوربښتونی ئې چې زمونږنه به زيات عالم يا بهترمخلوق پيدانکړې شي يادخلافت يانيابت دزمکې دپاره مونږه انسان نه زياتې مناسبې يو نوددې ځيزونونومونه اوخاصيتونه اوښائې چې دزمکې خليفه به پرحکومت کوی،

**فائده:** دلته يودافائده حاصله شوه چې حاکم لره ضروري دی چې دخپل رعيت دخلقودمزاج، طبيعتونواودهغوئ خواصواوآثارونه په پوره ډول واقف وی ورنه دانصاف حکمرانی پرنشی کولې که څوک لوږه تنده نه پيژنی اوداقسم فيصله ورته رامخته شی نوهغه به دافيصله څنګه اوکړې شی،[الکه شيخ سعدی رحمه الله فرمائی چې يوبادشاه ته په سيلاب سره دپښې تباه کيدو فرياد چې اوکړونوهغه ورته اوئيل چې وږئ دولې نه کرله،مترجم]

غرض داچه په دې واقعې سره الله تعالی فرښتوته دا اوښودل چې دزمکې دنيابت دپاره پاک اوبيګناه کيدل کتل نه دی بلکه داکتل وی چې دزمکې دځيزونواودهغې ټولومتعلقاتونه پوره واقف وی که بياهم تاسوخپل خيال صحيح بولئ نوښه ده،ددې ځيزونونومونه خولږاوښائې، دفرښتودغه وينا او اظهار دوئ داعتراض په خيال نه بلکه ديو نيازمند خادم پشان خپل خدمات وړاندې کولو په غرض وه چې زمونږ غوندې مخلص خادمان او تابعدارچه موجودوی نودبل مخلوق پيداکولوضرورت زمونږپه خيال کښې نه راځی څکه چې دغه نوې مخلوق به وينې تويوی اوفسادونه به کوی] څکه ئې په دې موقع سمدستی داسې عرض اوکړو قوله تعالی: ﴿سُبْحٰنَكَ لَا عِلْمَ لَنَآ اِلَّا مَا عَلَّمْتَنَا ۭ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ﴾ پاک ئې ته [اې خدايه] زمونږعلم نشته مګرهغه چې تاراکړې دې بيشکه ته دلوئ علم او حکمت خاوندئې] يعنی د خپل خيال پريښودواقرارئې داسې اوکړوچه زمونږ نه زيات عالم اوبهترمخلوق هم شته اومونږداهم منوچه هغه دزمکې دخلافت اونيابت مناسب حقداردې،

**يو بل سوال او دهغې جواب:** بل سوال دلته داپيداکيږی چې فرښتې څنګه خبرشوې چې انسان به وينې تويوی او فسادبه کوی؟آيادوی علم غيب لری اوکه څه اټکل يااندازه ئې لګولې وه؟ جمهورمحققين ئې داجواب ورکوی چې الله تعالی ورته ښودلی ووچه دانسان حالات به څه وی او څه کرداربه لری لکه چې ځنې آثاروکښې واردشوی دی چې کله الله تعالی فرښتوسره دآدم علیه السلام دزمکې دخليفه کيدوذکراوکړونوفرښتوترې ددغه خليفه حال اوپوښتلوچه الله تعالی ورته اوښودل [روح المعانی] [۱] په دې سره فرښتوتعجب اوکړواوعرض ئې اوکړوچه داسې قسم خلق دزمکې خليفه جوړول ستاپه کوم حکمت مبنی دی؟

ددې ① يوجواب داسې دې چې الله تعالی د آدم علیه السلام علمی برتری ثابتولوسره فرښتې مطمئن کړې، ② دفساداووينې تويولوشبه ئې اجمالاًداسې رفع کړه قوله تعالی: ﴿اِنِّىْٓ اَعْلَمُ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ﴾ په دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چې څه تاسو ،خلافت اونيابت سره بې سمونه ګڼئ په حقيقت دادې داهليت غټ سبب دې څکه چې دخلافت اصلی کاردزمکې نه فسادپورته کول اولرې کول دی،چرته چې فسادنه وی هلته دخليفه اونائب ضرورت نه پاتې کيږی.نودلته غرض

---

[۱] روح المعانی تحت هذه الآية: ۱/ ۲۵۸

دابنودل ووچه الله تعالی دګناه خطا نه پاک مخلوق فربنتي] پیداکړې چې سوده خیرووا هیڅ قسم شرپکښې نه وو، شیطانان یې پیداکړل چې خالص، خالص شر ووخیرپکښې نشته نو داسې یو مخلوق هم پیداکول غواړی چې دخیراوشر دواړه اړخونه لری او چې خیرپه شرغالب راولی نوداالله تعالی درضاانعام به حاصل کړی،

**دالفاظواوژبو ټاکونکې الله تعالی دی:** په دې قیصه کښې حضرت آدم ﷺ ته دنومونو ښودلونه داثابته شوه چې دالفاظواوژبواصل ټاکونکې اوجوړوونکې الله تعالی دی بیاروستو دمخلوق داستعمالاتونه مختلف صورتونه اومختلفې ژبې پیداشوې چنانچه امام اشعری ﷫ دې آیت له دلیل جوړولوسر یواځې الله تعالی لره لغت ټاکونکې منلې دی[1]،

**دحضرت آدم ﷺ پورته والې په فربنتو:** فربنتوته الله تعالی په ﴿أَنۢبِـُٔونِى﴾ [ماته اوښائې] سره خطاب کوی اوحضرت آدم ﷺ ته په ﴿أَنۢبِئۡهُم﴾ [دوئ ته اوښایه] سره خطاب کوی، په ژورنظر کولوسره ددې مطلب داراخیژی چې حضرت آدم ﷺ استاذاوفربنتې ئې شاګردانې اوګرځولې شوې چې دحضرت آدم ﷺ دبرترئ اوپورته والی یواهم صورت اوښودلې شو، بله خبره تردا ثابتیږی چې دفربنتوپه علم کښې هم کمې زیاتې راتلې شی لکه چې دحضرت آدم ﷺ په ښودنې سره دوئ ته اجمالاً[په څه درجه کښې] دهغه څیزونوعلم اوشوچه مخکښې ورته نه وو،

**دزمکې دخلافت مسئله:** داالله تعالی له اړخه دزمکې دانتظام چلولودپاره خلیفه یانائب مقررول [ک م چې دې آیتونونه معلوم شول] د دستورمملکت یواهم باب پرانیځی ا وخلاصوی. هغه داسې چې په ټولو کائناتواوپه ټوله زمکه، اقتداراعلی خاص الله تعالی لره دی لکه قرآن کریم کښې دډیروآیتونو نه ثابتیږی مثلاًفرمائی ﴿إِنِ ٱلۡحُكۡمُ إِلَّا لِلَّهِ﴾ ﴿لَهُۥ مُلۡكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾ ﴿أَلَا لَهُ ٱلۡخَلۡقُ وَٱلۡأَمۡرُ﴾ لیکن دزمکې انتظام چلولودپاره داالله تعالی له اړخه نائبان راځی چې داالله تعالی په حکم اواجازت سره په زمکه سیاست اوحکومت کوی، داالله تعالی دبندګانودتعلیم اوتربیت کارکوی اواحکام الهی جاری کوی، داخلیفه نیغ په نیغه الله تعالی ټاکی، دچاکسب اوکوشش باندې اړه نه لری ځکه دپوره امت اجماعی عقیده ده چې نبوت او پیغمبری کسبی څیزنه دی چې څوک ئې پخپل عمل یاکوشش سره حاصل کړې شی بلکه الله تعالی دخپل علم اوحکمت په تقاضا، خاص خاص غړی ددې کار دپاره ټاکی چې په خپل نبی، رسول، خلیفه یانائب سره ئې بلی لکه قرآن کریم ځائ په ځائ ارشادفرمائی ﴿ٱللَّهُ يَصۡطَفِى مِنَ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةِ رُسُلٗا وَمِنَ ٱلنَّاسِۚ إِنَّ ٱللَّهَ سَمِيعُۢ بَصِيرٞ﴾ الله تعالی خوښه منتخب کوی دفربنتوڅخه خپل رسول اودانسانانونه هم بیشکه، الله تعالی آوریدونکې، لیدونکې دی ﴿ٱللَّهُ أَعۡلَمُ حَيۡثُ يَجۡعَلُ رِسَالَتَهُۥ﴾ الله تعالی [په دې] ښه پوهیږی چې خپله پیغمبری چاله ورکړی،

داداالله خلیفه نیغ په نیغه داالله تعالی نه احکام معلوموی اوبیائې په دنیاکښې جاری کوی، سلسله دا دحضرت آدم ﷺ نه، ترخاتم الانبیاء ﷺ پورې په یواندازچلیده، تر دې پورې خاتم الانبیاء ﷺ په دې زمکه باندې داالله ﷻ آخری خلیفه د ډیرواهمو خصوصیاتو سره مبعوث شو. یو خصوصیت دا وو چې خود دوئ ﷺ نه وړاندانبیاء ﷺ به خاص خاص قومونو یا ملکونوته لیږلې شو اوهغوئ حکومت او اختیار دهغه قومونو او ملکونو پورې محدود وې. حضرت

[1] ) ملاحظه فرمائیی: التفسیر الکبیر للامام الرازی: ۱/ ۱۵۳،

ابراهیم ﷺ یو قوم طرفته ته، لوط علیه السلام بل قوم طرفته مبعوث شو، د حضرت موسی علیه السلام او عیسی علیه السلام او ترمنځه نورانبیاء ﷺ بنی اسرائیلوته لیږلي شوي.

**رسول الله ﷺ زمکه په کښې دالله تعالی آخري خلیفه وو او د دوئ ﷺ خصوصیات:** درسول الله ﷺ یو خصوصیت داوؤچه دوئ ﷺ دټولې زمکي دواړوقومونو[پیریانو ،بنیادمو] ټولو وختونو دپاره رالیږلي شوي وؤلکه الله فرمائي ﴿قُلْ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ جَمِيْعَا ِۨ الَّذِيْ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ تاسو ﷺ اووائي چې اي خلقو ،زه دالله رسول یم تاسوټولوته الله هغه ذات دي چالره چې بادشاهی د آسمانونو او زمکي ده،

اوصحیح مسلم په حدیث شریف کښې راغلی دی رسول الله ﷺ اوفرمائیل. ماته په نورو انبیاؤ ﷺ په شپږوځیزونوکښې خاص فضیلت راکړې شوې دې(۱) په دې کښې یوفضیلت دادې چې دوئ ﷺ ټولې دنیاته رسول رالیږلې شوې دې،

دخاتم الانبیاء ﷺ دویم خصوصیت دادې چې نورپیغمبران ﷺ به څه خاص زمانې دپاره پیغمبران ووچه دغه زمانه به ختمه شوه نودغه فرض به ورپسې راتلونکي بل پیغمبر ادا کول خودرسول الله ﷺ خلافت اونیابت به ترقیامته پورې قائم وی یعنی څوپورې چې زمکه آسمانونه قائم وی اوزمانه موجوده وی ترهغې به داهم قائم وی،

③ دریم خصوصیت دادې چې دنوروپخوانوپیغمبرانو ﷺ تعلیمات اوشریعت به یو زمانې پورې محفوظ جاری ووددهغې نه پس به پکښې بدلون رو رور[کرار کرار]اتلوتردې چې ختم به شو ورپسې به بل پیغمبراوبل شریعت راولیږلي شوخودخاتم النبیین ﷺ پیغمبری،دین او شریعت به ترقیامته پورې محفوظ وی تردې چې په دوئ ﷺ دنازل شوی قرآن کریم معنې څه چې الفاظ به ئې هم محفوظ وی لکه چې الله تعالی ددې دحفاظت ذمه واری پخپله اغستې ده فرمائي: ﴿اِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ﴾ هم مونږه قرآن کریم نازل کړواوهم مونږددې محافظ یو،

داشان د دوئ ﷺ تعلیمات او ارشادات دحدیث په شکل کښې دالله تعالی په خاص انتظام کولوسره محفوظ وی هغه داسې چې ترقیامته به داسې یوه ډله موجوده پاتې کیږی چې د دوئ ﷺ علوم اومعارف اوصحیح احکام به خلقوته صحیح صحیح رسوی هیڅوک به دغه ډله ورکولې نشی ولې چې دالله غیبی تائیدبه ئې مل وی،

خلاصه داشوه چې دپخوانوپیغمبرانو ﷺ کتابونه اوصحیفي به ټولې ګډې وډې اوبدلې شوې اوپه اخرکښې به دمخ دزمکې نه پورته شوې یابه غلط اوبدل شکل کښې پاتې شوې لیکن درسول الله ﷺ راؤړلې شوې قرآن کریم اود دوئ ﷺ ښودلې هدایات اواحادیث به په اصلی شکل کښې ترقیامته موجوداومحفوظ وی ځکه ورپسې نه دبل نبی ﷺ یارسول دراتلوضرورت شته اونه دڅه بل خلیفة الله دراتلوګنجائش شته،

④ درسول الله ﷺ څلورم خصوصیت دادې چې دپخوانوپیغمبرانو ﷺ خلافت او نیابت به څه ټاکلې زمانې پورې وؤدهغې زمانې په ختمیدوبه بل پیغمبردالله تعالی له اړخه مقررکیدو اودنیابت کاربه ئې سنبالولو،

(۱) صحیح مسلم، کتاب المساجد: ۱/ ۱۹۹

**درسول الله ﷺ نه پس دخلافت نظام:** دحضور ﷺ دخلافت اونیابت زمانه ترقیامته ده په دې وجه هم دوئ ﷺ په زمکه کښې دالله خلیفه دې د دوئ ﷺ دوفات نه پس ددنیاانتظام چلولوډپاره چې کوم نائب وی هغه به د دوئ ﷺ نائب اوخلیفه وی لکه دصحیح بخاری او صحیح مسلم یوحدیث کښې رسول الله ﷺ اوفرمائیل، کانت بنواسرائیل تسوسهم الانبیاء کلماهلك نبی خلفه نبی وانه لانبی بعدی وسیکون خلفاءفیکثرون(۱) دبنی اسرائیلوسیاست اوحکومت به دهغوئ انبیاؤ ﷺ کولوچه یونبی به فوت شونوبل نبی به راغلو اوخبردارشئ چې زمانه پس بل نبی نشته البته زماخلیفګان به وی چې ډیربه وی،

⑤ د دوئ ﷺ پنځم خصوصیت دادې چې د دوئ ﷺ نه پس د دوئ ﷺ امت ته الله تعالی دپیغمبرانو مقام په داشان ورکړوچه دامت مجموعې لره معصوم اوګرځولو یعنی داپوره امت به کله هم په ګمراهئ سره نه جمع کیږی په څه مسئله باندې ددې امت اجماع به دحکم خداوندی مظهرګنړلې شی په دې وجه دکتاب الله اودسنت رسول نه پس دریم حجت اجماع امت او ګرځولې شولکه فرمائی: لن تجتمع امتی علی الضلالة(۲)، زماامت به هیڅرې په ګمراهئ نه راجمع کیږی ددې زیات تفصیل په هغه حدیث شریف(۳) کښې معلومیږی کوم کښې چې دا ارشاددې: [زماپه امت کښې به همیشه یوجماعت په حق قائم پاتې کیږی] دنیاهرڅومره چې بدله شی، حق هر څومره چې دمخې نه په څنګ کړې شی خویوتولې به همیشه دحق مرسته جاری لری اوپه آخر انجام کښې به غلبه ددې جماعت وی،

دې نه داخبره ښکاره شوه چې پوره امت به کله هم په ګمراهئ اوغلطئ نه راجمع کیږی اوهر کله چې دیوامت مجموعه معصومه اوګرځولې شوه نودرسول ﷺ د خلیفه ټاکل هم دې ته اوسپارلې شواودخاتم النبیین ﷺ نه پس د زمکې دنیابت حکومت انتظام دپاره دانتخاب طریقه داشوه چې دا امت چې چالره خلیفه اوټاکی نوهغه به دخلیفه رسول په حیثیت د دنیادنظام یواځې ذمه وار وی ځکه چې دټولې دنیایوخلیفه هم کیدې شی،

دخلفائې راشدینوترآخرې وخته پورې دخلافت لړئ په صحیح اصولوروانه وه دهغوئ فیصلې یواځې د دینی اوهنګامی فیصلوشان نه لری بلکه یوه درجه دامت دپاره حجت منلې شی ځکه چې حضور ﷺ پخپله داسې فرمائیلی دی،

علیکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین(۴): زما لازم او ټینګ اونیسئ اودخلفاء راشدینوسنت قابولرئ

**دخلافت راشده نه پس:** دخلافت راشده نه پس دبې اصولئ شروع داسې اوشوه چې په مختلفو علاقوکښې مختلف امیران جوړشول د دوئ نه یوهم دخلیفه نومیدلوحقدارنه دی البته دیو ملک یایوقوم خاص امیرورته وئیلی شی،

کله چې دټولې دنیادمسلمانانوپه چایوکس باندې راجمع کیدل ګران شواودهرملک اوهرقوم بیل بیل امیرجوړیدورواج شروع شونومسلمانانودامیرټاکل ددې اسلامی نظرئې

---

۱) صحیح البخاری، کتاب الأنبیاء، باب ما ذکر عن بنی اسرائیل: ۱/ ۴۹۱ وصحیح مسلم، کتاب الامارة، باب وجوب الوفاء ببیعة الخلفاء الاول فالاول: ۱/ ۱۲۶

۲) سنن ابن ماجة، کتاب الفتن، باب السواد الأعظم: ۲/ ۲۸۳

۳) مشکوة، باب ثواب هذه الامة: ۲/ ۵۸۳

۴) مشکوة، باب الاعتصام بالکتاب والسنة: ۱/ ۲۹، ۳۰

لاندې جاري اولرل چې دیوملک دمسلمانانو داکثریت له اړخه ټاکلې شوې بنده به ددغه ملک امیر وي چې اولوالامر کښې به شامل وي، لکه دقرآن کریم ارشاددې ﴿وَأَمْرُهُمْ شُورَىٰ بَيْنَهُمْ﴾ او ددې عموم له کبله امیر جوړولو دپاره دا آیت دلیل ګرځیدې شي،

**په مغربي جمهوریت اواسلامي شورائیت کښې فرق:** اسمبلۍ ددې طرزعمل یونمونه ده، خو بیلتون پکښې دادې چې دعام جمهوري ملکونو اسمبلۍ اودهغې ممبران بیخي آزاداوخپل واکداره دي، یواځې په خپله رائې یوقانون ته دښه اوخراب نوم ورکولې شي، اسلامي اسمبلۍ اوددې ممبران، ټاکلې شوې امیرتړول به داسلامي قانون اواصولوپابندوي، دهغه قانون چې داللہ له اړخه دحضور ﷺ په ذریعه ورته رارسیدلې دي ددې اسمبلۍ یامجلس شوری دممبرئ دپاره هم څه شرائط دي، چالره چې دامنتخب کړي هغه دپاره هم څه حدوداوقیود دي ددوئ قانون سازي به هم د قرآن اوسنت دبیان کړواصولودداٸرې نه بهرنه وي، ددې په خلاف قانون جوړولو به هیڅ اختیارنه لري،

خلاصه داشوه چې الله تعالی فرښتې مخاطب کړې اوورته ئې ارشاداوفرمائیلوچه زمکه کښې خپل نائب جوړوونکې یم، دې نه دمملکت ددستورپه څواهمودفعورڼاپریوځي،

**دې آیت کریمه نه دمملکت د دستور دڅواهمو دفعو ثبوت:** ① په زمکه، آسمانونوکښې اقتدار اعلی داللہ جل مجدوه دې ② په زمکه کښې داللہ احکاموجاري کولودپاره دده نائب اوخلیفه دده رسول وي، ③ ددې په ترس کښې داهم تر څرګنده [ښکاره] شوه چې دخلافت الهیه سلسله په رسول الله ﷺ باندې ختمه شوه او ④ ددې په ځائې دخلافتِ رسول سلسله شروع شوه ددغه خلیفه تقرربه دملت په انتخاب اړه لري،

| | | |
|---|---|---|
| وَإِذْ | قُلْنَا | لِلْمَلٰٓئِكَةِ |
| اوياده کړه کله چې | اووئيل مونږ | فرښتوته |

[ او ايا ] مونږ فرښتوته اووئيل

| اسْجُدُوا | لِاٰدَمَ | فَسَجَدُوٓا | إِلَّآ إِبْلِيسَ | أَبٰى | وَاسْتَكْبَرَ |
|---|---|---|---|---|---|
| سجده اوکړئ | آدم ته | نو هغوئ سجده اوکړه | خو شیطان اونکړه | انکار اوکړو | هغه اولوئي ئې اوکړه |

چې آدم ته [دمشرئ] سجده اوکړئ نوبغیر د ابلیس نه نوروټولوسجده اوکړه هغه انکاراوکړو اولوئي ئې اوکړه

| | | |
|---|---|---|
| وَكَانَ | مِنَ | الْكٰفِرِينَ ۝ |
| اوشو | د | نافرمانونه |

اود کافرانو په ټولګی کښې شمیر شوا

**آسان ترجمه قرآن**

او(دهغه وخت تل کره واورئ) چه مونږ فرښتوته ووئيل چه آدم علیه السلام ته سجده وکړئ پس ټولو سجده وکړه سوا د ابلیس نه هغه انکاروکړو اود تکبر روئه ئې اختیارکړه اوهغه کافرانو کښې شامل شو.

## خلاصه تفسير

﴿وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلَٰٓئِكَةِ اسْجُدُوا لِآدَمَ﴾او كوم وخت چه حكم اوكړو مونږ فرښتو ته [او پيريانو ته هم لكه چه څېنې رواياتو كښې دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه منقول دى غرض دا چه ټولو ته حكم وركړې شو] چه سجده اوكړئى آدم عليه السلام ته ﴿فَسَجَدُوا إِلَّا إِبْلِيسَ﴾ نو ټولو سجده اوكړه سوا دابليس نه ﴿أَبَىٰ وَاسْتَكْبَرَ﴾چه خبره ئې اونه منله اولوئى ئې اوكړه ﴿وَكَانَ مِنَ الْكَافِرِينَ﴾او شو دكافرانو نه.

## معارف اومسائل

**دآيتونوترون:** په تيره شوې واقعه كښې هركله چې دحضرت آدم عليه السلام فضيلت په فرښتوښكاره شواوپه دليلونوسره داثابته شوه چې دخلافت جوګه كيدوديپاره دكوموعلوموچه ضرورت دې هغه ټول په آدم عليه السلام كښې رايوځائې شوى دى اوفرښتوته ددغې نه څنې علوم حاصل دى، پيريانوته خوددې ډيره كمه [لږه] برخه حاصله ده لكه چې پورته تفصيل سره ذكرشوى دى، اوددې خاص شان له كبله چې دفرښتواودپيريانودواړودعلوموانسان جامع دې دده شرف او بزرګى په دواړوډلو واضحه شوه،اوس الله تعالى ته منظوره شوه چې داخبره په معامله او عمل سره ښكاره شي،فرښتواوپيريانوته دده دخاص تعظيم كولوهدايت اوكړې شي چې بروالې [پورته والئ] ئې په دواړوثابت شي اوددواړونه كامل اوګڼړلې شي، او ددې مصداق دې اوګرځولې شي چې:

آنچه خوبان همه دارند تو تنها دارى

[يعنى كومې خوبئ چې ټول خلق لرى هغه تاسو يوازې لرئى].

اوداخبره هم ثابته شوه چې حضرت آدم عليه السلام په دې خاصوعلوموكښې هرودواړوجنسونونه كامل دې اود دواړوعلمونه اوقوتونه ورلره حاصل دى لكه چې تفصيلى بيان يې تيرشو،اوس الله تعالى ته دامنظوره شوه چې داغير كامل ټولې په دې آماده كړې شى چې دده داسې څه تعظيم اوكړى چې عملاهم داښكاره شي چې دواړونه دې كامل اوجامع وې ځكه خوئ دادواړه تعظيم كوى اوګوياكښې په زبان حال وائې چې كوم صفات مونږكښې ځانله ځانله دى هغه ټول په دوئ كښې رايوځائې دى ځكه په دې آيت كښې ددغې تجويزكړى تعظيم عمل بيان كيږى اووائى چه:مونږفرښتوته حكم وركړوچه حضرت آدم عليه السلام ته سجده اوكړئ ټولوورته سجده اوكړه خوابليس دسجدې نه انكاراوكړو اوپه غروركښې راغلو،

**آيادسجدې حكم پيريانوته هم وو:** دلته داخبره ښكاره ذكرشوې ده چې حضرت آدم عليه السلام ته د سجدې كولوحكم فرښتوته كړې شوې ووخوورپسې دراتلونكې استثنا نه معلوميږى لكه چې فرمائى ټولوفرښتوسجده اوكړه خوابليس اونكره،چه حضرت آدم عليه السلام ته دسجدې كولوحكم ددغه وخت ټول دعقل خاوندمخلوق دپاره عام ووچه فرښتواوپيريانوټولولره ورځى،خوپه حكم كښې ئې يواځې دفرښتوذكرپه دې وجه اوكړوچه هغوئ دټولونه زيات دشرف اوبهترئ خاوندانې وى چې هر كله دوئ ته داحكم دې چې د آدم عليه السلام تعظيم اوكړئى نوپه كمه درجه كښې مخلوق [پيريانو] ته داحكم په درجه اولى وؤ،

**تعظيمى سجده په زړومې امتونوكښې رواوه وه او په اسلام كښې نارواومنع ده:** په دې آيت كښې فرښتوته دسجدې كولوحكم دې اوپه سورت يوسف عليه السلام كښې حضرت يوسف عليه السلام ته دمور او پلار او

رونړوسجدې کولوهغه وخت ذکردې کله چې دوئ عليهم السلام مصرکښې دحضرت يوسف عليه السلام خواته وراورسيدل لکه فرمائي ﴿وَخَرُّوْا لَهٗ سُجَّدًا﴾ دلته خوداخبره ښکاره ده چې داسجده دعبادت څکه نشي کيدې چې په هرشان اوهرحال کښې ئې کول کفراوشرک دې اودا احتمال پکښې نشته چې په څه شريعت کښې به دارواوی البته دتعظيمی سجدې په پخوانوشريعتونو کښې داشان کيدې شی څنګه چې په اسلام کښې دسلام،مصافحې،معانقې،لاسونوښکلولو ياتعظيم دپاره داودريدوشان چې دې،

امام جصاص رحمه الله په احکام القرآن کښې هم دافرمائيلی دی چې دپخوانوانبياؤپه شريعتونو کښې دلويوخلقودتعظيم کولواوورته دتحفې پيش کولوپه غرض سجده کول مباح ووچه شريعت محمديه کښې منسوخ شواودلويودتعظيم دپاره صرف دسلام،مصافحې اجازت ور کړې شو،ورته رکوع،سجده کول،اودمونځ دحالت پشان ورته لاس تړلې اودريدل ناجائز اوناکلې شو(۱)،

ددې وضاحت کول داشان دی چې کفراوشرک اودغيرالله عبادت کول دايمان داصولونه خلاف دی چې هيڅ کله هم په هيڅ شريعت کښې روانه وو،ليکن څه افعال اواعمال داسې دی چې په خپل ذات کښې شرک اوکفرخونه دی خودخلقودجهالت اودغفلت په وجه دغسې افعال د شرک اوکفرذريعه جوړيدې شی چې دپخوانوانبياءپه شريعتونوکښې مطلقانه دی منع کړې شوی بلکه په دې ډول ترمنع راغلې ده چې دشرک ذريعه جوړه نشی لکه دسادارمخلوق تصويرونه جوړول اواستعمالول په خپل ذات کښې کفراوشرک نه دی څکه په پخوانو شريعتونوکښې رواؤو،دحضرت سليمان عليه السلام په قيصه کښې ذکرشوی دی،

﴿يَعْمَلُوْنَ لَهٗ مَا يَشَآءُ مِنْ مَّحَارِيْبَ وَتَمَاثِيْلَ﴾ يعنی جناتو[پيريانو] به ورلره لوئ محرابونه اوتصويرونه جوړول

دغه شان تعظيمی سجده په پخوانوشريعتونوکښې رواوه خونتيجه ئې په آخرکښې دا راووته چې دخلقودجهالت له کبله دغه څيزونه،دشرک اوبت پرستئ ذريعه جوړشول اوهم په دې لار دانبياؤ عليهم السلام په دين اوشريعت کښې بدلون راغلو،ورپسې چې دنورو انبياؤشريعتونه راغلل هغوئ ددې جرړه [ريښه] اوويسته،شريعت محمديه خودائمی اوابدي [هميشه دپاره] شريعت دې،په رسول الله ﷺ باندې نبوت اورسالت ختم شو،اوشريعت ئې آخری شريعت دې چې دورانولواوبدلون نه بچ کولوپه غرض داسې هريوسورې وردپاره بندکړې شو چرته نه چې بت پرستی اوشرک راتلې شو،په دې سلسله کښې هغه ټول څيزونه په دې شريعت کښې حرام اوګرځولې شوچه په کومه زمانه کښې دشرک اوبت پرستئ ذريعه جوړه شوی وه.

تصويرونه جوړول اواستعمالول ئې،سجده تعظيمی،هم په دې وجه حرام کړې شو،په داسې وختونوکښې مونځونه کول حرام اوګرځولې شو،چه په هغې کښې به کفارواومشرکينودخپلو معبودانوعبادت کولو،داټول په دې وجه چې هسې نه ظاهری صورت او مطابقت ئې څه وخت دشرک ذريعه جوړه شی،

دصحيح مسلم په يوحديث شريف کښې دی چې رسول کريم ﷺ مالکانوته حکم ورکړو چې خپل غلام دِ دعبد[بنده] لفظ سره نه بلی اوغلامانوته ئې اوونيل چې خپل مالکان دِ په رب

۱) أحکام القرآن: ۱/ ۳۲

[پالونکی] سره نه یادوی دې کښې(۱) اګرچه په ظاهرڅه بدیت نه معلومیږی ولې چې عبدغلام ته او رب پالونکې ته وئیلې شی خودجهالت اوغفلت په وجه څه وخت دکفراوشرک ذریعه داسې جوړیدې شی چې رب نه مطلب پروردګاراغستې شی اوپه دې اډانړه او وجه ئې عبادت شروع شی نو داسې قسم څیزونه څکه منع کړې شو،

خلاصه داشوه چې حضرت آدم علیه السلام ته دفرښتوسجده کول یاحضرت یوسف علیه السلام ته دمور پلار او رونړوسجده کول سجده تعظیمی وه دهغوئ په شریعتونو کښې ئې داسې مثال وؤلکه زمونږپه شریعت کښې،مصافحه،معانقه،اودست بوسی یعنی لاس ښکلول چې شوه،خوهرکله چې شریعت محمدیه دکفراوشرک نه هم پاک ساتل ووځکه ئې سجده تعظیمی اونورداسې څیزونه چې څه وخت دکفر اوشرک ذریعه جوړیدې شوه ټول دسیرمې [د یو مخه] ناجائزاوحرام اوګرځولې شو،خصوصادتعظیم په قصد،سوادالله تعالی نه بل چاته سجده کول یادرکوع په اندازه ورته ټیټیدل هم ناروا اوګرځولې شو،

**مونځ د څلورو افعالو مجموعه ده:** بعضې علماء وائی چې مونځ اصل عبادت دې په دې کښې څلور قسمه افعال دی،① اودریدل، ② کښیناستل،③ رکوع ④ سجده ږومبی دوه داسې افعال دی چې انسان ئې خپلو ضرورتونودپاره عادتاکوی اودعبادت په ډول په مانځه کښې هم کولې شی خوروستنی دوه افعال داسې دی چې صرف عبادتاپه مانځه کښې کولې شی عادتائې څوک نه کوی،نوهرکله چې دادواړه [رکوع اوسجده عبادت سره خاص دی څکه سوادالله تعالی نه بل چالره روانه دی،

پاتې شوداسوال چې دتیرشوی آیت دقرآن کریم نه سجده تعظیمی جائزثابتیږی ددې منسوخ کیدل اوسجده تعظیمی حرامیدل په کوم دلیل سره ثابتیږی؟

جواب ئې دادې چې درسول الله ﷺ په احادیثومتواتروسره دسجده تعظیمی حرامیدل ثابت دی لکه رسول الله ﷺ فرمائې:که مادالله تعالی نه سوابل چالره سجده تعظیمی رواګرځولې وې نوښځې ته به مې حکم کړې ووچه خپل خاوندته دې سجده کوی(۲)،[خوپه دې شریعت کښې سجده تعظیمی مطلقاحرامه ده په دې وجه ئې هیڅوک هیچاته نشی کولې،

داحدیث شریف دشلوصحابه کرامو رضی الله عنهم په روایت سره ثابت دې،داصول حدیث په مشهور کتاب تدریب الراوی کښې دی چې کوم روایت لس صحابه کرام نقل کړی نوهغه حدیث متواتر جوړشی(۳) چې دقرآن کریم پشان قطعی اویقینی شی اوشل خوئ دوچنددی،دشلوصحابه کرامو روایتونه دبیان القرآن په حاشیه کښې حضرت حکیم الامت مولاناتهانوی رحمه الله راجمع کړیدی، که ضرورت وی هلته ئې اوګورئ(۴)،

**مسئله** دابلیس دکفرباعث صرف عملی نافرمانی نه وه څکه چې دشریعت په اصولوکښې یو فرض عملاپرینبودل فسق اوګناه ده کفرنه دې،دده دکفراصل سبب الله سره حجت بازی، معارضه اومقابله کول وؤداشان چه چا ته دسجدې کولو حکم تا ماته راکړې دې، هغه ددې

۱) صحیح مسلم، کتاب الالفاظ من الادب وغیرها، باب حکم اطلاق لفظة العبد: ۲/ ۲۳۸
۲) مشکوة، کتاب النکاح، باب عشره النساء: ۲/ ۲۸۲
۳) تدریب الراوی، النوع الثلاثون: ۲/ ۷۵
۴) تنفصیل دپاره اوګوئ، بیان القرآن تحت هذه الآیة: ۲۹، ۳۰

قابل نه دی چې زه هغه ته سجده اوکړم، چنانچه الله سره معارضه اومقابله کول بېشکه کفردي،

**مسئله**: هرکله چې ابلیس په علم اومعرفت کښې دامقام لرلوچه ورته طاؤس الملائکة وئیلې شونوداسې حرکت ترڅنګه اوشو؟ ځنې علماء کرام ئې داجواب ورکوی چې دتکبراولوئې کولوپه وجه الله تعالی ده نه هغه ورکړې علم، معرفت اوپوه بیرته واغسته ځکه دداسې جهالت کارئې اوکړو. ځنې وائی چې دمرتبې محبت اوخپل ځان لره دښه ګڼړلوپه وجه ئې دې کښې مبتلاکړو اګرچه دې حقیقت شناس وو، چنانچه په تفسیرروح المعانی کښې پدې مقام کښې یوشعرنقل کړې دې، حاصل ئې دادې، چه کله بنده سره الله تعالی دګناه نه یادهغې دوبال نه بچ کیدودپاره امداد اونکړی نودهغه هرکوشش اوهرعمل ده لره ګمراهئ اړخ ته وردیکه کړی، شعردادې،

اذالم یکن عون من الله للفتی　　فاول مایجنی علیه اجتهاد

**ترجمه**: کله چې سړې د الله ﷻ د طرفنه مدد نه وی نو اول هم ددهٔ کوشش ده لره خطاء کوئی

روح المعانی کښې ئې ددې نه داخبره هم ثابته کړې ده چې دانسان ایمان هغه معتبردې چې تر آخره عمره دآخرت تراول منزل پورې ورسره وی، په موجوده ایمان، عمل اومعرفت باندې مغروره کیدل نه دی پکار[روح المعانی] (۱)

وَقُلْنَا　يٰٓاٰدَمُ اسْكُنْ　اَنْتَ　وَزَوْجُكَ
| او اوونیل مونږ | اے آدمه اوسیږه | ته | اوبی بی ستا
| [د دې نه پس] اومونږ حضرت آدم ته اوونیل چې ته اوستا جوړه

الْجَنَّةَ　وَكُلَا　مِنْهَا　رَغَدًا حَيْثُ شِئْتُمَا　وَلَا　تَقْرَبَا
په جنت کښې | اوخورئ دواړه | ددې جنت نه | فراخه هرچرته چې مو خوښه وی | اومهٔ | نږدې کیږئ
په جنت کښې اوسیږئ | او چې دکوم ځائې نه موخوښه وی خوراکونه کوئ | اوفلانئ ونې ته مه ورنږدې

هٰذِهِ الشَّجَرَةَ　فَتَكُوْنَا　مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ۝　فَاَزَلَّهُمَا　الشَّيْطٰنُ
دې ونې ته | ګنی شئ به تاسو دواړه | د ظالمانو نه | آخر اوخویول دواړه | شیطان
کیږئ | ګنی [که میوه مواوخوړله نو] په ځان به زیاتې اوکړئ | نوشیطان دوی دواړو ته د هغې ونې لغزش ورکړو

عَنْهَا　فَاَخْرَجَهُمَا　مِمَّا　كَانَا　فِيْهِ　وَقُلْنَا　اهْبِطُوْا
ددغه ونې په سبب | اوراوې ویستل دواړه | دهغه عزت کرامت نه | چې وو | په هغې کښې | او اوونیل مونږ | کوز شئ تول
اودوی ئې د هغه نعمتونو نه راویستل چه دوی په کښې وو | اومونږورته اوونیل چې الاندې زمکې ته | کوز شئ

بَعْضُكُمْ　لِبَعْضٍ　عَدُوٌّ ۚ　وَلَكُمْ　فِي الْاَرْضِ　مُسْتَقَرٌّ　وَّمَتَاعٌ
ځینې ستاسو به | دپاره دنورو | دشمنان وی | اودې ستاسو دپاره | په زمکه کښې | ځائې داستوګنې | اوفائده
[چه کله کوز شئ نو] تاسو به دیوبل دښمنان یئ | اوستاسو دپاره د یو مقرر وخته پورې په زمکه باندې

(۱) روح المعانی: ۱/ ۲۳۱

| اِلٰی حِیْنٍ ۝ |
| --- |
| دخاص وخته پورې |
| اوسیدل دی |

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ ووئیل اې آدمه ! ته او ستا بي بي په جنت کښې اوسیږئ او په دې کښې چه کوم ځائې نه ستاسو خوښه شي دهغه ځائې نه په مړه خوراك کوئ مګر ددې ونې خوا ته مه ورځئ کنې تاسو به په ظالمانو کښې شمار شئ " بیا داسې وشوه چه شیطان دوی لره دهغه ځائې نه اوښویول او کوم (عیش) کښې چه دوی وو دهغې نه ئې وویستل او مونږ (آدم، دهغه بي بي او شیطان ته) ووئیل چه اوس تاسو ټول ددې ځائې نه کوز شئ تاسو به دیو بل دښمنان یئ او تاسو ته دیوې زمانې پورې په زمکه کښې اوسیدل دی او څه فائده اخستل (فیصله شوې) دی.

## خلاصه تفسیر

﴿وَقُلْنَا يٰٓاٰدَمُ اسْكُنْ اَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ﴾ او مونږ حکم اوکړو چه اوسیږه ته او ستا بی بی [چه الله ﷻ په خپل قدرت کامله سره د آدم ﷺ د پښتئ نه د څه مادے راوغستو سره جوړه کړې وه] په جنت کښې ﴿وَكُلَا مِنْهَا رَغَدًا حَيْثُ شِئْتُمَا﴾ بیا خورئ دواړه ددې نه په آزادئی سره، چرته نه چه غواړئی ﴿وَلَا تَقْرَبَا هٰذِهِ الشَّجَرَةَ﴾ او نزدے مه ورځئ دے ونې ته ﴿فَتَكُوْنَا مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ۝﴾ ورنه تاسو به هم په هغوی کښې شمیر شئ چه خپل تاوان ئے کړې وی [الله ﷻ پوهیږی چه داد څه ونه وه خو ددې خوراك نه یئ منع کړل مالك ته ددې خبرې اختیار دې چې دخپل کور په څیزونو کښې خپل غلام ته دځه څیزونو اجازت ورکوی اود څه نه ئے منع کوی] ﴿فَاَزَلَّهُمَا الشَّيْطٰنُ عَنْهَا﴾ بیا لغزش ورکړو آدم ﷺ او حوا بی بی ته شیطان ددغې ونې په وجه، ﴿فَاَخْرَجَهُمَا مِمَّا كَانَا فِيْهِ﴾ نو لرے ئے کړل دوی ددغه عیش نه په کوم کښې چه دوی وو ﴿وَقُلْنَا اهْبِطُوْا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ﴾ او مونږ اووئیل چه ښکته کوزشئ [کښته سئ] تاسو چه دیو بل به دښمنان ئے ﴿وَلَكُمْ فِي الْاَرْضِ مُسْتَقَرٌّ﴾ او تاسو لره په زمکه څه زمانه اوسیدل دی ﴿وَّمَتَاعٌ اِلٰى حِيْنٍ ۝﴾ او کار چلول دی یو مقرر نیټے پورې یعنی هلته چه لاړ شئ هم به همیشه اوسیدل مو نه وی څه موده پس به ددغه کور هم پریښودل راځی.

## معارف اومسائل

قوله تعالی۔ ﴿وَقُلْنَا يٰٓاٰدَمُ اسْكُنْ﴾ دا دحضرت آدم ﷺ دقیصې تکمله ده چې پکښې دا بیان شوی دی چې هرکله دحضرت آدم ﷺ فضیلت او دزمکې دخلافت دپاره دهغوئ جوګه کیدل په فرښتو واضح کړې شو، هغوئ دا اومنل او ابلیس دخپل تکبر او معارضې په وجه کافر شوا و ښکلې [وایستل] شونو حضرت آدم ﷺ اود هغوئ بی بی حضرت حوا، ته دا حکم ورکړې شو چه جنت کښې استوګنه کوئ او ددې د نعمتونو نه فائده پورته کوئ مګر په ګوته کړې دیوې اونې په باره کښې ئې دا هدایت اوکړو چه ددې خوا له مه ورځئ. یعنی دخوړلو نه ئې پوره ځان ساتئ. شیطان چې د حضرت آدم ﷺ په وجه مردود شوې وو ده ﷺ سره ئې په زړه کښې کینه لرله چې موقعه ئې بیاموند ه ددغه اونې خوبئ او فائدې ئې ورته بیان کړې او ددې خوراک ته ئې تیار کړو. د دوئ ﷺ دخوئیدو [غلطیدو] له کبله ورته په زمکه دا ستوګنې کولو حکم

ملاؤشو ،خوورته ئې داهم اوښودل چې دزمکې استوګنه به دجنت پشان بې خاره اوبې خیرې نه وي بلکه هلته به يوټربله اختلافات اودښمنۍ وي چې دژوندخوندبه ئې ګډوډ کړې وي

قوله تعالٰی-﴿وَقُلْنَا يَآدَمُ اسْكُنْ أَنتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ﴾ اومونږ اوونيل اې آدم علیه السلام استوګنه کوه [اوسیږه] ته اوستابې بې په جنت کښې،داواقعه دحضرت آدم علیه السلام دپیداکیدواو ورسته دملائکود سجدې کولونه پس ده،ځنې حضراتوددې نتیجه داڅرګنده کړې ده چې دحضرت آدم علیه السلام پیداکیدل اوورته سجده کول چرته دجنت نه بهرشوي دي اودوئ دواړه دې نه روستوجنت ته داخل کړې شو .خومطلب څرګندیدل تریقیني نه دي بلکه کیدې شي چې دپیداکیدواوسجدې واقعې دواړه په جنت کښې راپیښې شوي وي نودغه وخت داستوګنې فیصله نه وه آورولې شوې چې چرته به وي، اوس دادفیصلې آورولوموقعه راغله

قوله تعالٰی-﴿وَكُلَا مِنْهَا رَغَدًا حَيْثُ شِئْتُمَا﴾ په عربۍ کښې د رغد معنی هغه روزي ده چې ترلاسه کولوکښې ئې څه خواري اوتکلیف نه وي اوهغه دومره بسیاره اوفراخه وي چې دکمیدو یا ختمیدو ئې خطره نه وي،مطلب ئې داشوچه حضرت آدم علیه السلام اوحواءبي بي ته اووئيلې شوچه ښه په ډاډه ئې خورئ نه به ددې په ترلاسه کولوکښې څه خواري اومشقت کول نه راپیښیږي اونه به دافکراوويره کول وي چې هسې نه داخوراکه کمه یاختمه شي،

قوله تعالٰی- ﴿ وَلَا تَقْرَبَا هَٰذِهِ الشَّجَرَةَ﴾ يوې خاصې اونې ته اشارې کولوسره ئې اوفرمائیل چې ددې خواته مه ځئ،دې نه اصل مطلب خوراک نه ئې منع کول ووخودتاکیدپه غرض داالهجه اوطریقه اختیارشوه،دااونه پخپله قرآن کریم نه ده په ګوته کړې اونه چرته په مستندحدیث کښې ټاکلې شوې ده،دتفسیر ځنې امامانو،دادغنمواونه [درخته] ښودلې ده،چادانګورواوچادا اينځراونه ښودلې ده، خوهرکله چې دا قرآن کریم ،نه ده په ګوته کړې نوبیا ورپسې کیدلوته ضرورت څه دې،[قرطبی][1]

قوله تعالٰی- ﴿فَتَكُونَا مِنَ الظَّالِمِينَ﴾ یعنی که دامنع کړې شوې اونه مو اوخوړه نوپه ظالمانوکښې به شامل شئ.

قوله تعالٰی- ﴿فَأَزَلَّهُمَا الشَّيْطَانُ عَنْهَا﴾ په عربۍ کښې د زَلَّة معنی خوئیدل [خطاوتل] دي اوازلال د خوئیولو تیرباسلو[خطآ ایستلو] معنی لري، یعنی شیطان حضرت آدم علیه السلام اوحواء بي بي اوخوئیل، دقرآن کریم الفاظ،صفاښکاره کوي چې د دوئ علیهما السلام داخلاف کول دعامو ګناهګارانو په طرزنه وو ،بلکه دشیطان په تیرباسلو[خطآ ایستلو] ،تیروتل اوددغه اونې میوه ئې اوخوړه، عنها الفظ کښې عن دسبب معنی ورکوي، یعنی ددغه اونې په سبب حضرت آدم علیه السلام اوحوا بي بي لره شیطان اوخوئیول،

**يو سوال او دهغې جواب**: دلته سوال داپیداکیږي چې هرکله،شیطان حضرت آدم علیه السلام ته دسجدې نه دانکارکولوپه بنارتلې شوې جنت نه اوويستلې شونوبیاددې دواړو غولولو دپاره، جنت ته څنګه راورسیدو؟

ددې بې غباره جواب دادې چې دشیطان دغولولواوهلته درسیدوډیرصورتونه کیدې شي،① داچه بهرنه بې لیدوئې ورته وسوسه اچولې وي،② شیطان پیرې دې چې الله تعالٰی په ډیرو

---

[1] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ١/ ٣٠٤، ٣٠٥

تصرفاتو کښې قدرت ورکړې دې چې په عامه توګه ئې انسان نشي کولې هغه ته يې په مختلفو شکلونو کښې د کيدلو هم قدرت ورکړې کيديشي چې دمسمريزم غونډې قوت سره ئې د دواړو په ذهن اثرغورځولي وی ④ او دا هم کيدې شي چې په بل شکل کښې لکه د مار وغيره په شکل کښې جنت ته داخل شوې وی، او شايد چې هم داسبب وو چې د آدم عليه السلام دهغه دښمنۍ ته هډو پام نشو.د قرآن پاك د آيت ﴿وَقَاسَمَهُمَآ اِنِّيْ لَكُمَا لَمِنَ النّٰصِحِيْنَ﴾ نه هم داسې معلوميږي چې شيطان صرف دوسوسې اچولواوذهنی اثرغورځولونه کارنه دې اغستې بلکه مخامخ ورته راغلې،خبرې ئې ورسره کړی دی اوخپل اثرلاندې راوستې وی

قوله تعالی- ﴿فَاَخْرَجَهُمَا مِمَّا كَانَا فِيْهِ﴾ يعنی شيطان دغې دوکې اوتيرباسلوپه ذريعه دې دواړو لره دهغه نعمتونونه راوښکل چې پکښې دوی عليهما السلام دآرام ژوندتيرولو.دا ايستل اګرچه دالله په حکم ووخوسبب ئې شيطان ووځکه ئې نسبت هغه ته اوکړې شو،

قوله تعالی- ﴿وَقُلْنَا اهْبِطُوْا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ﴾ يعنی مونږحکم ورکړوچه ښکته کوزشئ په داسې شان چې تاسوبه خپل منځ کښې يو تربله دښمنان ئې ددې حکم مخاطب حضرت آدم عليه السلام حوابی بی اوشيطان هم کيدې شی،په هغه صورت کښې چې ترډغه وخت لاشيطان دآسمانونونه اوښکلې شوې نه وو،په دې صورت کښې به ئې مطلب داوی چې دشيطان اوبنيادموترمنځه به دنياکښې هم دښمنی جاری وی،يابه يواځې دې دواړوته خطاب وی چې شيطان په دغه وخت دآسمانونونه ويستلې شوې وی،مطلب ئې داوی چې ستاسود دواړوسزايوځوجنت نه زمکې ته راوښکل شوبله سزابه موداوی چې ستاسوداولادپه منځ کښې به يوتربله دښمنی وی،نوژوندبه خوندناك نه وی،ځکه چې دمور پلارژوندپه هغه صورت کښې بې خونده وی کله چې داولادترمنځه ئې يوتربله دشمنی وی، نو دا هم ددوئ عليهما السلام يوقسم بله معنوی اوروحانی سزا شوه [بيان القرآن] (۱)

قوله تعالی- ﴿وَلَكُمْ فِي الْاَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَّمَتَاعٌ اِلٰى حِيْنٍ﴾ يعنی دې دواړوته داهم ارشاداوشوچه په زمکه به هم ستاسوتيکاويدل اودغلته کار چلول ترڅه زمانې پورې وی همیشه به نه وی اوڅه زمانه پس به دغه ديره [ودانی] هم پريږدئ،

**دې آيتونوسره تړلې مسئلې اوشرعی احکام:** ﴿اُسْكُنْ اَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ﴾ دې آيت مبارك کښې حضرت آدم عليه السلام او حواء بی بی دواړوته په جنت کښې د اوسيدو ارشاد شوې دې، په لنډوټکوئې مطلب دادې چې [اسكنا الجنة] دواړه په جنت کښې استوګنه کوئ ځکه چې كُلَا او﴿لَا تَقْرَبَا﴾ کښې په دواړه په يوه صيغه کښې ذکر شوی دی،خودلته په ﴿اَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ﴾ کښې بيلو بيلو الفاظ اختيارولو کښې مخاطب يواځې آدم عليه السلام دې اوورته دا ارشاددې چې بی بی دې هم درسره په جنت کښې اوسيږی اوس دې کښې دوومسئلوته اشاره ده،

**مسئله:** ① دبی بی داستوګنې انتظام دهغې دخاوندپه ذمه دې،په استوګنه کښې بی بی دخپل خاوندتابع وه يعنی دې لره په يومکان کښې خپل خاوندسره استوګنه پکارده،

**مسئله** [۲] لفظ د﴿اُسْكُنْ﴾ کښې دې طرفته هم اشاره ده چې دواړولره په جنت کښې پاتې کيدل عارضی وو،داهميشه تيکاويدل نه وؤ،چه دملکيت شان لری ځکه چې د ﴿اُسْكُنْ﴾ معنی ده چې

۱) تفسير بيان القرآن تحت هذه الآية: ۱/ ۴۹

دي کور کښي اوسيږه، دا ئي اونه فرمائيل چي دا کور ستاشو. وجه دا وه چي دالله تعالى داسي فرمائيل په دي حکمت بناوو، چه دڅه حالاتوراپيښيدوپه وجه به آدم ﷺ جنت پريږدی او د جنت استحقاق اودملکيت په ډول هميشه استوګني دپاره دا[جنت] به دايمان اودعمل صالح په بدل کښي ورکولي شي چي قيامت نه پس به کيدي شي. ددي څخه فقهاء کرامو دا مسئله اخذ کړي ده چي که يو سړي چاته اووائي چي زما کورکښي اوسيږه يا زما کور ستا د اوسيدو ځائي دي،دافائده نه ورکوي چي ددي کوردي مالک شي اودهميشه حقداری دی ورلره ثابته شي، [قرطبي](۱)

**په غذااوخوراک کښي به بي بي دخاوندتابع نه وي:** قوله تعالى: ﴿وَكُلَا مِنْهَا رَغَدًا﴾ تاسودواړه په ډاډه زړه دجنت نه خورئ،دادوراندي تيري شوي جملي پشان اصل اوتابع په ډول خطاب نه شوبلکه په دي خطاب کښي دواړه اصل اوګرځولي شو،دي کښي اشاره دي خبري ته کيدي شي چي په غذااوخوراک کښي بي بي دخپل خاوندتابع نه ده هريودخپل خواهش اوضرورت مطابق خوراک دکوي،

**هرچرته په آزادئ سره ګرځيدل راګرځيدل دانسان فطري حق دي:** قوله تعالى: ﴿رَغَدًا حَيْثُ شِئْتُمَا﴾ لفظ د ﴿رَغَدًا﴾ دخوراک په څيزونوکښي فراخئ اوډيروالی ته اشاره ده چي هرڅه هرڅومره خوړلي شئ، سوا د يوي اوني نه دهيڅ څيزبنديزاومنع نشته، د﴿شِئْتُمَا﴾ په لفظ کښي دمقاماتودفراخئ بيان دي چي ټول جنت کښي هرځائ نه خوراک کولي شي په دي دواړوکښي اشاره دي خبري ته ده چي ګرځيدل راګرځيدل اومختلفوځايونونه خپل ضروريات ترلاسه کول دانسان دآزادئ فطري حق دي،مطلب داچه که په يوځائ کښي انساني ضروريات اوخواهشات پوره کيدي شي مګردغه ځائ نه بل خواتلل ياوتل بندوی نوداهم يوقسم قيددي چي په دوئ دواړو ﷺ اونه لګولي شو اوپه ﴿حَيْثُ شِئْتُمَا﴾ فرمائيلوسره دګرځيدوراګرځيدوهرځائ ته دتلوآزادي ورکړي شوه،

**دذريعو دبنديزمسئله:** قوله تعالى: ﴿وَلَا تَقْرَبَا هٰذِهِ الشَّجَرَةَ﴾ [ددي اوني خواته مه ورځئ] اصل مقصدددي اوني دميوي دخوراک نه منع کول ووخو احتياطا داحکم ورکړي شوچه ددي اوني خواته مه ورځئ. دي نه داصول فقهي،دذريعودبنديزمسئله ثابته شوه يعنی څني څيزونه بذاتِ خود ناروا يا بند نه وي خوکه ددي څيزونوپه وجه د حرامو او نارواوته دورپوري وتلوخطره وي نوهغه منع کولي شي لکه دلته چي داوني خواته تلل ددي دګل ياميوي خوړلوذريعه وه چي بنده کړي شوه،

**دانبياؤ دعصمت مسئله:** ددي واقعي نه معلوميږي چي حضرت آدم ﷺ اوبی بی حواء ديوي ټاکلي اوني دخوراک نه منع کړي شواودشيطان په دښمنئ هم خبرداره کړي شو چي هسي نه دي موپه ګناه کښي ښکيل نکړي،خوسره ددي دوئ ﷺ ددغي اوني نه خوراک اوکړوچه شکل دګناه معلوميږي سره ددي چي انبياء ﷺ دهرقسم ګناه نه پاک وي،

په دي باره کښي تحقيق دادي چي انبياء ﷺ دټولوګناهونونه محفوظ وي،داخبره په عقل،نقل سره ثابته ده،دځلوروامامانواوجمهورامت په دي اتفاق دي چي انبياء ﷺ دهري وړي اولوئ ګناه نه پاک وي،څوک چي دوئ ﷺ لره دوړوګناهونونه محفوظ نه بولي او وائي

(۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ۱/ ۲۹۹

چې دوئ څخه واړه ګناهونه کیدیشي، دجمهورامت په نزدصحیح نه دی، [قرطبی] (۱)
ددې وجه داده چې حضرات انبیاء ﷺ دخلقودمقتداجوړولوپه غرض لیږلې شي، که دوئ ﷺ نه هم دالله تعالی دمرضئ، خلاف، دوړې یالوئ ګناه څه حرکت صادرشي نود ددوئ ﷺ دقول اوفعل نه به امن پورته شي اواعتباری به پاتې نشي اوس که دوئ هم بې اعتباره شي نودین به چرته موندلې شي،
البته دقرآن کریم دډیروآیتونونه دانبیاء ﷺ داسې واقعات ثابت دی چې هغه په ظاهره اګرچه دپیغمبرانوګناه معلومیږي، ولې چې دهغې په بناورته دالله تعالی له اړخه زورنه هم ورکړې شوې ده لکه دحضرت آدم ﷺ داقصه چې شوه، خوپه اتفاق دامت داسې قسم حرکت صادریدل د دوئ ﷺ په غلط فهمئ، خطااوهیره محمول وی په اراده اوپوه ترداسې حرکت نشي صادریدې نودا اجتهادی غلطئ، یاخطاءاوهیره بللې شي چې دمعاف کیدوجوګه وی او په اصطلاح دشریعت کښې ورته ګناه نشي وئیلې علاوه داچه داسې قسم غلطئ یاهیره په داسې کارونوکښې ترکیدې شي، چه تبلیغ اوتعلیم سر تړون نه لری یعنی داشرعی امورنه وی بلکه د دوئ ﷺ په ذاتی افعالواواعمالوکښې ترصادریږی [تفسیرالبحرالمحیط] (۲)
بیاهم هرکله چې حضرات انبیاء ﷺ ډیرلوړمقام لری د دوئ ﷺ وړې غلطئ هم لوئ غلطئ ګڼړلې شي اوپه قرآن کریم کښې داسې واقعات ګناهونه بللې شوی دی اوپرزورنه هم ورکړې شوې ده اګرچه درحقیقت ګناه نه وی،
چنانچه دحضرت آدم علیه السلام ددې واقعې باره کښې علمائ کراموډیرتوجیهات کړی دی چې یوڅوپکښې دادی،

① په جنت کښې یوخاص اونې ته اشاره کولوسره حضرت آدم علیه السلام اوبی بی ئې ددغې خواته دورتلونه منع کړې شوی ووچه مرادترهم دغه خاص یوه اونه نه وه بلکه ددې جنس تولې اونې مرادوې لکه یووخت رسول الله ﷺ په خپل لاس مبارک کښې ریښمینه کپړاوسره زر واغستل اووې فرمائیل چې دادواړه څیزونه زمادامت په نارینؤحرام دی خودې نه مرادهغه خاص کپړایاسره زرنه ووچه رسول الله ﷺ په لاس مبارک کښې وؤبلکه ددې نه ددغې جنس ټولې کپړې اوټول سره زر مراد ووخوبیاهم چاته داوهم کیدې شي چې ګویاهمدغه خاص کپړایا خاص سره، زرترمرادؤو، دغه رنګ کیدې شي چې حضرت آدم علیه السلام تردغه خاص اونه مراد اغستې وی اودغه جنس بلې اونې نه ئې خوړلې وی څکه چې شیطان هم ورپسې ؤوددې تاویل وسوسه یې ورته په زړه راوستلی وی بیائې قسمونوخوړلواوخپلې خیرخواهئ ثابتولوسره مضبوطه کړی وی،
② کیدې شي چې په دوئ دشیطان دې وسوسې کارکړې وی چې دابندیزهغه وخت ووکله چې حضرت آدم علیه السلام تازه پیداشولکه چې پیدا شوې ماشوم په رومبو[اولو] ورځوکښې دقوی غذانه بندولې شي اودسپکې غذاورکولوبندوبست ورله کولې شي اوکله چې ماشوم لږشان قوی اوپه عمر کښې څه زیات شي نوبیاورته دهرقسم غذاورکولواجازت وی،

---
۱) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ۱/ ۳۰۷نه ۳۰۹ پورې۔
۲) تفسیر البحر المحیط باختصار تحت هذه الآیة: ۱/ ۲۰۳،۲۰۴

④ داهم کیدې شي چې شیطان ورته ددې اوني خوراک فائدې ښودلې وې چې یوپکښې داهم وه چې ددې خوراک سره به په جنت کښې همیشه دپاره اوسیدل وې، په دې خوشحالۍ کښې تر هغه وعده دمنع هیره شوې وې کومه چې دپیداکیدوپه رومبوورځوکښې تراغستې شوې وه لکه چې قرآن کریم ئې ﴿فَنَسِيَ وَلَمۡ نَجِدۡ لَهُۥ عَزۡمًا﴾ یعني حضرت آدم عليه السلام نه هیره اوشوه اومونږپکښې پختګی اومضبوطوالې بیانه موندلو] سره تائید کوي.

بهرحال داسې ګڼراحتمالات کیدې شي، حاصل ئې دادې چې حضرت آدم عليه السلام داکارپه قصد نه بلکه په هیره کړې وو، اجتهادي غلطي هم کیدې شي چې په حقیقت کښې ګناه نه ده خو هرکله چې دنبوت اوداالله تعالی دنزدیکت مقام ډیرلوړدې په دې لحاظ دغه خطاوتل هم لوئ اوګڼړلې شواوقرآن کریم کښې دمعصیت [نافرمانۍ] په الفاظوسره یادکړې شوخوسره ددې د توبې اواستغفار [بخښنې غوښتلو] نه پس قرآن کریم، ددې دمعاف کولوذکرهم فرمائیلې دې،

**یو څو بې فائدې سوالات:** دابحث کول هیڅ فائده نه لري چې هرکله شیطان په شړلودجنت نه اوویستلې شونوبیاغلولو اووسوسې اچولودپاره جنت ته څنګه ورننوتو؟ څکه چې پیریانو اوشیطانانو ته الله تعالی داطاقت ورکړې دې چې دلرې اوبهرنه هم وسوسه اچولې شي، که هغه [شیطان] جنت ته ننوتې وي او مخامخ خبرې ئې حضرت آدم عليه السلام سره کړې وي نوداهم ډیر احتمالونه لري چې په تحقیق کښې ئې لګیدل بې فائده بحث دې،

داشان داسوال کول هم څه فائده نه لري چې هرکله حضرت آدم عليه السلام اوحضرت حوا بي بي دواړه] الله تعالی په دې خبرداره کړې ووچه ﴿إِنَّ ٱلشَّيۡطَٰنَ لَكُمَا عَدُوٌّ﴾ شیطان مودښمن دې دسې نه چې دڅه حرکت صادرولوپه وجه موجنت نه اوباسي نوبیادوئ عليهما السلام څنګه شیطان اوغلولې شو ددې جواب هم داسې کیدې شي چې الله تعالی پیریانواوشیطانانولره داسې طاقت ورکړې دې چې خان په مختلفوشکلونوکښې ښکاره کولې شي نودلته هم داسې کیدې شي چې په څه بل شکل کښې ورته راغلې وي اودوئ عليهما السلام نه ئې پیژندلې چې داشیطان دې.

| عَلَيۡهِ | فَتَابَ | كَلِمَٰتٖ | مِن رَّبِّهِۦ | ءَادَمُ | فَتَلَقَّىٰٓ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوکړه الله]په هغه باندې | نورجوع | خو کلمې | درب خپل نه]یو | آدم | انو زده کړې |

| بیاآدم عليه السلام دخپل رب نه [دمعافۍ]یو څوکلمې زده کړې انوالله دده توبه قبوله کړه |
|---|

| جَمِيعٗا | مِنۡهَا | ٱهۡبِطُواْ | قُلۡنَا | ٱلرَّحِيمُ ۝ | ٱلتَّوَّابُ | هُوَ | إِنَّهُۥ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| تول | ددې خائې نه | اکوز شئ | اوونیل مونږ | اورحم کونکې دې | ادیر توبه قبلونکې | | بیشکه چې اهغه |

| بیشکه الله معاف کوونکی مهربان دې امونږ ورته اوونیل چې ددې خائې نه ټول په یوځائې کوز شئ |
|---|

| هُدَايَ | تَبِعَ | فَمَن | هُدٗى | مِّنِّي | يَأۡتِيَنَّكُم | فَإِمَّا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ادهدایت زما | چې تابعداري اوکړه | نو کوموخلقوا | څه هدایت | ادطرفه زمانه | تاسو ته | بیـ که چرې اراغلو |

| بیا چې تاسوته څماد طرفنه هدایت درشي انوچاچې څماد [کتاب] هدایت پیروي اوکړه [اوپه هغې ئې عمل اوکړو] |
|---|

فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ۝ وَالَّذِينَ كَفَرُوا

نو نه به وی | ویره | په هغوئ باندي | او نه به | هغوئ | غمژن شی | او هغه کسان | چې انکار ئې اوکړو

نو په هغوئ باندې هیڅ قسمه ویره نشته | او نه به په راروان ژوند کښې غمژن شی | او چاچې انکار اوکړو

وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ۝

او دروغ ئې اوونیل | آیتونو زمونږ ته | هغوئ | ملګری د وور دی | هغوئ به | په هغې کښې | همیشه وی |

او خما آیتونه ئې دروغ اوګڼړل | هغوئ دوزخیان دی او په دوزخ کښې به تل ترتله پراته وی |

## آسان ترجمه قرآن

بیا آدم علیه السلام د خپل پروردګار نه (د توبې) څه الفاظ ازده کړل (چه دهغې په ذریعه هغه توبه وویسته) پس د هغې په ذریعه الله تعالیٰ دهغه توبه قبوله کړه بې شکه هغه ډیر معاف کوونکې او ډیر مهربان دې مونږ ووئیل "اوس تاسو ددې ځائې نه اوځئ بیا که خما دطرف نه څه هدایت تاسوته راشی نوکوم خلق چه خما دهدایت پیروی وکړي نوهغوی ته به نه څه ویره وی او نه به هغوی په څه غم کښې مبتلاشی اوکوم خلق چه دکفر ارتکاب کوی اوخمونږ آیتونه دروغژنوی نوهغوی دوزخیان دی چرته چه به هغوی همیشه اوسیږی.

## خلاصه تفسیر

﴿فَتَلَقَّىٰ آدَمُ مِن رَّبِّهِ كَلِمَاتٍ﴾ دې نه پس زده کړل آدم ﷺ دخپل رب نه څو الفاظ [یعنی د عذر پیش کولو الفاظ چه هغه هم دالله ﷻ له طرفه ورکړې شوی وو دحضرت آدم ﷺ د پښیمانتیا دوجې ورته دالله ﷻ مخه شوه اوپخپله ئې ورته دغه الفاظ اوخودل] ﴿فَتَابَ عَلَيْهِ﴾ نو الله ﷻ په رحمت سره ده ته مخه کړه [یعنی دهغه توبه یې قبوله کړه] ﴿إِنَّهُ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ ۝﴾ بیشکه هم دے لوئې توبه قبلوونکې مهربان دې [او دحضرت حواء بی بی دتوبې بیان په سورت اعراف کښې دې] ﴿قَالَا رَبَّنَا ظَلَمْنَا أَنفُسَنَا﴾ دې نه معلومه شوه چه حضرت آدم ﷺ او حضرت حواء بی بی دواړه په توبه کولو اوتوبې قبلیدو کښې شریك وو خو سره د معاف کولو ئې هم زمکې ته د کوزیدو حکم ئې منسوخ نکړو ولې چې په دې کښې بیشمیره حکمتونه او ښیګړې وې البته طرز ئې په دې شان بدل کړو چه اول ددې حکم انداز د سزا په ډول حاکمانه وو او دبل ځل اندازیې حکیمانه وو لکه فرمائی : ﴿قُلْنَا اهْبِطُوا مِنْهَا جَمِيعًا﴾ [یعنی] حکم مواوکړو چه لاندے کوزشئ ددې جنت نه ټول ﴿فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُم مِّنِّي هُدًى﴾ بیا که راشی تاسو ته زما له طرفه څه قسم هدایت [یعنی احکام شرعیه په ذریعه دوحی] ﴿فَمَن تَبِعَ هُدَايَ﴾ نو چه څوك تابعداری کوی زما ددې هدایت ﴿فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ﴾ نو نه به پرې څه ویره وی ﴿وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ۝﴾ او نه به داسې خلق غمژن وی [یعنی په دوی به دویرے څه واقعه نه رازی اود قیامت د هیبتناکو واقعاتو نه د دوی هم ویریدل دے سره څه بے جوړه نه دی لکه چه د احادیثوصحیحو نه په ټولو باندې هیبت اوویره عام کیدل معلومیږی، حزن د زړه هغه کیفیت او حالت ته وائی چه دڅه ضرر یا مصیبت په راتلو سره پیدا کیږی او ویره تل دپاره د څه واقعې دراتلو نه وړاندې پیدا کیږی. دلته الله ﷻ دحزن او غم دواړو نشتوالې ښکاره کړو څکه چه په دوی به هیڅ آفت او تکلیف نه واقع کیږی چه حزن یا غم به

ترے راولاړيږی. وروسته دداسې خلقو حال بيانوی چه ددې هدايت تابعداری نه کوی فرمائی ﴿وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ او څوك چه كفر كوی ﴿وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ﴾ اوپه دروغه بولی زمونږ احکام ﴿اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ﴾ داخلق به وی دوزخيان ﴿هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ﴾ چه په کښې به هميشه پاتې کيږی

## معارف اومسائل

**دآيتونو ترون:** قوله تعالٰى- ﴿فَتَلَقّٰٓى اٰدَمُ مِنْ رَّبِّهٖ كَلِمٰتٍ﴾ په ړومبوتيروشوؤآيتونوکښې دشيطانی وسوسه دحضرت آدم عليه السلام تيروتل اودهغې په نتيجه کښې دجنت نه دراوتواوپه زمکه دراکوځيدوحکم بيان شوې وو ،حضرت آدم عليه السلام داسې خطاب اوزورنه کله آوريدلې وه،دومره سنګدل نه وو،چه دابه ئې زغملې شو، بې آرامه شواوسمدستی ئې دمعافې خواست اوکړو، مګردپيغمبرانه معرفت اوددې په وجه دزيات هيبت له کبله ئې هيڅ خبره نه شوه کولې ياخوئې داويره وه چې دمعافئ درخواست چرته دشانِ الهی خلاف نه شی چې زياته زورنه پرراکړې شی،ژبه ئې چپ وه،الله رب العزت چې دزړونوپه خبروپوهيږی اورحيم وکريم دې،هغه چې داحالت اوليدونوپخپله ئې دمعافئ دپاره ورته څوکلمات ورزاده کړل چې بيان ئې په دې آيتونوکښې دې چې :آدم عليه السلام حاصل کړل دخپل رب نه څوالفاظ،نوالله تعالى په دوئ باندې په خپل رحمت سره توجه اوفرمائيله [يعنی دهغه عليه السلام توبه ئې قبوله کړه] بيشکه هم هغه دې لوئ توبه قبلوونکې مهربان [خوهرکله چې په زمکه د دوئ عليه السلام په راتلوکښې بيشميره حکمتونه اومصلحتونه هم پټ وو ،مثلا د دوئ عليه السلام دنسل نه دفرښتواوپيريانوترمنځه نوې قسم مخلوق [بنيادم] پيداکول،دوئ ته يوقسم اختياروركول اوپه شرعی احکاموئې مکلف کول،بيابه دوئ کښې خلافت الهيه قائيمول،دحدودو اوشرعی احکاموجاری کول، په دې غرض چې دانوې مخلوق ترقیٓ اوکړی اوهغه مقام ته اورسی کوم چې دډيروفرښتوهم نه دې نصيب شوې،اوددې مقصدونوذکر،دحضرت آدم عليه السلام دپيدائيش نه وړاندې کړې شوې وو ﴿اِنِّیْ جَاعِلٌ فِی الْاَرْضِ خَلِيْفَةً﴾ په دې وجه دخطاءمعاف کولونه پس هم په زمکه دَراکوځيدو حکم منسوخ نه شوالبته ددې طرزداسې بدل شوچه ړومبې حکم حاکمانه ووچه پکښې زمکې ته راکوځيدل دسزداپه ډول وواوداارشادحکيمانه ووچه په زمکه راکوځيدل ئې دې اعزازسره ووچه دلته به خلافتِ الهيه قائيموی،وروستې آيتونوکښې دهغه فرض منصبی بيان دې چې دخليفة الله په حيثيتَ ده ته سپارلې شوې وؤ،څکه ئې په زمکه دراکوځيدوحکم بيان کړواووې فرمائيل:مونږحکم اوکړوچه ښکته لاړشئ ددې جنت نه ټول دسيرمې بياکه راشی تاسوته زمادطرف نه څه قسم هدايت [يعنی شرعی احکام دوحی په ذريعه] نوڅوک به چې تابعداری کوی زماددې هدايت نوهيڅ انديښنه به ئې نه وی اونه به دوئ غمژن وی،يعنی نه به ورته دګوتونه په وتلی شئ څه غم وی اونه به ورته دَراتلونکی څه تکليف څه خطره وی،

﴿ فَتَلَقّٰٓى﴾ معنی په شوق اومينې سره دچاهرکلې [ښه راغلئ] کول اوهغه قبلول [روح کشاف][۱] مراد دادې چې هرکله دالله تعالی له اړخه ورته دکلماتوتلقين اوکړې شونوحضرت آدم عليه السلام په شوق سره هغه قبول کړې،

[۱]) روح المعانی تحت هذه الآية: ۱/ ۲۸۱، وكشاف تحت هذه الآية: ۱/ ۸۳

**هغه کلمات چې آدم عليه السلام ته خودلې شوی وو:** ﴿كَلِمٰتٍ﴾ کومې کلمې چې حضرت آدم عليه السلام ته دتوبې په غرض ښودلې شوې وې، مفسرين صحابه کرامونه په دې باره کښې ګڼړ روايتونه منقول دی. مشهورقول په دې کښې دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه دې چې په قرآن کريم کښې داسې راغلی دی ﴿رَبَّنَا ظَلَمْنَآ اَنْفُسَنَا ۚ وَاِنْ لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ﴾

**دتوبې معنی او شرائط** ﴿تَابَ﴾: دتوبې اصلي معنی راګرځيدل [راؤړيدل] دی، يوبنده ته دتوبې منسوب کول د درې څيزونو مجموعه وی، ① خپله کړې ګناه، ګناه ګڼړل اوپرِخپيمانه اوشرمنده کيدل ② دغه ګناه بيخی پريښودل [پښيمانتيا]، ③ دريم په آئنده کښې ئې، بيادنه کولوپوخ قصداواراده کول، که په دې درې واړوکښې يوهم کم وی نوتوبه نه ده، معلومه شوه چې يواځې په ژبه دومره قدرې وئيل چه، الله زماتوبه، دنجات موندلودپاره کافی نه دی څوپورې چې دادرې واړه څيزونه جمع نه وی ① يعنی په تيروخپيمانی، ② اوس ئې نه کول، ③ اوبيائې د هيچرې نه کولوپخه اراده اوپوخ قصدکول ﴿تَابَ عَلَيْهِ﴾ د لته دتوبې نسبت الله تعالی طرفته دې. ددې معنی ده توبه قبلول.

څنوپيخوانوبزرګانونه تپوس اوشوچه، چايوګناه اوکړه هغه دڅه اوکړی؟ هغه ورته اووئيل: هغه کاردکوی چې ددې نه وړاندې دده مورپلار حضرت آدم عليه السلام اوحضرت حواء کړی وو، په خپلو کړوخپيمانه شو، په راتلونکې وختونوکښې ددې دنه کولوپوخ قصدښکاره کولوسره ئې الله نه معافی اوغوښتله، ﴿رَبَّنَا ظَلَمْنَآ اَنْفُسَنَا﴾ [اې زمونږپروردګاره مونږپه خپلوځانونوظلم کړې دې، که ته مومعاف نکړې اورحم را باندې اونکړې نومونږبه سخت زيانکارو[تاوانيانو]کښې شميرشو] داشان حضرت موسی عليه السلام عرض اوکړو ﴿رَبِّ اِنِّيْ ظَلَمْتُ نَفْسِيْ فَاغْفِرْ لِيْ﴾ اې پالونکيه مايه خپل ځان ظلم کړې دې نو زما بخښنه اوکړې] اوحضرت يونس عليه السلام چې کله تيروتلو نو عرض ئې اوکړو ﴿لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ سُبْحٰنَكَ ۖ اِنِّيْ كُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ﴾ د الله نه سوابل هيڅوک دعبادت لائيق نشته، ته دهرڅ خرابئ نه پاک ئې، زه په ظلم کوونکوکښې شامل شوې يم] مطلب ئې دادې چې رحم را باندې اوفرمائې [قرطبی][1]

**فائده**: دحضرت آدم عليه السلام اوحضرت حواء نه چې اجتهادی تيروتل ياهيره صادره شوې وه، ددې نسبت په اول کښې دواړوته داشان شوې دې قوله تعالی: ﴿فَاَزَلَّهُمَا الشَّيْطٰنُ عَنْهَا فَاَخْرَجَهُمَا﴾ اوداشان په زمکه دراکوځيدوپه حکم کښې ئې هم حضرت حواء شامله کړه لکه فرمائی ﴿اهْبِطُوْا﴾ خوبياپه توبې کولواوددې په قبليدو کښې يواځې دحضرت آدم عليه السلام ذکردې، د حوا ذکر نشه دې، او ددې مقام نه علاوه هم په نوروځايونوکښې يواځې دحضرت آدم عليه السلام د تيروتلو ذکردې لکه ﴿عَصٰٓى اٰدَمُ﴾ وغيره،

ددې وجه داکيدې شی چې زنانه دپردې څيزدې څکه په دې باره کښې هم پرده پرِواچولې شوه اوددې دتيروتلوګناه اودزورنې ذکراونکړې شوالبته ﴿رَبَّنَا ظَلَمْنَآ اَنْفُسَنَا﴾ کښې ددواړودتوبې ذکر کول داشبه لرې کول وو چې ګنی دحضرت حواء قصوربه نه وی معاف شوې، دې نه علاوه په

[1] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ۱/ ۳۲٤

اکثرو حالاتو کښې زنانه، د نارینؤ تابع وي ځکه د مستقل ذکر ضرورت او نشو ګڼرلي [قرطبي] (۱)

**په تواب او تائب کښې بیلتون:** امام قرطبي رحمه الله فرمائیلي دي چې د تواب لفظ بنده دپاره هم وئیلې کیږي. لکه ﴿إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ التَّوَّابِينَ﴾، او الله ﷻ دپاره هم لکه ﴿إِنَّهُ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ﴾ [۳۲/۲] هر کله چې دا د بنده دپاره ستعمالیږي نو مطلب به یې د ګناه نه اطاعت اړخ ته رجوع کوؤنکې، او کله چې د الله تعالی دپاره استعمالیږي نو معنی یې توبه قبلوونکې وي، دا صرف د لفظ تواب حکم دي ددې پشان بل لفظ تائب دي. ددې لفظ [تائب] استعمال الله ﷻ دپاره جائز نه اګرچه دلغت په اعتبار دا هم غلط ندې، خو د الله ﷻ په شان کښې صرف هغه صفات او القاب استعمالول جائز دی چې دهغې ذکر په قرآن پاك او سنت مبارکه کښې راغلي دي. باقی نور الفاظ اګرچه دلغت په اعتبار سره صحیح وی بیا هم د الله دپاره ئې استعمالول ناروا دی،

**دګناه نه دتوبې قبلولو اختیار الله تعالی نه سوابل چاله نشته؟** ددې آیت شریف نه دا هم معلومه شوه چې دتوبې قبلولو او ګناه معاف کولو اختیار، الله نه سوابل چاله نشته، یهود او نصاراؤ خپل ځان ددې قاعدې نه ناجانړه او نا خبره کړو او په دې سخته ګناه کښې ښکیل شو چه پادریانو او پیرانو ته دځه فیس پیش کولو په بدل کښې ځانونه په هغوئ معاف کوی او خیال لری چې الله هم معاف کړو، نن صبا مسلمانان هم داسې قسم کچه او غلطې عقیدې لری چې پیران، مرشدان او عالمان هم دګناه نه معافی ورکولې شی، حالانکه هغوئ صرف دعا کولې شی داسې قسم اختیارات نه لری دا صرف الله تعالی لره دی،

**دحضرت آدم علیه السلام په زمکه راکوځیدل دسزا په ډول نه، بلکه د یو مقصد پوره کولو دپاره وو: قوله تعالی:** ﴿قُلْنَا اهْبِطُوا مِنْهَا جَمِيعًا﴾ دا قسم حکم یو ځل وړاندې تیر شوې دې ددې بیا راؤړل غالبا دا حکمت لری چې رومبی ځل دا حکم په زورنې او سزا بنا وو ځکه ورسره دانسانانو ترمنځه خپلو کښې ددشمنۍ ذکر کړې شوې وو خو دلته ئې په زمکه دراکوځولو [کښته کولو] حکم په یو خاص مقصد بنا کړو چه هغه دخلافت الهیه تکمیل او اعزاز ورکول دی چناڅه دې سره ئې دهدایت لیږلو ذکر او کړو چه د خلافت الهیّه یو فرض منصبی دې، له دې نه معلومه شوه چې زمکې ته دراکوځیدو [کښته کیدو] حکم په اول کښې اګرچه دزورنې او سزا په ډول وو لیکن بیا چه کله خطا معاف شوه نو د نورو مصلحتونو او فائدو له مخه زمکې ته دلیږلو د حکم دغه مخکښې حیثیت ئې بدل کړو او په زمکې کښې دحاکم په حیثیت را ؤلیږلې شو او دا هغه حکمت دې د کوم ذکر چه دحضرت آدم علیه السلام دپیدا کولو په وخت فرښتو سره شوې وو چې په زمکه کښې ده لره خلیفه جوړول غواړی.

**دغم، خفګان نه خلاصې پیدا کول، یواځې دهغه خلقو په برخه وی کوم چه دالله تعالی فرمانبردار وی** ﴿فَمَنْ تَبِعَ هُدَايَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ﴾ په دې آیت مبارک کښې دآسمانی هدایت تابعدارانو لره دوه انعامات ذکر شویدی، ① هیڅ ویره به ئې نه وی ② او غمژن به هم نه وی،

﴿خَوْفٌ﴾: دراتلونکې تکلیف یا مصیبت اندیښنې لرلو ته وائی، او ② حزن دهغه غم نوم دې چې د ګوتو نه وتلې څیز بادې بنده ته را پیښیږی، که ژور نظر او کړې شي نو دعیش او آرام ټول قسمونه په دې دوؤ لفظونو کښې په داسې شان راوستې شوی دی چې د آرام او راحت هیڅ فرد یا قسم تربهرنه پاتې کیږی، بیا ددې دواړو لفظونو تعبیر په عام بیلتون سره کړې شوې دې چې خوف ئې

(۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ۱/ ۳۲۵

په يوعام اندازكښې نفى كړومگرحزن پورته كول ئې په داشان په خاص اندازكښې ذكركړل چې صيغه دفعل ئې راوړله،ضميردفاعل ئې وړاندې راوړواو ﴿لَا حُزْنَ عَلَيْهِمْ﴾ئې اونه فرمائيل دې سره دا اشاره كول دي چې يوڅيزيامطلوب،مرادوغيره په نه پوره كيدو،دغم نه خلاصيدل يواځې دهغه اولياء الله مقام دې چې دالله تعالى دراليږلې هدايت پوره تابعداروى اودوئ نه سوابل هيڅوك ددې غم نه نشي خلاصيدې خواه هغه دځلوركنجه دنيابادشاه وى يا د دنيا امير ترين انسان وى،ځكه چې په دنياكښې داسې هيڅوك نشته چې دخپل طبيعت نه خلاف ئې غم،زحمت به ورته نه وى پيش شوې لكه وئيلې شوى دى چې:

دريں دنيا كسے بے غم نباشد وگر باشد بنى آدم نباشد

[په دې دنيا كښې څوك بې غمه نشته، اوكه وى نو هغه بهٔ بنيادم نه وى]

البته هغه اولياء الله ترې خلاص دى چې خپله خوښه يې دالله په خوښه كښې فناكړې اوځان داسې جوړكړې چې گوياكښې د دوئ زړونه نشته دهغې دخواهشاتواوخوښې خوسوال هم نه پيداكيږى. قرآن كريم كښې يوبل ځائې داخبره داسې ښكاره كړې شوې ده چې يواځې د جنتيانو به دا حال وى چې جنت ته په رسيدوبه په دې دالله تعالى شكراداكړى چې غم ئې ترې پورته كړولكه فرمائى﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْٓ اَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ﴾ دې نه معلومه شوه چې په دې ځائ كښې هريوانسان به هرومره په څه غم كښې اخته وى،سوادهغه چانه چې خپل تعلق ئې الله سره مكمل اومضبوط كړې وى،

### جو بچنا ہو غموں سے آپ کا دیوانہ ہو جائے

[څوك چې دغمونو نه بچ كيدل غواړى نو ستا ديوانه دې شى]

په دې آيت كښې خدائې خلقونه دغم اوخوف پورته كولومراددادې چې د دنيادهيڅ تكليف راتلويادڅه خواهش اومرادپه نه پوره كيدوبه دوئ ته ويره ياغم نه رامخې ته كيږى ولې چې د آخرت فكراوغم،دالله تعالى دهيبت اوجلال اثرخوپه دوئ باندې دتولونه زيات وى لكه حديث شريف كښې راځى چې رسول الله ﷺ به تل دپاره غمژن اوفكرمن وو،د دوئ ﷺ دغه فكراو غم دڅه دنيوى نعمت پورته كيدويادنياڅه مصيبت راتلوسره تړلې نه ووبلكه دالله دهيبت اوجلال اودامت دحالاتوله وجهې وو،

دې نه داخبره هم نه لازميږى چې ددنياوى خوفناكوڅيزونونه هم انبياء ﷺ اواولياء لره طبعي خوف اوويره نه وى ځكه چې هركله حضرت موسى عليه السلام خپله همسادمارپه شكل كښې اوليدله نو هغه عليه السلام ترې ؤيريدل په قرآن مجيد كښې داشان ذكردى﴿فَاَوْجَسَ فِيْ نَفْسِهٖ خِيْفَةً مُّوْسٰى﴾ ليكن دافطرى اوطبعي ويره په اول حال كښې وه،دالله تعالى په ﴿لَا تَخَفْ﴾ فرمائيلوسره ئې دغه ويره هم وركه شوه،دې باره كښې داهم وئيلې شى چې موسى عليه السلام ددغه ماردتكليف نه نه ويريدوبلكه ويره ئې داوه چې په دې سره بنى اسرآئيل گمراه نشى،چه په داشان دآخرت ويره وه نه چې دنيوى،

په آخرى آيت قوله تعالىٰ: ﴿وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ سره دا اوښودلې شوچه څوک دالله تعالى دهدايت تابعدارى نه كوى دهغوئ ټيكاؤنړه به تل دپاره جهنم وى،دې نه مرادهغه خلق دى چې دغه هدايت،هدايت نه گڼړى اودهغې دتابعدارئ نه انكاركوى چې كفاردى ورنه ددې هدايت

دمنلو اقرار کوونکی گناهگار مؤمنان به دخپلو گناهونو سزا تیرولو نه پس دجهنم نه راؤبشکلې شي، [والله اعلم]

يٰبَنِيٓ

الے بنی

[ائي د يعقوب

إِسْرَآءِيلَ اذْكُرُوا نِعْمَتِيَ الَّتِيٓ أَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ وَأَوْفُوا بِعَهْدِيٓ

اسرائيلو | ياد كړئ | نعمت زما | هغه | چې ماكړې وو | په تاسو | اوپوره كړئ | وعده زما

اولاده؛ خما هغه نعمت ياد كړئ چې په تاسو مې كړې وو | او خما [سره كړې] وعده پوره كړئ | نو زه به هم

أُوفِ بِعَهْدِكُمْ وَإِيَّايَ فَارْهَبُونِ ۝ وَآمِنُوا بِمَآ

پوره به كړم زه | وعده ستاسو | اوخاص زما نه | اوويرېږئ | اوايمان راوړئ | په هغه كتاب |

تاسو سره كړې وعده پوره كړم | اوخاص خما [د رانيولو] نه ويرېږئ | او په هغه كتاب ايمان راوړئ

أَنْزَلْتُ مُصَدِّقًا لِمَا مَعَكُمْ وَلَا تَكُونُوٓا

چې نازل كړې دې ما | چې تصديق كونكې دې | دهغه كتاب | چې تاسو سره دې | او مه كيږئ تاسو

چه ما در ليږلي دې | چې ستاسو دمذهبي كتاب [توراة] سره [په اصولو كښې] موافقت لري | او په قرآن باندې

أَوَّلَ كَافِرٍۭ بِهٖ وَلَا تَشْتَرُوا بِآيٰتِي ثَمَنًا قَلِيلًا وَإِيَّايَ فَاتَّقُونِ ۝

اول | انكاركونكي | د دې نه | او مه خرخوئ آيتونه زما | په قيمت | لږ | اوخاص زما نه | اوويرېږئ

د ټولو نه وړاندې كفر مكوئ | اوخما د آيتونو په بدل كښې [د دنيا] لږ قيمت مه اخلئ | اوخما [دعذاب نه] اوويرېږئ

وَلَا تَلْبِسُوا الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُوا الْحَقَّ وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ ۝

اومه گډوډ كوئ | حق | دباطل سره | او [مه] پټوئ حق | اوحال داچې تاسو | پوهېږئ |

اوحق [چه دنبي كريم صفتونه دي] د باطل سره مه گډوډ كوئ | اوسره دپوهې حق مه پټوئ

## آسان ترجمه قرآن

اې بني اسرائيلو! خما هغه نعمتونه ياد كړئ چه ما تاسو ته دركړي دي او تاسو چه ما سره كومه وعده كړې وه هغه پوره كړئ او تاسو (دبل چا نه) صرف خما نه وويرېږئ او كوم كلام چه ما نازل كړې دې په دې باندې ايمان راوړئ او دا دهغه كتاب (يعنې تورات) تصديق هم كوي چه كوم تاسو سره دې او تاسو د ټولو نه مخكښې د دې نه منكرمه جوړېږئ او خما آيتونه دمعمولي قيمت په عوض كښې مه خرخوئ او (دبل چا په ځائې) صرف خما ويره په زړه كښې وساتئ او حق د باطل سره مه يو ځائې كوئ او حق خبره مه پټوئ حالانكه (په اصل حقيقت) تاسو به پوهيږئ.

## خلاصه تفسير

﴿يٰبَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ اذْكُرُوا﴾ اے بنی اسرائیلو! [یعنی دحضرت یعقوب ﷺ اولاده] یاد کړئ تاسو خلق ﴿نِعْمَتِيَ الَّتِيٓ أَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ﴾ زما احسانونه چه کړی مے دی په تاسو [یعنی چه دنعمت حق پیژندلو سره

ایمان راوړل تاسو لره آسان شی، وړبسے ددي یادولو مراد ښائی] ﴿وَاَوۡفُوۡا بِعَهۡدِیۡٓ﴾او پوره کړئ تاسو زما لوظ [هغه چه په تورات کښې مو راسره کړې وو لکه چه قرآن کریم ئې هم داسې بیانوی " وَلَقَدۡ اَخَذَ اللّٰهُ مِیۡثَاقَ بَنِیۡٓ اِسۡرَآءِیۡلَ وَبَعَثۡنَا مِنۡهُمُ اثۡنَیۡ عَشَرَ نَقِیۡبًا" [الآیه] ﴿اُوۡفِ بِعَهۡدِکُمۡ﴾پوره به کړم زه ستاسو لوظ [هغه چه ستاسو د ایمان راوړو په صورت کښې مے درسره کړې وو لکه چه قران کریم فرمائی ﴿لَاُکَفِّرَنَّ عَنۡکُمۡ سَیِّاٰتِکُمۡ﴾ ﴿وَاِیَّایَ فَارۡهَبُوۡنِ﴾ او یواځې زما نه ویرېږئ [دخپلو معتقدینو عوامو نه مه ویرېږئ چه که مونږ داسې اوکړل نو اعتقاد به یئ راباندې ختم شي اودهغوی نه راتلونکې ګټه به راباندې بنده شی] ﴿وَاٰمِنُوۡا بِمَآ اَنۡزَلۡتُ﴾او ایمان راوړئ په هغه کتاب چه نازل کړې دې ما [یعنی په قران کریم ﴿مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَکُمۡ﴾ په دې سے حال کښې چه ربښتیا خودونکې دې هغه کتاب لره چه تاسو سره دې یعنی دتورات تصدیق په دا شان کوی چه دا دالله ﷻ کتاب دے اوپه دې کښې راوستونکې ګډون او بدلون دتورات او انجیل برخه نه ده څکه دهغې تصدیق ددې نه نه لازمیږی] ﴿وَلَا تَکُوۡنُوۡۤا اَوَّلَ کَافِرٍۭ بِهٖ﴾ او مه جوړیږئ تاسو ړومبی انکار کوونکی ددې قران [یعنی ستاسو په لیدو چه نور خلق انکار کوی په دې توګه کښې اول بانی دانکار او کفر تاسو ئے په دې وجه به ددوی دکفر اودانکار وبال هم ستاسو په عمل نامه کښې لیکلے شی] ﴿وَلَا تَشۡتَرُوۡا بِاٰیٰتِیۡ ثَمَنًا قَلِیۡلًا﴾او مه اخلئ په مقابله زما د احکامو کښې ډیره لږه بدله ﴿وَّاِیَّایَ فَاتَّقُوۡنِ﴾او یوازے زما نه په پوره ډول ویرېږئ [یعنی زما داحکامو په پرېښودلو، ددې په بدلولو یا پټولو دعوامو نه ذلیله او کمتره دنیا مه اخلئ لکه ددوی عادت وو ښکاره بیان ئے راتلوونکې دې ﴿وَلَا تَلۡبِسُوا الۡحَقَّ بِالۡبَاطِلِ وَتَکۡتُمُوا الۡحَقَّ﴾اومه ګډوئ حق دناحق سره اومه پټوئ حق ﴿وَاَنۡتُمۡ تَعۡلَمُوۡنَ﴾په داسې حالت کښې چه تاسو پوهیږئ هم [چه حق پټول بده اوناکاره خبره ده].

## معارف اومسائل

**دآیتونو ترون:** قوله تعالٰی - ﴿ یٰبَنِیۡٓ اِسۡرَآءِیۡلَ اذۡکُرُوۡا نِعۡمَتِیَ﴾ سورت بقره دقرآن دذکرنه شروع شوې ده اودااوښودلې شوچه دقرآن کریم هدایت اګرچه مخلوق دپاره عام دې خونفع به ترېواځې مؤمنان پورته کوی، وړپسې دهغه خلقو دسخت عذاب ذکراوشوچه په دې ایمان نه راوړی، په دې کښې یوه ډله دښکاره کافرانواو منکرانو وه، بله دمنافقانو، ددې دواړو ذکرسره دځه حالاتو او غلطو کارونو ذکراوکړې شو، وړپسې دمؤمنانو، مشرکانو اومنافقانو درې واړو ډلوته خطاب اوکړې شو، اوټولوته دالله تعالی دعبادت تاکید اوکړې شو، دقرآن مجید، اعجازذکر کولوسره سره ټولو ته دایمان دعوت ورکړې شو، بیادحضرت آدم علیه السلام دپیدائیش ذکرکولوسره په هغوئ ئې ددې اصلیت اوحقیقت او: الله تعالی کامل قدرت سرګند کړوچه دالله تعالی دعبادت اوفرمانبرداری سره مینه اودالله تعالی دنافرمانئ نه دبچ کیدوفکر دې دپاره پیدا شی.

بیا دکفاروپه دواړو ډلو [ښکاره کفارواومنافقینو] کښې دوه قسمه خلق وو، ① بت پرست مشرکان ووچه خالص دخپلو پلرونو نیکونو د رسمونو تابعداری ئې کوله څه نوې یازوړ علم ئې نه لرلوعموماً نالوستی اوامیان وولکه عام اهلِ مکه، چه په قرآن کریم کښې ورته امیین وئیلې شوی دی،

**د یهودو او نصاراؤ وضاحت:** بل هغه خلق ؤوچه په پخوانو انبیاؤ علیهم السلام ئې ایمان راوړې ؤو او د پخوانو آسمانی کتابونو تورات، انجیل وغیره علم ئې لرلو لیک لوست کوونکی [پوهان] خلق

بللي شو، دې کښې ځنې خلق په حضرت موسی علیه السلام ایمان راوړونکي وو په عیسی علیه السلام ئي ایمان نه راوړو دوئ ته یهودوئیلې شواوبعضوپه حضرت عیسی علیه السلام ایمان لرلوحضرت موسی علیه السلام ئي دنبی په حیثیت معصوم نه منلوچه په نصاراؤیادیدل اوپه دې بناورته قرآن کریم کښې اهل کتاب وئیلی دی چې په تورات اوانجیل [آسمانی کتابونو] ئي ایمان راوړو، داخلق لیکونکې لوستونکي ووچه په دې وجه دخلقوپه نظرکښې عزتمنداواعتباریان ګڼرلې شو، د دوئ خبروبه په خلقواثرکولو، چه دوئ به په سمه لاره راغلل نودنوروخلقودمسلمانیدوامیدبه زیات وو، په مدینه منوره کښې اوددې خواؤشاکښې داخلق په ګڼرشمیرآبادوو،

سورت بقره هرکله چې مدنی سورت دې په دې وجه په دې کښې دمشرکانواومنافقانونه پس اهل کتابو ته خصوصیت سره خطاب شوې دې، دڅلويښتم آيت نه تريوسل اودرویشتم آیت، دالم سیپارې ترآخره پورې هم دې خلقوته خطاب دی چې پکښې ددوئ دراماتولو او راګرځولو دپاره اول ددوئ خاندانی شرافت، اودې نه په دنیاکښې دحاصلیدونکی اعزازاوبیاپه مخه دالله تعالی دنعمتونوذکرکړې شوې دې، بیاددوئ په بې لارئ اوغلط کارئ ورته خبردارې ورکړې شو، صحیح لارې اړخ ته راؤبللې شو، په دې کښې په رومبواوآیتونوکښې اجمالی خطاب دې چې پکښې دریؤآیتونوکښې دایمان دعوت اوپه څلوروکښې ورته دنیکوعملونوتلقین دې، بیاورته په ښه پوره تفصیل سره خطاب شوې دې، دتفصیلی خطاب په شروع کښې اوبالکل په ختمیدوورته دوباره داهتمام دپاره ﴿يَٰبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ﴾ سره خطاب اوکړې شوپه کوم سره چې ورته خطاب شروع کړې شوې وولکه چې خبره کښې اثرپیداکولواووقعت ورکولودپاره دداسې کولودستوردې،

قوله تعالی: ﴿ يَٰبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ﴾ اسرائیل دعبرانئ ژبې لفظ دې، چه د عبدالله معنی لری اودحضرت یعقوب علیه السلام بل نوم دې، ځنې علماءفرمائی چې درسول الله ﷺ نه سوادبل یونبې همس ګڼرنوموته نشته، صرف دحضرت یعقوب علیه السلام دوه نوموته دی، یعقوب اواسرائیل، په قرآن کریم کښې ئي دلته په بنی یعقوب سره ځکه خطاب اونکړواوپه یبنی اسرائیل سره ئي خطاب اوکړو چه پخپله دخپل لقب اونوم نه ورته معلومه شي چې مونږدعبدالله، یعني دالله تعالی دعبادت ګذاربنده اولاد یو نو مونږ لره هم دهغه په نقش قدم تلل پکاردی، په دې آیت کښې ئي ورته بنی اسرائیل سره خطاب اوکړواووې فرمائیل، اوپوره کړئ تاسوزمالوظ، [یعنې چېتاسوزماسره لوظ کړې ووپه تورات کښې، چه دحضرت قتاده رضی الله عنه اوحضرت مجاهدپه قول ئي بیان په دې آیت کښې دې، ﴿وَلَقَدۡ أَخَذَ ٱللَّهُ مِيثَٰقَ بَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ وَبَعَثۡنَا مِنۡهُمُ ٱثۡنَيۡ عَشَرَ نَقِيبٗاۖ وَقَالَ ٱللَّهُ إِنِّي مَعَكُمۡۖ لَئِنۡ أَقَمۡتُمُ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَيۡتُمُ ٱلزَّكَوٰةَ وَءَامَنتُم بِرُسُلِي وَعَزَّرۡتُمُوهُمۡ وَأَقۡرَضۡتُمُ ٱللَّهَ قَرۡضًا حَسَنٗا﴾ [مائده رکوع ۳] په دې کښې دټولونه اهمه معاهده، په ټولو پیغمبرانو باندې دایمان راوړلوشامله ده، چه خصوصیت سره پکښې زمونږرسول الله ﷺ شامل دې، داشان مونځ، زکوة، صدقات هم په دې لوظ کښې شامل دی، چه په رسول کریم ﷺ ایمان راوړل اود دوئ ﷺ پوره تابعداری کول ئي خلاصه ده، چنانچه حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما فرمائیلی دی چې ددې لوظ نه مراددحضرت محمد ﷺ تابعداری ده [ابن جریرپه صحیح سندسره] [1]

[1]) تفسير الطبرى رقم الحديث: ۸۰۵

پوره به کړم زه ستاسو لوظ، [یعنی په دې آیت کښې الله تعالی داوعده فرمائیلې ده، چه کوم خلق دالوظ پوره کوی نو گناهونه به ئې معاف کولې شی او په جنت کښې به داخلولې شی نود وعدې په جوړېه دجنت نعمتونو سره سرفرازکولې [نازولې] شی،

خلاصه ئې داراوځی: اې بنی اسرآئیلو تاسوزمالوظ [دحضرت محمد ﷺ دپوره تابعدارئ پوره کړئ نوزه به خپل لوظ [ستاسو دبخښنې اودجنت درکولو] پوره کړم، یواځې مانه ویرېږئ اوعوام الناس مریدانونه مه ویرېږئ، په زړه کښې دامه راولئ چې که مونږحق کلمه اووایو نود دوئ اعتقادبه رانه پورته شی اوآمدنی [گټه] به موبنده شی،

① **دامتِ محمدیه یوخاص فضیلت:** په تفسیرقرطبی کښې دی چې الله تعالی بنی اسرآئیلوته خپل نعمتونه اواحسانونه وریادکړل اوخپلویادواوتابعدارئ ته ئې راوبلل، خوامت محمدیه ته ئې دابلنه داحسانونواوانعاماتو وریادولونه بغیرورکړه لکه فرمائی ﴿فَاذْكُرُونِیٓ اَذْكُرْكُمْ﴾ [تاسوما یا دوئ زه به تاسویادوم،] په دې کښې دامت محمدیه یوخاص فضیلت ته اشاره ده چې د دوئ ترون خپل محسن اومنعم سره نیغ په نیغه دې داامت خپل محسن لره پیژندلونه پس احسانات ئې پخپله پیژنی، په خلاف دنوروامتونونه چې هغوئ داحساناتوپه ذریعه خپل محسن لره پیژنی[1]

② **لوظ اوقول پوره کول واجب اوماتول ئې حرام دی:؟** ددې آیت نه معلومه شوه چې لوظ پوره کول ضروری دی اوماتول ئې حرام دی، په سورتِ مائده کښې ددې زیات وضاحت په داشان بیان شوې دی ﴿اَوْفُوْا بِالْعُقُوْدِ﴾

رسول کریم ﷺ فرمائی: چه لوظ قول ماتوونکوته به دقیامت په ورځ د اصلی سزانه وړاندې دا سزا هم ورکولې شی چې په میدانِ حشرکښې به داول نه ترآخره پورې دټولو قومونو په وړاندې په دوئ یوه جنډه او بیرغ دنخښې په ډول ښخولې شی، څومره چې لوظ اوقول مات کړې هغه هومره به یې د غدر جهنډې اوبیرغ پورت وی اوداشان به په میدان محشرکښې شرمنده کولې شی، [صحیح مسلم دسعیدنه][2]

③ **خول چه دده گناه یانکئ سب جوړنې دهغې دکوونکوهومره عذاب اوثواب به هغه سب جوړېدونکی ته هم ورکولې شی:؟** ﴿اَوَّلَ كَافِرٍۭ بِهٖ﴾ وړاندیاروستوکافرکیدل بې حده زیات ظلم اوغټ جرم دې خودې آیت کښې داول کافرکیدونه منع کول دې اړخ ته اشاره گڼړلې شی چې اول کافر کیدونکی باندې به دهغه خلقووبال هم وی چې ده پسې په کتلو، یاآوریدلوپه دغه کفرروان وی اوداشان به ئې عذاب ډبل در ډل چند در چند کیږی.

**فائده:** نیک اوبدانسان ته به دخپلې نیکئ بدئ کولوپوره پوره ثواب اوعذاب ملاویږی او هغه شان ثواب اوعذاب به ورته هم ملاویږی څومره خلق چې څل دغه نیکئ یابدئ کولو کښې دده په پل روان وی، لکه چې دقرآن کریم په گڼروآیتونو کښې اودرسول الله ﷺ په گڼړو احادیثو کښې دامضمون بیابیاراغلې دې

قوله تعالٰی: ﴿وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰيٰتِیْ ثَمَنًا قَلِيْلًا﴾ په دې آیت مبارك کښې د الله ﷻ د آیتونو په بدله کښې د قیمت د ممانعت مطلب هم هغه دې چې کوم د آیت مبارك د سیاق اوسباق څخه معلومیږی، چې د

---

[1] ) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ۱/ ۳۳۲
[2] ) صحیح مسلم، کتاب الجهاد والسیر، باب تحریم الغدر: ۱/ ۸۳

خلقو د مطلب او دهغوئ د غرض په خاطر د الله ﷻ د آيتونو غلط مطلب خودل او په دې د خلقو نه پيسې اخستل، دا فعل په اجماع د امت حرام دې.

**دقرآن کريم په تعليم او اجرت اغستل روادي:** دآيتونودقرآن کريم صحيح مطلب بيانولويا ښودلو باندې ې داجرت اغستلوخبره دې آيت سره تعلق نه لري بياهم دامسئله دژورې کتنې اوبحث کولوورده چې آيادقرآن کريم په تعليم، اجرت يامعاوضه اغستل روادي، دامت فقهاءدې باره کښې اختلاف لري، ① امام مالک رحمه الله امام شافعي رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله ئې رواګڼري اوامام اعظم ابوحنيفه رحمه الله اونوراماماں ئې منع کوی ولې چې رسول الله ﷺ قرآن کريم لره د معاش دذريعې جوړولوته منع فرمائيلې ده،

ليکن متاخرين احنافوعلماؤچه اوکتل چې قرآن کريم تعليم ورکوونکوته داسلامی بيت المال نه دژوندتيرولودپاره دګزارې قدرې څيزهم نه ملاويږی اوکه دوئ خپل ژوندتيرولودپاره محنت مزدوری وغيره شروع کړی نوخلقواوخصوصاماشومانوته به دتعليم قرآن کارپه ټپه بند شی ځکه چې دې ته په مخه تهوله ورځ کښيناستل پکاردی نودضرورت په خاطرپه دې باندې اجرت ياتنخواه اغستل رواوګڼړلي شو، لکه صاحب هدايه هم ليکلی دی چې په دې زمانه کښې په دې باندې فتوی ورکول پکاردی چې دقرآن کريم په تعليم باندې اجرت اوتنخواه اغستل روادی، صاحب هدايه پسې نوروراتلونکوعلماؤفقهاؤپه داسې نوروشغلونوچه دتعليم قرآن پشان پردين بقاءَ موقوفه وی لکه امامت، اذان، اوحديث اودفقهې وغيره تعليم شو، په دې ئې هم داجرت اغستلواجازت ورکړو، [درمختار، شامی] (۱)

⑥ **دثواب رسولوپه خاطرپه ختم قرآن باندې اجرت اغستل په اتفاق سره روانه دی:** علامه شامی رحمه الله د درمختارپه شرح کښې اوپه خپله رساله شفاءالعليل کښې په ډيرتفصيل اوقوی دليلونو سره داخبره واضحه کړې ده چې په تعليم دقرآن وغيره باندې اجرت اغستل چې متاخرينوعلماؤ رواګڼړلی دی، د هغه يو د اسې دينی ضرورت دې چې په هغې کښې دخلل راتلو په وجه ددين پوره نظام کښې خلل پيدا کيږی، په دې وجه دا د داسې ضرورت په موقع محدود ساتل پکار دی. ددې و چې نه مړوته دثواب رسولوپه غرض دقرآن کريم په تلاوت ياپه بله وظيفه لوستلواجرت اغستل اوورکول حرام دی ځکه چې په دې څه عام ضرورت اړه نه لري او په دې صورت کښې لوستونکې اودې دپاره بلونکې دواړه د حرامو مرتکب، ګنهګار شو، نو لوستونکې به ثواب څه اوبخښی هرکله چې دثواب په ځائ هغه ته پخپله هم ګناه اوشوه چنانچه علامه شامی رحمه الله په دې باندې دفقهاؤډير تصريحات، دتاج الشريعة، عينی شرح هدايه، حاشيه خيرالدين دالبحرالرائق وغيره نه نقل کړيدی اوقرآن لوستل، ياپه اجرت باندې ختم قرآن کول، صحابه کرامو رضی الله عنهم تابعينواودامت دپخوانوبزرګانونه چرته هم منقول نه دی، په دې وجه دابدعت شو، [شامی] (۲)

⑦ **حق خبره پټول ياپه دې کښې ګډوون کول حرام دی قوله تعالی:** ﴿وَلَا تَلْبِسُوا الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ﴾ نه ثابت شوچه حق خبره غلطوسره داسې ګډول چې مخاطب باندې غلطيدې شی دا ناجائزدی، دا شان دڅه

---

(۱) الدر المختار، کتاب الاجارة: ۲/ ۵۵

(۲) شامی، کتاب الاجارة: ۲/ ۵۶، ۵۷

ويرې يا طمع په وجه حق خبره پټول حرام دي، مسئله واضحه ده په دې کښې د تفصيل ضرورت نشته، د حق پټولو نه د ځان ساتلو يو واقعه او تفصيلي هغه خبري اترې چې د ابو حازم تابعي رحمه الله او خليفه سليمان بن عبدالملک ترمنځه شوې وې، امام قرطبي رحمه الله دې سره په خپل تفسير کښې نقل کړي دي چې ډېر و فائيده او له کبله د ذکر وړ دي،

**حضرت ابو حازم د سليمان بن عبدالملک په دربار کښې** په مسند دارمي[۱] کښې په سند سره ذکر شوي دي چې يو ځل سليمان بن عبدالملک مديني طيبې ته اورسيد او څو ورځې قيام ئې هلته او کړو خلقونه ئې تپوس او کړو چه په مدينه طيبه کښې اوس داسې څوک سړې شته چې د چا صحابي مجلس کښې پاتې شوی وی، خلقوورته اوونيل چې، هو، ابو حازم داسې يو کس شته، سليمان د خپل يو استاذي په ذريعه دې راوبللو چه راغلو نو سليمان ورته اوونيل اې ابو حازم دا څنګه نامې دی او بيوفائی ده، ابو حازم اوفرمائيل: زمانه د څه نامړدي يا بيوفائي اوليدله، سليمان ورته اوونيل: د مديني منورې ټول مشهور خلق زما ملاقات له راغلل او ته رانغلې، ابو حازم اوفرمائيل امير المؤمنين: زه د د الله پناه کښې ورکوم د دې نه چې ته داسې څه خبره او کړې چې واقعې نه خلاف وی، د نن نه وړاندې نه خو ته، زمانه واقف وې او نه خو ما ته چيرته ليدلې وې، په داسې حالاتو کښې پخپله ملاقات له راتلل څنګه کيدې شی، او بيوفائي څنګه شوه، سليمان چې جواب واورېد و ابن شهاب زهری او د مجلس نورو خلقو ته ئې مخ وروا ړولو، نو امام زهري رحمه الله ورته اوفرمائيل: ابو حازم صحيح اوونيل تا غلطی او کړه، دې نه پس سليمان خبره په بله واړوله او نور څه تپوسونه ئې شروع کړل، وې ونيل: اې ابو حازم، مونږ د مرګ نه ولې ويريږو، هغوئ رحمه الله اوفرمائيل: وجه داده چې تا خپل آخرت ويجاړ او برباد او دنيا آباده کړې ده، په دې وجه، آبادئ نه ويجاړې ته تلل د خوښ نه دی، سليمان او منله اووې ونيل: صباله به د الله په وړاندې حاضري په څه شان وی، وې فرمائيل: نيک عمل کوونکی به د الله تعالی په وړاندې داسې ورځی لکه يو مسافر چه د سفر نه په واپسئ د خپل کور خلقوله ورځی او بدعمل کوونکې به داسې پيش کيږی لکه تښتيدلې غلام چې ګرفتار شی او خپل مالک ته پيش کولې شی، سليمان په دې اوريد و اوژړل اووې ونيل: کاش مونږ ته معلوم وې چې الله تعالی راله کوم صورت تجويز کړې دې،

ابو حازم اوفرمائيل: خپل عملونه کتاب الله ته وړاندې کړه نو درته به معلومه شی،

سليمان اوونيل: د قرآن کريم د کوم آيت نه به دا معلوميږي، وې فرمائيل: د دې آيت نه، ﴿إِنَّ الْأَبْرَارَ لَفِي نَعِيمٍ ۝ وَإِنَّ الْفُجَّارَ لَفِي جَحِيمٍ ۝﴾ ابيشکه نيک عمل کوونکی به د جنت په نعمتونو کښې وی، او نافرمان د ګناه عادت خلق به دوزخ کښې وی،

سليمان اوونيل: د الله رحمت خو لوئ دې چې بد کاروته هم رسيدې شی، وې فرمائيل: ﴿إِنَّ رَحْمَتَ اللَّهِ قَرِيبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِينَ ۝﴾ [د الله تعالی رحمت، نيک عمل کوونکوته نزدې دې،

سليمان تپوس او کړو، اې ابو حازم، د الله تعالی په بند ګانو کښې د ټولو نه زيات د عزت خاوندان څوک دی، وې فرمائيل: چه د مړانې او عقل سليم خاوندان وی،

بيائ تپوس او کړو، کوم يو عمل ډير غوره دې، وې فرمائيل: چه فرض او واجب اداکول، د

---

[۱]) مسند دارمي رقم الحديث: ٦٧٢

حرامو ځیزونو نه ځان ساتلو سره،

بیائې تپوس اوکړو، کومه دعا د قبلیدو زیاته وړه ده، وې فرمائیل: محسن [احسان کوونکی] دپاره دهغه چا دعا، چه احسان ئې ورسره کړې وی، دقبلیدو زیاته وړه ده،

بیائې تپوس اوکړو، کومه صدقه زیات غوره ده، وې فرمائیل: مصیبت زپلی سوالګری سره دخپلې خوارئ [غریبئ] دخپل وس په جوړ، په داسې شان څه لاس امداد کول چې نه پرېږاندې څه احسان ضباطوی [اچوی] اونه په ټال متهول کولو سره ورته تکلیف رسوی،

بیائې تپوس اوکړو، چه خبره کومه یوه زیاته غوره ده، وې فرمائیل: چانه چې څه ویره یا طمع وی یا چاته چې ستا ضرورت او حاجت او امید تړلې وې دهغه په وړاندې بې دڅه رورلالچ نه حق خبره کول.

بیائې تپوس اوکړوکوم مسلمان دټولونه زیات هوښیاردې؟ وې فرمائیل: هغه څوک چې دالله تعالی دفرمانبردارئ لاندې پخپله څه کارکړې وی اونوروته ئې هم ددې بلنه ورکړې وی،

بیائې تپوس اوکړو، مسلمانانو کښې زیات بیوقوف څوک دې، وې فرمائیل: هغه څوک چې دخپل رورامداد په ظلم کولو کښې کوی چې نتیجه ئې داراؤځی، چه دبل ددنیا سمولو دپاره ئې خپل دین خرڅ کړو، سلیمان اووئیل: صحیح دی او فرمائیل:

بیا سلیمان په ښکاره ټکو کښې تپوس اوګړو، زمونږ باره کښې ستا سو څه رائې ده، ابوحازم اوفرمائیل: که ددې سوال نه ما معاف کړې نوښه به وی، سلیمان اووئیل: تاسو خواه مخواه دنصیحت څه خبره راته اوکړئ، ابوحازم ورته اوفرمائیل: اې امیرالمؤمنین ستاسو پلرونو نیکونو دتورې په زورخلق قابوکړی وو، په زورئې په هغوئ حکومت قائم کړو، ډیرخلق ئې اووژل، چه داټول هرڅه ئې اوکړل نودنیانه لاړل، کاش، چه تاته هم معلومه وې چې هغوئ دمرګ نه پس څه وائی اوهغوئ ته څه وئیلې شی،

درباریانو څخه یوکس چې دابوحازم هغه صفاخبرې واؤریدې چې دبادشاه مزاج نه خلاف وې نووې وئیل: اې ابوحازم: تا ډیره خرابه خبره اوکړه، ابوحازم اوفرمائیل: ته غلط وائی خرابه خبره مې نه ده کړې بلکه هغه خبره مې کړې ده دکومې دکولو چه مونږته حکم دې، ځکه چې الله تعالی دعلماؤنه ددې خبرې لوظ اوقول اغستې دې چې حقه خبره به خلقوته ښائې پټوئ به ئې تړِ نه ﴿لَتُبَيِّنُنَّهُ لِلنَّاسِ وَلَا تَكْتُمُونَهُ﴾ داهغه خبره ده چې امام قرطبی رحمه الله دکومې دپاره دااوږده قصه ددې آیت په تفسیر کښې رانقل کړیده،

سلیمان بیا تپوس اوکړو، ښه ده اوس زمونږ دسمیدو څه طریقه ده، وې فرمائیل: لوئی کول پریږدئ، مروانه اختیارکړئ حقدارانوته دهغوئ حقونه په انصاف سره ورکړئ،

سلیمان اوئیل: ابوحازم، دا کیدې شی چې ته مونږسره پاتې شې، وې فرمائیل: دالله پناه، سلیمان اووئیل: ولې، وې فرمائیل: ماته داخطره ده چې ستاسو مال، دولت عزت اومرتبې اړخ ته څه قدرې ورمات او مائل شم چې په نتیجه کښې به ئې عذاب تیرول راځی،

بیا سلیمان اووئیل: ښه ده، که څه حاجت دې وی راته اووایه، چه پوره ئې کړم، وې فرمائیل: هو، یوضرورت مې شته، جهنم نه مې خلاص کړه، اوجنت ته مې ننباسه، سلیمان اووئیل: دا خو زما اختیارکښې نه دی، وې فرمائیل: نوبیابل حاجت مې درته نشته، په آخرکښې سلیمان اووئیل: ښه ده، مادپاره دعااوکړئ، ابوحازم داسې دعااوکړه،

یاالله، که سلیمان دي خوښ وي نوده دپاره ددنیااوآخرت بهتري آسان کړې، اوکه دشمن دوي نو دده وښته اونیسي اودخپلې مرضۍ اوخوښې کارونوته ئې راولې،سلیمان اووئیل راته څه وصیت اوکړه،وې فرمائیل لنډه داچه دخپل رب لوئې او د رعب په دې درجه کښې لره چې هغه دې په هغه مقام کښې اونه وینې دکوم نه ئې چې منع کړې ئې،اودهغه مقام نه دغیرحاضرنه بیامومې کوم ته ئې چې درته دتلوحکم کړې دې،ابوحازم چې دې مجلس نه فارغ شواولاړونو سلیمان سل اشرفۍ دډالۍ په ډول ابوحازم رحمه الله ته وراولیږلې،ابوحازم یوخط سره ورته هغه واپس کړې خط کښې ئې لیکلي وو،که داسل دیناره زمادکلماتومعاوضه [بدله] وي،نوزماپه نزد،وینه اودخنزیرغوښه ددې نه زیاته غوره ده،که په دې غرض دلیږلې وي چې بیت المال کښې زما هم حق شته،نوزماپشان نورپه زرګونوعلماء اوددین خدمتګاران موجوددي که ټولوته ددومره دومره ورکړې وي نوزه ئې هم اغستې شم ورنه زماورته ضرورت نشته،

ابوحازم هرکله چې دنصیحت دخپلوخبرومعاوضه اغستل دوینې اوخنزیردغوښې نه زیاته بد ګڼړلې دې.نودې نه دامسئله هم واضحه کیږي چې دالله تعالی دڅه فرمانبردارۍ اوعبادت معاوضه اغستل دهغه په نزدروانه دي.

وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَارْكَعُوْا مَعَ الرّٰكِعِيْنَ۝ اَتَاْمُرُوْنَ

اوقائموئ | مونځ | او ورکوئ | زکاة | او ټیټ شئ | دټیټیدونکو خلقو سره | آیا تاسوحکم کوئ

[اومسلمانان شئ] بیا مونځونه کوئ اوزکاة ورکوئ اوعاجزي کوونکوسره [په شریکه] عاجزي کوئ آیا تاسو نورو

النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنْسَوْنَ اَنْفُسَكُمْ وَاَنْتُمْ تَتْلُوْنَ الْكِتٰبَ ط

خلقو ته د نیکۍ | او هیر کړي مو دي خانونه خپل | او حال داچې تاسو | لولئ | کتاب

خلقوته دنیکۍ حکم کوئ [اوخپل خانونه مو هیر کړي دي | سره ددې چې سحرمابنام کتاب [تورات] لولئ

اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ۝ وَاسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ ط وَاِنَّهَا

آیا نه اخلئ تاسو دعقل نه کار | او مدد غواړئ | په صبر | او په مانځه سره | اوبیشکه دا مونځ

آیاتاسودعقل نه کار نه اخلئ | په صبر اومونځ کولو سره د الله نه مدداوغواړئ | بیشکه دا مونځ

لَكَبِيْرَةٌ اِلَّا عَلَى الْخٰشِعِيْنَ۝ الَّذِيْنَ يَظُنُّوْنَ

خامخا ګران عمل دې | مګرنه دې ګران | په ویریدونکو [دالله نه] | اوویریدونکي هغه دي | چې یقین لري

[دعامو خلقو دپاره] ګران کار دې | مګر هغه چاته [آسان دې] | چې دالله نه ویریږي | اودا یقین کوي

اَنَّهُمْ مُّلٰقُوْا رَبِّهِمْ وَاَنَّهُمْ اِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ۝

چې آخر هغوئ | ملاویدونکې دي | دخپل رب سره | اوچې بیشکه هغوئ | هغه ته | واپس ورتلونکي دي

چې دوي به خپل پروردګارسره ملاقات کوي | اوبیشکه هغه ته به دوئ ټول واپس [پیش] کیږي

**آسان ترجمه قرآن**

اومونځ قائم کړئ اوزکوة اداړئ اورکوع کوئ درکوع کوونکو سره آیا تاسو (نورو) خلقوته د نیکۍ حکم کوئ او خپل ځانونه هیروئ؟ حالانکه تاسو د کتاب تلاوت هم کوئ آیا تاسو دومره هم نه پوهیږئ؟ اوپه

صبر او مونځ سره امداد حاصل کړئ مونځ ګران دې خوامخواه مګر هغه خلقو ته نه چه خشوع (يعنې توجه او عاجزئ) سره ئې کوي چه ددې خبرې خيال ساتي چه دوی دخپل پروردګار سره ملاويدونکي دي او دوی لره دهغهٔ طرف ته واپس کيدل دي.

## خلاصه تفسير

﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ﴾ او قائم کوئ تاسو مونځ [يعنې مسلمانان شئ] ﴿وَآتُوا الزَّكَوٰةَ﴾ او ورکوئی زکات ﴿وَارْكَعُوا مَعَ الرَّاكِعِينَ﴾ او عاجزی کوئی د عاجزی کوونکو سره [دبنی اسرائيلو دبعضو علماو نزدے خپلوان مسلمانان شوی وو چه هغوی سره به يئ خبرې کولے نو پټ به يئ ورته اوويل چه بيشکه محمد ﷺ په حقه دے دالله ﷻ پغمبردے مونږ خلق خو دڅه مصلحت په وجه نه مسلمانيږونه خو دامذهب اسلام مه پريږدئی په دې بنا الله اوفرمائيل] ﴿أَتَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ﴾ څه غضب دې چې وائی نورو خلقو ته دنيک کار کولو [يعنې په رسول ﷺ دايمان راوړلو او د دوی د تابعدارئی کولو] ﴿وَتَنسَوْنَ أَنفُسَكُمْ﴾ او خپل تپوس نه کوئی ﴿وَأَنتُمْ تَتْلُونَ الْكِتَابَ﴾ حالانکه تاسو تلاوت کوئی دکتاب [يعنې دتورات چه ځائے په ځائي په کښې ددا سې بې عمله عالمانو بدی بيان شوي ده] ﴿أَفَلَا تَعْقِلُونَ﴾ نو بيا تاسو دومره هم نه پوهيږئ ﴿وَاسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلَوٰةِ﴾ او مدد اخلئ [يعنې که دمال او مرتبے دمحبت له کبله درته ايمان راوړل ګران ښکاری نو مدد اخلئ] په صبر سره او مونځ سره [يعنې ايمان راوړئی دصبر او مونځ پوره پابندی کوئ نو دمال او مرتبے مينه به مو دزړه نه اووځی اوکه څوک وائي چه د مونځ اوضبط اوصبر پابندی پخپله هم ډيره ګرانه ده نو واورئ چه] ﴿وَإِنَّهَا لَكَبِيرَةٌ﴾ او بيشکه دغه مونځ مشکل ضرور دے ﴿إِلَّا عَلَى الْخَاشِعِينَ﴾ مګر دچا په زړونو کښې چه عاجزی وی [هغوی دپاره هيڅ مشکل نه دې] ﴿الَّذِينَ يَظُنُّونَ﴾ او خاشعين هغه خلق دی چه خيال لری ﴿أَنَّهُم مُّلَاقُو رَبِّهِمْ﴾ ددې چه دوی خپل رب سره ملاقات کونکی دی ﴿وَأَنَّهُمْ إِلَيْهِ رَاجِعُونَ﴾ او بيشکه دوئ رب ته واپس تلونکی دی [په هغه وخت کښې به ددې حساب ورکول هم وی ددې دواړو خيالونو سره به يئ مينه پيدا شی او ويره هم او هم دا دواړه ځيزونه دفکر عمل روح هم دی].

## معارف او مسائل

**دآيتونو ترون : قوله تعالىٰ:** ﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَآتُوا الزَّكَوٰةَ﴾ بنی اسرآئيلو ته د خپلو نعمتونو احسانونو وريادولو سره الله تعالىٰ دوئ ته دايمان او نيک عمل بلنه ورکړې ده، په تيرو شوؤ آيتونو کښې، د ايمان او عقائدو باره کښې هدايات وو او په دې څلورو آيتونو کښې دنيکو عملونو تلقين دې او په دې کښې دټولو عملونو نه دزياتو اهمو عملونو ذکر دې، دآيتونو دمطلب حاصل دادې چه که دمال او مرتبې دمينې دغلبې په وجه تاسو ته ايمان راوړل مشکل ښکاری نو علاج ئې دادې چې صبر او مونځ سره مدد حاصل کړئ، صبر سره به دمال مينه کمه شی ځکه چې مال سره مينه ځکه لرلې شی چې په دې سره خوندونه او شهوتونه پوره کولې شی کله چې د خوندونو او شهوتونو بې لګامئ پرينښودو ته ملاوتړئ نو دمال د ډيروالی ضرورت به پاتې نشی او نه به په دې مينه کښې داسې حد کښې پاته کانړه شئ چې خپلې نفعې نقصان ته به هم نه ګورئ، مونځ قائمولو سره به د مرتبې مينه کمه شی ځکه چې په مانځه کښې ظاهری، باطنی هرقسم عاجزی او خاکساری ده، هرکله چې دصحيح مونځ کولو مو عادت شی نو د رتبې، منصب، مينه لوئې او غرور به کم شی،

چنانچه دفساد اصل وجه هم دغه دمال او مرتبې مينه وه، چه داکمه شي نو ايمان راوړل به آسان شي،

**د صبر او مونځ ماهيت** اوس پوه شئ چې صبر کښې خويو اخې غير ضروري خواهشات اوشهوتونه پريښودل دي، په مونځ کښې ډير کارونه کول هم دي، ډير جائز خواهشات څه وخت دپاره پريښودل هم دي مثلا خوراک، څښاک، خبرې کول، ګرځيدل راګرځيدل اونور انساني ضروريات چې شرعاجائز اومباح دي، داهم دمونځ په وخت کښې پريښودل دي، اوداهم د وختونو دپابندئ سره په شواروزکښې پنځه ځله، په دې وجه مونځ د يو څو مقررو کارونو، او مقرره وختونو کښې تړلو ناروا او روا کارونو او څيزونو نه دصبر کولو نوم دې،

غير ضروري خواهشاتو پريښودلو ته انسان که ملا اوتړي نو څو ورځې پس طبعي تقاضابه هم ختمه شي، هيڅ قسم سختي او مشکل نه پاتې کيږي، خو دمونځ دوختونو او ددې دتولو شرطونو پابندي کول او ضروري خواهشاتو نه هم په دې وختونو کښې پرهيز کول په انساني طبيعت سخت بوج اوپيټې جوړيږي، ځکه دلته داشبه کيدې شي چې دايمان آسان جوړولو دپاره چې کومه نسخه تجويز شوه چې صبر او مونځ نه کار واخلئ ددې نسخې استعمال پخپله هم يوګران اومشکل څيزدې خصوصاً دمونځونو دپابندئ کولو کار، نو ددې سختئ به څه علاج وي، دې دپاره ئې ارشاد اوفرمائيلو، بيشکه، دغه مونځ، سخت ضرور دې مګر د چاړونو کښې چې عاجزي وي په هغوئ هيڅ مشکل نه دې، په دې کښې دمونځ آسانولو طريقه اوښودلې شوه،

حاصل داشو چه دمونځ ددروندوالي او سختوالي په وجه چې ژور نظر واچولې شي نو معلوم به شي چې دانسان زړه دخيال په ميدان کښې دآزادوګرځيدو عادت دې او ټول انساني اندامونه دزړه تابع دي ځکه دزړه تقاضاهم داوي چې ددې ټول اندامونه آزاد پاتې شي او مونځ سراسر ددې ازادئ خلاف دې، خندا، وينا، خوراک، څکاک، ګرځيدل راګرځيدل وغيره پکښې نشي کيدې ځکه زړه ددې بنديزونو څخه تنګيږي اوددې تابع انساني اندامونه هم په دې سره تکليف محسوسوي،

خلاصه داده چې ددې سختئ اودروندوالي سبب دزړه دفکر حرکت دې چې علاج ئې سکون سره پکاردې ځکه دمونځ آسانولو ذريعه خشوع اوښودلې شوه ځکه چې دخشوع معنی هم دزړه آرام دې، اوس داسوال پيداکيږي چې سکون دزړه يعنی خشوع، څنګه حاصله شي نو داخبره دتجربې نه ثابتيږي که څوک دخپل زړه نه مختلف قسم فکرونه او خيالونه نيغ په نيغه اوښکل غواړي نو په دې کښې کاميابيدل تقريباناممکن دی البته داتدبير کيدشي چې نفس انساني هرکله چې په يووخت کښې دوه اړخونو ته مخه نشي کولې نو که په يو خيال کښې دې ورډوب کړې شي نونور فکرونه به تړپخپله رخصت شي، په دې وجه دخشوع ښودنې نه پس هغه خيال ښائې چې په هغې کښې ډوبيدو سره نور خيالات نشي پاتې کيدې اودهغې په دفع کيدو سره دزړه فکري حرکت بند شي اوسکون حاصل شي، په دې سره مونځ کښې آساني پيداشي، ددې پابندي اوپر همېشوالې کول نصيب شي، ددې پابندئ سره کبر، غرور اودمرتبې محبت کم شي، اودايمان په لاره کښې بنديزلرې کيدو سره ايمان کامل شي، سبحان الله څه خوندناک اوقط په قط علاج دې

اوس ددې خيال ښودنه اوتاکل ئې په دې شان اوکړل، خاشعين هغه خلق دي چې خيال لري ددې خبرې چې بيشکه دوئ يو اخې کيدونکې دي خپل پروردګار سره نو دغه وخت به ورته ددې

خدمت ښه انعام ملاؤيږي اوددې خبرې هم خيال ساتي چې دوئ دخپل رب اړخ ته بيرته تلونکي دی انودغه وخت به ددې حساب کتاب هم ورکول وی،ددې دواړوخيالونونه به مينه ترغيب او ترهيب يعنی [اميد] اوويره پيداشی،اول خوهريونيک خيال کښې ډوبيدل زړه لره په نيک کارتينګوی [مضبوطوی خصوصاداميداوويرې خيال چې په خاصه توګه په نيک کارکښې دچست اوچابک جوړيدو دپاره پوره کارورکوی،

**دصلوة معنی** : قوله تعالٰی:﴿وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ﴾ دصلوة لفظی معنی دعاده،د شريعت په اصطلاح کښې دا هغه خاص عبادت دې چې ورته مونځ وئيلې شی،قرآن کريم کښې څومره ځل چې عموما دمونځ تاکيدکړې شوې دې داپه لفظ داقامت سره راغلې دې،دمطلق مونځ کولوذکرصرف يويادوه ځايونوکښې راغلې دې ځکه داقامت صلوة په حقيقت پوهيدل ضروری دی،داقامت لفظی معنی سمول او مضبوطول دی اوعادتاکومه ستن،ديوال،يااونه چې نيغه وی نوهغه پائيداره وی دراغورځيدو ويره ئې کمه وی ځکه داقامت معنی هميشه کول اوادرول هم راځی،

دقرآن اوسنت په اصطلاح کښې دمونځ قائيمولومطلب،ددې په پابندئ،پوره آدابو او شرطونوسره اداکولوته وئيلې شی،صرف مونځ کول،مونځ قائيم نشی بللې،په قرآن کريم او احاديثوکښې چې څومره فضائل،اثرات اوبرکات دمانځه راغلی دی هغه ټول مونځ قائيمولو سره تړلی شوی دی مثلاپه قرآن کريم کښې دی،

قوله تعالٰی: ﴿اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ﴾ مونځ انسان لره دهرې بيحيائې اوهريوبدکارنه ايساروی،دمونځ اثربه هله ښکاره کيږی چې دا په داسې شان قائم کړې شی دکوم چې اوس بيان اوشوچرته چې څوک مونځ ګذارپه بيحيائې اوبدکارکښې اوليدې شی نوپه دې آيت کښې شبه اوشک کول نه دی پکاربلکه داګنړل پکاردی چې ده صرف مونځ کړې دې په تيره شوې طريقه ئې قائم کړې نه دې

**د زکوة معنی او مراد**: قوله تعالٰی: ﴿وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ﴾په لغت کښې دزکوة دوه معنې راغلی دی. پاکول اوزياتيدل دشريعت په اصطلاح کښې،دمال هغه برخې ته زکوة وئيلې شی چې دشرعی احکاموپه جوړديومال نه اوښکلې شی اوهم دشريعت په جوړا ولګولې شی،

اګرچه دلته داخطاب موجوده بنی اسرآئيلوته دې خودې نه دانه ثابتيږی چې مونځ اوزکوة داسلام نه وړاندر په بنی اسرآئيلوفرض ووالبته دسورت مائده دآيت ﴿ وَلَقَدْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ بَنِىْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۚ وَبَعَثْنَا مِنْهُمُ اثْنَيْ عَشَرَ نَقِيْبًا ۭ وَقَالَ اللّٰهُ اِنِّىْ مَعَكُمْ ۭ لَىِٕنْ اَقَمْتُمُ الصَّلٰوةَ﴾ نه ثابت دی چې مونځ اوزکوة په بنی اسرائيلوفرض وواګرچه ددې په کيفيت اوشکل وغيره کښې فرق وو،

قوله تعالٰی: ﴿وَارْكَعُوْا مَعَ الرّٰكِعِيْنَ﴾درکوع لغوی معنی ټيټيدل [ښکته کيدل] دی اوددې معنې له مخې سجدې ته هم رکوع وئيلې شی ځکه چې هغه هم درکوع نه زيات ښکته کيدل دی مګرپه اصطلاح دشريعت کښې دې خاص ښکته کيدوته رکوع وئيلې شی چې په مونځ کښې [په رکوع] مشهوردی،دآيت معنی داشوه چې،رکوع کوئ رکوع کوونکوسره،دې خبره کښې ژورفکرکول پکاردی چې دمونځ دټولو ارکانوځنې دلته درکوع تخصيص ولې اوشو؟ جواب ئې

دادې چې دلته دمونځ ديوجز په نوم وئيلو سره ټول مونځ مراددې لکه دقرآن کريم په يوځائ کښې فرمائی چې ﴿وَقُرْاٰنَ الْفَجْرِ﴾ خومرادتردصباټول مونځ دې اودحديث په بعضورواياتوکښې دسجدې نه مرادټول مونځ يارکعت اغستې شوې دې.اوس دلته هم دامرادشوچه مونځ کوئ مونځ کوونکو سره، خو د اسوال اوس هم پخپل ځائې جواب طلب پاتې دې چې د مونځ په ټولوارکانو کښې درکوع په تخصيص کښې څه حکمت دې. جواب ئې دادې چې يهودوپه مونځ کښې سجده وغيره خووه مگررکوع په کښې نه وه.رکوع داسلامی مونځ دخصوصياتوځنې ده په دې وجه،دراکعين دلفظ نه به دامت محمديه مونځ گذارمرادوی دچاپه مونځ کښې چې رکوع هم شته،اوس به دآيت معنی داشی چې تاسوهم دامت محمديه مونځ گذاروسره مونځ اداکوئ،يعنی اول ايمان قبول کړئ بياجمع سره مونځ اداکوئ،

**دمونځ دجمع احکام**: دمونځ حکم اوفرض کيدل ئې د قوله تعالٰی: ﴿وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ﴾ دلفظ نه معلوم شوی وواوبياد **قوله تعالٰی**: ﴿مَعَ الرّٰكِعِيْنَ﴾ لفظ سره په جمع دمونځ حکم ورکړې شوې دې،

داحکم دکومې درجې دې،په دې کښې دفقهاؤعالمانواختلاف دې،دصحابه کرامو رضي الله عنهم تابعينو رحمهم الله اودامت دفقهاؤيوجماعت په جمع مونځ کول واجب اوپريښودل ئې سخته گناه بولی اوځنې صحابه کرام رضي الله عنهم خوهغه مونځ روانه گڼړی کوم چې بې جمع اداکړې شی،دظاهری الفاظوپه لحاظ،داآيت دهغه صاحبانوحجت دې څوك چې دجمع دواجبيدوقائل دی،

دې نه علاوه دحديث دځورواياتونه هم دجمع واجبيدل ثابتيدې شی،چنانچه په يوحديث کښې راځی،

لاصلوة لجارالمسجدالافی المسجد: [رواه ابوداؤد][۱] جماعت [مسجد] سره دنزدې اوسيدونکی [تارينه] مونځ يواځې په جومات کښې روادې،

اوظاهره خبره ده چې دجمات دمونځ نه مراد د جمع مونځ دې نودحديث شريف د الفاظو دا مطلب راوؤتوچه جماعت سره دنزدې اوسيدونکی مونځ بې دجمع نه روانه دې،

اوپه صحيح مسلم شريف کښې دابوهريره رضي الله عنه په روايت منقول دی چې يونابيناصحابی رضي الله عنه درسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضريدوسره عرض اوکړوچه،زماسره داسې څوک سړې نشته چې ماجماعت ته راولی اوبوځی مې ترې،نوکه تاسواجازت راکوئ زه به په کورکښې ځانله مونځ کوم،رسول الله صلى الله عليه وسلم خواول ورته اجازت ورکړوخوچه څه وخت روان شونو بيا تپوس ئې تراوکړو چې آياداذان آوازستاترکوره دررسی،هغه عرض اوکړوچه، ،دآذان آواززه اؤرم،وې فرمائيل: بيا خوجماعت ته راتلل پکاردی،اوبعضې رواياتوکښې راغلی دی چې هغوئ صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل:بيا خوزه ستاد پاره هيڅ گنجائش اورخصت نه بيامومم،[اخرجه ابوداؤد][۲]

---

۱) کنز العمال: ۷/ ۶۵۰ رقم الحديث: ۲۰۷۳۷

۲) سنن ابی داؤد، کتاب الصلاة، باب التشديد فی ترک الجماعة: ۱/ ۸۱، وصحيح مسلم، کتاب الصلاة، باب فضل صلاة المکتوبة: ۱/ ۲۳۲

اوحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه او وئیل چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل
من سمع النداء فلم یجب فلاصلوة له الامن عذر [صححه القرطبی] (۱) څوک چې آذان واوري بیاهم جمع ته حاضرنشي نو مونځ ئې نه کیږي خو هله چې څه شرعي عذرلري،

ددې احادیثو په بنا حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه او ابوموسی اشعري رضي الله عنه وغیره صحابه کرامو دافتوی ورکړې ده چې څوک جماعت ته دومره نزدې اوسیږي چې داذان آواز پخپله آوریدې شي نو که بې عذره جمع ته حاضرنه شو نو مونځ ئې دسره نه کیږي [دآواز آوریدو نه مراد درمیانه آواز دې دلاؤډسپیکریا اوچت آواز والا سړي آوازترې نه دې مراد]

داټول روایتونه دهغه چا دلیل دی چې جمع واجب ګڼړي مګر دامت جمهور وعلماء، فقهاء، صحابه کرامو رضي الله عنهم او تابعینو رحمهم الله جمع لره سنت مؤکده بولي خو دصبا دسنتو پشان مؤکد، چه وجوب ته نزدې دی چنانچه دې ټولو حضراتو د قرآن کریم امر ﴿وَارْكَعُوا مَعَ الرّٰكِعِيْنَ﴾ د نورو آیتونو او روایتونو په بنا، تاکید دپاره بللې دې، اودکومو احادیثو دظاهرنه چې معلومیږي چې جماعت سره دنزدې اوسیدونکی مونځ بغیر د جمع نه بالکل نه کیږي دهغې مطلب دا بیانوي چې مونځ به ئې کامل او مقبول نه وي، چنانچه دې باره کښې دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه بیان ډیرواضح اوکافی دې چې امام مسلم روایت کړې دی ترجمه ئې داده،

فقیه الامة حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائیلي دی هرڅوک چې داغواړي چې صبا له [په محشرکښې] الله تعالی سره دمسلمانیدو په حالت کښې ملاقات اوکړي نو پکاردي چې ددې [پنځو] مونځونو اداکولو پابندي دې هلته کوي چرته چې آذان ورکولې شي، [یعنې جومات کښې] ځکه چې الله ستاسو دنبي ﷺ دهدایت دپاره څو طریقې ښودلې دی او ددې پنځو مونځونو په جمع اداکول هم ددغه سنن هدی څنې دي،

که تاسو دا مونځونه په خپلو کورونو کښې اداکړل څنګه چې جمع نه بیل شوې دغه سړي ئې کوي [یوخاص سړي ته ئې اشاره اوکړه] نو تاسو به دخپل نبي ﷺ سنت پریږدئ اوکه تاسو دخپل نبي سنت پریښودل نو ګمراه به شئ [اوڅوک چې اودس اوکړي، په ښه شان سره پاکی حاصله کړي] اوبیا یو جومات ته مخه اوکړي نو الله تعالی دده په هرقدم نیکئ دده په عملنامه کښې درج کوي، یو درجه ئې پورته کوي اوګناه ئې معاف کوي، اومونږ خپله ډله داسې بیاموندې ده چې ښکاره منافق نه بغیر به بل چاڅان له مونځ نه کولو تردې چې څنې صاحبان به دعذر او بیمارئ به حالت کښې د دوو کسانو په اوږو لاس اېښې جومات ته راوستلې شو او په صف کښې به اودرولې شو (۲)،

په دې بیان کښې څنګه چې دجمع دمونځ، پوره تاکید، اهمیت او ضرورت ذکرشوې دې، دې سره ئې سنن هدی هم ورته وئیلي دی چې ورته فقهاء سنت مؤکده وائي چنانچه څوک چې بغیر د شرعي عذرنه، بې دجمع مونځ کوي نو مونځ خو به ئې اوشي مګر دسنت مؤکده دپریښودو په وجه به دزورنې حقدار وي او که جمع پریښودل عادت جوړ کړي نو سخت ګناهګار به وي خصوصاً که داسې صورت اختیار کړي چې جومات وران پاتې شي او خلق په کورونو کښې مونځونه کوي نو د

---

(۱) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة: ۱/ ۳۴۹
(۲) صحیح مسلم، کتاب المساجد ومواضع الصلاة، باب فضل صلاة الجماعة ج:۱، ص ۲۳۲،

شریعت له مخې به دغه ټول دسزا حقداروي او قاضي عياض رحمه الله فرمائیلي دي که داسې سړي په پوهولو هم منع نشي نو ورسره دې جنګ اوکړې شي [قرطبي ۲۹۸ ج ۱]

**دبې عمله واعظ بدي بيانول** قوله تعالى: ﴿أَتَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنسَوْنَ أَنفُسَكُمْ﴾ په دې آیت کښې خطاب اګرچه دیهودو علماؤته دې دوئ په دې ملامته کولې شي چې خپلو دوستانو او خپلوانو ته به ئې داتلقین کولو چه تاسو د محمد ﷺ تابعداري کوئ او داسلام په دين ټينګ پاتې کیږئ اچه ددې خبرونښه ده چې دیهودوعلماؤ به داسلام دین په یقیني شان سره حق ګنړلو] مګرپخپله دنفساني خواهشاتونه دومره مغلوب ووچه داسلام قبلولوته تيارنه ووکه معنې ته خيال اوکړې شي نودادهرهغه چابدي بیانول دي چې دنورو خلقو شوق نیکئ اوښیګړې ته پیداکوي، مګر پخپله پرې عمل نه کوي نو رخلق الله تعالى نه ويروي او پخپله ترنه نه ويريږئ، داسې کس دپاره په احاديثو کښې ډير هيبتناک وعيدونه راغلي دي، دحضرت انس رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلوچه دمعراج په شپه زه دداسې خلقوخواته تیرشوم چې ژبې اوشونډې ئې داورپه قینچیانو [غچیانو]پريکولې شوې،ماجبرائيل عليه السلام نه تپوس اوکړوچه داخلق څوک دي؟هغه راته اوفرمائيل:دادامت دنيادارواعظان دي چې خلقوته به ئې دنيکو کولوحکم کولوخوخپل خبربه ئې نه اغستو، [ابن کثير] (۱)

ابن عساکرذکرکړی دی چې نبي ﷺ ارشاداوفرمائيلوچه څنې جنتيان به څنې دوزخيان په اورکښې ليدلوسره ترې نه تپوس اوکړي چې تاسواورته څنګه راؤرسيدئ؟ حالانکه دخدائ قسم دې،چه مونږه په هغه نیکوعملونوجنت کښې داخل شوی یوچه تاسونه موازده کړی وو،دغه اهل دوزخ به اووائي مونږه به په ژبه ضرورو ئيلې ليکن پخپله به موپرعمل نه کولو(۲)

**آيافاسق،وعظ اونصيحت کولې شي:** ليکن دتيرشوی بيان نه داتنيجه نه دی راويستل پکارچه بې عمله يافاسق واعظ لره بل چاته نصيحت اووعظ کول ناروادی اوڅوک چې په يوګناه کښې اخته وی هغه دنورولره ددغي ګناه نه دمنع کيدوتلقين نه کوی، ځکه چې ښه عمل کول ځان له نيکي ده اودښه عمل تبليغ،بله مستقله نيکي ده،اوښکاره خبره ده چې دا ضروري نه ده چې يونيکي پريښودوسره بله نيکي هم پريښودې شي،لکه چې څوک مونځ نه کوی نوهغه لره دالازم نه دی چې روژه نيول [ساتل] دهم نه کوی،بالکل داشان چې څوک مونځ نه کوی نوهغه دپاره ضروري نه دی چې نوروته دهم دمونځ کولونه وائي،داشان يوناجائزکارکول ځان له ګناه ده اودخپل اثرلاندې خلقولره ددغه ناجائزکارنه نه منع کول بله ګناه ده،اويوګناه کولونه دانه لازميږي چې بل ګناه دهم ضروراوکړې شي [روح المعاني] (۳)

چنانچه امام مالک رحمه الله دحضرت سعيدبن جبير رضي الله عنه داقول نقل کړې دې چې څوک په دې خيال، امربالمعروف اونهی عن المنکرپريږدی چې زه پخپله ګناهګاريم،هرکله چې پخپله ګناهونونه پاک شم هله به نوروته تبليغ کوم،ددې نتيجه به داراؤوځی چې تبليغ کوونکې به هيڅوک هم ځکه پاتې نشي چې هيڅوک دګناه نه بيخي پاک نشته،دحضرت حسن رضي الله عنه ارشاد دې چې شيطان هم داغواړي چې خلق په دې غلط خيال دتبليغ فرض اداکول پريږدي،

(۱) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ۱/ ۲۴۸، ومسند أحمد رقم الحديث: ۱۱۷۶۶
(۲) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ۱/ ۲۴۹، والمعجم الكبير للطبراني رقم الحديث: ۱۷۸۲۶۰
(۳) روح المعاني تحت هذه الآية: ۱/ ۲۹۸

[قرطبي] (١) بلکه حضرت سيدي حکيم الامت تهانوي رحمه الله به فرمائيل چه کله زه په خپل يوبدعادت پوه شم نودهغې بدی په خپلووعظونوکښې په خصوصي شان سره پدې غرض بيانوم چې دوعظ په برکت رانه داعادت ووځي،

خلاصه داده چې دقوله تعالی: ﴿أَتَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنسَوْنَ أَنفُسَكُمْ﴾ مطلب دانه دې چې بې عمله بنده لره وعظ کول ناجائزدي بلکه پکاردي چې واعظ دبې عمله نه وي چې ترمنځه فرق ئې واضح دې خودلته داسوال پيدا کيږي چې واعظ وي اوکه غيرواعظ،دواړودپاره بې عمله کيدل ناروا دي نودلته دواعظ تخصيص ولې اوکړې شو،جواب دادې چې خبره صحيح ده خو د غير واعظ په نسبت واعظ لره بې عمله کيدل زيات نارواځکه دی چې واعظ جرم په قصدکوی او غيرواعظ خودنامعلومتياعذرکولې شی،اګرچه داهم جرم دې،

بله خبره داده چې عالم اوواعظ چې جرم کوی نودادين پورې يوقسم توقې کول دی لکه دحضرت انس رضي الله عنه روايت دې چې رسول الله ﷺ ارشاداوفرمائيلوچه الله تعالی به دقيامت په ورځ چې څومره اميان خلق معاف کوي هومره به پوهان خلق نه معاف کوي (٢)،

**دوه نفسانې رنځونه اودهغې علاج:** دمال مينه اود مرتبې مينه،دواړه دزړه داسې رنځونه دی چې ددې له کبله دانسان دنيوی اواخروی ژوندتباه کيږی،که ژورنظراوکړې شی نوپه انسانی تاريخ کښې تراوسه شوی ټول سخت جنګونه هم ددې په نتيجه کښې شوی دی اواکثرفسادونه هم ددې نه راولاړيږی،

① دې نه کنجوسی اوبخيلی پيدا کيږی،ددې يوقومی نقصان دادې چې دده دولت قوم ته هيڅ فائده نه رسوی،بل نقصان په کښې دده دذات وی چې د معاشرې هيڅ يوکس ده ته په ښه نظرنه ګوری،

② خودغرضی ترې پيدا کيږی،نتيجه ئې داوی چې دمال ګټلو شوق پردومره غالب شی چې په ځيزونوکښې ګډون کوی،په کچ او ناپ تول کښې کمی کوی،رشوت اغستل،ټګی تورې کول او ګټکې او د هوکې کول ئې عادت جوړشی،خپلې پنګې اوخزانې دکولودپاره دنوروونې ځکی، چه په نتيجه کښې ئې دمزدوراودپنګې دخاوندانوترمنځه جګړې تراپورته کيږي، داسې کس هرڅومره مال چې اوګټی بياهم دومره لالچی اوحرصناك وی چې ددمې اوآرام په وخت کښې هم ده ته دابې آرامی وی چې دپنګې نورې زياتولوپه فکرکښې سرګردانه وی،اودده مال دده دآرام ذريعه نه بلکه دبې آرامې باعث اووبال جان جوړشی،

داسې کس ته که حقه خبره هرڅومره واضحه شی خوکه په مال زياتولوکښې ئې خنډ ګنړی نودمنلوهمت ئې نشی کولې،داټول ځيزونه آخرکاردټولې معاشرې امن اوآرام بربادکړی،

اوکه په ژورنظرواچولې شی نودمرتبې دمينې هم دغه ټولې نتيجې راخيژی کوم چې دمال دمينې نتيجې دی ځکه قرآن کريم ددې دواړورنځونوعلاج داتجويزکړې دې،

**قوله تعالی:** ﴿وَاسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلَاةِ﴾ اومدداخلئ په صبراومونځ سره] مطلب داچه صبر اختيار کړئ، يعنی په خپلو خوندونو او شهوتونوقابوبيامومئ او پيدا کړئ،دې سره به دمال محبت

١) تفسير ابن كثير: ١/ ٤٢٨

٢) كنز العمال رقم الحديث: ٢٨٩٨٤

کم شي ولې چې دادواړه څيزونه [لذتونه شهوتونه] په مال سره کيدې شي، کله چې لذتونو او شهوتونوته ټوله توجه ورکول پريښودې شي نوپه اول کښې ګرانه وي ليکن رو رو [کرار کرار] به داجائزحده پورې راکمه شي، دمال دزياتوالي شوق به دې حده پورې پاتې نشي چې دخپلې نفع نقصان نه به ئې پړندوي،

مونځ سره دمرتبې مينه کميږي ځکه چې په دې کښې ظاهري اوباطني هرقسم عاجزي اوکمزوري ده، کله چې په صحيح طريقه مونځ کول ئې عادت شي نودخپلې عاجزئ اوکمزورئ فکربه هروخت ورسره مل وي چې تکبر، غرور اودمرتبې مينه ورسره کميږي،

**دخشوع حقيقت قوله تعالى:** ﴿إِلَّا عَلَى الْخَٰشِعِينَ﴾ په قرآن اوسنت کښې دذکرشوي خشوع نه مطلب دزړه هغه آرام اوخاکساري ده چې دالله تعالى دعظمت اودده په وړاندې دخپل سپکاوي اوذلت دعلم راتلونه پيدا کيږي، نتيجه ئې داوي چې عبادت کول ورته آسان شي کله خودې نخښې په بدن هم ښکاره کيدل شروع شي چې بنده په ادب، عاجزئ سره اوزړه ماتې شان ښکاره کړي، که دچاپه زړه کښې دالله تعالى ويره اوعاجزي نه وي نوکه په ظاهره هغه هر څومره با ادب اوعاجزي کوونکی ښکاري خوهغه خشوع لرونکې نه وي، بلکه دخشوع نخښې، په قصدسره ښکاره کول هم څه ښه کارنه دې چنانچه حضرت عمر رضي الله عنه يوسرزوړرنده ځوان چې اوليدونوورته ئې اوفرمائيل: سرپورته کړه خشوع په زړه کښې وي،

حضرت ابراهيم نخعي ارشادفرمائيلې دې چې غټې [پنډې] جامې اغوستل، زيګ او کمزورې خوراک کول اوسر ښکته لرل خشوع نه ده، خشوع داده چې ته دحق په معامله کښې شريف اونيچ او مالدار او غريب دواړوسره يوشان سلوک کوې اودالله تعالى دفرض کړې شوي څيز ادا کولو دپاره خپل زړه اوزګارکړې،

دحضرت حسن رحمه الله ارشاددې چې حضرت عمر رضي الله عنه به خبرې په داشان کولې چې خلقوته به ئې آورولې چې روان به وونو تيز به تلوچه وهل به ئې کول په زوره به ئې کول حالانکه هغه بيشکه خشوع لرونکې وو،

خلاصه داشوه چې په قصداوارادې سره دخاشعينوصورت اوشکل جوړول دنفس، شيطان تيرباسل [خطا ويستل] دی چې بدی ئې بيان شوې ده البته که بې اختياره تږظاهرشي نوداعذردې [قرطبی] (۱)

**فائده** خشوع سره دخضوع لفظ هم استعماليږي، لکه قرآن کريم کښې چې بيابيااستعمال شوي دي، دادواړه الفاظ، تقريبايوه معنى لري خوپه اصل کښې خشوع دآوازاونظرعاجزئ ته وئيلې شي کله چې دامصنوعي اوپه قصدجوړه کړې نه وي بلکه دزړه دويرې اوعاجزئ په نتيجه کښې وي لکه چې په قرآن کريم کښې راغلي دي ﴿وَخَشَعَتِ الْأَصْوَاتُ﴾ [آوازونه روښول يعني ښکته شول] او خضوع د بدن عاجزئ اوخاکسارئ دپاره استعماليږي لکه په قرآن کريم کښې فرمائي ﴿فَظَلَّتْ أَعْنَاقُهُمْ لَهَا خَٰضِعِينَ﴾ نوددوئ ګردنونه دهغه په وړاندې ټيټ شول]

**په مونځ کښې دخشوع فقهي شان!** په مونځ کښې دخشوع تاکيدبيابياپه قرآن اوسنت کښې راغلې دې لکه قرآن کريم کښې فرمائي:

---

(۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ۱/ ۳۷٤

﴿وَأَقِمِ الصَّلَوٰةَ لِذِكْرِيٓ﴾ اوزمادیادولودپاره مونځ قائم کړه] اودابنکاره خبره ده چې دذکر [یادولو] عکس غفلت دی نوځوک چې په مانځه کښې دالله تعالی نه غافله وي نوهغه دالله تعالی دیادولوفرض نه اداکوی،

په یوبل آیت شریف کښې راغلی دی﴿وَلَا تَكُن مِّنَ ٱلْغَٰفِلِينَ﴾ [ته دغافلانوڅنې مه کیږه] درسول الله ﷺ ارشادمبارک دې، چې مونځ خویواځې خپل ځان مسکین اوعاجزه ګنړل دی]
ظاهری مطلب ئې دادی چې دادچاپه زړه کښې نه وی نودهغه مونځ څه مونځ نه دې.
په یوبل حدیث شریف کښې راغی،دچامونځ چې دبې حیائۍ اوبدونه هغه لره بند نه کړي شی، هغه دالله تعالی نه په مخه لرې کیږی،اوهرکله چې دغافل بنده مونځ ده لره دبې حیائۍ او بدونه نشی بندولې نومعلومه شوه چې دامونځ ئې دالله تعالی نه په مخه لرې کوی [داټول احادیث دامام غزالی رحمه الله داحیاءالعلوم نه راغستې شوی دی](۱)

امام غزالی دغه آیتونه اونوروددلائلوسره فرمائیلی دی، چې ددې تقاضاداده چې مونځ دپاره خشوع شرط وی،اودمونځ صحیحوالې په دې اړه لری،بیائې اوفرمائیل:دسفیان ثوري رحمه الله حسن بصری رحمه الله اومعاذبن جبل رحمه الله مذهب هم دااوچه دخشوع نه بغیر،مونځ نه داکیږی بلکه فاسددې،

لیکن څلورواړوامامانواوجمهورفقهاؤ،خشوع لره دمونځ شرط نه دې ګرځولې البته دمونځ روح ئې په داشان ګرځولې دې چې دتکبیرتحریمه په وخت دې دزړه مخه دې ته راګرځوئ اونیت د کوی چې مونځ خالص دالله تعالی له دپاره کوم،که نورمونځ کښې ئې دغه خشوع په مخه پاتې نه شوه نودفقهې له مخه به ورته دمونځ پریښودونکې نشی وئیلې اونه به د تعزیرپه دول هغه احکام پرمرتب کولې شی کوم چې په مونځ پریښودومرتب کولې شی،البته دمونځ دخشوع والا برخې ثواب به ئې دهغې برخې نه زیات وی په کومه کښې چه خشوع نه وی.
امام غزالی رحمه الله ددې وجه دابنائې چه فقهائې کرام په باطنی احوالواودزړه په کیفیاتوحکم نه لګوی بلکه یواځې دظاهری اندامونوپه اعمالو باندې ظاهری احکام بیانوی خودا خبره دفقهې دحدنه بهرده چې دفلانی عمل ثواب به آخرت کښې ملاؤیږی اوکه نه خو چونکه په باطنی کیفیاتو باندې حکم لګول دهغې بحث نه بهر دی. او خشوع یو باطنی کیفیت دې. په دې وجه هغوئ خشوع په ټول مونځ کښې شرط اونه ګرځولو بلکه د خشوع یو ادنی مرتبې ته یې شرط اووئیلو. اوهغه دا چې کم نه کم د تکبیرتحریمه په وخت کښې صرف د الله ﷻ دعبادت او تعظیم نیت اوکړی په پوره مونځ کښې،خشوع لره دشرط درجه نه ورکولوبله وجه داده چې دقرآن کریم په نورو آیتونوکښې داحکامودتشریع داواضح اصول ښودلی شوی دی چې په انسانانوباندې داسې څه څیزنشې فرض کولې چې دهغوئ دطاقت نه بهروی،اوپوره مونځ کښې داول نه ترآخره پورې خشوع جاری لرل دیوڅوخاصوانسانانوپه وس کښې کیدې شی اواکثرخلق ترپباتې راځی،ځکه د،تکلیف مالایطاق،نه بچ کیدودپاره صرف دمونځ په شروع کښې خشوع شرط اوګرځولې شو،

(۱) داټول احادیث د امام غزالی رحمه الله کتاب احیاء العلوم نه ماخوذ دی.

**دخشوع نه بغيرهم مونځ يعني بې فائدې نه دې** امام غزالي رحمه الله په آخر کښې ارشادفرمائي چه، دخشوع ددې لوئ اهميت باوجوړ،مونږدالله تعالى نه اُميدلروچه غفلت سره مونځ کوونکې هم بيغى دمونځ پرېښودونکې په درجه کښې نه دې ځکه چې ده بهرحال دفرضواداکولوقدم پورته کړې دې اولږوخت دپاره ئې خپل زړه الله دپاره فارغ کړې هم دې چې څه نا څه دنيت ترلوپه وخت کښې خونې يواځې دالله تعالى خيال لرلې وى نودداسې مونځ څه نا څه دافائده ضرورشته چې دده نوم دنافرمانواوبې نمازودلړئ نه اووتو،

بل اړخ ته داويره هم شته چې هسې نه دغافل حالت دپرېښودونکې نه زيات بدتروى،ولې چې دهغه غلام،چه دآقاپه خدمت کښې موجودوى،پوره توجه ئې آقاته نه وى،دبېعزتۍ په رنګ کښې ورسره نيغې خبرې کوى،دهغه غلام دحالت نه زيات بد تر وى چې دسره دخپل آقاخدمت ته نه حاضريږي،

خلاصه دخبرې داشوه چې معامله دويرې اود اميدده يعنى دعذاب ويره هم شته اودبخشيش اميدهم،ځکه چې دغفلت اوسستئ پرېښودلوکوشش ترخپله وسه پورې هميشه کول پکاردى،

وماتوفيقنا الا بالله.

| |
|---|
| يٰبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اذْكُرُوْا نِعْمَتِيَ الَّتِيْٓ اَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ وَاَنِّيْ |
| اې بنى اسراءيلو \| ياد کړئ \| نعمت زما \| هغه \| چې ما کړې وو\| په تاسو \| اوبله خبره دا چې ما |
| اۍ د يعقوب اولاده! ځماهغه نعمت يادکړئ چې په تاسومې کړې وو\|اوتاسو مې د[په خپله زمانه کښې] |
| فَضَّلْتُكُمْ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ۝ وَاتَّقُوْا يَوْمًا لَّا تَجْزِيْ |
| دزمانې په ټولو قومونوغوره کړى يئ\|او د هغه ورځې [د راتلو نه] اوويريږئ\| چې نۀ به بدله ورکولې شي |
| په ټولوخلقو باندې افضل کړى وئ اوخان دهغې ورځې[دعذاب نه] بچ کړئ چې هيڅ په کارنه راځى(۱) |
| نَفْسٌ عَنْ نَّفْسٍ شَيْـًٔا وَّلَا يُقْبَلُ مِنْهَا شَفَاعَةٌ وَّلَا |
| يونفس\|دپاره دبل نفس\| څه څيز \|اونۀ به شى قبلولې \|ددغه نفس په حقله\| سفارش دچا \| اونۀ شى به |
| يو نفس [کافر] دبل نفس[کافر] هيڅ هم\| او نه به د ده په حق کښې دچا سفارش قبليدې شى \|اونه به |

۱) **په حشر کښې به هيڅ سفارش اوفديه وغيره نه وى :-** دنعمتونو بيان اوشو. او اوس ئې د عذابونونه ويروى چه هيڅوك به چاته څه فائده ورنکړى لکه فرمائي چه ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى﴾ يعنى د هيچابوج به په بل چاباندې نه پريوزى. په يو مقام کښې دى چه ﴿لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ يَوْمَئِذٍ شَاْنٌ يُّغْنِيْهِ﴾ يعنى په هغه ورځ هر سړې به په خپل سوچ کښې وى. فرمائي اۍ خلقو دخپل رب نه اوويريږئ اودهغه ورځې نه چه په کومه ورځ به پلار دخپل ځوئ نه او ځوئ به دخپل پلار نه هيڅ فائده اوچته نه کړى. ﴿وَلَا يُقْبَلُ مِنْهَا شَفَاعَةٌ﴾ يعنى د کافر به څوك سفارش نه کوى اونه ذده سفارش قبول دې، دې کافرو ته به دسفارش کولو سفارش هيڅ فائده ورنکړى. او په بل ځائې د اهل جهنم دا قول نقل شوې دې چه افسوس نن زمونږ څوك سفارش کولو والا نشته دې اونه مو څوك دوست. اوپه يو بل مقام باندې فرمائي چه فديه به هم نشى اخستلې .(ابن كثير)

| يُؤْخَذُ | مِنْهَا | عَدْلٌ | وَّلَا | هُمْ | يُنْصَرُوْنَ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| اخستې | ددغه نفس نه | فديه | اونه به | دهغوئ سره | مدد اوكړې شي |
| ده نه فديه اخستې شي (١) اونه به دهغوئ څه قسم مدد كولې شي (٢) | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

اې بنی اسرائیلو! زما هغه نعمتونه یاد کړئ چه کوم ما تاسو ته درکړي وو او دا خبره (یاده کړئ) چه ما تاسو ته په ټولو جهانونو فضیلت درکړې وو او دهغه ورځې نه وویرېږئ چه په هغه ورځ به څوك هم دچا

---

[١] دفديه نه قبليدل:: په یو بل مقام کښې فرمائی چه کوم خلق په کفر باندې مړه شي که هغوی سروزرونه دکه دادنیا ورکړي اودعذابونونه بچ کیدل غواړي نوبیا هم نشی اخستلې.په یو بل مقام کښې فرمائی که کافرو سره که دټولې زمکې ټول څیزونه اوددې په شان نور هم وی او دقیامت په ورځ هغه فدیه ورکړي اود عذاب نه بچ کیدل غواړي نوبیا به هم قبول نه وی. اوپه دردناك عذاب کښې به اخته وی. او په بل ځائې کښې دی اګر چه هغوی زبردسته فدیه هم ورکړي نوبیا به هم قبول نه وی او په یو بل مقام کښې دی چه نن به نه ستاسونه فدیه اخستې شی او نه به دکافرونه . ستاسو ځائې دوزخ دې او هم اوور ستاسو مولا دې.
مطلب دادې چه ایمان نه بغیر صرف دسفارش او شفاعت آسره بې کاره ده. په قران پاك کښې دی چه د هغه ورځې نه مخکښې مخکښې خپلې نیکئ اوکړئ چه په کومه ورځ اخستل خرڅول نه وی او نه به شفاعت وی اوپه بل ځائې کښې دی چه ﴿لَّا بَيْعٌ فِيهِ وَلَا خِلَالٌ۝﴾ په هغه ورځ به نه بیعه وی اونه به دوستانه وی. دعدل معنی په دې ځائې کښې د بدلې ده. اوبدل او فدیه یو ده. د حضرت علی ﷛ والا روایت کښې دشفاعت معنی نفل اودعدل معنی فریضه روایت ده. لیکن دا قول په دې ځائې کښې غریب دې. او صحیح قول رومبې دې. په یو بل روایت کښې دی چه نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړې شو دعدل څه معنی ده؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه فدیه . (الطبری)

[٢] مدد به نشی کولې:- دهغوی مدد به هم نشی کولې. یعنی ددوی به هیڅوك حمایت کولو والا نه وی. رشته دارنی به ختمې شی. مرتبې به ختمې شی. د هیچا په زړه کښې به ددوی دپاره څه رحم نه وی. نه به دوی کښې په خپلو کښې څه رحم وی اونه به څه قوت وی . په یو بل مقام کښې فرمائی چه ﴿وَهُوَ يُجِيرُ وَلَا يُجَارُ عَلَيْهِ﴾ هغه پناه ورکوی اودهغه دنیولو نه هېڅوك نجات ورکولو والا نشته دې. او په بل مقام کښې فرمائی چه نن ورځ د الله تعالی پشان نه څوك عذاب ورکوونکې شته او نه د هغه پشان څوك قیدوونکی او بندونکې. په بل مقام کښې دی چه ﴿مَا لَكُمْ لَا تَنَاصَرُونَ۝ بَلْ هُمُ الْيَوْمَ مُسْتَسْلِمُونَ۝﴾ تاسو نن ولې دیو بل مدد نه کونی؟ بلکه هغوی به ټول په ټولو سرونه ټیټ کړی وی او فرمانبردار به ولاړ وی. په بل آیت کښې دی چه ﴿فَلَوْلَا نَصَرَهُمُ الَّذِينَ اتَّخَذُوا مِن دُونِ اللَّهِ قُرْبَانًا آلِهَةً﴾ هغوی چه به دالله ﷻ نه سوا دالله تعالی دنزدیکت دپاره د نورومعبودانو عبادت کولو نن هغه معبودان ددوی مدد ولې نه کوی. بلکه هغوی ورك شو.
مطلب دادې چه محبتونه فنا شو ، رشوتونه کټ شو ، شفاعتونه ختم شول، په خپلو کښې مدد کول او نصرت کول لرې شول. معامله هغه حاکم عادل او قهار او جبارذات سره ده چه هغه ذات ته به څوك شفاعت کولو والا نه وی او نه به څوك مددکولو والا وی. بلکه دوی به دټولو بدو بدله مومی. دا د هغه په بندګانو کامل رحم او هغوئ باندې انعام او اکرام دې چه دګناه بدله یوشان ورکوی او دنیکئ بدله کم ازکم لس چنده زیاته وی. په قران کریم کښې یومقام کښې ارشاد فرمائی چه دوی لره شان ایسار کړنی چه ددوی نه یو سوال اوکړې شی چه نن دوی دیو بل سره دمدد کولو نه دی او په خپل فکر کښې ولې اخته ولې دی ؟ بلکه زمونږ په وړاندې نې سرونه ټیټ کړی اوتابع فرمان ولاړ دی. (الطبری)

**پکارنه شي اونه به د چا سفارش قبول شي،نه به څه قسمه فديه اخستې شي اونه به دوی ته څه مدد راشي.**

## خلاصه تفسير

﴿ يٰبَنِيٓ اِسْرَآءِيْلَ﴾ اے د يعقوب عليه السلام اولاده ! ﴿اذْكُرُوْا نِعْمَتِيَ الَّتِيْٓ اَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ﴾ تاسو زما هغه نعمت ياد كړئ [چې تاسو كښې شكر اواطاعت پيدا شي] كوم ما تاسو ته انعام كښې دركړې وو. ﴿وَاَنِّيْ فَضَّلْتُكُمْ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ﴾او دا خبره هم [ياده لرئ] چې ما تاسو ته [خاص خاص برتاؤ[معامله كښې] په ټول جهان والو باندې فوقيت دركړې وو [او يو ترجمه دا هم كيديشي چې تاسو ته د مخلوق په لويه حصه باندې فوقيت دركړې وو لكه دهغې زمانې په خلقو باندې.

**فائده:** دې آيت مبارك كښې خطاب د رسول اكرم ﷺ دزمانې يهودو ته دې او عموما داسې كيږي چې پلار نيكه باندې كوم احسان او اكرام اوكړې شي نو د هغې څخه دهغه اولاد هم فائده پورته كوي. اوددې عام طور سره مشاهده كولې شي. نو په دې وجه هغوئ هم دې ايت مبارك كښې مخاطب گڼرلې كيږي.

﴿وَاتَّقُوْا يَوْمًا لَّا تَجْزِيْ نَفْسٌ عَنْ نَّفْسٍ شَيْـًٔا﴾ اوتاسو دهغه ورځې څخه ويريږئ [چې په هغې كښې] نه خو يو كس د چا طرف څخه څه مطالبه كولې شي ﴿وَّلَا يُقْبَلُ مِنْهَا شَفَاعَةٌ﴾ ا و نه ديو كس د طرف څخه څه سفارش قبولولې شي [كله پخپله هغه سړې كښې ايمان نه وي چې د كوم سفارش كوي] ﴿وَّلَا يُؤْخَذُ مِنْهَا عَدْلٌ﴾ ا و نه د يو كس دطرفه به څه بدله اخستې شي، ﴿وَّلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ﴾ او نه به ددې خلقو طرفدارى چليږي.

**فائده:** دې آيت مبارك كښې چې د كومې ورځې ذكر دې نو ددې څخه د قيامت ورځ مراد ده. د مطالبې د ادا كولو مطلب دا دې لكه مثلا د چا په ذمه د مونځ او روژې مطالبه وي، او بل اووائي چې زما مونځ او روژه واخله ددهٔ حساب ختم كړه.ا و معاوضه دې ته وائي چې څه مال وغيره وركړي او هغه بچ كړي. نو دا خبرې به نه وي. او د ايمان څخه بغير د سفارش نه قبليدو باره كښې ئې چې كوم ذكر كړې دې نو نورو دوؤ آيتونو څخه معلوم شو چې ددې صورت به دا وي چې دداسې خلقو به دسره سفارش نه وي. او نه به د سفارش د قبليدو گنجائش وي. ا و د طرفدارئ صورت به داسې وي چې څوك ډير زيات حمايت اوكړي اونه په زبردستئ خپل كار اوباسي غرض دا چې دنيا كښې د مدد څومره طريقې دي نو د ايمان نه بغير بله يوه طريقه به هم نه وي.

| وَاِذْ | نَجَّيْنٰكُمْ | مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ | يَسُوْمُوْنَكُمْ | سُوْٓءَ الْعَذَابِ |
|---|---|---|---|---|
| اوياد كړئ هغه وخت | كله چې موږ نجات دركړو تاسو ته | دفرعونيانو نه | چې رسول به ئې تاسو ته | سخت عذاب |
| اوهغه وخت [ياد كړئ] | چې موږ تاسو دال فرعون نه نجات دركړو(۱) | | چې تاسو ته به ئې سخت عذاب رسولو | [هغه عذاب دا] |

---

(۱) **په بنى اسرائيلو باندې دالله ﷻ انعامات:** - په دې آيتونو كښې دالله ﷻ فرمان دې چه اے ديعقوب عليه السلام اولاده زما هغه مهربانى هم ياده كړئ چه ما تاسو دفرعون دبدترين عذاب نه بچ كړنى. فرعون يو خوب ليدلې وو چه دبيت المقدس طرفنه يو اوور راوچت شو چه دمصر دهر قبطى په كور كښې داخل شو او د بنى اسرائيلو كورونو ته داخل نشو. چه دهغې تعبير داوو چه بنى اسرائيلو كښې به يو سړې پيدا كيږي چه دهغه دلاسه به دفرعون غرور ختم شي. اوهغه ته به دخدائى... [باقى په راروانه صفحه...

يُذَبِّحُونَ أَبْنَاءَكُمْ وَيَسْتَحْيُونَ نِسَاءَكُمْ ۚ وَفِي ذَٰلِكُم

جي ذبح کول به ئې | خامن ستاسو | اوژوندۍ به ئې پريښودلې | جينکۍ ستاسو | او په دې حالت ستاسو کښې

جي ستاسو خامن به ئې حلالول اوستاسو جينکۍ به ئې ادوينځ توب دپاره ژوندۍ ساتلې (۱) | او په دې کښې ستاسو

بَلَاءٌ مِّن رَّبِّكُمْ عَظِيمٌ ﴿٤٩﴾

ازميت وو | دطرفه درب ستاسو نه | لوئ |

دپروردګار دطرفه ډيرلوئي ازميښت وو (۲) |

## آسان. ترجمه قرآن

**او(هغه وخت ياد کړئ) چه مونږ تاسوته د فرعون د خلقونه نجات درکړو چه تاسوته به ئې لوئ عذاب درکولو. ستاسو ځامن به ئې حلالول اوستاسو ښځې به ئې ژوندۍ پريخودې اوپه دې ټولو احوالو کښې تاسو باندې د الله تعالیٰ دطرف نه لوئ امتحان وو.**

...باقي د تير مخ] د دعوې بدترينه سزا ملاوۀ شي. ددې وجې دې ملعون څلورو وارو طرفونوته احکام جارې کړل چه په بني اسرائيلو کښې کوم بچې پيدا کيږي نو سرکاري طور به ددې خبرې خيال ساتلې شي که هغه ماشوم نر وي نوهغه به زر تر زره قتل کولې شي. اوکه ښځه وي نو هغه دې پريښودې شي اودبني اسرائيلو نه دې سخت بيګار واخستلې شي اودمشقت د کارونو بوج دې په هغوی واچولې شي.

(۱) **د هلکانو ذبح کول:-** په دې ځاې کښې د عذاب تفسير دهلکانو دوژلو سره اوکړې شو. او په سورتِ ابراهيم ﷺ کښې ديو عطف ئې په بل باندې واچولو چه ددې پوره تشريح به انشاء الله ﷻ په سورت " ق " کښې بيانيږي. الله ﷻ دې مضبوطي راکړي او خمونږ مدد دې اوکړي او تائيد دې اوکړي آمين.

د ﴿يَسُومُونَكُمْ﴾ معنی لګول او هميشه کول دي. يعنې هغوی به برابر اينبودل. چونکه په دې آيت کښې مخکښې دا فرمائيلي شوي وو چه زما نعمتونه ياد کړئي ځکه ئې دفرعونيانو عذاب کښې د تفسير په طور هلکانووژلو سره بيان اوفرمائيلو. اوسورت ابراهيم په شروع کښې فرمائيلې شوي دي چه تاسو دالله ﷻ نعمتونه يادکړئي ځکه چه په هغه ځاې کښې ئې عطف سره بيان کړې دې چه دنعمتونو تعداد نور هم زيات شي. يعنې دمختلفو عذابونونه او دبچو قتل کولو نه موتاسو بچ کړئي د حضرت موسیٰ ﷺ په لاس سره.

دمصر چه څومره بادشاهان عماليق وغيره په کفارو کښې وو هغه ټولوته به ئې فرعون وئيلو. لکه څنګه چه د روم بادشاه ته قيصر او دفارس بادشاه ته کسرى اود يمن بادشاه ته تبع او د حبشې بادشاه ته نجاشي اودهند بادشاه ته بطليموس وئيلې شو.ددې فرعون نوم وليد بن مصعب بن ريان وو. بعضو مصعب بن ريان هم وئيلي دي. دا د عمليق بن اود بن ارم بن سام بن نوح په اولاد کښې وو.دده کنيت ابومره وو. په اصل کښې داصطخر فارسيبانونه وو ، دالله ﷻ غصه او لعنت په ده باندې نازل شو.

(۲) **په نجات کښې امتحان وو:-** بيا ئې اوفرمائيل چه په دې نجاتورکولو کښې خمونږ د طرف نه يو ډير لوئې نعمت وو. د ﴿بَلَاءٌ﴾ اصل معنې آزميښت ده. ليکن په دې ځاې کښې حضرت ابن عباس رضي الله عنه ، حضرت مجاهد رحمه الله ، ابوالعاليه رحمه الله اوسدي وغيره نه دنعمت معنی نقل ده. (الطبرى) امتحان ښيګړه ، بدی دواړو سره راځي. ليکن دبلاء لفظ عام طور د آزميښت دپاره (الطبرى) او ﴿ابليه ابلاء وبلاء﴾ لفظ دښيګړې سره دآزميښت په طور رازي. دا وئيلې شوي دي چه په دې کښې ستاسو آزميښت وو يعنې په دې عذاب کښې او ددې بچو په قتل کولو کښې .قرطبي رحمه الله دې دويم مطلب ته د جمهورو قول وائي نو دې کښې اشاره ده د ذبح وغيره طرفته او د ( بلاء ) معنی به د بدنې وي.

## خلاصه تفسير

پورته چه دكومو نعمتونو حواله وركړې شويده اوس دې ځائي نه يې تفصيل شروع كيږي. رومبے نعمت خو دادې چه ﴿وَاِذْ نَجَّيْنٰكُمْ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ﴾ او [هغه زمانه رايادة كړئ] چه خلاصے مو دركړو تاسو ته ستاسو [پلارانو اونيكونو] ته دفرعونيانو د ډلے نه ﴿يَسُوْمُوْنَكُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ﴾ چه رسول به يئ تاسوته د زړه د آزارول، ﴿يُذَبِّحُوْنَ اَبْنَآءَكُمْ﴾ مرئ به ئې پريكولے ستاسو [دسړو] اولاد ﴿وَيَسْتَحْيُوْنَ نِسَآءَكُمْ﴾ او ژوندئ به يئ پريښودے ستاسو زنانه [جينكو لره چه ژوندئ پاتې شي او لوئي ښځې شي] ﴿وَفِيْ ذٰلِكُمْ بَلَآءٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَظِيْمٌ﴾ او په دې [واقعه] كښې ستاسو دپروردگار دطرفه په تاسو يو ډير لوئې او درونډ امتحان وو.

**فائده**: چا فرعون ته دا پيشنګوئى كړې وه چې په بنى اسرائيلو كښې به داسې يو هلك پيدا كيږي چې د هغه د لاسه به ستا حكومت ختميږي. نو په دې وجه چې كوم ماشومان به پيدا كيدل هغه به ئې قتل كول. او د جينكو څخه ئې هيڅ ويره نه وه. نو هغوئ سره ئې هيڅ غرض اونه ساتلو. او په دې كښې ددهٔ يو خپل مطلب داهم وو چې ددې جينكو څخه به ئې د خدمت او نوكرئى كارا خستلو. نو دا مهربانى هم د خپل مطلب دپاره وه. او ددې واقعې څخه خو يا دغه مذكوره ذبح او قتل مراد دې، او مصيبت كښې د صبر امتحان وى اويا خلاصې وركول مراددى اوداهم يونعمت دې. اوپه نعمت كښې دشكر امتحان وى. او ددې نجات تفصيل به مخكښې راشي.

| بَلَآءٌ | مِّنْ رَّبِّكُمْ | عَظِيْمٌ | وَاِذْ | فَرَقْنَا | بِكُمُ الْبَحْرَ |
|---|---|---|---|---|---|
| آزميت وو | دطرفه درب ستاسو نه | لوئ | او ياد كړئ كله چې | جدا كړو مونږ | ستاسو دپاره درياب |

دپروردگار دطرفه ډيرلوئې آزمينت وو　اوهغه وخت [ياد كړئ] چې مونږ ستاسو دپاره سمندر اوشلولو[1]

[1] **دفرعونيانو نه نجات**:- بيا فرمائي چه مونږ فرعونيانو نه بچ كړئي. تاسو حضرت موسى عليه السلام سره روان شوئي او فرعون ستاسو نيولو پسې در اووتلو. او تاسو دپاره مو اوبه اودرولې او تاسو مو دې كښې پورې ويستئ اوستاسو مخكښې مو فرعون سره د لښكره ډوب كړو. ددې پوراتفصيل به انشاء الله سورة شعراء كښې راشي.

**د بنى اسرائيلو موسى عليه السلام سره روانيدل**:- عمرو بن ميمون اودى رحمه الله فرمائى چه كله حضرت موسى عليه السلام بنى اسرائيل ځان سره واخستل او اووتلو او فرعون ته ددې خبر اوشو نو هغه اووئيل كله چه چرګ اذان اوكړى نو بيا اوزنى او هغه اونيسى؛ او وې وژنى: خو په هغه شپه چرګ هډو تر سحره پورې اذان اونكړو دالله ﷻ په حكم سره ، د چرګ آواز آوريدو سره فرعون يوچيلئ ذبحه كړ ه او وې وئيل چه ددې نه مخكښې چه ددې د كليجئ نه څه فارغ شم ددې نه مخكښې د شپږ لاكهو قبطيانو لښكر زما په وړاندې حاضريدل پكار دى. نو حاضر كړې شو. اودې ملعون دومره غټ تعداد سره ډله واخسته اودبنى اسرائيلو د هلاكت دپاره ډير په شان وشوكت سره اووتلو او د سمندر په غاړه ئې اوموندلو. اوس په بنى اسرائيلوباندې دنيا تنګه شوه. كه روستو كيږي نو دفرعونيانو دتورو لاندې راځي اوكه مخكښې ځي نو د مهيانو خوراك كيږي . په دغه وخت كښې حضرت يوشع عليه السلام اوفرمائيل چه اې دالله ﷻ نبي اوس به څه كيږي ؟ دوى اوفرمائيل چه اوس امر د رب مخكښې دې ، پهٔ دې آوريدو سره هغوى خپل آس اوبوته داخل كړو خوكله چه ئې په ژورو اوبو غوپې اووهلې... [باقى په راروانه صفحه...

فَاَنْجَيْنٰكُمْ وَاَغْرَقْنَآ اٰلَ فِرْعَوْنَ وَاَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ۝ وَاِذْ

نو نجات درکړو مونږ تاسو ته | او غرق کړل مونږ | فرعونیان | اوتاسو ورته کتل | اویاد کړئ کله چې

نوتاسوموخلاص کړنی اوآل فرعون موستاسو په وړاندې ډوب کړل | اوبیا کله چې

وٰعَدْنَا مُوْسٰى اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ مِنْۢ بَعْدِهٖ

وعده کړې وه مونږ | د موسی سره | څلويښت | شپې | بيا | اونيولو تاسو | سخي [ګيلګی] | روستو دتلو دهغه نه

مونږ موسی سره [دتوراة ورکولو دپاره] دڅلويښتو شپو وعده اوکړه | نوتاسو دهغه [د کوه طور د تلو] نه پس

وَاَنْتُمْ ظٰلِمُوْنَ۝

اودغه وخت وئ تاسو زياتي کونکي په نفسونو خپلو |

[دسامري په وينا] سخي [په خدائي] اونيولو | اوپخپل خان موزياتي اوکړو

## آسان ترجمه قرآن

**او (ياد کړئ) کله چه مونږ ستاسو دخاطره سمندر شلولې وو پس تاسو ټول موبچ کړی وئ اودفرعون خلق موپه (سمندر کښې) غرق کړي وو اوتاسو داټوله نظاره کتله او (هغه وخت ياد کړئ) چه مونږ دموسٰی عليه السلام سره د څلويښتو شپو وعده کړې وه بيا تاسو دهغه نه روستو (په خپلو ځانونو باندې) ظلم اوکړو اوسخی لره موخدائې جوړ کړو.**

...باقي د تير مخ] نو واپس غاړې ته راغلو او تپوس ئې اوکړو ائې موسٰی ؑ دالله ﷻ مدد چرته دې ؟ نه خو مونږ تا په دروغه ګڼړو او نه الله ﷻ لره. درې خل داشان ئې اوويل. بيا حضرت موسٰی ؑ طرفته وحي راغله چه خپله همسا باندې سمندر اووهه، دهمسا وهلوسره اوبو لار جوړه کړه اوپه دغرونو پشان سختې شوې. حضرت موسٰی ؑ او ددوی منلووالا په دې لارو باندې تير شول ، کله چه فرعون اودهغه لښکر ددوی داسې پورې کيدل اوليدل نو هغوی هم خپل آسونه درياب کښې داخل کړل ، هرکله چه دفرعون ټول لښکر سمندر ته داخل شو نواوبو ته ديوځائې کيدو حکم اوشو اود څلورو وارو طرفونو يو حال جوړ شو اوټول په ټوله ډوب شو. بنی اسرائيلو چه دالله ﷻ دقدرت دانظاره اوکتله په خپلو سترګو سره اوکتله نو په دې سره هغوی ډير زيات خوشحاله شو او خپله آزادي او دفرعون بربادي ددوی دپاره دخوشحالئ سبب جوړ شو. دا هم روايت دې چه دا د عاشورې ورځ او دمحرم لسمه نيټه وه.

**ديهوديانو روژه نيول:-** په مسند احمد کښې يو حديث دې چه کله حضرت محمد ﷺ مديني منورې ته تشريف راوړو نو وې کتل چه يهوديان دعاشورې دورځې روژه نيسي نو تپوس ئې اوکړو چه تاسو ددې ورځې روژه ولې نيسئ ؟ هغوی اوئيل خکه چه په دې مبارکه ورځ بني اسرائيل دفرعون د لاس نه آزاد شوی وو او دهغوی دښمن غرق شو. نودهغې په شکر کښې حضرت موسٰی ؑ دا روژه اونيوله. نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه په تاسو کښې زيات حقدار دحضرت موسٰی ؑ خه يم . نو نبی کريم ﷺ پخپله هم ددې ورځې روژه اونيوله. او خلقو ته ئې هم ددې ورځې د روژې نيولو حکم اوکړو. (احمد) بخاري، مسلم ، نسائي اوابن ماجه کښې هم دا حديث موجود دې. (صحيح بخاري)

يو بل ضعيف حديث کښې دی چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه په دې ورځ باندې الله ﷻ دبني اسرائيلو دپاره اوبه اودرولې وې . ددې حديث راوی زيد العمی دې او دده شيخ يزيد رقاشی دده نه هم زيات ضعيف دې.

## خلاصه تفسير

﴿وَاِذۡ فَرَقۡنَا بِكُمُ الۡبَحۡرَ﴾ او [هغه زمانه ياده كړئ] هركله چه مونږ څيرې كړلو تاسو لره [دلارې دركولو په غرض] يو درياب بيا مونږ [د ډوبيدو نه] ﴿فَاَنۡجَيۡنٰكُمۡ وَاَغۡرَقۡنَاۤ اٰلَ فِرۡعَوۡنَ﴾بچ كړئ تاسو او غرق موكړل فرعونيان[سره دفرعون] ﴿وَاَنۡتُمۡ تَنۡظُرُوۡنَ۝﴾اوتاسو ورته كتل.

**فائده**: داقصه په هغه وخت كښې اوشوه چې كله موسى ﷺ پيدا شو او پيغمبرى ورته ملاؤ شوه. او ډيره موده ئې فرعون پوهولو. هر كله چې هغه خبره اونه منله نو خفيه طور ورته حكم اوشو چې بنى اسرائيل ځان سره واخله او ددې ځائې څخه لاړ شه. لار كښې ورته درياب راغلو. او هم په دې وخت كښې فرعون هم د خپل لښكر سره راؤرسيدو. دالله ﷻ په حكم سره درياب كښې لارې جوړې شوې او بنى اسرائيل پورې وتل. د فرعون رارسيدو پورې دريا ب هم داشان وو، هغه دوئ پسې درياب كښې ورګډ شو. نو دې وخت كښې درياب د څلورو وارو طرفونو څخه راغونډ شو او پخپل سابقه حالت باندې شو ، او فرعون او ددهٔ ملګرى ټول په دې كښې غرق او تباه شو.

﴿وَاِذۡ وٰعَدۡنَا مُوۡسٰۤى اَرۡبَعِيۡنَ لَيۡلَةً﴾ او[ياده كړئى هغه زمانه] كله چه وعده مو كړې وه موسى ﷺ سره [دتورات وركولو څوورځې تيرولو باندې چه په كښې دلسو شپوزياتوالئ هم اوشو[تر دڅلويښتو شپو[شمير ترے جوړ شوې وو] ﴿ثُمَّ اتَّخَذۡتُمُ الۡعِجۡلَ مِنۡۢ بَعۡدِهٖ﴾بيا تاسو خلقو [عبادت دپاره] تجويز كړو څخې [ګيلګئ] د موسى ﷺ د [تلو] نه پس ﴿وَاَنۡتُمۡ ظٰلِمُوۡنَ۝﴾ [اوتاسو په دې تجويزكولو كښې په ښكاره]ظلم ته ملا تړلې وه او په داسې بې ځايه خبرې باندې قائل شوى وى.

**فائده**: او د ځينو په قول دا قصه په هغه وخت كښې اوشوه چې كله فرعون تباه شو او بنى اسرائيل مصر ته واپس راغلل. يا دځينو په قول چې كله په بل مقام باندې اوسيدل. موسى ﷺ ته بنى اسرائيلو اووئيل چې مونږ آوس بالكل مطمئن شو. كه زمونږ دپاره څه شريعت مقرر شي نو هغه به خپل دستور العمل جوړ كړو. موسى ﷺ الله ﷻ ته عرض اوكړو نو حكم اوشو چې ته كوه طور ته لاړ شه او هلته يوه مياشته پورې دالله ﷻ په عبادت كښې مشغول شه. تاته به مونږ يو كتاب دركړو. دوئ ﷺ هم داسې اوكړل. او دوئ ﷺ ته تورات ملاؤ شو. خو د لسو ورځو نورو د عبادت حكم ورته اوشو او هغه په دې وجه چې موسى ﷺ د يوې مياشتې روژو ساتلو څخه پس افطار كړې وو. الله ﷻ ته د روژه دار د خلې بوئى ډيره خوښه دې [چې د معدې د خالى كيدو په وجه تبخير نه پيدا كيږى]. نو پدې وجه موسى ﷺ ته حكم اوشو چې لس روژې نورې اوساته چې هغه بوئى بيا پيدا شي. داشان دا څلويښت روژې پوره شوې. موسى ﷺ خو دلته وو او بل طرف ته سامرى نوې يو كس د سپينو زرو يا سرو زور څخه د څخې يو قالب جوړ كړې وو او په هغې كښې ئې هغه ښاؤره اچولې وه كومه ئې چې د جبرائيل ﷺ د آس د پښو د لاندې راخستې وه او خپل ځان سره محفوظ كړې وه. هغه ئې چې كله په دې قالب كښې واچوله نو هغه كښې ساه راغله. او د بنى اسرائيلو جاهلانو دهغې عبادت شروع كړو.

| عَنۡكُمۡ | عَفَوۡنَا | ثُمَّ |
|---|---|---|
| تاسو ته | معافي اوكړه مونږ | بيا |
| بيامونږ تاسود دې جرم نه | | |

| تَشْكُرُوْنَ۝ | لَعَلَّكُمْ | مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ |
|---|---|---|
| شكر گزار شئ ا | شايد چې تاسو ا | روستو ددغه نه ا |
| پس معاف كړئ ا چې تاسو [زما د دې نعمت] شكراوباسئ ا | | |

### آسان ترجمه قرآن

بيا ددې نه روستو هم مونږ تاسو معاف كړئ دې دپاره چه تاسو شكروباسئ.

### خلاصه تفسير

﴿ثُمَّ عَفَوْنَا عَنْكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ﴾ بيا هم مونږ [ستاسو دتوبې كولو] چشم پوشي اوكړه ﴿لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ۝﴾ چه تاسو ددې دومره لوئې خبرې د كيدو نه پس هم په دې اميد چه تاسو به احسان اومنئ.

**فائده:** ددې توبې بيان مخكښې په دريم آيت مبارك كښې ذكر شوېدې. د الله ﷻ ښخه ددې توقعو لرلو مطلب دا نه وو چې نعوذ بالله ، الله ﷻ ته شك وو، بلكه مطلب دا وو چې دا معاف كول داسې يو ښيز دې چې كتوؤنكو ته دشكر ادا كولو توقع او ګمان كيږي.

| مُوْسَى | وَاِذْ اٰتَيْنَا |
|---|---|
| موسى ته | او ياد كړئ كله چې اوركړو مونږ ا |
| او [ياد كړئ] كله چې مونږ موسى ته ا | |

| تَهْتَدُوْنَ۝ | لَعَلَّكُمْ | وَالْفُرْقَانَ | الْكِتٰبَ |
|---|---|---|---|
| دپاره ددې اچې تاسو نيغه لاربيا مومئ ا | | اوفرق كونكې ا | كتاب ا |
| كتاب [توراة] وركړو اچې دحق اوباطل بيلونكې وو ا چې تاسو سمه لار اومومئ | | | |

### آسان ترجمه قرآن

او(ياد كړئ)كله چه مونږ موسٰى عليه السلام ته كتاب وركړو او دحق او باطل په مينځ كښې دتميز معيار موور كړو دې دپاره چه تاسو صحيح لارې ته راشئ.

### خلاصه تفسير

او [هغه زمانه ياده كړئ] ﴿وَاِذْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ وَالْفُرْقَانَ﴾ كله چه مونږ موسى ؑ ته كتاب [تورات] وركړو اود فيصلې ښيز ﴿لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ۝﴾ په دې اميد چه تاسو په لار روان اوسئ.

**فائده:** د فيصلې ښيز يې يا خو هغه شرعي احكامو ته اووئيلو كوم چې په تورات كښې ليكلې شوي وو. ښكه چې په شرعې سره د ټولو اعتقادي او عملي اختلافاتو فيصله كيږي. يا ئې معجزو ته اووئيل، چې دې سره د رينښتونو او دروغو دعوؤ فيصله كيږي. يا ئې پخپله تورات ته اووئيل چې په دې كښې د كتاب صفت هم دې او د فيصلې كولو صفت هم

| قَالَ | وَاِذْ |
|---|---|
| اووئيل | ا او ياد كړئ كله چې ا |
| او ياد كړئ كله چې موسى ا | |

| مُوسٰى | لِقَوْمِهٖ | يٰقَوْمِ | اِنَّكُمْ | ظَلَمْتُمْ | اَنْفُسَكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| موسی | قوم خپل ته | اے قومه زما | بیشکه تاسو | ظلم کړې دې | په نفسونو خپلو باندې |

خپل قوم ته اوونیل اچې ائې قومه تاسو په ځان ډیر زیاتې کړیدې(١)

| بِاتِّخَاذِكُمُ | الْعِجْلَ | فَتُوْبُوْٓا | اِلٰى بَارِىِٕكُمْ | فَاقْتُلُوْٓا | اَنْفُسَكُمْ ؕ |
|---|---|---|---|---|---|
| په سبب دنیولو ستاسو | سخی لره | نوتو به اوباسئ | خالق خپل ته | نواووژنئ | ځانونه خپل |

چې سخې موپه خدائې سره نیولې دې انوخپل پیدا کونکې ته توبه اوباسئ[داسې]چې خپل ځانونه اووژنئ

| ذٰلِكُمْ | خَيْرٌ | لَّكُمْ | عِنْدَ بَارِىِٕكُمْ ؕ | فَتَابَ | عَلَيْكُمْ ؕ |
|---|---|---|---|---|---|
| داځان وژل ستاسو | بهتر دی | ستاسو دپاره | په نزد د خالق ستاسو | نو قبوله ئې کړه توبه | ستاسو |

داکار[چه قتل دې] ستاسودپاره دالله په نزد غوره دې| [نوالله] ستاسوتوبه قبوله کړه

| اِنَّهٗ | هُوَ التَّوَّابُ | الرَّحِيْمُ ۝ |
|---|---|---|
| بیشکه هغه دي | ډیر توبه قبلونکې | رحم کونکې |

بیشکه هغه معاف کوؤنکې، مهربان دې |

## آسان ترجمه قرآن

**او کله چه وئیلي وو موسٰی علیه السلام خپل قوم ته چه "اې ځما قومه اپه حقیقت کښې تاسو سخي لره معبود جوړولو سره په خپلو ځانونو ظلم کړې دې لهٰذا اوس خپل خالق ته توبه اوباسئ او خپل ځانونه**

---

(١) **توبه قبليدل**:- په دې ځائې دهغوی دتوبې طريقه بيانيږي . هغوی د سخی عبادت اوکړو اودهغې محبت ددې خلقو په زړونو کښې پريوتو. بيا دحضرت موسٰی ﷺ په پوهولو دوی په هوش کښې شو او په خپلو کړو باندې شرمنده شو. اودوی ته دخپلې ګمراهۍ يقين اوشو او توبه ئې ويستله نوبيا دوی ته حکم اوشو چه تاسو په خپلو کښې يو بل قتل کړئ. هغوی دا اوکړل اوالله ﷻ دهغوی توبه قبوله کړه. او قاتل مقتول دواړه ئې اوبخښل. ددې پوره بيان به دسورت طه په تفسير کښې راشي انشاء الله. د حضرت موسٰی ﷺ دا فرمان چه خپل خالق ته توبه ګار شئ،دا ښائي چه ددې نه به زيات بل کوم ظلم وی چه تاسو دې الله ﷻ پيدا کړی او بياتاسو د بل چا عبادت کوئ. په يو روايت کښې دی چه هغوی ته ئې حکم دالله ﷻ واورولو او چه کومو خلقو د سخی عبادت کړې وو هغوی ئې کينول او نور خلق ئې اودرول او قتل کول ئې شروع کړل. قدرتی طور تياره شوې وه ، هرکله چه تياره لاړه نو دوی منع کړې شو. په شمار کولو سره معلوم شو چه اويازره کسان قتل کړې شوی وو. اود ټول قوم توبه قبوله کړې شوه. دا يوسخت حکم وو چه خلقو پوره کړو. او خپل پردئی ئې ټول قتل کړل تر دې پورې چه الله ﷻ دوی اوبخښل او حضرت موسٰی ﷺ اوفرمائيل چه اوس بس کړئ. مقتول ته ئې دشهيد اجر ورکړ اود قاتل او دباقی خلقو توبه ئې قبوله کړه. او هغوی ته ئې د جهاد ثواب ورکړو. حضرت موسٰی ﷺ او حضرت هارون ﷺ چه کله خپل قوم قتل کول اوليدل نو دعا ئې شروع کړه چه ائې الله ﷻ دې سره خو به بنی اسرائيل ختم شی نودوی ئې معاف کړل. اوالله ﷻ اوفرمائيل چه زما پيغمبره د مقتولينو غم مه کوه دهغوی درجه ځمونږ په نيز دشهيدانو ده هغوی مونږ سره ژوندی دی. او رزق به ورته ملاويږي. اوس حضرت موسٰی ﷺ اوددوی قوم ته صبر راغلو او دښځو او ماشومانو فرياد کول ختم شو ، تورې بندې شوې ، نيزې اوچړې بندې شوې. په خپلو کښې په پلاراو خونې کښې قتل ختم شو او الله ﷻ ددوی توبه قبوله کړه. (ابن ابی حاتم)

وورڅئ ستاسو دخالق په نزد دا ستاسو په حق کښې غوره ده "دغه شان الله تعالیٰ ستاسو توبه قبوله کړه بې شکه هم هغه دي چه دومره معاف کوونکې او دومره رحم کولو والا دې.

## خلاصه تفسیر

﴿وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ يَا قَوْمِ إِنَّكُمْ ظَلَمْتُمْ أَنفُسَكُم بِاتِّخَاذِكُمُ الْعِجْلَ﴾ او [هغه زمانه ياده کړئ] کله چه موسی ﷺ خپل قوم ته اووئیل ائې زما قومه بیشکه تاسو دومره لوئې نقصان اوکړو ددې ځخی [کیلګی] [دعبادت] په نیولو سره ﴿فَتُوبُوا إِلَىٰ بَارِئِكُمْ﴾ نواوس خپل خالق ته مخه کړئ ﴿فَاقْتُلُوا أَنفُسَكُمْ﴾ بیا ځنی کسان [چه د ځخی عبادت نه دي کړې] ځنی نورو کسانو لره [چه دځخي [کیلګی] عبادت نےکړې دي اووژنئ ﴿ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ عِندَ بَارِئِكُمْ﴾ دا [منل] ستاسو دپاره به غوره وی ستاسو دخالق په نزد ﴿فَتَابَ عَلَيْكُمْ ۚ إِنَّهُ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ﴾ بیا [ددغي کولو په وجه] الله ﷻ ستاسو په حال [په خپلې مهربانئ سره] متوجه شو بیشکه هغه خو هم دغه شان دې چې توبه قبلوی او مهربانی کوی.

**فائده:** دا دهغه طریقې بیان دې چې ددوئ دتوبې دپاره تجویز شو. یعنی مجرمان دې قتل کړې شی لکه څنګه چې زموږ په شریعت کښې هم دځینو ګناهونو سزا قتل دي اګرچې توبه اوباسی لکه دقتل عمد بدله کښې قتل، او که د زنا ثبوت ملاؤ شی نو په دې باندې رجم، دا سزاګانې توبې سره نه ختمیږی نو دې خلقو په دې باندې عمل اوکړو او په دې وجه به په آخرت کښې په دوئ باندې رحمت وی.

| يَٰمُوسَىٰ | قُلْتُمْ | وَإِذْ |
|---|---|---|
| اے موسی | اوياد کړئ کله چې اووئیل تاسو | |
| او [بیا] یاد کړئ چې تاسو موسی ﷺ ته اووئیل (۱) | | |

[1] **دالله د لیدو مطالبه:-** حضرت موسیٰ ﷺ چه کله دبنی اسرائیلو اویا کسانو سره کوه طور ته دالله ﷻ دوعدې مطابق لاړو اوهغه کسانو دالله ﷻ کلام واوریدو نو حضرت موسیٰ ﷺ ته ئې اووئیل چه موږ به هله اومنو چه کله الله ﷻ خمونږ مخامخ راشی.

په دې ګستاخانه سوال باندې په دوی باندې د آسمان نه تندر راپریوتلو اویو سخت آواز راوچت شو په دې سره ټول په ټوله مړه شو. حضرت موسیٰ ﷺ چه کله دا اوکتل نو الله ﷻ ته په زارو شو اودالله تعالی په دربار کښې ئې عرض اوکړو چه زه به بنی اسرائیلو ته څه جواب ورکوم داڅله دهغوی سرداران او دهغوی بهترین خلق وو. ائې الله ﷻ که ستا دا خوښه وه نو څه او دا خلق به دې ددې نه مخکښې مړه کړې وې. ائې الله تعالی! ددې بې وقوفانو په بې وقوفئ باندې موږ مه نیسئ. دا دعا قبوله شوه او حضرت موسی ﷺ ته اووئیلې شو چه په اصل کښې دوی د سخی عبادت کوونکو کښې وو. دوی ته هم سزاملاؤ شوه. بیائې هغوی ژوندی کړل او یونه پس بل ژوندی کړې شو. (ابن ابی حاتم) دیو بل ژوندی کیدل ئې اولیدل.

محمد بن اسحاق ﷫ فرمائی چه کله حضرت موسیٰ ﷺ خپل قوم ته راغلو اودوی ئې د سخی په عبادت کولو اوکتل نو خپل رور اوسامری ته ئې خبردارې ورکړو او سخی ئې اوسیزلو اوددې ایره ئې په سمندر کښې واچوله اوددې نه پس ئې په دوی کښې بهترین خلق منتخب کړل اوخان سره ئې کوه طور ته دتوبې دپاره لاړل. دوی ته ئې اووئیل چه تاسو توبه واخستل ددې خلقو تعداد اویا وو او کوه طور ته دالله د حکم مطابق اوکړئ او روژه اونیسئ اوپاکې کپړې واغوندئ او پاک شئ. هرکله چه کوه طور ته اورسیدل نو دې خلقو حضرت موسی ﷺ ته اووئیل چه ائې ... [باقی په راروانه صفحه...

...باقي د تير مخ] دالله ﷻ پیغمبره الله ﷻ ته دعا اوکړه چه هغه ذات مونږ ته خپل کلام واوروی. هرکله چه حضرت موسی علیه السلام غره لره ورغلو نو یو وریځ راغله او ټول غر ئي په خپل ګیره کښې واخستلو او هم په دې کښې دننه دننه حضرت موسی علیه السلام الله ﷻ ته نزدې شو. هرکله چه دالله کلام شروع شو نو د حضرت موسی علیه السلام تندي نور په ځلیدو شو . نوداشان دوی یو هم هغه طرفته نظر نشو کولې. وریځې ختمې شوې او ټول سجده کښې پریوتل. حضرت موسی علیه السلام دعاسره خلقوهم دالله ﷻ کلام واوریدو چه هغوئ ته د احکامو حکم بیان کیدو. هرکله چه دالله ﷻ کلام ختم شو نو وریځې ختمې شوې او حضرت موسی علیه السلام دې خلقو ته راغلو نودې خلقو اووئیل چه اې موسی علیه السلام مونږ به تر هغه وخته پورې ایمان نه راوړو ترکومې پورې چه خپل رب مونږ پخپله مخامخ اونه ګورو. ددې ګستاخئ په وجه باندې په هغوی زلزله راغله او ټول په ټوله هلاك شو.

**دموسی علیه السلام دعا:-** پس حضرت موسی علیه السلام دزړه په اخلاص سره دعاشروع کړه او وې وئیل چه ددې نه خو دابنه وه چه مونږ مخکښې ددې نه هلاك شوې وې، دبې وقوفانو په کارونو باندې مونږ هلاك نه کړې دا خلق خو د هغوئ خاص خاص او خوبن خلق وو کله چه څه یوازې بنی اسرائیلو ته لاړشم نوهغوی ته به څه جواب ورکوم ، ځوك به زما دا خبره ربنتیا ګڼرې او ددې نه پس به څوك په ماباندې ایمان راوړي. ائي الله ﷻ څمونږ توبه دلته قبوله کړه اوپه مونږ باندې رحم او فضل اوکړه. حضرت موسی علیه السلام همداشان په خشوع او خضوع کښې دعا غوښتله تردې پورې چه الله ﷻ دده دا دعا قبوله کړه اوهغه مړي ئې ژوندي کړل. ددې نه پس ټولو یو خله سره دبنی اسرائیلو د طرف نه توبه غوښتل شروع کړل ، دوی ته اووئیلې شو چه تر کومې پورې دوی خپل ځانونه هلاك نه کړي او یو بل لره قتل نه کړي نو ددوی توبه به نه قبلوم. سدی رحمه الله وغیره وائی چه دا واقعه د بنی اسرائیلو په خپلوکښې دجنګ جګړې نه پس ده ،ددې نه دا هم معلوم شوچه داخطاب عام دې لیکن حقیقت کښې ددې نه مراد هم دا اویا کسان دي.

**دامام رازی یوضعیف روایت:-** رازی رحمه الله په خپل تفسیر کښې ددې اویا کسانو قصه لیکلې ده چه هغوی دخپل ژوندي کیدو نه پس اووئیل ائي د الله ﷻ نبی ! دالله ﷻ نه دعا اوکړه چه الله مونږ نبیان کړي . دوی دعا اوکړه او هغه قبوله شوه خو دا غریب قول دې.د حضرت موسی علیه السلام په زمانه کښې سوا د حضرت هارون علیه السلام نه اودده نه پس حضرت یوشع بن نون علیه السلام نه دنورو نبوت ثابت نه دې. اهل کتاب دا هم دعوی کوی چه دې خلقو دخپلې دعا مطابق الله ﷻ لره په خپلو سترګو هم په دې ځائې کښې اولیدو ، دا هم غلط دی ځکه چه پخپله حضرت موسی علیه السلام چه کله دالله ﷻ د دیدار دپاره سوال اوکړو نو دې منع کړې شو. نودا اویا کسان به څنګه دالله ﷻ دیدار اوکړې ؟ ددې آیت په تفسیر کښې یو بل قول هم دې حضرت موسی علیه السلام تورات راوړو او په دې کښې داحکامو مجموعه وه او دوی ته ئې اووئیل چه دا دالله ﷻ کتاب دې ، په دې باندې عمل اوکړئې او مضبوطیا سره په دې باندې پابند اوسئې نو هغوی اووئیل چه ائې حضرت موسی علیه السلام مونږ ته څه خبردې الله ﷻ دې مونږ ته په خپله راښکاره شی او مونږ ته پخپله ولې نه وائی؟ څه وجه ده چه هغه تاسو سره خبرې کوی اومونږ سره نه کوی؟ ترکومې پورې چه الله ﷻ مونږ پخپله اونه ګورو تر هغه پورې به ایمان راونړو. ددې قول په وجه په هغوی باندې دالله ﷻ غضب نازل شو اوهغوی هلاك شو. بیا ژوندي کړې شو ،بیا حضرت موسی علیه السلام هغوی ته اووئیل چه اوس تاسو دا تورات اونیسئ ،هغوی بیا انکار اوکړو ، دې ځل فرښتو غر اوچت کړو اوددوی په سرونو ئې زوړند کړو که چرې نه منئ نودا غر به ستاسو په سرونو راغوزار کړې شی او تاسو ټول به مړه شئ ،( الطبری) ددې نه داهم معلوم شو چه مرګ نه پس به دوی ژوندی شو اوبیاهم دوی مکلف وو. یعنې دالله ﷻ احکام بیاهم په دوی باندې جاری وو.

**دامام ماوردی قول:-** ماوردی رحمه الله وئیلی دی چه بعضې خلق وائی چه کله ...[باقی په راروانه صفحه...

| لَنْ | نُّؤْمِنَ | لَكَ | حَتّٰى | نَرَى | اللّٰهَ | جَهْرَةً |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| هرگز | مونږ یقین نه کوؤ | په خبره ستا | ترهغه پورې | چي اووينو مونږ | الله | ښکاره |

مونږ ستا په خبره هیڅکله یقین نه کوؤ ترڅو چي الله ﷻ پخپله ښکاره اووینو [نوهله به باور اوکړو]

| فَاَخَذَتْكُمُ | الصّٰعِقَةُ | وَاَنْتُمْ | تَنْظُرُوْنَ۝ |
| --- | --- | --- | --- |
| پس اونیولې تاسو | یوتندر | اوحال داچي تاسو | کتل |

نو په تاسو تندر راغلو [ او د تندر راتلو په وخت کښې ] تاسو ښکاره ورته کتل

## آسان ترجمه قرآن

اوچه کله تاسو وئیلي وو " اې موسٰی علیه السلام مونږ هرګز تا باندې یقین نه کوو ترکومې پورې چه الله تعالٰی مونږ پخپله په خپلو سترګو باندې لیدلې نه وي نتیجه داشوه چه تندر تاسو داسې ونیولئ چه تاسو کتونکی پاتې شوئ.

## خلاصه تفسیر

﴿وَاِذْ قُلْتُمْ یٰمُوْسٰی لَنْ نُّؤْمِنَ لَكَ﴾ او [هغه زمانه یاده کړئ] چه تاسو [داسې] اووئیل ائې موسی مونږ به ستاسو وینا هیڅرې او نه منو [چه دا د الله ﷻ کلام دی] ﴿حَتّٰی نَرَی اللّٰهَ جَهْرَةً﴾ ترڅو چې مونږ [پخپله] الله ﷻ په ډاګه اووینو [پدغه بے ادبئ] ﴿فَاَخَذَتْكُمُ الصّٰعِقَةُ﴾ په تاسو تندر [تکه] راپریوتلو ﴿وَاَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ۝﴾ اوتاسو [دغه تندر راتلل] په سترګو لیدل.

**فائده:** دا قصه څه دارنګ وه چې کله موسی ؑ کوه طور څخه تورات راوړو او هغه ئې پیش کړو چې دا د الله ﷻ کتاب دې نو ځینې ګستاخو [بې ادبه] خلقو اووئیل چې مونږ ته دې الله ﷻ پخپله اووائی چې دا د الله ﷻ کتاب دې. نو بیشکه مونږ به په دې باندې یقین اوکړو. موسی ؑ ورته د الله ﷻ په حکم اوفرمائیل چې راځئ کوه طورته ځو. دا خبره به هم ښکاره شي. بنی اسرائیلو ددې کار دپاره اویا کسان منتخب کړل او موسی ؑ سره ئې کوه طور ته روان کړل. هلته چې اورسیدل نو دې خلقو پخپله د الله ﷻ کلام واؤریدو. نو په هغه وخت کښې دوئ یو بله خبره اوکړه چې مونږ صرف په کلام آؤریدو باندې نه صبریږو، دا معلومه نه ده چې دا څوك کلام وائی؟ که مونږ الله ﷻ پخپله اووینو نوبیشکه یقین به اوکړو. په دنیا کښې هیڅوك

---

...باقي د تیر مخ] هغوی د الله ﷻ دا زبردسته نښه اوکتله او دمرګ نه پس بیا ژوندی شو نو بیا ددوی نه شرعی تکلیف لرې شو. ځکه چه اوس دوی مجبور وو چه ټول هر څه اومنی او پخپله دوی سره دا واقعه پیښه شوه نو اوس تصدیق یو بې اختیار امر جوړ شو. دونمه ډله وائی چه نه بلکه باوجود ددې نه هغوی په شرعی احکامو باندې مکلف وو ځکه چه هر عاقل مکلف دې.

**دامام قرطبی قول:-** قرطبی رحمه الله وائی چه صحیح قول هم دادې. دا امور په هغوی باندې قدرتی طور سره راغلی وو دوی د شریعت د پابندئ نه نشو آزادیدلې. پخپله بنی اسرائیلو هم لوئې لوئې معجزې اوکتلې ، دوی سره داسې داسې کارونه اوشول چه بالکل عجیبه او خلاف قیاس او زبردستې معجزې وې. ددې نه باوجود هغوی هم مکلف وو ،داشان دوی هم. صحیح هم دا قول دې او واضح امر هم دا دې ، والله اعلم.

یو کس دالله ﷻ د لیدو طاقت نه لري. نود دې ګستاخئ [بې ادبئ] د وجې په هغوئ باندې تندر راپریوتو او ټول په ټوله هلاك شو. [دهلاکت متعلق راتلونکی آیت مبارك کښې بیان دې]

| فَأَخَذَتْكُمُ | الصّٰعِقَةُ | وَأَنْتُمْ | تَنْظُرُونَ ۝ | ثُمَّ | بَعَثْنٰكُمْ | مِّنْۢ بَعْدِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| پس اونیولئ تاسو | یو تندر | اوحال داچې | تاسو کتل | بیا | اژوندي کړئ مونږ تاسو | وروستو |
| نوپه تاسو تندر راغلو | او د تندر راتلو په وخت کښې | تاسو ښکاره ورته کتل | بیا د دې مرګ نه پس دوباره | | | |

| مَوْتِكُمْ | لَعَلَّكُمْ | تَشْكُرُونَ ۝ |
|---|---|---|
| دمرګ ستاسو نه | دې دپاره چې تاسو | شکر ګزار شئ |
| مونږ راژوندي کړئ | چې [ددې احسان] | شکر ادا کړئ |

**آسان ترجمه قرآن**

**بیا مونږ تاسو ته ستاسو دمرګ نه روستو دوباره ژوند درکړو دې دپاره چه تاسو شکر وباسئ.**

**خلاصه تفسیر**

﴿ثُمَّ بَعَثْنٰكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَوْتِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ۝﴾ بیا مونږ [دموسی ﷺ په دعا] تاسو ژوندي راپورته کړئ ستاسو دمرګ نه پس په دې امید چې تاسو احسان اومنئ.

**فائده:** د مرګ د لفظ څخه معلومیږي چې دا خلق دې تندر سره مړهٔ شوي وو. ددوئ د دوباره راژوندي کیدو قصه څه دا رنګ اوشوه چې موسی ﷺ الله ﷻ ته عرض اوکړو چې بنی اسرائیل هسې هم بدګمانی کوي. اوس به هغه خلق دا خبره کوي چې ما دا خلق بوتلل او په څه تدبیر سره مې اوژل. ما ددې تهمت څخه محفوظ اوساته. الله ﷻ په خپل رحمت سره هغوئ ژوندي کړل

| وَظَلَّلْنَا | عَلَيْكُمُ | الْغَمَامَ |
|---|---|---|
| اوسوري کړه مونږ | په تاسو باندې | وريځ |
| اوپه تاسو باندې مې د وريځې سورې جوړ کړې وو(۱) | | |

---

(۱) **صحابه کرام ﷺ او بنی اسرائیل** :- چه دبنی اسرائیلو دحالت دانقشه مخکښې کیږدو او بیا د رسول الله ﷺ دصحابه کرامو ﷺ حالت باندې یو نظر واچوو چه باوجود د سختو مصیبتونو برداشت کولو اودیروزیاتو تکلفیونو برداشت کولو نه پس هم هغوی ﷺ دالله ﷻ په عبادت او د نبی کریم ﷺ په اطاعت باندې کلك ولاړوو. نه ئې معجزې اوغوښتلې اونه ددنیا راحتونه ئې اوغوښتل اونه ئې دخپل عیش دپاره څه دنیوی څیز دپیدا کولو خواهش اوکړو. په جنګ تبوك کښې چه کله صحابه کرام ﷺ د اولږې نه په بدحال وواودمرګ مزه ورته راغله نو صحابه کرام ﷺ نبی کریم ﷺ ته عرض اوکړو چه یارسول الله ﷺ دعا اوکړنی چه الله ﷻ په دې خوراك کښې برکت واچوی اوالله ﷻ ئې دعا قبوله کړه او الله ﷻ په دې کښې برکت واچولو. هغوی ښه خوراك اوکړو اوټول لوښی ئې هم ډك کړل. هرکله چه داوبو ډیرو کوټ دپاره فریادیان شول نو دالله ﷻ درسول په دعا سره وریځ راغله او (اوبه) ډیرې زیاتې شوې او دوی پخپله هم څکلې او په نوروني هم اوڅکولې. او مشکونه ئې ترې ډك کړل ، نوصحابه کرام ﷺ ددې ثابت قدمئ ، اولو العزمی ، کاملې اتباع او د رښتونی توحید د (نبی کریم ﷺ) صحابه کرام ﷺ د حضرت موسی ﷺ په ملګرو باندې ښکاره فضیلت ثابت کړو.

| وَاَنْزَلْنَا | عَلَيْكُمُ | الْمَنَّ | وَالسَّلْوٰى ؕ | كُلُوْا | مِنْ طَيِّبٰتِ | مَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اونازل کړل مونږ | په تاسو باندې | من | مرزان [کرکان] | خورئ | د پاکو څیزونو نه | هغه |

اومن وسلوى [ترنجبین او مرزان] [کرکان]مو درته اولیږل [او اجازت مو درکړو]چې مونږ درته کوم پاک څیزونه

| رَزَقْنٰكُمْ ؕ | وَمَا ظَلَمُوْنَا | وَلٰكِنْ | كَانُوْٓا | اَنْفُسَهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| چې درکړي دي مونږ تاسو ته | [او ظلم نه وو کړې هغوى په مونږ باندې] | بلکه | ووهغوئ | په خانونوخپلو باندې |

درکړي دي هغې نه خورئ [ او په مونږ خو هغوى هیڅ زیاتې نه وو کړې ] بلکه هغوى په خپله پخپلو ځانونو

يَظْلِمُوْنَ ۝

چې ظلم به ئې کولو |

زیاتې کولو |

### آسان ترجمه قرآن

اومونږ تاسوته د وریځې سورې درکړو اوتاسو باندې مو مَن اوسلوٰی راولیږل (او وُمو وئیل چه) کوم پاک خوراك مونږ تاسوته درکړې دې (شوق سره) خورئ او (دې نافرمانوسره) هغوى څمونږڅه نقصان ونکړو بلکه هغوى پخپله په خپلو ځانونو ظلم کولو.

### خلاصه تفسير

﴿وَظَلَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْغَمَامَ﴾ او سیورے مو کړې وو په تاسو د وریځے [په میدان تیه کښې] او [دغیبو دخزانې نه] ﴿وَاَنْزَلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوٰى ؕ﴾ راورسول مونږ ستاسو خواته ترنجبین او مرزان یعنی کرکان [او تاسو ته مو اجازت درکړو چه] ﴿كُلُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ ؕ﴾ خورئ دپاکیزه او هغه څیزونو نه چه مونږ درته درکړې دی [خو دغه خلقو په دې کښې هم څه بدلے خبرې اوکړې] او [په دې] ﴿وَمَا ظَلَمُوْنَا وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ۝﴾ دوی زمونږ هیڅ نقصان اونکړو بلکه هم خپل نقصان کوی.

**فائده**: دا دواړه قصې په وادئ تیه کښې واقع شوې وې. د وادئ تیه حقیقت دادې چې د بنی اسرائیلو اصل وطن د شام ملك دې. د یوسف ﷺ په وخت کښې مصر ته راغلی وو. او هم دلته استوګن شوی وو. د شام په ملك کښې د عمالقه نومې قوم غلبه وه. هر کله چې فرعون غرق شو او دا خلق مطمئن شو نو الله ﷻ دوئ ته حکم اوکړو چې عمالقه سره جهاد اوکړئی او هغوئ څخه خپل اصلی وطن قبضه کړئی. بنی اسرائیل په دې اراده مصر ته لاړل، او کله چې هغه ځائې ته اورسیدل او د عمالقه طاقت ئې اولیدو نو پښې ئې اوښوئیدې او د جهاد څخه ئې انکار اوکړو. الله ﷻ دوئ ته ددې انکار دا سزا ورکړه چې څلویښت کاله په وادئ تیه کښې پریشانه اوسرګردانه ګرځیدل. کور ته رسیدل ورته هم نصیب نه شو.

دا میدان څه لوئې رقبه باندې نه وو. یعنی د مصر او شام تر مینځه تقریبا شپږ کوسه یعنی لس میله یو میدان وو. روایت دې چې خلقو به توله ورځ خپل مصر ته دتلو دپاره توله ورځ سفر اوکړو. او د شپې به په یو ځائې کښې ایسار شو خو چې کله به صبا شو نو هم هغه ځائې کښې به وو د کوم ځائې څخه چې به دوئ روان شوی وو. دا شان څلویښت کاله پریشانه په دې

حالت کښې گرځیدل. دې میدان ته وادئ تیه وائي، او د تیه معنی ده پریشانه.
دا وادئ تیه یو فراخه میدان وو. دې کښې نه عمارت وو، نه په کښې ونه وه چې دهغې لاندې د گرمئ څخه پټ شوی وې، او نه دې ځائې کښې د خوراك څکاك څه سامان وو. نه د اغوستو دپاره لباس وو.خو الله ﷻ د موسی ؑ په دعا سره د دوئ د ټولو ضرورتونو انتظام اوفرمائیلو. بنی اسرائیلو دگرمئ شکایت اوکړو، نو الله ﷻ په دوئ باندې یو نرئ وریځ سیورئی جوړ کړو او چې کله ئې د اولږې شکایت اوکړو نو من او سلوی ورته پیش کړې شو. یعنی ونو کښې ئې ورته ترنجبین نومې یو خوږ څیز پیدا کړو.دې خلقو به هغه راجمع کولو او دې ته بۀ ئې من وئیل. او دوئ سره به مرزان گرځیدل او د دوئ څخه به نه ویریدل. دوئ به هغه رانیول او ذبح کول به ئې او دې ته سلوی وائي. دې خلقو به په دې دواړو څیزونو باندې خپل ځان ښه مړولو. د ترنجبینو کثرت د معمول څخه زیات وو.اود مرزانونه ویریدل هم خلاف معمول وو. هم دې حیثیت سره دواړه څیزونه د غیب د خزانې څخه جاری کړې شو. کله چې دوئ ته د اوبو ضرورت شو نو موسی ؑ پخپله همسا باندې یو کانړئی اووهلو او د کانړی څخه چینې روا نې شوې. لکه څنگه چې بل آیت مبارك کښې بیان شوی دی. دې خلقو د شپې د تیرې شکایت اوکړو نو الله ﷻ د غیبو څخه په دوئ باندې یو رڼرا راوستله،کله چې به ئې جامې خیرنې شوې او شلیدې به او د نورو جامو ضرورت به ورته راپیښ شو نو الله ﷻ په خپل قدرت سره دا سبې اوکړل چې ددوئ جامې به نه سخا کیدې او نه به شلیدې،اود ماشومانو په بدن چې به کومې جامې وې نوهغه دهغوئ لوئیدوسره لوئیدې دهغوئ دبدن مطابق.[تفسیر قرطبی](١)

او دې خلقو ته دا هم حکم شوې وو چې د خرچ مطابق اخلئ، او بیا دپاره مه جمع کوئی. خو ددې خلقو حرص اوکړو او :دې خلاف ئې اوکړل. نو دوئ چې به کومه غوښه ایخودې وه هغه به سخا [بدبویه]شوه. په دې وجه ئې اوفرمائیل چې هم خپل نقصان ئې کولو.

| الْقَرْيَةَ | هٰذِهِ | ادْخُلُوا | قُلْنَا | وَإِذْ |
|---|---|---|---|---|
| کلی ته | دې [مخامخ] | چې ننوځئ | اوونیل مونږ | اویادکړئ کله چې |

|او[هغه وخت یاد کړئ هغه د یادولو لائق دې ]کله چې مونږ اووئیل| چې دې ښار ته ننوځئ|

| الْبَابَ | وَّادْخُلُوا | رَغَدًا | شِئْتُمْ | حَيْثُ | مِنْهَا | فَكُلُوا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په دروازه | اوننوځئ | پریمانه | خوښه وی ستاسو | چې څنگه | دهغې دپیداوار نه | اوخورئ |

اودخپلې خوښې خوراکونه په کښې کوئی |اود ښاردروازې ته سرټیټې [په عاجزئ سره] ننوځئ

| خَطٰيٰكُمْ | لَكُمْ | نَّغْفِرْ | حِطَّةٌ | وَّقُولُوا | سُجَّدًا |
|---|---|---|---|---|---|
| گناهونه ستاسو | تاسو ته | مونږ به معاف کړو | زمونږ گناه معاف کړه | اووایئ | سر ټیټې |

اولفظ حطة [یعنی توبه توبه] وائي | [په دې طریقه کولوبه] مونږبه ستاسو گناهونه معاف کړو

(١) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ١/ ٤٠٥، ٤٠٦

| | |
|---|---|
| وَسَنَزِيدُ | الْمُحْسِنِينَ۝ |
| اوبه زيات فضل به اوكړومونږ | په نيكانوخلقو باندې |
| او نيكانو ته به زيات اجر وركړو | |

## آسان ترجمه قرآن

او(هغه وخت هم ياد كړئ) چه مونږ وئيلي وو چه دې "كلي ته داخل شئ په دې كښې چه چرته هم وغواړئ خورئ په مړه او (د كلي) په دروازه په ټيټ سرونو داخل شئ او دا وايئ چه اې الله! ستا دبخشش طلبګار يُو (دغه شان) مونږ به ستاسو ګناهونه معاف كړو او نيكي كوونكوته به نور زيات (ثواب) هم وركړو.

### خلاصه تفسير

﴿وَاِذْ قُلْنَا ادْخُلُوْا هٰذِهِ الْقَرْيَةَ فَكُلُوْا مِنْهَا﴾ او [هغه زمانه ياده كړئ] كله چه مونږ حكم اوكړو چه تاسو خلق دے آبادئ ته ننوزئ بيا خورئ ددې [دڅيزونو] نه ﴿حَيْثُ شِئْتُمْ رَغَدًا﴾ چرته چه مو خوښه شي بے ركاوټه او بنديزه او [دا حكم مو دركړو چه كله دننه ورننوځئ نو] ﴿وَّادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا﴾ په دروازه كښې ورننوځئ [په عاجزئ سره] په ټيټه او [ژبے سره دا] ﴿وَّقُوْلُوْا حِطَّةٌ﴾ وائې چه توبه ده [توبه ده] ﴿نَّغْفِرْ لَكُمْ خَطٰيٰكُمْ﴾ مونږ به معاف كړو ستاسو [تيرے شوے] خطاګانے [دټولو] ﴿وَسَنَزِيْدُ الْمُحْسِنِيْنَ۝﴾ او علاوه داچه نور به زيات كړو د زړه نه نيك كار كوونكو ته.

**فائده**: د شاه عبدالقادر رحمه الله په قول دا واقعه هم د وادئ تيه په زمانه كښې شوې وه. د من اوسلوى خوړلو څخه دا خلق ستړي شول او دخپل روزمره او عادت خوراك مطالبه ئې اوكړه. نو دوئ ته حكم شوې وو چې يو ښار ته لاړ شئ. هلته بهٔ تاسو ته د خوراك څكاك او معمولي څيزونه ملاؤ شي. نو دا حكم دې ښار ته د دننه تللو متعلق شوې وو. دې كښې د فعلي او قولي ادب متعلق بيان شوې دې. او كله چې دننه لاړل نو خوراك څكاك كښې كثرت اوكړې شو. په دې قول باندې ډيرو دا وئيلی دی چې د قصې په بيانولو كښې تقديم او تاخير اوشو. د رومبئ قصه روستو بيان شوې ده او د روستو حالت قصه اول بيان شو ېده. نو دا اشكال به هغه وخت كښې وې چې د قرآن عظيم الشان اصلي مقصد د قصو بيانولو وې. اوهر كله چې نظر په نتائجو باندې وی نو كه د يوې قصې د ټوكونو نتيجه جدا جدا وی، او ددې د نتائجو لحاظ ساتلو سره يو ټوك مقدم كړې شي يا يو ټوك مؤخر كړې شي نو په دې كښې هيڅ باك نشته دې. او نه په دې كښې څه اشكال شته دې.

نورو مفسرينو حضراتو داحكم ددې ښار متعلق ګرځولي دې چې پ كوم باندې د جهاد حكم شوې وو. او د تيه د مودې څخه روستو په دې باندې جهاد اوشو ا فتح حاصله شوه. هغه وخت كښې يوشع عليه السلام نبي وو. دا حكم د هغوئ معرفت سره ددې ښاره متعلق شوې وو.

د اول قول په بنا سره په رومبی ګناهونو كښې هغه خواست هم داخلول مناسب دی چې كوم كښې من او سلوى يې خو سره د ګستاخئ پريخودی وو او د معمولي خوراكونو مطالبه ئې كړې وه. مطلب به دا وی چې دا خواست وو. نو كه اوس دا حكم پوره كړی نو معافي به ورته اوكړو. او په هر قول باندې به دا معافي ټولو دپاره عامه وی. او څوك چې په اخلاص سره نيك عملونه كوی نو د هغوئ بدله ددې څخه علاوه دې.

| | | |
|---|---|---|
| ظَلَمُوْا | الَّذِيْنَ | فَبَدَّلَ |
| چې ظلم ئې کړې وو | هغه کسانو | نو بدله کړه |
| نو ظالمانو هغه خودلې شوې لفظ بدل کړو | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَلَى الَّذِيْنَ | فَاَنْزَلْنَا | لَهُمْ | قِيْلَ | الَّذِىْ | قَوْلًا غَيْرَ |
| په هغه کسانو باندې | آخر نازل کړو مونږ | هغوئ ته | چه وئيلې شوې وه | هغې نه | خبره سوا د |
| [او استغفار نه ئې توقې جوړې کړې] نو مونږ په هغه کسانو چه ظلم يې کړې وو د آسمان د طرفه عذاب راوليږلو | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ۝ | بِمَا | مِّنَ السَّمَآءِ | رِجْزًا | ظَلَمُوْا |
| چې نافرمانى به ئې کوله | په سبب د دې | د آسمان نه | عذاب | چې ظلم ئې کړې وو |
| او د ظلم سزا هم دا وى خکه چې دوى بدعمله شوى وو | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

**مګر وشوه دا چه کومه خبره دې ظالمانو ته وئيلې شوې وه ظالمانو هغه بدله کړه او يوه بله خبره ئې جوړه کړه نتيجه دا شوه چه کومې نافرمانۍ دوی کولې د هغې په سزا کښې مونږ په دوی د آسمان نه عذاب نازل کړو.**

## خلاصه تفسير

﴿فَبَدَّلَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا قَوْلًا غَيْرَ الَّذِىْ﴾ نو بدله کړه هغه ظالمانو يوه بله کلمه چه خلاف وه د هغې کلمې چه [د وئيلو] ﴿قِيْلَ لَهُمْ فَاَنْزَلْنَا عَلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ۝﴾ ئې دوی ته حکم شوې وو په دې خبره مونږ نازل کړو په دغه ظالمانو يو آسمانى آفت په دې وجه چه دوی حکم منلو ته تيار نه وو.

**فائده** : دا آيت مبارك د مخکښنو آيتونو مبارکو خاتمه ده. هغه خلاف کلمه دا وه چې حطة په معنى د توبې ده او دوئ به د مسخرو په توګه حبة فى شعيرة [يعنى غله د اوربشو په مينځ] وئيل شروع کړل. دا آسمانى آفت طاعون وو. چې د حديث د په مفهوم لحاظ سره د انکاريانو دپاره عذاب او منوؤنکو دپاره رحمت وو. دوئ ته ددې شرارت دا سزا ورکړې شوه چې دوئ باندې طاعون مرض راغلو. او ډير خلق مړهٔ شول. او ځينو د هلاك شوؤ خلقو شمير اويا زره خودلې دې، [قرطبى] (١)

## معارف او مسائل

**په کلام کښې دلفظى بدلون راوستو شرعى حکم**: ددې آيت په حواله بنى اسرآئيلو ته، دا حکم شوې وو چه هغه ښارته ددننوتو په وخت د حطة [توبې لفظ] وائى، دوئ د ټوقو مسخرو په ډول د شرارت حنطة [الفظ] وئيل شروع کړل، چه يو اخې الفاظ بدلول نه بلکه ددې معنى هم بدلول وو ځکه چې حطه معنى د ګناه څخه توبه کول او پريخودل ده. او د حنطة معنى غنم ده چې ددې کلمهٔ ما مور بهار سره هيڅ تعلق نشته دې. نو دا قسم تبديلى که په قرآن او حديث يا بل څه امر او حکم الهى کښې راوستې شى، په اتفاق سره بيخى حرام دى ځکه چې يو قسم خندا ټوقې او مسخرې ورپورې کول وو او تحريف ئې وو او په دې وجه خو پرې عذاب هم نازل کړې شو،

(١) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ١/ ٤١٠

اوس دې مسئلې ته راځو چه معنی او مقصود محفوظ او ساتلې شی او صرف الفاظ بدل کړې شی نو ددې به څه حکم وی، امام قرطبی په خپل تفسیر کښې لیکی چې ځنې کلماتو او اقوالو کښې لفظی تبدیلی راوستل هم ناجائز دی، لکه دا ذان الفاظ واخلئ، یا دمونځ دعاګانې لکه، سبحنك اللهم، التحیات دعاء قنوت، درکوع او سجدې تسبیحات چې په منقول شوی الفاظو کښې ئې اداکول ضروری دی، که ددې معنی محفوظ او ساتلې شی خو بیائې هم الفاظ بدلول روانه دی، دغه شان دقرآن کریم ټول الفاظ هم دغه حکم لری یعنی احکام دقرآن کریم صرف ددې، دې نازل شوؤ الفاظو سره تړلی دی، که څوک دقرآن معنی بیخی محفوظ اولری او دالفاظو ترجمه ئې په نورو الفاظو کښې بدله کړی نو دشریعت په اصطلاح کښې دې ته تلاوت قرآن کریم نشی وئیلې اونه به پردقرآن کریم دلوستلو هغه ثواب ملاؤیږی چې په یو حرف لس نیکئ دی، وجه ئې داده چې قرآن یواځې دمعنو نوم نه، دالفاظو او دمعنو دمجموعې نوم دې،

قوله تعالی: ﴿ فَبَدَّلَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا قَوْلًا غَيْرَ الَّذِيْ قِيْلَ لَهُمْ ﴾ نه په ظاهره دامعلومیږی چې حطة الفاظ هم ماموربه وو ځکه ددې بدلول ځان له هم سخته ګناه وه بیا چه معنی ئې ورسره هم بدله کړه ځکه دغه خلق د آسمانی عذاب مستحق شو،

لیکن دکومو اقوالو او کلماتو چې معنې چې مقصود وی الفاظ مقصود نه وی نو که دغه الفاظ په داسې شان سره بدل کړې شی چې اصلی معنی مقصود باندې هیڅ قسم اثر نه غورځیږی نو دجمهور محدثینو او فقهاؤ په نزد داسې تبدیلی رواده، البته ځنې محدثین حضرات درسول الله ﷺ په حدیث کښې داسې قسم لفظی تبدیلی هم جائز نه بولی، قرطبی رحمه الله دامام مالک رحمه الله او امام شافعی رحمه الله او د امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله نه نقل کړیدی چې حدیث کښې روایت بالمعنی هم روادې خو شرط دادې چې روایت کوونکې په عربی ژبه کښې ماهر، دخطاب دموقعو، اوحدیث دواردیدو دموقعو نه په ښه شان واقف وی چې دالفاظو غلطیدو په وجه ئې معنی کښې څه فرق رانشی،

دحدیثو داماما نو یو ټولې دحدیثو نقل کول، هم په هغه الفاظو کښې ضروری ګڼړی په کومو کښې ئې چې اؤریدلی وی او هیڅ قسم غلطی بدلون پکښې روانه ګڼړی، دمحمد بن سیرین رحمه الله قاسم بن محمد رحمه الله وغیره حضراتو هم دامسلک دې تردې چې ځنې [څخه] بعضو حضراتو به حدیث هم په هغه الفاظو کښې نقل کولو په کومو کښې به ئې چې آؤریدلې وو اګرچه هغه چانه به پکښې لغوی غلطی شوې وه چې ده به تراؤریدلې وو، که نقل کوونکی به دغه غلطی په ګته کول اوغبنتل نو دمنقول عنه دالفاظو دبدلولو نه بغیربه ئې داسې وئیل چې زما په خیال کښې صحیح لفظ داسې دې خو روایت راته داشان رارسیدلې دې، چنانچه په دې باره کښې ددغه حضراتو دلیل دادې چې هرکله رسول الله ﷺ یو کس ته اوفرمائیل چې داوده کیدو په وخت ددا دعا لولی، امنت بكتابك الذي انزلت ونبيك الذي ارسلت، بیا چه دغه سړی دنبیك په ځائ رسولك اولوستل نو هغوئ ﷺ ورته بیا هم دغه هدایت اوفرمائیلو چه هم نبیك لوله لهذا اددې خبرې دلیل شوچه لفظی تبدیلی هم جائز نه ده، داشان په حدیث شریف کښې درسول الله ﷺ ارشاد دې،

نضر الله امراسمع مقالتي فبلغها كما سمعها (۱)، الله تعالی دهغه کس تراو تازه لری چې زما کلام ئې

---

(۱) مشکوٰة، کتاب العلم: ۱/ ۳۵

راؤريدو او بياني امت ته هم هغه شان اورسولو څنګه چې ئې آؤريدلي وؤ،
وائي چې ښکاره خبره ده چې دلته دامرادراخيژي چې په کومو الفاظو کښې ئې آؤريدلې وي
هم په هغه الفاظو کښې ئې اورسوی، مګر دجمهورو محدثينو رحمهم الله او فقهاؤ په نزد اګرچه زيات
غوره او بهترخوهم دادي چې حديث شريف هم په هغه الفاظو کښې نقل کړی، کومو کښې ئې چې
آؤريدلې وی، قصداً دې کښې بدلون نه راولي ليکن که هغه الفاظ ورته په پوره شان يادنه وی
پاتې نو مطلب ئې هم په خپلو الفاظو کښې نقل کول روادی، لکه چې د [بلغها کما سمعها] مطلب هم دا
کيدې شی چې بعينه آؤريدلې مضمون دنقل کړی چې په مفهوم کښې ئې څه فرق رانشي، د
الفاظو تبديلی دې سره بې سمونه نه ده، چنانچه امام قرطبي رحمه الله ددې په تائيد کښې داسې
فرمائيلي دی چې پخپله داحديث ددې خبرې دليل دې چې دضرورت په موقعه دالفاظو بدلول
روادی، ځکه چې هم ددې حديث روايت مونږ ته په بدلو بدلو الفاظو کښې رارسيدلې دې، په
رومبی حديث کښې درسولک په ځائې دنبيک لفظ وئيلو دامراود هدايت داوجه هم کيدې شی
چې درسول بله معنی يوعام، ريبارا وقاصد، ليږلې شوې هم کيدې شی، اودنبی بله معنی بغيرد
پيغمبرنه نشی کيدې نودايوخاص او بهترلفظ شو چه دمدح اړخ پکښې درسول په نسبت زيات دې،
ددې بله وجه داهم کيدې شی چې په دعاګانو کښې دخاصيتونو او اثراتو په اعتبار، منقول الفاظ
ډيراهميت لری چې په نورو الفاظو کښې دغه خاصيت نشي موندلې [قرطبی] [۱] په دې وجه
دتعويزونو عاملان ددې لحاظ زيات ساتی چې الفاظ منقوله استعمالوی نورنه استعمالوی.
په دې وجه داوئيل صحيح وی چې منقولې دعاګانې هم په دې اول قسم کښې داخلې وی چې په
کښې معنو سره دمخصوصه الفاظو حفاظت هم مقصود دې، [والله سبحانه وتعالی اعلم]

| وَاِذِ | اسْتَسْقٰى | مُوْسٰى | لِقَوْمِهٖ | فَقُلْنَا | اضْرِبْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوياد کړئ کله چې | اوبه اوغوښتې | موسی | دپاره دقوم خپل | نو اووئيل مونږ | چې اووهه |

او ياد کړئ کله چې موسی عليه السلام دخپل قوم دپاره دڅکلو اوبه اوغوښتې نومونږ ورته اووئيل چې

| بِّعَصَاكَ | الْحَجَرَ ؕ | فَانْفَجَرَتْ | مِنْهُ | اثْنَتَا عَشْرَةَ | عَيْنًا ؕ | قَدْ عَلِمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په همسا خپله | دغه ګټ [کاڼی] | نو روانې شوې | دهغې نه | دولس | چينې | پيژندل |

په خپله همسا باندې دغه ګټه اووهه نودهغې نه دولس چينې راوخوټ کيدې اهرې قبيلې خپل خپل

| كُلُّ اُنَاسٍ | مَّشْرَبَهُمْ ؕ | كُلُوْا | وَاشْرَبُوْا | مِنْ رِّزْقِ | اللّٰهِ | وَلَا تَعْثَوْا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هرې قبيلې | ځائې داوبو څکلو خپل | خورئ | اوڅکئ | د رزق د | الله نه | او مه ګرځئ |

ګودر [داوبو ځائې] پيژندلی يې وؤ [او ورته مواووئيل] چې د الله رزق خورئ او څکئ او په زمکه کښې د فساد

| فِى الْاَرْضِ | مُفْسِدِيْنَ ۝ |
|---|---|
| په زمکه کښې | فساد کونکي |

اچه شرک او ګناهونه دی] کوشش مکوئ

[۱] تفسير القرطبي تحت هذه الآيات: ۱/ ۱۱۰ نه ۱۱۳ پورې۔

## آسان ترجمه قرآن

او(هغه وخت هم یاد کړئ) چه موسیٰ علیه السلام دخپل قوم د پاره اوبه وغوښتې نو مونږ ووئیل چه خپله همسا باندې دا کاڼړې ووهه پس دهغه کاڼړی نه دولس چینې روانې شوې هرې قبیلې د خپلو اوبو ځبلوځائې معلوم کړو (مونږ ووئیل) د الله درکړې شوې رزق خورئ او څکئ او په زمکه کښې فساد کوونکې مه گرځئ.

## خلاصه تفسیر

﴿وَإِذِ اسْتَسْقَىٰ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ﴾ او [هغه زمانه یاده کړئ]کله چه موسی ﷺ د اوبو دعا اوغوښته د قوم خپل دپاره ﴿فَقُلْنَا اضْرِب بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ﴾ په دې مونږ [حضرت موسی ﷺ ته] حکم اوکړوچه خپله دا همسا په فلانی کاڼړی اووهه [چه اوبه ترے راوزی] بس [دا همسا وهل وو چه] ﴿فَانفَجَرَتْ مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا﴾ سمدستی ترے دولس چینے راووتلے[دبنی اسرائیلو دولس خاندانونه وو نو] ﴿قَدْ عَلِمَ كُلُّ أُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ﴾ هر یو خاندان دخپلو اوبو څکلو ځائې معلوم کړو [او مونږ دا نصیحت اوکړو چه] ﴿كُلُوا وَاشْرَبُوا مِن رِّزْقِ اللَّهِ﴾خورئی [او خوراك څښاك] د الله ﷻ د رزق نه او دحد[اعتدال] ﴿وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ﴾ مه تیریږئ چه فساد [او فتنه] کونکی ئے په زمکه کښې.

**فائده:** دا قصه هم په وادئ تیه کښې شوې وه. هلته چې تنده اولگیده نو اوبهٔ ئې اوغوښتلې. نو موسی ﷺ دعا اوفرمائیله او د الله ﷻ قدرت سره د یو کاڼړی څخه دولس چینې راؤوتلې. او ددوئ دولس خاندانونه وو دا رنگې چې د یعقوب ﷺ دولس ځامن وو، د هر یو د اولاد یو یو خاندان وو. دوئ دانتظامی امورو په بنا جدا جدا کړې شوی وو د تپول افسران او مشران هم جدا جدا وو. نو په دې وجه چینې هم دولس وې.

د خوراك څخه مراد من او سلوی ده او د څکاك څخه مراد هم دا اوبه وې. او د احکام ترك کولو سره به فتنه او فساد رازی.

قاضی بیضاوی ﷫ فرمائی چې داشان خوارقو څخه انکار ډیره لویه غلطی ده. او ځینې کاڼړوکښې الله ﷻ بعید از قیاس او خلاف عقل دا تاثیر ایښې دې چې هغه اوسپنه هم جذب کوی. نوکه پدې کاڼړی کښې ئې دا تاثیر پیدا کړو چې د زمکې څخه اجزاء جذب کوی او ددې څخه اوبه راؤباسی نو څه محال دی(۱).

زمونږ د زمانې عاقلانو لره ددې څخه سبق زده کول پکار دی. او ددې څخه فائده پورته کول پکار دی. او بیا دا مثال هم صرف سرسری خبره ده گنی که پخپله ددې کاڼړی په اجزاء کښې اوبه پیدا شی نو بیا هم څه محال دی. کوم حضرات چې داسې امورو ته محال وائی نو والله هغوئ تر اوسه پورې دمحال حقیقت باندې لا پوهه نه دی

## معارف اومسائل

﴿وَإِذِ اسْتَسْقَىٰ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ﴾ په دې آیت کښې حضرت موسی علیه‌السلام دخپل قوم دپاره د استسقاء دعا اوفرمائیله الله ورله دابو انتظام اوکړوهغه داسې چې په کاڼړی دهمساوهلونه چینې راؤخوټکیدلې،دې نه معلوم شوه چې داستسقاءاصل،هم دعاده ولې چې موسوی شریعت

(۱) تفسیر البیضاوی تحت هذه الآية: ۱/ ۹۷

کښې هم دي دپاره صرف دعااوکړې شوه لکه چې امام اعظم ابوحنیفه هم فرمائی چې استسقاء اصل کښې د اوبودپاره دعاکول دی دادعا، کله، د استسقاء دخاص مونځ په صورت کښې کړې شوې ده لکه په صحیح حدیث کښې درسول الله ﷺ نه داستسقاء دمونځ دپاره دعیدګاه میدان ته تشریف وړل چې منقول دی اوداشان ترمونځ خطبه اودعاکول منقول دی، اوکله داسې هم شوی دی چې بغیردڅه خاص مونځ نه صرف دعا وردپاره کړې شوې ده لکه په صحیحینو کښې دی چې دحضرت انس رضی الله عنه په روایت سره منقول دی چې هم دجمعې په خطبه کښې ئې دعااوکړه اوالله تعالی باران اوورولو(۱)،

خوداخبره ټول منی چې استسقاء دمونځ په شکل کښې وی اوکه صرف ددعاپه شکل کښې، خوددې مؤثرکیدودپاره دګناهونونه دتوبې، دخپلې عاجزۍ، خوارۍ اودبندګۍ اظهارضروری دی، څوک چې په ګناهونوټینګارکوی اودالله تعالی په نافرمانوکښې بوبښت او اخته وی نو هغه له داحق نشته چې ددعادتاثیرکولو انتظاراوکړی، که الله تعالی په خپل فضل اوکرم سره ئې هم داسې قبول کړی نودهغه په قبضه قدرت کښې هرڅه شته.

وَاِذْ　قُلْتُمْ　یٰمُوْسٰی　لَنْ

اوياد کړئ کله چې | اووئیل تاسو | اے موسی | هر ګز نشو کولی

| او [مونږ خو تاسو ته تیار خوراک درکولونو] تاسو اووئیل ای موسی

نَّصْبِرَ　عَلٰی طَعَامٍ　وَّاحِدٍ　فَادْعُ لَنَا　رَبَّكَ　یُخْرِجْ　لَنَا

مونږ صبر | په خوراك | یو باندې | نو اوغواړه مونږ دپاره | درب خپل نه | چې راوباسئ | دپاره زمونږ

مونږ په یوقسم خوراک [چه من وسلوی دی] بیخی صبرنشو کولې | نوخپل رب ته سوال اوکړه چې زمونږ دپاره داسې

مِمَّا　تُنْۢبِتُ　الْاَرْضُ　مِنْۢ بَقْلِهَا　وَقِثَّآئِهَا

څیزونې هغه پیداوار | چې زرغونوی ئې | زمکه | لکه ساګ د دې | اوبادرنګ د دې |

څیزونه پیداکړی چې د زمکې نه رازرغونیږی | لکه ساګ [سبزی]، بادرنګ

وَفُوْمِهَا　وَعَدَسِهَا　وَبَصَلِهَا ؕ　قَالَ　اَتَسْتَبْدِلُوْنَ　الَّذِیْ　هُوَ

اوغنم ددې | اودال ددې | اوپیاز ددې | اووئیل موسی | آیا تاسو بدلول غواړئ | هغه څیز | چې هغه

غنم، دال او پیاز شول | هغه [موسی علیه السلام] په جواب کښې اووئیل | چې آیا تاسو هغه معمولی څیز

اَدْنٰی　بِالَّذِیْ　هُوَ　خَیْرٌ ؕ　اِهْبِطُوْا　مِصْرًا　فَاِنَّ

د ادنی درجې دی | په ځانې دهغه څیز | چې هغه | بهتر دی | کوزشئ | یو ښار ته | بیشکه [ملاؤبه شی]

[چه په مشقت به پیدا کیږی] دبهتر [چه د آسمان نه تیار راځی] په بدله کښې بدلوئ؟ [ښه ده نو] [د شام یو] ښار ته کوزشئ

لَكُمْ　مَّا　سَاَلْتُمْ ؕ　وَضُرِبَتْ　عَلَیْهِمُ　الذِّلَّةُ　وَالْمَسْكَنَةُ ۗ

تاسو ته | هغه څیز | چې غواړئ ئې تاسو | آخر دا چې مقرر شو | د هغوئ دپاره | ذلت | اومحتاجی

تاسو چې څه غواړئ هلته به درته ملاؤ شی | انوآخردې حدته راوغورزیدل چه | دوئ دپاره خواری اوعاجزی مقرر شوه

(۱) صحیح البخاری، أبواب الاستسقاء، باب من اکتفی بصلوٰة الجمعه: ۱/ ۱۳۸، وصحیح مسلم، کتاب صلوٰة الاستسقاء، فصل فی الکفایة بالدعاء: ۱/ ۲۹۳

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَبَآءُوْ | بِغَضَبٍ | مِّنَ اللّٰهِ ۭ | ذٰلِكَ | بِاَنَّهُمْ | كَانُوْا | يَكْفُرُوْنَ | |
| او گیر شوا | په غضب کښې | د طرفه دالله نه | دا په دې وجه | چې هغوئ | او وو چه | انکار ئې کړلو | |

اودالله ﷻ په غضب اخته شول|دا ارسوائی او ذلت دغه شان په غضب کښې اخته کیدل| خکه چې دوئ د الله تعالی

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بِاٰيٰتِ اللّٰهِ | وَيَقْتُلُوْنَ | النَّبِيّٖنَ | بِغَيْرِ الْحَقِّ ۭ | ذٰلِكَ | بِمَا | عَصَوْا |
| د آیتونو دالله نه | او وژل ئې | پیغمبران | په نا حقه | دا | په دې وجه | چه نافرمانی ئې کړې وه |

آیتونه نه منل|او دالله تعالی پیغمبران به ئې په ناحقه وژل|دا الویې گناهونه دوی کول| خکه چې دوئ سرکشه شوی وو

وَّكَانُوْا يَعْتَدُوْنَ ﴿٦١﴾

اوشریعت د حدونونه بهرته وتل |

او د الله حدود به ئې ماتول |

## آسان ترجمه قرآن

او (هغه وخت هم) چه تاسو وئیلي وو چه اې موسٰی امونږ په یو قسم خوراك صبر نه کوؤ لهٰذا څمونږ د خاطره د الله تعالٰی نه سوال وکړه چه مونږ ته څه هغه څیزونه پیدا کړی چه کوم د زمکې نه راووځي یعني د زمکې ترکارئ، ددې ترې (بادرنګ)، ددې غنم، ددې دالونه، او ددې پیاز. موسٰی علیه السلام ووئیل چه کومه غذا بهتره وه آیا تاسو هغه په هغه غذا سره بدلوئ چه په ډیره ښکته درجه کښې ده؟ (خیر!) یو ښار ته لاړ شئ هغلته به تاسو ته هغه څیزونه ملاؤ شي چه کوم تاسو غوښتي وو او په دې (یهودو) د ذلت او عاجزئ مهر ووهلې شو او دوی د الله په غضب اخته شو او دا ټول ځکه وشو چه دوی د الله د آیتونونه انکار کولو او پیغمبران به ئې ناحقه باندې وژل دا هر څه ځکه وشو چه دوی نافرمانیانې وکړې او بې حده زیاتې به ئې کولې.

## خلاصه تفسير

﴿وَاِذْ قُلْتُمْ يٰمُوْسٰى﴾ او [هغه زمانه یاده کړئ] کله چه تاسو خلقو [داسې] اووئیل چه ائې موسی [مسلسل] ﴿لَنْ نَّصْبِرَ عَلٰى طَعَامٍ وَّاحِدٍ﴾ په یو قسم خوراك به مونږ کله هم نه پاتې کیږو [یعنی من اوسلوی باندې] ﴿فَادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُخْرِجْ لَنَا مِمَّا تُنْۢبِتُ الْاَرْضُ﴾ تاسو زمونږ دپاره دعا اوکړئ دخپل رب نه چه هغه زمونږ دپاره [داسې څیزونه پیدا کړی چه په زمکه کښې شنه کیږی ﴿مِنْۢ بَقْلِهَا﴾ ساګ [شو] ﴿وَقِثَّاۗىِٕهَا﴾ ختکی بادرنګ ترے [چمبر خیال] وغیره [شوے] ﴿وَفُوْمِهَا﴾ غنم [شو] ﴿وَعَدَسِهَا﴾ مسوردال [شو] ﴿وَبَصَلِهَا ۭ﴾ پیاز [شو] ﴿قَالَ اَتَسْتَبْدِلُوْنَ الَّذِيْ هُوَ اَدْنٰى بِالَّذِيْ هُوَ خَيْرٌ ۭ﴾ هغوی اوئیل آیا تاسو په بدله کښې اخستل غواړئ معمولی څیزونه دداسې څیزونو په مقابله کښې چه هغه ښه دی [ښه ده چه نه منئ نو] ﴿اِهْبِطُوْا مِصْرًا﴾ یو ښار ته کوز شئ [هلته به] ﴿فَاِنَّ لَكُمْ مَّا سَاَلْتُمْ ۭ﴾ البته تاسو ته هغه څیزونه ملاویږی چه دڅه تاسو درخواست کوئ او [دداسې داسې بے ادبئ په وجه چه په مخه کولے نو په څه زمانه کښې دتاپې پشان] ﴿وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ﴾ ټینګ پاتې شو پدوی ذلت [چه د نورو خلقو په نظر کښې یې قدر پاتې نشو] او ﴿وَالْمَسْكَنَةُ﴾ نیستی [وغیره چه په طبیعتونو کښې اوالعزمی پاتې نشوه] ﴿وَبَاۗءُوْ بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ ۭ﴾ او مستحق شو د الله ﷻ دعذاب ﴿

﴿ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللهِ وَيَقْتُلُوْنَ النَّبِيّٖنَ﴾ دا ددې وجې [پرې اوشو] چه دغه خلق به منكريدل داحكامو دالله ﷻ نه او وژل به يې پيغمبران [چه دغه وژل به د دوی په نزد هم] ﴿بِغَيْرِ الْحَقِّ﴾ ناحق [وو] ﴿ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّكَانُوْا يَعْتَدُوْنَ﴾ او [داشان] دا [ذلت اوقهر] په دې وجه [اوشو] چې دې خلقو فرمانبرداری اونكړه او[دې] فرمانبرداریٔ [د دائرې نه] به په مخه وتل.

**فائده** داقصه هم د وادئ تيه ده، د من او سلوی څخه ئې زړونه ماړهٔ شو او دتركاريانو او غلو خواست ئې اوكړو. ددې ميدان په داخلی حدونو كښې يو ښار آباد وو. هلته ورته د استوګنې حكم اوشو. او ورته اووئيلې شو چې كرئ كركروندې كوئی او خورئ او ګټه كوئی.

او د ذلت او مسكنت سره سره داهم دی چې يهوديانو څخه په شان تر قرب قيامت پورې سلطنت واخستې شو. البته قيامت ته نزدې به صرف د ډاكوانو بې ضابطه څهٔ شور وی او دجال به صرف څلويښت ورځو پورې وی. او دې ته به يو ښه سلطنت نشی وئيلې كيدې. او دوئ ته دا خبره د موسی ؑ په واسطې سره وئيلې شوې وه كه تاسو د حكم خلاف كوئی نو هميشه به د نورو قومونو محكوم يئ. سورة اعراف كښې آيت مبارك دې چې ﴿وَاِذْ تَاَذَّنَ رَبُّكَ لَيَبْعَثَنَّ عَلَيْهِمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ مَنْ يَّسُوْمُهُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ﴾ [۷: ۱۶۷] ([۱]) دموجوده اسرائيلی حكومت حيثيث هم د امريكې او برطانيه د غلامئ څخه څه زيات نه دې.

او ډير پيغمبران مختلفو وختونو كښې د يهودو دلاسه قتل شو. او هغه خلقو به هم په خپل زړهٔ كښې وئيل چې زمونږ دا كار غلط دې. خو د عناد او ضد په وجه ئې ځانونه رانده كړی وو.

## معارف اومسائل

**ديهودودهميشه ذلت اوخوارئ دتاپې مطلب اودواسرائيلودموجوده حكومت باره كښې دشبهې اوددې دجواب بيان** قوله تعالٰی: ﴿وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ وَالْمَسْكَنَةُ﴾ په تيرشوی آيت كښې ديهودوسزاپه دنيا كښې، هميشه ذلت اوخواری اوپه دنيااوآخرت كښې قهرالهی بيان كړې شوې دې، د تفسير امامانو، صحابه كرامو[عنه] اوتابعينو ؒ نه ددوئ دذلت اوخوارئ مفهوم چې نقل شويدې دهغې خلاصه دابن كثيرپه دې الفاظوكښې ده﴿لايزالون مستذلين من وجدهم استذلهم وضرب عليهم الصغار﴾ كه دوئ هرڅومره مالدارشی هميشه به ټولوقومونوكښې ذليل اوسپک ګڼړلې شی دچاچه پرِوس برشی دوئ لره به ذليلوی اوپه دوئ به دغلامئ تاپې لګوی،

دتفسيرامام،ضحاک بن مزاحم ؒ،دحضرت عبدالله بن عباس ؓ نه ددوئ دذلت او خوارئ دامفهوم نقل كړې دې، هم اهل القبالات يعنی الجزيه:[دوئ به تل دپاره خلقوته قلنګونه او ټيكسونه وركوی پخپله به هيڅ طاقت اواقتدارنه لری]

په دې مضمون يوآيت آل عمران كښې سره دڅه زيادت نه داشان راغلې دې:

﴿ضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ اَيْنَ مَا ثُقِفُوْٓا اِلَّا بِحَبْلٍ مِّنَ اللهِ وَحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ﴾ اوتپلې شوه په دوئ بيقدری چرته چې ځی البته په يوداسې ذريعه چې دالله تعالٰی له اړخه وی اوبله په داسې ذريعه چې دخلقوله اړخه به وی، دالله په ذريعه دامطلب،چه الله تعالٰی ورته په خپل قانون كښې امن وركړې وی،لكه واړه، ډيرزاړه زنانه ياداسې عبادت ګذارئې چې مسلمانانوسره دجنګ كولوهيڅ خيال نه لری، نو دا

---

[۱] ) ترجمه:ياد كړی هغه وخت، كله چه ستاسو رب اعلان اوكړو چه هغه ذات به په دوی باندے تر قيامت پورے داسې كس مسلط كوی چه هغه به دوی ته خراب خراب تكليفونه به رسوی.

کسان به په امن وی، اودبنیادموپه ذریعه ترمراددصلح معاهده ده،ددې یوصورت داهم کیدې شی چې مسلمانانوسره ئې صلح اوشی یاجزئې ورکولوسره دمسلمانانوپه ملک کښې اوسیږی خوهر کله چې قرآن کریم کښې د﴿مِنَ النَّاسِ﴾ الفاظ دی﴿مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ﴾ الفاظ نه دی،نوددې صورت احتمال هم شته چې نوروغیرمسلموسره دصلح کولوپه وجه دهغوئ په پناه کښې راشی نوهله به په امن کیدې شی، که دکشاف(۱) په قول د ﴿حَبْلٍ مِّنَ اللّٰهِ وَحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ﴾ استثناءمتصله واخلو نو معنی به ئې داشی چې یهودبه همیشه اوهرچرته ذلیل اوخواری وی سواددې دواړو صورتونونه چې دالله تعالی دعهد په ذریعه به ئې ماشومان، ښځې وغیره دذلت اوخوارئ نه اوځی،یاخلقوسره دصلح دمعاهدې په ذریعه به دوئ پخپله خپل ځان دذلت اوخوارئ نه په امن کړی ① یاخوبه مسلمانانوسره دصلح کولوپه ذریعه ② یانوروقومونوسره په ذریعه دصلح په داشان چې دهغوئ په پناه کښې راتلو سره به محفوظ وی.

داهله چې استثناءمتصل واغستې شی اوډیرومفسیرینودې لره استثناءمنقطع اغستې ده په دې صورت کښې به ئې مطلب داوی چې په قومی حیثیت سره خوبه دوئ ذلیل اوخوارپاتې کیږی اګرچه دقانونِ الٰهی په لمن کښې راتلوسره به ددوئ ځنې کسان محفوظ شی یادنورو خلقوډډمونډلو او سهارا پیدا کولوسره به په خپلې خوارئ اوذلت پرده واچوی،

په داشان دسورتِ بقره دآیت وضاحت،دسورتِ آل عمران په آیت سره پوره اوشواوپه دې سره هغه ټول شبهات هم لرې شول چې په فلسطین کښې داسرائیلودحکومت دقائیمیدوپه وجه ډیرومسلمانانوته راولاړیږی چې ځنګه ددوئ داحکومت قائم دې چې قرآن کریم ئې بیابیا نفی کړیده،ولې چې په لنډوټکوکښې جواب ئې دادې چې دغه اسرائیلی حکومت،دبرطانئې او امریکې دیوچهاؤنړې [کنډک] نه زیات بل حیثیت نه لری که دوئ ترلاس واخلی نویومیاشت هم دغه حکومت قائم نشی پاتې کیدې داخودمغربی ملکونوچال دې چې داسلامی بلاک او طاقت د کمزوری کولودپاره ئې مسلمان حکومتونوترمنځه یوه چهاؤنړې جوړه کړې ده،چنانچه د مغربی ملکونو په نظرکښې هم اسرائیل ددوئ دغلام نه زیات بل حیثیت نه لری،مګردقرآن کریم دا ارشاد﴿وَحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ﴾په جوړددوئ وجودقائم دې هغه هم سره دذلت نه،اوس که په دې حقیقت څوک پوه وی نوهغه په دې باره کښې دقرآن کریم په ارشادهیڅ قسم شک شبه نشی کولې،

علاوه داچه یهودو،نصاراؤاومسلمانانوکښې دټولونه وړاندې په دنیاکښې یهودراغلی دی، ددوئ شریعت اوتهذیب په دې درې واړوکښې دټولونه وړاندې جاری کړې شوې دې نوپه ټوله دنیاکښې دفلسطین په وړې قصبې باندې ددوئ قبضه دټولې دنیاپه نقشه باندې دیونقطې حیثیت لری،بل خوابت پرست هم لوئ حکمتونه لری نوصرف په یوقصبه دفلسطین اهغه هم نیم ددوئ [اسرائیلو حکومت چې هغه هم دبرطانئې اوامریکې دسیوری لاندې دې،داددې خبرې لوئ ثبوت دې چې الله تعالی په یهودقوم،همیشه دپاره ذلت اوخواری دټاپې پشان وهلې ده چې په هیڅ شان ترِنشی لرې کیدې.

(۱) مزید تفصیل دپاره اوګورئ، کشاف تحت هذه الآیة: ۱/ ۳۱۲

إِنَّ الَّذِينَ ءَامَنُوا

| بیشکه چې کوموکسانو | ایمان راوړې دې [په نبي] |

| بیشکه چاچې په ظاهره ایمان راوړنی دې (اوکلمه د توحید او رسالت نې وئیلی ده

وَالَّذِينَ هَادُوا وَالنَّصٰرٰى وَالصَّابِئِينَ مَنْ ءَامَنَ

اوچې کوم کسان | یهودیان شوی دی | او که عیسایان دی | اوکه صابیان دی | چا چې هم | ایمان راوړو

یا یهودیان یا نصاری یا صابئین دی | (نو زمونږ چا سره ضد نشته بلکه) هر هغه څوک چه په الله

بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَهُمْ أَجْرُهُمْ عِنْدَ

په الله | اوپه ورځ دآخرت | اوعمل ئې اوکړو | نیک | نوده دهغوئ دپاره | بدله دهغوئ | په نزد

اوپه ورځ دآخرت باندې ایمان راوړی | اوښه کارونه کوی | نودهغوی د رب په نیز د هغوی دپاره اجر

رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ۝

د رب دهغوئ | اونه به وی یره په هغوئ باندې | اونه به هغوئ | غمژن شی |

مقرر دې | اونه به په هغوی (په آخرت کښې) څه قسمه ویره وی | اونه به پرې څه خفگان وی |

**آسان ترجمه قرآن**

**حق خو دا دې چه کوم خلق هم خواه که هغه مسلمانان وي، که یهودیان وی، که عیسایان وی یا صابیان وی په الله تعالی او آخرت باندې ایمان راوړي او نیك عمل اوکړی هغوی به دخپل پروردګار څخه داجر مستحق وي اوپه هغوی به نه څه ویره وي او نه به په څه غم کښې مبتلا شي.**

**خلاصه تفسیر**

﴿إِنَّ الَّذِينَ ءَامَنُوا وَالَّذِينَ هَادُوا وَالنَّصٰرٰى وَالصَّابِئِينَ مَنْ ءَامَنَ بِاللّٰهِ﴾ مسلمانان، یهودیان او صائبیان ددې تولو نه چه څوك هم یقین لری په الله ﷻ [یعنی دهغه په ذات او صفاتو] ﴿وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا﴾ اوپه ورځ د قیامت او ښه عمل کوی [دشرعی قانون په جوړ] ﴿فَلَهُمْ أَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ﴾ ددې سې خلقو لره دخدمت حق هم شته دهغوی پروردګار سره [چه ور اورسی] او [هلته چه ور اورسی نو] ﴿وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ﴾ څه قسم ویره به [هم] نه وی ﴿وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ۝﴾ پدوی اونه به دوی غمژن شی.

**فائده**: د قانون اصل ظاهر دې چې زمونږ په دربار کښې به هیچا ته خصوصیت حاصل نه وی. کوم کس چې په طاعت کښې پوره پوره اعتقاد اواعمال اختیار کړی او هغه ددې څخه وراندې هر څنګه چې وی نو هغه زمونږ په نزد مقبول او ددهٔ خدمت به مشکور وی. او دا ښکاره خبره ده چې د قرآن عظیم الشان د نزول څخه روستو پوره اطاعت د محمد رسول الله ﷺ اطاعت دې یعنی په دې باندې د مسلمانئ انحصار دې. مطلب دا دی چې کوم کس مسلمان شی نو هغه ته آخرت کښې نجات حاصل وی. په دې کښې ددې هم خیال اوساتلې شو که چرې دوئ ددې شرارتونو څخه روستو هم مسلمانان شی نو مونږ به دوئ ته معافی اوکړو.
او صائبین یوه فرقه وه. او ددې د عقیدو او عملونو باره کښې چاته معلومات نشته دې نو په دې وجه دې باره کښې مختلف اقوال دی، والله اعلم

او پدې قانون کښې خو په ظاهره د مسلمانانو د ذکر ضرورت نه وو ځکه چې هغوئ خو مسلمانان دی.خو دې سره کلام پاك کښې یو خاص بلاغت او مضمون کښې یو خاص فراخوالئ پیدا شو.ددې مثال داسې دې لکه چې یو بادشاه په یو موقع باندې اووائی چې زمونږ قانون عام دې، که څوك مونږ سره متفق وی او که زمونږ مخالف وی، کوم سړې چې اطاعت کوی نو په هغه باندې به مهربانی کیږی. اوس خبره ښکاره ده چې کوم خلق متفق دی هغوئ خو اطاعت قبول کړې دې، دا په اصل کښې مخالف ته آوَرول دی. خو دې کښې یوه نکته دا هم ده چې مونږ په کومو موافقو خلقو باندې عنایت کوؤ نو دا ددوئ څه ذاتی خصوصیت نه دې بلکه ددوئ صفت دموافقت په دې انحصار لری. که یو مخالف کس هم دا اختیار کړی نو هغه به هم د موافق سره برابر وی. په دې وجه ئې مخالف سره موافق هم ذکر کړو.

| وَإِذْ أَخَذْنَا | مِيثَاقَكُمْ | وَرَفَعْنَا | فَوْقَكُمُ | الطُّورَ | خُذُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| اویاد کړئ کله چې واخسته مونږ | پخه وعده ستاسونه | او پورته کړو مونږ | د پاسه ستاسو | کوه طور | او نیسئ |
| اویاد کړئ کله چې مونږ ستاسونه وعده واخسته | چې د توراة حکمونه اومنئ | او کوه طور مو در باندې اوچت کړو | | | او درته مو اوونیل |

| مَا | آتَيْنَاكُمْ | بِقُوَّةٍ | وَاذْكُرُوا | مَا | فِيهِ |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه کتاب | چې درکوونې مونږ تاسو ته | په مضبوطیا سره | او یاد کړئ | هغه احکام | چې په دې کښې دی |
| چه په دې حکمونو په کوشش سره اوعمل اوکړئ | | | او په دې کښې چه څه دی هغه یاد کړئ | | |

| لَعَلَّكُمْ | تَتَّقُونَ ۝ |
|---|---|
| دې دپاره چې تاسو | د تقوی په لارروان شئ |
| ددې دپاره چه ځان د ګناه نه اوساتئ | |

## آسان ترجمه قرآن

**او هغه وخت یاد کړئ چه مونږ تاسونه (په تورات باندې د عمل کولو) وعده اخستې وه او کوه طور مو ستاسو د پاسه اودرولې وو (چه) کوم (کتاب) ما تاسو ته درکړې دې هغه مضبوطیا سره وونیسئ او په دې کښې چه څه (لیکلې) دې هغه یاد کړئ دې دپاره چه تاسو ته تقوٰی حاصله شی.**

## خلاصه تفسیر

﴿وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ﴾ او [هغه زمانه یاده کړئ] کله چه مونږ تاسونه لوظ واخستلو[چه په تورات به عمل کوئ او ددې لوظ اخستلو دپاره] ﴿وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّورَ﴾ مونږ کوه طور پورته کړو ستاسو د [سرونو] دپاسه [مو په هوا کښې] زوړنده کړو [او دغه مو درته اووئیل] چه [زر] ﴿خُذُوا مَا آتَيْنَاكُمْ﴾قبول کړئی کوم کتاب چه مونږ درکړې دې [یعنی تورات] ﴿بِقُوَّةٍ وَاذْكُرُوا﴾په مضبوطیا سره اویاد لرئ ﴿مَا فِيهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ۝﴾ کوم احکام چې دې [کتاب] کښې دی په دې وجه امید دې چې تاسو به متقیان جوړ شئ.

**فائده** کله چې موسی علیه السلام ته په کوه طور کښې تورات ورکړې شو. او موسی علیه السلام واپس راغلو او قوم ته ئې واوَرولو ، ددې احکام ډیر سخت وو. خو دې خلقو سره داسې احکام مناسب وو، اول خو هغوئ داسې وئیلی وو چې کله مونږ ته الله جل جلاله اوفرمائی چې دا زما کتاب دې نو بیا

ئې مونږ منو. [او ددې قصه مخکښې تېره شوې ده] غرض دا چې هغه اويا کسان وو چې موسى عليه السلام سره کوه طور ته تلي وو. واپس چې راغلل نو دې خلقو ګواهي ورکړه مګر په دې شهادت کښې ئې دخپله طرفه دومره د خانه خبرې اوکړې چې الله جل جلاله په آخر کښې دا فرمائيلي وو چې ستاسو څخه څومره کېدې شي نو اوکړه او چې ستاسو څخه نه کېږي نو هغه تاسو ته معاف دی. نو څه شرارت، څه د عملونو مشقت شو. او څه ئې په دې کښې دخپله طرفه حيلې جوړې کړې، غرض دا چې صفا ئې اووئيل چې مونږ خو پدې کتاب باندې عمل نشو کولې. الله جل جلاله فرښتوته حکم اوکړئ چې د کوه طور يوه غټه ټکړه د دوئ په سرونو باندې را اوچته کړئې چې دا اومنئ ګنې درباندې دا درغوزاروؤ. آخر د مجبورئې څخه ئې اومنل.

**د يوې شبهې ازاله**: دلته دا شبه کېديشي چې دين خو اکراه نشته دې، دلته اکراه ولې کړې شوې ده؟ نو ددې جواب دادې چې اکراه په ايمان باندې نه ده بلکه اول په خپله خوښه اسلام قبلول او ددې خلاف د بغاوت وجه ده. د باغيانو سزا په ټولو حکمتونو کښې عامه او د مخالف او دښمن څخه جدا وی. دوئ د پاره هر حکومت کښې دوه لارې وی. يا اطاعت قبول کړنې يا به تاسو قتل کولې شئ. په دې وجه اسلام کښې د مرتد سزا قتل ده. د کفر سزا قتل نه ده.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | تَوَلَّيْتُمْ | مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ | | |
| خو بيا | واپس شوئ تاسو | روستو د دغه وعدې نه | | |
| [خو دغې پخې [وعدې] نه پس هم تاسو د خپلو لوظونو نه واپس اوګرزېدئ | | | | |
| فَلَوْلَا | فَضْلُ اللّٰهِ | عَلَيْكُمْ | وَرَحْمَتُهٗ | لَكُنْتُمْ |
| نو که چرې نه وې | فضل د الله | په تاسو باندې | او رحمت د هغه | نو خامخا به شوې وئ تاسو |
| نو که د الله مهرباني او رحمت درباندې نه وې [او نرمی ئې درسره نه وې کړې] نو تاسو به [د خپل دې عمل په وجه] | | | | |
| مِّنَ الْخٰسِرِيْنَ ۝ | | | | |
| دنقصان موندونکو نه | | | | |
| د تاوانيانو څخنی وئ [او هلاک شوې به وئ] | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

ددې باوجود تاسو دوباره د (صحيح لارې) نه وګرځيدئ پس که د الله تعالى فضل او رحمت په تاسو باندې نه وې نو تاسو به ضرور په نقصان کښې پريوتونکو خلقو کښې شامل شوې وئ.

## خلاصه تفسير

﴿ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ﴾ بيا تاسو ددغې لوظ اوقول نه پس هم [ددې نه] واوړيدئ ﴿فَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ﴾ نو که په تاسو دالله فضل او رحم نه وې [نو ددې وعدې ماتولو مقتضا او غوښتنه خو داوه چه] ﴿لَكُنْتُمْ مِّنَ الْخٰسِرِيْنَ﴾ ضرور به تاسو [سمدستی] تباه [او هلاك] شوی وې [خو مونږ دعام رحمت او مهربانئ په وجه د دنيوی ژوند ترختميدو پورې تاسو له ډيل او ملهت درکړې دې. خو ترکومه؟ آخر به پس د مرګه دعملونو په وبال کښې مبتلا شئ].

**فائده** د الله جل جلاله رحمت دنيا کښې عام دې هر مؤمن او کافر دپاره دې. او ددې اثر عافيت او

دنياوي راحت دي خاص رحمت به آخر كښې وي. او ددې اثر به نجات او د الله ﷻ قرب وي.
په ظاهره خو ددې آيت مبارك د آخري حصې مخاطب هغه يهوديان دي چې د نبي كريم ﷺ په زمانه كښې موجود وو. په حضور نبي كريم ﷺ باندې ايمان نه راوړل هم وعده خلافي ده. په دې وجه ئې دوئ هم د وعده خلافو په دائره كښې شامل كړل او د مثال په طور اووئيلې شو چې په دې باندې هم مونږ په تاسو باندې په دنيا كښې هم عذاب نه دې نازل كړې لكه څنګه چې مو په وړاندينو وعده خلافو باندې نازل كړې وو، دا صرف د الله ﷻ رحمت دې او د حديث پاك دمفهوم مطابق دداسې عذابونو نه راتلل د حضور نبي كريم ﷺ د بعثت په بركت سره دي په دې وجه څينې مفسرينو د فضل او رحمت تفسير د محمد ﷺ بعثت ګرځولې دی ددې مضمون دتائيد دپاره د تيرو شوؤ بې ايمانو يو واقعه راتلونكو آيتونو كښې بيانيږي

| اعْتَدَوْا | الَّذِيْنَ | عَلِمْتُمُ | وَلَقَدْ |
|---|---|---|---|
| چې تجاوز ئې كړې وو | دهغه كسانو | معلومه ده تاسو ته قيصه | او خامخا |

او تاسو هغه كسان ښه پيژنئ چې د خالي په ورځ ئې نافرماني

| خَاسِـِٕيْنَ | قِرَدَةً | كُوْنُوْا | لَهُمْ | فَقُلْنَا | فِي السَّبْتِ | مِنْكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ذليلان | شادوګان | شئ | هغوئ ته | نو اوونيل مونږ | په ورځ د خالي كښې | ستاسو نه |

[چه دمهيانو نيول دی] كړې وه | نو مونږ ورته اوونيل چې خوار اوذليله د شادوګانو شكلونه اختيار كړی

| بَيْنَ يَدَيْهَا وَمَا خَلْفَهَا | لِّمَا | نَكَالًا | فَجَعَلْنٰهَا |
|---|---|---|---|
| اودروستو راتلونكې نسل دپاره | دهغه وخت خلقو دپاره | يو عبرت | پس اوګرځوله مونږ دا واقعه |

نو مونږ دغه واقعه دهغه زمانې [دخلقو دپاره] او د راتلونكو خلقو دپاره عبرت اوګرزوله [اودغه شان]

| لِّلْمُتَّقِيْنَ | وَمَوْعِظَةً |
|---|---|
| دپاره دپرهيزګارانو | اونصيحت |

د پرهيزګارو خلقودپاره مو نصيحت اوګرځولو

## آسان ترجمه قرآن

او تاسو خپل هغه خلق ښه پيژنئ چه د خالي د ورځ په معامله كښې د حد نه تير شوي وو پس مونږ هغوی ته وئيلي وو چه ذليله شادوګان جوړ شئ بيا مونږ دا واقعه د هغه وخت د خلقو او روستو خلقو دپاره عبرت او ويريدونكو دپاره نصيحت جوړه كړه.

## خلاصه تفسير

﴿وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ الَّذِيْنَ اعْتَدَوْا مِنْكُمْ﴾ او تاسو ښه پيژنئ دهغه خلقو حال چا چه له تاسو نه [دشرع دحد نه] تيريدل كړي وو په باره [ددې حكم كښې چه] ﴿فِي السَّبْتِ﴾ دخالي دورځې [سره يئ تعلق لرلو چه په دې ورځ به دكبانو [ماهيانو] ښكار نه كوئی] ﴿فَقُلْنَا لَهُمْ﴾ نو مونږ دوی ته اووئيل [دخپل قهر په تكويني حكم سره د دوی د شكلونو مسخ كولو دپاره] ﴿كُوْنُوْا قِرَدَةً خَاسِـِٕيْنَ﴾ چه تاسو بيزوګان ذليله جوړشئ [ددې په وجه هغوی د بيزوګانو په قالب كښې وران شكلې جوړ شو]

﴿فَجَعَلْنَاهَا نَكَالًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهَا وَمَا خَلْفَهَا﴾ بيا مونږ دے لره يو [مثال د] عبرت جوړ کړو هغه خلقو لره هم چه ددغې قوم همزولي وو او هغه خلقو لره هم چه روستو زمانے کښې به راتلوونکی وو او [هم دا رنګ دا واقعه] ﴿وَمَوْعِظَةً لِلْمُتَّقِينَ﴾ دنصيحت موجبه جوړه کړه [الله ﷻ] څخه ويريدونکو لره.

**فائده:** د بنی اسرائيلو دا واقعه هم د داؤد ؑ په زمانه کښې شوې ده. بنی اسرائيلو دپاره د خالی ورځ ډېر عزت منده او د عبادت دپاره مقرر وه. او په دې ورځ باندې د ماهيانو يعنی کبانو ښکار هم منع وو. دا خلق د سمندر په غاړه باندې آباد وو. اود کبانو ډېر شوقيان وو. دا حکم ئې او نه منلو او ښکارئې اوکړو. نو په دې باندې د الله ﷻ د طرف داسې عذاب نازل شو چې ددوئ صورتونه مسخ شو. اودرې ورځې پس ټول مړهٔ شو.

دا واقعه چې چا ليدلې وه هغه خلق په دوه قسمه دی. يعنی تابعدار او بل نافرمان. نو دا واقعه نافرمانو دپاره پداشان وه چې دوئ توبه ا وباسی، نو دې ته ئې نَكَالًا ا ووئيل، او تابعدارو دپاره دا واقعه په تابعدارئی باندې د قائم پاتې کيدو دپاره وه نو په دې وجه ئې دې ته موعظة ا ووئيل.

## معارف اومسائل

**دينی معاملاتوکښې داسې يوحيله جوړول حرام دی چه ورسره اصلی حکم شرعی باطل شی:** قوله تعالٰى: ﴿وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ الَّذِينَ اعْتَدَوْا مِنكُمْ﴾ په دې آيت کښې ديهوديانودحدنه تيريدل ئې ذکرکړل اوهم دائې د عذاب سبب اوښودلو، درواياتونه ثابته ده چې داپه ښکاره ډول دحکم شرعی نه خلاف کار کول نه ووبلکه داسې حيلې اوچلونه ووچه ورسره دحکم شرعی باطليدل لازم وو، مثلا د خالی په ورځ دکبانوپه لګئ پورې مزې اوتار تړل اودهغې بل سردزمکې په يوځيزپورې تړل چې ايسار پاتې شی بيائې داتوارپه ورځ رانيول اوخوړل دا داسې يوه حيله ده چې حکم شرعی ورسره ختميږی بلکه دې پورې خنداکول دی، په دې وجه ئې داسې چلبازان،غټ سرتيزه اوسرکشه اونامنونکی اوګرځول اوعذاب ئې پرې راوستو،

خودې نه هغه دفقهی حيلوحراموالې نه ثابتيږی چې پکښې ځنې پخپله رسول الله ﷺ ښودلی دی مثلاهرکله چې په يوسيراعلی کهجورو،دوه سيره ادنی [کمزورې] کهجورې اغستل سود اوحرام دی نوددې دپاره داسې يوحيله پخپله رسول الله ﷺ ښودلې ده چې د جنس تبادله د جنس سره مه کوئی بلکه د قيمت په ذريعه خرڅول رانيول کوئی[1] مثلادوه سيره خرابې کهجورې په دوه درهمه خرڅې کړې شی اوپه هغې بيايوسيراعلی کهجورې واغستې شی، چنانچه داسې قسم حيله کول دشرعی حکم تعميل کول دی داهغه حيله نه دی ګڼړل پکارلکه چې يهودوبه دشرعی حکم دباطلولو په صورت کښې کوله ځکه چې دی سره دشرعی حکم تعميل کول غرض دی نه چې دهغې باطلول اودحرامونه دبچ کيدودپاره داسې نورې حيلې هم فقهاؤښودلی دی،

**ديهودودشکلونودوړانولو واقعه!** په تفسيرقرطبی کښې دی چې اول خوپه قسماقسم حيلو او چلونو سره دخالی په ورځ دکبانوښکار،داسې کيدوچه دې حال ته راؤرسيدل چې په ښکاره به ئې بې حيلې کبان نيول،دوئ په دؤوډلو کښې داسې تقسيم شول چې يوه ډله د علماء او نيکانو

---

[1] ) مشكوٰة، كتاب البيوع، باب المنهى عنها من البيوع: ۱/ ۲۴۵

خلقو وه چې هغوئ لره کار نه منع کول چې منع نه شونو بانکاتې ئې ورسره اوکړو او ددغې آبادئ په یوې بیله برخه کښې ئې ځان له استوګنه شروع کړه، او دا کلی یې دوه حصې کړو په یوه حصه کښې دغه نافرمان پاتې شو، او بله حصه کښې عالمان او صالحان اوسیدل، یوورځ دغه عالمان او صالحان خلق څه ګوري چې دبدانو په هغه برخه کښې چپه چپائی ده چې ورغلل وې کتل نو هغوئ ټول دبیزوګانو په شکل شوي وو، اودحضرت قتاده رضي الله عنه په روایت، ځوانان ئې دبیزوګانو او بوډاګان ئې د خنزیرانو په شکل شوی وودې خلقو خپل خپلوان پیژندل خواته ئې راغلل اوژړل به ئې(۱)،

**دوران شوی شکلونوخاوندانونسل نه چلیږی بلکه بیخی ختمیږی** په دې باره کښې صحیح خبره دا ده چې پخپله درسول الله ﷺ نه په روایت دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه په صحیح مسلم کښې منقول ده چې څنې خلقو دخپلې زمانې دبیزوګانو او خنزیرانو په باره کښې تپوس اوکړو چه آیا دا هم هغه یهودیان بیزوګان او خنزیران دی، هغوئ ﷺ ورته اوفرمائیل چې الله تعالی یو قوم ته دهغوئ دشکلونو ورانولو عذاب ورکړی نو دهغوئ نسل نه پائی، [بلکه څو ورځو کښې هلاک او ختم شی] بیائې اوفرمائیل چې بیزوګان اوخنزیران اول نه هم دنیاکښې موجوده وو(۲)[او اوس هم موجودی خو دوران شوؤشکلونو والاخلقو سره ددوئ هیڅ رشته، تعلق اوجوړ نشته]

په دې موقعه څینې مفسرینو رحمهم الله دصحیح بخاری په حواله په بیزوګانو کښې دزنا کولو په سزاکښې دسنګساریٔ سزانقل شوې ده خودا واقعه دصحیح بخاری په نسخو کښې موجونه ده اونه دا دروایت له مخې صحیح ده، قرطبی رحمه الله په دې مقام ددې تفصیل بیان کړې دې.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَاِذۡ | قَالَ | مُوۡسٰی | لِقَوۡمِهٖۤ |
| [ یاده کړې هغه واقعه کله چې | [ اوونیل | [ موسی | اقوم خپل ته |

[ او [یادکړئ] هغه وخت چې موسی خپل قوم ته اوونیل

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِنَّ اللّٰهَ | یَاۡمُرُکُمۡ | اَنۡ تَذۡبَحُوۡا | بَقَرَةً ؕ | قَالُوۡۤا |
| چې بیشکه الله | حکم کوی تاسو ته | چې ذبحه کړئ تاسو | یوه غوا | اوونیل هغوئ |

دالله حکم دې چې تاسو [دقاتل معلومولو دپاره] یوه غوا حلاله کړئ(۳) [ هغوئ ورته اوونیل

(۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ۱/ ٤٤

(۲) صحيح مسلم، كتاب القدر، باب بيان أن الأجال والأرزاق: ۲/ ۳۳۸

(۳) **د خپل تره قتل کول** :- ددې پوره واقعه داده چه په بنی اسرائیلو کښې یو سړې وو چه ډیر مالدار وو. دده نارینه اولاد نه وو. صرف یوه لور ئې وه او یو وراره ئې وو. کله چه ئې دې وراره اوکتل چه دا بوډها هلو مړ کیږی نه نو د وراثت په باره کښې ورته خیال راغلو چه څه دې ولې قتل نه کړم؟ چه دده لور سره نکاح اوکړم او دقتل تهمت په نوروباندې اولګوم او دیت هم وصول کړم او دمقتول مالك هم جوړ شم په دې شیطانی خیال کښې هغه باحوصله شو او یوورځ ئې موقع بیا مونده اوخپل تره ئې قتل کړو. دبنی اسرائیلو ښه خلق ددوی دجنګ جګړو نه تنګ شو او جدا شو ترې اوپه بل ښار کښې اوسیدل. دماښام نه به ئې دخپلې قلعې دروازه بندوله سحر به ئې بیرته کوله ...[باقی په راروانه صفحه...

| أَتَتَّخِذُنَا | هُزُوًا ؕ | قَالَ | أَعُوذُ | بِاللَّهِ | أَنْ أَكُونَ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| آيا ته نيسئ موږ لره | په ټوقو سره | اوونيل موسی | زه پناه غوارم | په الله سره | چې زه شم |

آياته موږ پورې ټوقې کوې | هغه [موسی علیه السلام ورته] اوونيل چې زه په الله د دې خبرې نه پناه

مِنَ الْجٰهِلِيْنَ ۝

دجاهلانو نه |

غوارم [چې د الله د حکم په بيانولو کښې] د ټوقو کونکو نه شم|

## آسان ترجمه قرآن

او (هغه وخت ياد کړئ) چه موسیٰ علیه السلام خپل قوم ته ووئيل چه الله تعالیٰ تاسو ته حکم کوی چه يوغوا حلاله کړئ هغوی ووئيل چه آيا ته موږسره ټوقې کوې؟ موسیٰ علیه السلام ووئيل چه څه ددې خبرې نه پناه غوارم چه څه (داسې) ناپوهو کښې شامل شم (چه په ټوقو کښې دروغ وائی).

## خلاصه تفسير

او [هغه زمانه ياده کړئ] ﴿وَإِذْ قَالَ مُوسٰى لِقَوْمِهٖٓ إِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُكُمْ﴾ کله چه موسی ﷺ خپل قوم ته اوفرمائيل چه الله ﷻ درته حکم درکوی [که ددې مقتول دقتل پته لګول غوارئ نو] ﴿أَنْ تَذْبَحُوا بَقَرَةً ۖ قَالُوٓا أَتَتَّخِذُنَا هُزُوًا ؕ﴾ يوه غوا به ذبح کړئ هغوی دا وئيل شروع کړل چه آيا ته موږ پورې خندا کوے؟ [.چرته دقاتل پته لګول اوچرته دځناور ذبح کول، ددې څه مناسبت دې] ﴿قَالَ أَعُوذُ بِاللّٰهِ أَنْ أَكُونَ مِنَ الْجٰهِلِيْنَ ۝﴾ وے فرمائيل چه پناه غوارم د الله چه شم د جاهلانو نه [چه په احکامو دخدائې کښې به فرق راولم.

**فائده:** دا واقعه څه داشان وه چې په بنی اسرائيلو کښې يو قتل شوې وو. او ددې وجه د مشکوة شرح مرقاة کښې دا ليکلې ده چې يو سړی د مقتول لور سره د وادهٔ کولو دپاره خواست اوکړو. خو هغه انکار اوکړو. اودې سړی هغه قتل کړو. د قاتل معلومات نه کيدل او قاتل لاپته وو.

او معالم د علامه کلبی د قول نقل کړې دې چې تر دغه وخته پورې په تورات کښې ددې متعلق څه قانون نه وو نازل شوې.ددې څخه معلوميږی چې دا واقعه د تورات دنزول څخه وړاندې

....باقی د تير مخ] هيڅ يو مجرم به نې نه پريښودلو. دې هلك (وراره) د خپل تره لاش واخستلو او د قلعې پاټك سره ئې واچولو. واپس راغلو او خپل تره ئې تلاش کولو. بيائې هله ګله جوړه کړه چه زما تره چا قتل کړې دې او په دې قلعې والو باندې ئې تهمت اولګولو. اوده د ديت درقم مطالبه اوکړه. هغوی ددې قتل اود ديت نه انکارا وکړو او وې وئيل موږ ترېنه نه يو خبر. خو دې په ضد شو تردې پورې چه خپل ملګری ئې واخستل او جنګ ئې جوړکړو. **موسی ﷺ ته تلل:-** داخلق عاجزه شو او حضرت موسی ﷺ ته راغلل او واقعه ئې ورته عرض کړه چه انې دالله ﷺ رسوله هيڅ بې هيڅ په موږ باندې دقتل تهمت لګوی حالانکه موږ برئ الذمه يو. حضرت موسیٰ ﷺ دالله ﷻ نه دعا اوکړه او د هغه ذات د طرفنه نه وحی نازله شوه يو غوا ذبحه کړئ. هغوی اوونيل چه انې دالله ﷺ رسوله چرته د قاتل معلومول اوچرته د غوا ذبح کولو حکم؟ آيا ته موږسره ټوقې.کوې څه؟ حضرت موسیٰ ﷺ ورته اوونيل اعوذبالله (دشريعت دمسئلو په وخت کښې) د ټوقې کول د جاهلانو کار دې. دالله ﷻ حکم هم دادې

غرض بنی اسرائیلو موسی ﷺ ته عرض اوکړو چې مونږ غواړو چې قاتل معلوم کړو نو موسی ﷺ ورته د الله ﷻ د حکم مطابق د یو غوا یې د ذبح کولو حکم اوکړو. خو هغوئ د خپل عادت او جبلت مطابق په دې کښې حجتونه راویستل شروع کړل. راتلونی آیتونو کښې ددې تفصیل موجود دې. (۱)

| قَالُوا | ادْعُ | لَنَا رَبَّكَ | يُبَيِّنْ | لَّنَا | مَا |
|---|---|---|---|---|---|
| اووئیل هغوئ | اوغواړه | دپاره زمونږ درب خپل نه | چې بیان کړي | مونږته | چې څنګه ده |
| هغوئ اووئیل زمونږ دپاره د خپل رب نه تپوس اوکړه (۲) | | | | | |

| هِيَ | قَالَ | إِنَّهُ | يَقُولُ | إِنَّهَا | بَقَرَةٌ | لَّا فَارِضٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هغه | اووئیل موسی | چې بیشکه | الله فرمائي | چې وی دې هغه | داسې غوا | چې نه بوډئ وی |
| چه دا غوا به څنګه وی \| هغه [موسی] اووئیل چې الله وائي دا یوه داسې غواده چې نه ډیره زړه ده | | | | | | |

| وَلَا بِكْرٌ | عَوَانٌ | بَيْنَ ذَٰلِكَ | فَافْعَلُوا | مَا | تُؤْمَرُونَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اونه بچئ | بلکه میانه حاله وی | په منځ ددې کښې | پس اوکړئ | هغه | چې دکومې درته حکم کیږی |
| اونه ډیره وړه ده (۳) \| بلکه ددې په مینځ کښې درمیانه ده \| نوتاسوته چه کوم حکم کولې شی په هغې عمل اوکړئ | | | | | |

---

(۱) تفسیر البغوی: ۱/ ۱۰۰

(۲) **عبث تپوسونه کول:** اوس که دا خلق تلي وی اوغوائې ذبح کړې وې نو کافی به وه لیکن هغوی سوالونه شروع کړل او وې وئیل چه هغه غوا څنګه پکار ده؟

(۳) **د غوا صفتونه:** - په دې باندې حکم نازل شو چه نه ډیره بوډئ ده اونه ډیره وړه ده (بلکه ) خوانه ده. هغوی اووئیل چه داسې غواګانې خو ډیرې ه‌ی دا اوفرمائې چه دهغې رنګ څنګه دې؟ وحی راغله چه دهغې رنګ بالکل صفا زیړه ده. او هر کتونکی ته ډیره ښکلې ښکاری. بیائې اووئیل چه حضرت داسې غواګانې خوډیرې دی. څه بل خاص صفت ئې بیان کړئ. وحی راغله چه هغې باندې هېڅ کله هم ییوې نه ده شوې ، پټو ته پرې اوبه نه دی ورکړې شوی دهر عیب نه بالکل پاکه ده. یو رنګ ئې دې ، هېڅ داغ پرې نشته دې ،چه څومره به دوی سوالونه کول دومره په حکم کښې سختی راتله.

**د پلار تابعداری :-** اوس دداسې غوا په تلاش کښې اووتل اوهغه صرف یو هلك سره ملاؤ شوه. دا ماشوم دخپل پلار ډیر زیات فرمانبردار وو. یو خل دده پلار اوده وو اودنقدو د پیټۍ چابی دده سر ته پرته وه ، یو سوداګر یو قیمتی هیرا خرڅوله . هغه اووئیل چه څه دا خرڅول غواړم ،هلك ورته اووئیل چه څه به ئې درنه واخلم. اوددې قیمت اویا زره مقرر شو. هلك ورته اووئیل چه لږ صبر اوکړه چه کله زما پلار پاسی نو څه به دهغه نه چابی واخلم او تاته به قیمت درکړم. هغه اووئیل که اوس رقم راکوې نو څه به ستا نه لس زره کمې واخلم. هلك اووئیل چه نه څه خپل پلارنه پاسوم که ته لږ شان ایسار شې نو څه به تاته د اویازروپه ځائې اتیا زره درکړم. همداشان یوطرفنه او بل طرفنه کمې زیاتې شروع شو تر دې پورې چه تاجر ورته دیرش زره قیمت مقرر کړو. که ته اوس پلار پاسوې اوماته رقم راکړې نو څه ستا نه دیرش زره واخلم. هلك ورته اووئیل که ته لږ ایسارشې چه زما پلار پاسی نو څه به تاته یو لاکهه درکړم. آخر هغه خفه شو او خپله هیره ئې واپس واخستله او لاړو. د پلار ددې بزرګئ او دهغه د راحت او دهغه دادب خیال ساتلو په احترام کښې الله ﷻ ددې هلك نه ډیر خوشحاله شو او ده ته ئې دا غوا ورکړه.

**هلك نه دغوا مطالبه کول:-** هرکله چه بنی اسرائیلوداقسمه غوابیا مونده اوددې هلك نه بغیر بل چا سره داسې نه وه ، نو ده ته وائي چه ددې غوا په بدله کښې دوه غواګانې واخله ... [باقي په راروانه صفحه...

قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَّنَا مَا لَوْنُهَا ؕ

اووئیل هغوئ|اوغواړه |دپاره زمونږ| درب خپل نه |چې بیان کړي| مونږ ته |اچې څه دي| رنګ دهغې

هغوئ اووئیل چې دخپل رب نه زمونږ دپاره بیا تپوس اوکړه چې مونږ ته دهغې رنګ اوښائی

قَالَ اِنَّهٗ يَقُوْلُ اِنَّهَا بَقَرَةٌ صَفْرَآءُ ۙ فَاقِعٌ لَّوْنُهَا تَسُرُّ

اووئیل موسی|چې بیشکه | الله وائی | چې وی دې هغه غوا| زیړه |صاف دې وی |رنګ دهغې|چې خوشحالوی

هغه [موسی] اووئیل چې الله پاک وائی دایوه تکه زیړه غوا ده |رنګ یې صفا دې چې [په کتلو سره] زړونه خوشحالوی

النّٰظِرِيْنَ ۞ قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَّنَا

کتونکولره | اووئیل هغوئ| اوغواړه | دپاره زمونږ|د رب خپل نه | چې بیان کړي مونږ ته

هغوئ اووئیل چې ته زمونږ دپاره د خپل رب نه یوځل بیا تپوس اوکړه چې مونږ ته [د کار کولو په اعتبارسره]

مَا هِيَ ۙ اِنَّ الْبَقَرَ تَشٰبَهَ عَلَيْنَا ؕ وَاِنَّآ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ

چې څه قسم ده هغه| بیشکه غواګانې| ګډې وډې شوې|په مونږباندې|او مونږ |که اوغواړي| الله |

اوښائی| چې داڅنګه غوا ده | ځکه چې غواګانې په مونږ باندې ګډې وډې شوې |اوکه الله اوغواړي

لَمُهْتَدُوْنَ ۞ قَالَ اِنَّهٗ يَقُوْلُ اِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا ذَلُوْلٌ

خامخالارموندونکی یو | اووئیل موسی | بیشکه | الله وائی | چې هغه |داسې غوا ده| چې نه ده کار کونکې

نومونږبه ئې خامخابیاموندې شو|هغه [موسی]اووئیل الله فرمائی چې دایوه داسې غوا ده چې جوتې نه ده

.....باقی د تیر مخ] خو هغه هلك انكار كوی. بیا وائی چه درې غواګانې واخله خو هغه هلك نه راضی كیږی . هغوی تر لسو (غواګانو) پورې شمیر اورسو خو دې نه منی اودا خلق حضرت موسی ﷺ ته شکایت کوی. حضرت موسی ﷺ ورته اووئیل چه څه دې غواړې هغه ورکړئی او غوا ترې واخلئ. آخر د غوا د وزن برابر ورته سره زر ورکړې شو نو بیا دې هلك خپله غوا خرڅه کړه. دا برکت الله ﷻ دې هلك ته د مور پلار دخدمت په بدله کښې ورکړو. او دې ډېر زیات محتاج وو او دده پلار وفات شوې وو. اودده کونډه مور ډیره غریبه وه.

**د غوا اخستل:-** غرض دا چه غوا ئې ترې واخستله او دا ئې ذبح کړه او ددې دبدن یو حصه ئې دمقتول په جسم باندې اووهله نو دالله ﷻ په قدرت سره هغه مړې ژوندې شو اودهغه نه تپوس اوکړې شو چه ته چا قتل کړې ئې ؟ هغه اووئیل زما وراره ځکه چه هغه زما مال واخلی او زما لور سره نکاح اوکړی ، بس دومره ویناوه او هغه دوباره مړ شو اودقاتل معلومات اوشو. او په بنی اسرائیلو کښې جنګ چه کیدونکې وو ختم شو. اودا فتنه ختمه شوه. دهغه مرده دا وراره خلقو اونیولو اودهغه دا مکار توب ښکاره شو اوهغه ددې په بدله کښې قتل کړې شو. داواقعه مختلفو الفاظو سره روایت کړې شوې ده. په ظاهره دا معلومیږی چه دا واقعه دبنی اسرائیلو ده چه ددې تکذیب یا تصدیق مونږ نشو کولې. خو روایت جائزدې. او په دې آیت کښې هم بیانیږی چه انې بنی اسرائیلو زما هغه نعمت هم مه هیروئی چه م دعادت خلاف د معجزې په طور دیو غوا (دغوښې ټکړې ) په لګولو سره هغه مرده ژوندې کړو او دهغه مقتول اود قاتل معلومات اوشو. او یو خوریدونکې فتنه ختمه شوه.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تُثِيْرُ | الْأَرْضَ | وَلَا تَسْقِي الْحَرْثَ | مُسَلَّمَةٌ | لَا شِيَةَ | فِيْهَا |
| چي اړوي | زمکه | اونه اوبه کوي پټي [فصل] | صحيح سالمه ده | نښته داغ | په هغې کښې |
| چه زمکه يوې کوي يا اوبه خورکوي بالکل سالمه ده [د کار نه کولو په وجه] هيڅ داغ پرې نښته | | | | | |
| قَالُوا | الْـٰٔنَ | جِئْتَ بِالْحَقِّ | فَذَبَحُوْهَا | وَمَا | كَادُوْا |
| اوويل هغوي | اوس راغلې ته | حق خبرې ته | بيا ذبحه کړه هغوي | هغه | اونه وو نژدې |
| هغوي اوويل چې هيله اوس دې پوره تفصيلي خبره اوکړه نو اغوا ئې پيدا کړه او غوائي حلاله کړه | | | | | |
| يَفْعَلُوْنَ | | | | | |
| چې کړې ئې وې دا کار | | | | | |
| اونژدې وو چه دا کار ئې نه وو کړې | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

هغوي ووئيل چه ته څمونږ دخاطره دخپل رب نه تپوس وکړه چه مونږ ته صفا صفا ووائي چه هغه غوا به څنګه وي؟ هغه ووئيل چه الله تعالی فرمائي چه هغه غوا دې داسې وي چه نه ډيره بوډئ وي او نه ډيره وړه وي (بلکه) ددې دواړو په مينځ کښې دې وي بس اوس چه تاسو ته کوم حکم درکړې شوې دې هغې باندې عمل وکړئ دوی ووئيل چه ته څمونږ د خاطره الله ته درخواست وکړه چه مونږ ته صفا صفا ووائي چه د هغې رنګ به څنګه وي؟ موسٰی عليه السلام ووئيل چه الله تعالی فرمائي چه هغه د داسې تيز زيړ رنګ غوا ده چه د کتونکو زړه خوشحالوي" دوی (بيا) ووئيل چه ته څمونږ د خاطره الله ته درخواست وکړه چه مونږ ته صفا صفا ووائي چه دا غوا به څنګه وي؟ دې غوا خو مونږ په شک کښې اچولي يو که الله وغوښتل نو مونږ به ضرور دا معلومه کړو. موسٰی عليه السلام ووئيل چه هغه دې داسې غوا وي چه په کار کښې جوته کولو سره زمکه نه اړوي، او نه پټې اوبه کولې شي چه پوره طريقې سره صحيح سالمه وي او په هغې څه داغ نه وي هغوی ووئيل چه آو اوس تا پوره پوره پته راوړه ددې نه روستو هغوی دا حلاله کړه او دا اميد نه وو چه دا کار ئې کړې وي.

## خلاصه تفسير

﴿قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَّنَا﴾ دغه خلقو وئيل شروع کړل چه تاسو تپوس اوکړئ مونږ دپاره دخپل رب نه چه مونږ ته بيان کړي ﴿مَا هِيَ﴾ چه ددې [غوا] څه صفتونه دی؟. ﴿قَالَ إِنَّهُ يَقُوْلُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا فَارِضٌ وَّلَا بِكْرٌ﴾ هغوی اووئيل چه هغه [زما دتپوس په جواب کښې] دا فرمائی چه هغه دے داسې غوا وی چه نه خو زړه وی او نه ډير بچې [وړه] وی [بلکه] ﴿عَوَانٌ بَيْنَ ذٰلِكَ﴾ دمضبوط عمر وی، د دواړو عمرونو تر مينځه اوس [زياتی خبرې په کښې مه جوړونی بلکه] ﴿فَافْعَلُوْا مَا تُؤْمَرُوْنَ﴾ اوکړئی هغه څه چه حکم ئے درته شوې دې ﴿قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَّنَا﴾ وے وئيل [بيا دا هم] تپوس اوکړئی زمونږ دپاره دخپل پروردګار نه چه مونږ ته دا [هم] بيان کړی ﴿مَا لَوْنُهَا﴾ چه رنګ به يئ څنګه وی؟ ﴿قَالَ إِنَّهُ يَقُوْلُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ صَفْرَآءُ فَاقِعٌ لَّوْنُهَا تَسُرُّ النّٰظِرِيْنَ﴾ هغوی اووئيل چه [ددې متعلق] الله ﷻ دافرمائی چه هغه دے دزيړ رنګ غواوی چه رنګ ئے شوخ زيړ يعنی تک زيړ وی چه ليدونکو ته په نظر کښې.

ښه رازي ﴿قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ﴾ وے وئیل چه [دا خل بیا] زمونږ دپاره دخپل رب نه معلومکړه چه [دا ول خل دتپوس جواب زیات په وضاحت سره] ﴿يُبَيِّنْ لَّنَا مَا هِيَ ۙ اِنَّ الْبَقَرَ تَشٰبَهَ عَلَيْنَا ؕ﴾ مونږ ته بیان کړی چه ددې صفتونه څه څه دی؟ ولې چې دې غوا کښې [څه قدرې] شك [دا پاتې ] دې [چه دا به معمولی غوا وی یا کوم یو بل څه عجیبه؟ چه په کښې دقاتل د تحقیق څه خاص اثر وی] ﴿وَاِنَّآ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ لَمُهْتَدُوْنَ﴾ او مونږ به ضرور انشاءالله [دا خل] سم پوهه شو ﴿قَالَ اِنَّهٗ يَقُوْلُ﴾ [موسی علیه السلام جواب ورکړوچه الله داسې فرمائی ﴿اِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا ذَلُوْلٌ تُثِيْرُ الْاَرْضَ﴾ چه دغه [څه عجیبه څاروې نه دې هم دغسې معمولی غوا ده البته غووریز دے وی چه ددغه ذکر شوو صفتونو سره سره]نه خوئے قلبه کړې وی چه زمکه پرې اړوی ﴿وَلَا تَسْقِي الْحَرْثَ ۚ﴾ اونه[کوهی ته جوت شوې وی چه] پرے باندې فصل اوبه کولے شی ﴿مُسَلَّمَةٌ لَّا شِيَةَ فِيْهَا ؕ﴾ غرض داچه هر قسم عیب نه] سالم وی او په دې کښې [هیڅ قسم] داغ نه وی [ددې په اوریدو ئے] ﴿قَالُوا الْـٰٔنَ جِئْتَ بِالْحَقِّ ؕ﴾اووئیل چه [هو] اوس تاسو پوره خبره اوکړه [غرض داچه څاروے ئے اولټولو او خرید ئے کړو او وائې خستې] ﴿فَذَبَحُوْهَا وَمَا كَادُوْا يَفْعَلُوْنَ﴾ بیایئ ذبح کړو په ظاهره خو ددې کار کوونکی ښه نه ښکاریدل.

**فائده:** حدیث پاك کښې دی چې که هغوئ حجتونه نه نیول نو په هغوئ باندې به دومره سختئ نه وې. او د دوئ دپاره به هر قسم بقره ذبح کول کافی وو[1].

| |
|---|
| وَاِذْ　　قَتَلْتُمْ　　نَفْسًا　　فَادّٰرَءْتُمْ　　فِيْهَا ؕ |
| | اوکله چې | مړکړو تاسو | یوسړې | نو په یوبل موالزامونه لګول | په باره دمړی کښې |
| اوټردې وو چه دا کار ئې نه وو کړې] او[یاد کړئی کله] چې تاسویوسړې اووژلوبیا [دقاتل په حقله]پخپلو |
| وَاللّٰهُ　　مُخْرِجٌ　　مَّا كُنْتُمْ　　تَكْتُمُوْنَ　　فَقُلْنَا　　اضْرِبُوْهُ |
| اوالله | ښکاره کونکې وو | دهغه څه چې تاسووئ | چه پټول مو | نو اووئیل مونږ | اووهئ دامړی |
| کښې په جګړه شوې[اوالله هغه څیز ښکاره کولو کوم چې تاسوپټولو[2] ] نومونږاووئیل چې دامقتول دغوا په یوه حصه[3] |

[1] ) روح المعاني تحت هذه الآية: ۱/ ۲۵۹، ومجمع الزوائد (بألفاظ مختلفة) رقم الحديث: ۱۰۸۳٤

[2] ) **الله ستو څیزونو ښکاره کونکې دی:-** په صحیح بخاری کښې **(ادارئتم)** معنی ده چه تاسو اختلاف کړې دې . (صحیح بخاری) مجاهد رحمه الله وغیره نه هم دا روایت دې . (ابن ابی حاتم) مسیب بن رافع رحمه الله وائی چه کوم سړې په اووه کورونو کښې پټ شی او نیك عملونه کوی نو الله تعالی به دده نیکئ ظاهرې کړی. داشان که څوك په اووه کورونو کښې پټ شی او دبدئ کار کوی نوالله تعالی به دده دا بدی ښکاره کړی. بیائې دا آیت تلاوت کړو چه **(وَاللّٰهُ مُخْرِجٌ مَّا كُنْتُمْ تَكْتُمُوْنَ)**

[3] ) **دغوا په څه حصه د مړی وهل:-** په دې خائې کښې هم هغه د تره او وراره واقعه بیانیږی چه ددې په وجه هغوی ته د غوا د ذبح حکم شوې وو او وئیلې شوی وو چه ددې یو ټکړه واخلی او په دې باندې د مقتول بدن اووهی ، هغه ټکړه د کوم خائې وه ؟ ددې بیان خو نه قران پاك کښې شته دې اونه په څه صحیح حدیث کښې او نه مونږ ته ددې په معلومیدو سره څه فائده ملاویږی ، د نه دمعلومیدوسره هیڅ نقصان نشته . ښه خبره داده چه دکوم څیزبیان نه وی نو چه مونږ هم په هغې پسې لټیون نه کوؤ . اګر چه بعضو وئیلی دی چه هغه دغضروف نرم هډوکې وو. څوك وائی ... [باقی په راروانه صفحه...

بِبَعْضِهَا ؕ كَذٰلِكَ يُحْيِ اللّٰهُ الْمَوْتٰى ۙ وَيُرِيْكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ

په بوه حصه ددې غوا | درانګې | ژوندی کوی الله | مړی | اوښانی تاسو ته نښې خپلې | دپاره ددې

اووهئ انوژوندې اوګویا به شي | دغه شان به الله | دقیامت په ورځ | مړي ژوندی کوی اوتاسوته دخپلوقدرتونونښې ښائي

تَعْقِلُوْنَ۝

چې تاسو پوهه شئ |

چې تاسو دعقل نه کار واخلئ | (۱)

## آسان ترجمه قرآن

**او (یاد کړئ) چه تاسو یو کس وژلې وو او ددې نه روستود هغې الزام مو په یو بل لګولو او الله تعالی هغه راز ښکاره کوونکې وو کوم چه تاسو پټ کړې وو پس مونږ ووئیل چه دا (مقتول) ددې (غوا) په یوه حصه ووهئ دغه شان الله تعالی مړو لره ژوندې کوی او تاسو ته د (خپل قدرت) نښې ښائي چه تاسو پوهه شئ.**

---

...باقی د تیر مخ] چه هډوکې نه وو بلکه داد پټون غوښه وه. څوك وائی چه د دواړو اوږو په مینځ کښې غوښه وه. څوك وائی چه دژبې غوښه وه. څوك وائی چه دلکئ غوښه وه وغیره . لیکن زمونږ بهتری په دې کښې ده چه څنګه الله ﷻ پټ ساتلی دی مونږ ئې هم پټ اوساتو. ددې ټکړې په لګیدوسره هغه مرده ژوندې شو. او الله ﷻ د هغوی د جګړو فیصله اوکړه اودقیامت په ورځ ئې هم دا دلیل جوړ کړو.

۱) **پنځه ځایه د مرګ نه پس د ژوند ذکر:-** په دې سورت کښې پنځه ځائې کښې دمرګ نه پس ژوندی کیدل بیان شوی دی. یو خو دې آیت ﴿ثُمَّ بَعَثْنٰكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَوْتِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ۝﴾ کښې دی او بل په دې قصه کښې او دریم دهغوی په قصه کښې چه د زرګونو په شمیر وتلی وو او په یو ویران کلی باندې تیر شوی وو. څلورم د ابراهیم علیه السلام دڅلورو مارغانو وژلو نه پس په ژوندی کیدو کښې . او پنځم دزمکې دمړکیدو نه پس ددې دپاره ژوندی کیدو ته په مرګ او ژوند سره تشبیه ورکول دی.

**په بیا ژوند یو دلیل:-** د ابو داود طیالسی رحمه الله یو حدیث دې چه ابو رزین عقیلی رضی الله عنه د نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ مړی الله ﷻ څنګه ژوندی کوی ؟ وې فرمائیل چه کله ته په ویرانه زمکه باندې تیر شوې ئې. وې فرمائیل چه آو ، بیا ئې اوفرمائیل چه بیادې دا شنه کتلې ده ؟ وې فرمائیل چه آو .نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه داشان دمرګ نه پس ژوندی کیدل دی. (مسند الطيالسي)

په قرآن پاك کښې یو بل ځائې کښې دی چه ﴿وَاٰيَةٌ لَّهُمُ الْاَرْضُ الْمَيْتَةُ ۖ﴾ یعنی ددې منکرانو دپاره د امړه زمکه هم یو نښه ده. چه دامونږ ژوندئی کوؤ. اوددې نه دانې راوباسو او دا دوئ خوری اومونږ په دې کښې د انګورو او کهجورو باغونه پیدا کوؤ اوددې څلور واړه طرفونو ته نهرونه بهیږی او دوئ ددې میوې ښه په خوند خوند خوری. حالانکه دا دهغوی دلاسو جوړ شوی یا پیدا شوی نه دی.

**د نبی کریم ﷺ د مړی ژوندی کولو یوه معجزه:-** حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه یو یهودی دیوې وینځې سر په کاڼړی باندې کیخودلو . سرئې ورله مات کړو اوددې کړې (بنګړی) ئې ویستل . هرکله چه ددې پته نبی کریم ﷺ ته اولګیدله نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ددې وینځې نه تپوس اوکړئ چه دا چا قتل کړې ده. خلقو تپوس کول شروع کړو چه آیا ته فلانی قتل کړې ئې ،فلانی قتل کړې ئې؟ هغې به دخپل سر په اشارې سره انکار کولو تر دې پورې چه ددې یهودی نوم راغلو نو دې دسر په اشارې سره اوونیل چه آو. نو دا یهودی ګرفتار کړې شو اودهغه نه باربار تپوس کولو سره هغه اقرار اوکړو نو نبی کریم ﷺ حکم ورکړو چه دده سرهم دهغې وینځې پشان د دوؤ کاڼړو په مینځ کښې مات کړئ. (صحيح بخاري)

## خلاصه تفسیر

﴿وَاِذْ قَتَلْتُمْ نَفْسًا﴾ او[هغه زمانه یاده کړئ]کله چه تاسو خلقو[کښې چا]یوکس اووژلو ﴿فَادّٰرَءْتُمْ فِیْهَا﴾ په یو بل مو ور اړولو ﴿وَاللّٰهُ مُخْرِجٌ مَّا كُنْتُمْ تَكْتُمُوْنَ﴾ او الله لره هغه ښکاره کول منظور ووکوم چه تاسو [کښې مجرمانو او شکی خلقو] پټول غوښتل په دې وجه [دا غوا ذبح کولو نه پس] ﴿فَقُلْنَا اضْرِبُوْهُ بِبَعْضِهَا﴾ مونږ حکم ورکړو چه ددې [مقتول جوسه] دے ددې [غوا] څه ټیکے او ټوټې سره اولګوئ [اورسره په لګولو هغه ژوندے شو ورپسے الله ﷻ د قیامت دمنکرانو په مقابله کښې ددې قیصے نه دلیل نیسی او دمثال په ډول فرمائی چه] ﴿كَذٰلِكَ یُحْیِ اللّٰهُ الْمَوْتٰى وَیُرِیْكُمْ اٰیٰتِهٖ﴾ دغه شان به الله ﷻ [په قیامت کښې] مړی ژوندی کوی او الله ﷻ خپل مثالونه[قدرت] تاسو ته ښکاره کوی ﴿لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ﴾ په دې امید چه تاسو دعقل نه کار واخلئ [اودیو مثال په وجه دبل مثال د انکار کولو نه واوړئ.

**فائده**: هرکله چې دې مرده سره داسې اوکړې شو نو هغه ژوندې شو، هغه د قاتل نوم اوخودلو او بیا زر مړ شو. دې ځائې کښې صرف د مقتول بیان په دې وجه کافی اوګڼړلې شو چې موسی ﷺ ته د وحی په ذریعه معلوم شوی وو چې دا مقتول به رښتیا وائی. ګنی صرف د مقتول به بیان باندې بغیر د شهادت دقتل ثبوت نه کافی کیږی.

دې ځائې کښې دا شبه کول هم صحیح دی چې الله ﷻ ته خو هسې د مړی په راژوندی کولو باندې قدرت حاصل وو، یا به ئې مقتول نه ژوندې کولو او د قاتل نوم به ئې خودلې وې. بیا ددې کار کولو څه ضرورت وو؟ نو خبره داده چې د الله ﷻ هر یو کار دضرورت او مجبورئی په وجه نه وی، بلکه د حکمت او مصلحت دپاره وی. او دهرې واقعې حکمت دالله ﷻ د علم په احاطه کښې راتلې شی. مونږ ددې مکلف نه یو چې دهرې واقعې مصلحت معلوم کړو، او نه دا ضروری دی چې مونږ ته دې د هرې واقعې علم وی. په دې وجه دې پسې اړمیدل [لګیدل] نه دی پکار، او خپل خوږ عمر په دې کښې ضائع کول نه دی پکار. بهتره طریقه داده چې دا دې اومنلې شی او سکوت دې پرې باندې اختیار کړې شی.

| ثُمَّ | قَسَتْ | قُلُوْبُكُمْ | مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ | فَهِیَ | كَالْحِجَارَةِ |
|---|---|---|---|---|---|
| بیا | سخت شو | زړونه ستاسو | روستو ددې نه | نو دغه | دی پشان دکاڼړو |

بیا ددې واقعې نه پس[هم]ستاسوزړونه سخت شو[۱]نودازړونه داسې[سخت]دی لکه

---

[۱] **د قاتل ورارة د قتل کولو نه انکار**:- حضرت ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه ددې مقتول وراره هم دخپل تره دوباره مړ کیدو نه پس دهغه تکذیب اوکړو او وې وئیل چه ده دروغ اووئیل او بیا څه وخت پس د بنی اسرائیلو زړونه هم دکاڼړی پشان سخت شو بلکه ددې نه هم زیات سخت. ځکه چه دکاڼړو نه خو نهرونه راوزی او اوبه ترې بهیږی، بعضې کاڼړی اوشلیږی اوددې نه اوبه روانې شی اګرچه هغه د بهیدو قابلې نه وی، بعضې دالله ﷻ دویرې نه راپریوزی. لیکن ددوی زړونه په څه وعظ او نصیحت سره نه نرمیږی. ددې ځایه داهم معلوم شو چه په کاڼړوکښې پوهه او ادراك شته دې او په بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿تُسَبِّحُ لَهُ السَّمٰوٰتُ السَّبْعُ وَالْاَرْضُ وَمَنْ فِیْهِنَّ وَاِنْ مِّنْ شَیْءٍ اِلَّا یُسَبِّحُ بِحَمْدِهٖ وَلٰكِنْ﴾ ... [باقی په راروانه صفحه

| يَتَفَجَّرُ | لَمَا | مِنَ الْحِجَارَةِ | وَإِنَّ | أَوْ أَشَدُّ قَسْوَةً ۚ |
|---|---|---|---|---|
| چې بهیږي | هغه دي | ځینې دکاڼرو نه | اوبیشکه | بلکه زیات دي په سختوالي کښې |

کاڼري یادکاڼرونه هم زیات سخت دي (۱) [ځکه چې] ځینې کاڼري داسې دي چې دهغې نه ولې بهیږي

| مِنْهُ | فَيَخْرُجُ | يَشَّقَّقُ | لَمَا | وَإِنَّ مِنْهَا | الْأَنْهٰرُ ۚ | مِنْهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دهغې نه | نو راوځي | چې چوي | هغه دي | اوبیشکه ځینې کاڼري | چینې | دهغې نه |

اوځینې کاڼري داسې دي چه اوچوی نواوبه [چینې] ترینه رواني شي

---

....باقی د تیر مخ] ﴿لَا تَفْقَهُوْنَ تَسْبِيْحَهُمْ ۗ اِنَّهٗ كَانَ حَلِيْمًا غَفُوْرًا﴾ یعنی اووه واړه آسمانونه او اووه واړه زمکې او ددې ټول مخلوق او هر څیزدالله ﷻ تسبیح بیانوی خوتاسو دهغوی په تسبیح نه پوهیږئ ، الله ﷻ حلیم او بخښونکې دي.

(۱) د «او» د لفظ تحقیق:- په دې آیت کښې لفظ "او" په باره کښې قرطبی رحمه الله او رازی رحمه الله وائی چه دا د تخییز دپاره دې. یعنی ددوی زړونه د کاڼری په شان سخت اوګڼرئی او یا ددې نه هم زیات. رازی رحمه الله یو وجه دا هم بیان کړې ده چه داټول د ابهام دپاره دی اګر چه دمخاطب په مخکښې باوجود دیو څیز نه دوه څیزونه پیش کولې شی په طور دابهام. دبعضو قول دې چه مطلب دادې دبعضوزړونه دکاڼري په شان او دبعضو دې نه هم زیات سخت ، والله اعلم.

ددې لفظ چه کومه معنی په دې ځائې کښې ده هغه هم واورئی. په دې باندې خو اجماع ده چه او شك دپاره نه دې ، یا خوداد واو په معنی کښې دی یعنی ددوی زړونه کاڼري پشان یا ددې نه هم زیات سخت شو. لکه په ﴿وَلَا تُطِعْ مِنْهُمْ اٰثِمًا اَوْ كَفُوْرًا﴾ کښې او ﴿عُذْرًا اَوْ نُذْرًا﴾ کښې . دشاعرانو په شعرونو کښې هم "او" دواو په معنی کښې دجمعې دپاره راغلې دې. یا "او" په دې ځائې کښې د بل یعنی بلکه دی لکه ﴿كَخَشْيَةِ اللّٰهِ اَوْ اَشَدَّ خَشْيَةً﴾ کښې او ﴿فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰى﴾ کښې او ﴿وَاَرْسَلْنٰهُ اِلٰى مِائَةِ اَلْفٍ اَوْ يَزِيْدُوْنَ﴾ کښې. اودبعضو قول دې چه مطلب دادې چه هغه لکه د کاڼري پشان دی یا په سختئ کښې ستاسو په نیز ددې نه هم سخت دی. بعضې وائی چه صرف په مخاطب باندې ابهام اچولې شوې دې او دا دشاعرانو په شعرونو کښې هم موندې شی د پوخ علم او یقین نه باوجود صرف مخاطب باندې دابهام اچولو دپاره داسې کلام کوی. په قران پاك کښې په بل ځائې کښې دی چه ﴿وَاِنَّآ اَوْ اِيَّاكُمْ لَعَلٰى هُدًى اَوْ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ﴾ یعنی مونږ یا تاسو په صفا هدایت یاګمراهئ باندې یو ، نو ظاهر ده چه دمسلمانانو په هدایت باندې کیدل او کفارو په ګمراهئ باندې کیدل یقینی څیز دې . لیکن دمخاطب ابهام دپاره دهغه په مخکښې کلام مبهم ونیلې شوې دې.

**د آیت بل مطلب:-** داهم مطلب کیدیشی چه ستاسو زړونه د دې دواړو نه خارج نه دی یا هغه د کاڼري پشان دی یا ددی نه هم زیات سخت یعنی بعضې داسې او بعضې هغه سې. ددې قول مطابق دا قول هم دې چه ﴿كَمَثَلِ الَّذِي اسْتَوْقَدَ نَارًا﴾ بیا فرمائی چه ﴿اَوْ كَصَيِّبٍ مِّنَ السَّمَآءِ ...الخ﴾ او فرمان دې چه ﴿كَسَرَابٍ﴾ او بیافرمائی چه ﴿اَوْ كَظُلُمٰتٍ الخ﴾ مطلب هم دا دې چه بعضې داسې او بعضې هغه سې دی. والله اعلم.

**د زړه د سختوالی مذمت:-** تفسیر ابن مردویه کښې دی چه نبی کریم ﷺ فرمائی چه دالله ﷻ دذکر نه سوا زیاتې خبرې مه کوئی ، داسې خبرې زړه سختوی او سخت زړه والا دالله ﷻ نه لرې کیږی. (ترمذی) امام ترمذی رحمه الله هم دا حدیث بیان فرمائیلې دې او ددې یو طریقې ته نې غریب ونیلی دی ، بزار کښې حضرت انس رضی الله عنه نه مرفوع روایت دې چه څلور څیزونه د بدبختئ دی ① دالله ﷻ دویرې نه دسترګې نه اوښکې نه تلل ② دزړه سختیدل ③ دامیدونو زیاتوالئ ④ لا لچی جوړیدل. (مسند البزار کشف الاستار)

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الْمَآءُ ؕ | وَاِنَّ مِنْهَا | لَمَا | يَهْبِطُ | مِنْ خَشْيَةِ اللّٰهِ ؕ | وَمَا اللّٰهُ | بِغَافِلٍ | |
| اوبه | اوبیشکه خینی کانړی | هغه دی | چې رارغړی | دیرې | دالله | نه اونه دی الله | ناخبره |
| اوخینې دالله دویرې نه راورغړیږی | اودغر دسوکو نه د زمکې تل ته راځی | اوالله ستاسو د کارونو | | | | | |
| عَمَّا | تَعْمَلُوْنَ ۝ | | | | | | |
| دهغه کارونو نه | چې تاسو ئې کوئ | | | | | | |
| نه بې خبره نه دی | | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

ددې نه روستو بیا ستاسو زړونه سخت شو تر دې چه هغه داسې شو لکه کانړې بلکه په کلکوالي کښې ددې نه هم زیات (ځکه) په کانړو کښې ځني داسې هم وي چه د هغې نه نهرونه بهیږي او دې نه ځني داسې هم وي چه پخپله چوي او د هغې نه اوبه راوځي او په دې کښې هغه (کانړی) هم دي چه د الله د ویرې نه ارغړي او (ددې په خلاف کښې) چه تاسو څه کوئ الله تعالی د هغې نه بې خبره نه دې.

## خلاصه تفسیر

چه د تیر شوو واقعاتو نه دغې خلقو اثر قبول نکړو نو دشکایت په ډول ارشاد کیږی چه ددې واقعاتو نه پس [پکار وو چه ستاسو زړونه نرم شوی وې اود الله ﷻ دعظمت نه ډك وے خو] ﴿ثُمَّ قَسَتْ قُلُوْبُكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ﴾ ستاسو زړونه بیا هم سخت پاتې شو نو [داسې وئیل پکار دی چه] ﴿فَهِيَ كَالْحِجَارَةِ﴾ ددې مثال د کانړو پشان دے یا [داسې اوګنړئ چه دې] ﴿اَوْ اَشَدُّ قَسْوَةً﴾ په سختئ کښې ددې نه [هم] زیات [دی] او [زیات سخت ورته په دې وجه وئیلې شی چه] ﴿وَاِنَّ مِنَ الْحِجَارَةِ﴾ ځینې کانړی ﴿لَمَا يَتَفَجَّرُ مِنْهُ الْاَنْهٰرُ ؕ وَاِنَّ مِنْهَا لَمَا يَشَّقَّقُ فَيَخْرُجُ مِنْهُ الْمَآءُ ؕ وَاِنَّ مِنْهَا لَمَا يَهْبِطُ مِنْ خَشْيَةِ اللّٰهِ ؕ﴾ خود اشاندی چه ترې نه [لوئې لوئې] ولې [راوزی او] روانې وی او هم په دې کانړو کښې ځینې داسې دی چه دالله ﷻ د یرے نه دپورته نه لاندې طرفته رارغړی [او ستاسو په زړونو کښې هیڅ قسم اثر نه کیږی او [ددې سنګدلئ په وجه چه کوم بدعملونه ترے کیږی] ﴿وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ۝﴾ الله ﷻ ستاسود [دې] عملونو نه بې خبره نه دے [دیر زر به درته سزا درکړی].

**فائده:** دې ځائې کښې د کانړی درې اثرات بیان کړې شوی دی. اول دا چې ددې څخه ډیرې اوبه راؤوتل، دویم کمې اوبه راوتل، په دې دواړو کښې چاته شبه نه کیږی. دریم صورت یعنی دالله ﷻ د ویرې د کانړی لاندې رارغړیدل، دې کښې ممکن دی چې چاته شبه وی. ځکه چې کانړی کښې خوعقل اوحس نه وی. نودې ځائې کښې په دې پوهیدل پکاردی چې د ویرې دپاره دعقل ضرورت نشته، ځکه چې حیواناتو لا یعقل کښې د ویرې مشاهده کیږی. البته د حس ضرورت شته دې. خوپه جماداتو کښې د دومره حس هم څۀ دلیل نشته دې. ځکه چې حس په ژوندې باندې موقوف دې. او دا هم ممکن دی چې په دوئ کښې دومره باریك ژوند وی چې هغه زمونږ د پوهې څخه بالاتر وی. لکه څنګه چې د هر دماغو جوهر احساس ته دعاقلانو ادراك نه وی. هغوئ صرف په دلائلو سره دا منی. نو طبی دلائلو سره د نص قرآن دلالت او قوت په هیڅ شان کم نه دی.

بیا زمونږ دا دعوی هم نشته دې چې همیشه د کاڼي غورزیدلو وجه دې ویره وی. ځکه چې الله ﷻ دا فرمائیلی دی چې ځینې کاڼي په دې وجه ارغړي، نو ډیر ممکن دی چې د ارغړیدو اسباب یې مختلف وی په دې کښې ځینې طبعی وی، او یو سبب په کښې دالله ﷻ د ویرې هم دې.
په دې ځائې کښې د درې قسمه کاڼو ذکر کښې ترتیب ډیر په لطیف انداز کښې اوډ مقصود افاده ئې ډیر بلیغ انداز کښې بیان کړې شوې دې یعنی ځینو کاڼو کښې تاثیر دومره قوی وی چې دهغې څخه نهرونه جاری کیږی او ددې څخه د الله ﷻ مخلوق ته فائده رسی او ددې یهودیانو زړونه څه داسې نه دی چې د الله ﷻ د مخلوق په مصیبت او تکلیف باندې ویلې شی. او ځینې کاڼو کښې ددې څخه کم تاثر وی. او ددې څخه منافع کم وی. نو دا کاڼی د اول په نسبت زیات نرم دی. اوددوئ زړونه د دویمې درجې کاڼو څخه هم سخت دی.
اوځینې کاڼو کښې ددې درجې اثر نشی موندې. بیا هم په دې کښې یو اثر دا دې چې دالله ﷻ د ویرې د وجې لاندې را ارغړی. اګرچې درجه کښې د اول قسم کاڼی څخه دا ضعیف دې، مګر ددوئ په زړونو کښې خو کم درجه او ډیر زیات ضعیفه جذبه د انفعال هم نشته دې.

| اَفَتَطۡمَعُوۡنَ　　اَنۡ يُّؤۡمِنُوۡا　　لَكُمۡ |
|---|
| آیا تاسو امید لرئ \| چې ایمان به راوړی دوئ \| په وینا ستاسو |
| \| نو آیا تاسو دا امید کوئی چې دا [یهودیان] به ستاسو په دین باندې ایمان راوړی |
| وَقَدۡ كَانَ　　فَرِيۡقٌ　　مِّنۡهُمۡ　　يَسۡمَعُوۡنَ　　كَلٰمَ اللّٰهِ　　ثُمَّ　　يُحَرِّفُوۡنَهٗ |
| اوحال دا چې وه \| یوه ډله \| ددوئ نه \| چې اوریدو به ئې \| کلام دالله \| بیا به ئې \| بدلولو هغه کلام \| |
| [حال دا] چې ددوئ یوې ډلې به دالله خبرې اوریدلې او په هغې باندې د پوهیدلو نه پس به ئې په کښې کمې زیاتې کولو |
| مِنۡۢ بَعۡدِ مَا　　عَقَلُوۡهُ　　وَهُمۡ يَعۡلَمُوۡنَ ۝ |
| روستو د هغې نه \| چې پوهه به شول په هغې \| او هغوئ پوهیدل \| |
| او دوئ پوهیدل [چه د الله تعالی په کتاب کښې بدلون ګناه ده] |

### آسان ترجمه قرآن

(مسلمانانو!) آیا اوس هم تاسو ته دا لالچ دې چه دا خلق به ستاسو وئیلو باندې ایمان راوړي؟ حالانکه په دوی کښې د یوې ډلې خلقو به د الله تعالی کلام اوریدلو او بیا به ئې پس د پوهیدو نه په هغې کښې تحریف کولو او دوی پوهیدل.

### خلاصه تفسیر

[مسلمانانو به د یهودیانو دایمان راوړلو دپاره ډیر تکلیفونه تیرول نو د یهودو واقعاتو او حالاتو مسلمانانو ته بیا نو لوسره دهغوی [مسلمانانو] امید ختموی. او ددې ایت په ذریعه] د مسلمانانو تکلیفونه لرې کوی فرمائی [ائې مسلمانانو] آیا ﴿اَفَتَطۡمَعُوۡنَ﴾ [چه دا ټولې قصې مو واوریدلې نو] اوس هم تاسو امید ساتئ ﴿اَنۡ يُّؤۡمِنُوۡا لَكُمۡ﴾ چه دا [یهودیان] به ستاسو په وینا ایمان

راوړي؟. حالا نکه [ددې ټولو قيصو نه زياته يوه بله خبره هم دوی نه شوې ده چه] ﴿وَقَدْ كَانَ فَرِيقٌ مِّنْهُمْ يَسْمَعُونَ كَلَامَ اللَّهِ ثُمَّ يُحَرِّفُونَهُ﴾ په دوی کښې داسې خلق هم تير شوی دی چه د الله کلام به يې اوريدلو او بيايې ديو څه نه بل څه کړل [او] ﴿مِن بَعْدِ مَا عَقَلُوهُ وَهُمْ يَعْلَمُونَ﴾ په دې باندې ديوهيدونه پس [به داسې کول] او [مزه په کښې داوه چه] دوی هم پوهيدل [په دې چه مونږ بد کوو صرف نفساني غرضونه يې ددې باعث وو].

**فائده**: مطلب دا چې کوم خلق داسې بيباکه او دخپل نفساني غرضونو تابع وی، هغوئ د چا په وينا باندې نه منع کيږی، او نه د چا آؤری.

او کلام الله څخه مراد خو يا تورات دې، اود سماع څخه مراد د انبياء ﷺ په واسطه ده. او د تحريف څخه مراد ددې ځينې کلمات يا تفاسير يا دواړو کښې بدلون راوستل دی. يا دکلام الله څخه مراد هغه کلام دې کوم چې هغه اويا کسانو د تصديق په طور موسی ﷺ سره کوه طور کښې آؤريدلې وو. اود سماع څخه مراد بلاواسطه، او تحريف څخه مراد د قوم څخه دا نقل کول چې په آخر کښې الله ﷻ دا هم فرمائيلی وو چې کوم تاسو نه شئ ادا کولې هغه معاف دی.

دې پورته امورو کښې د يو امر ښکاره کيدل اګر چې ددې يهوديانو څخه اونه شو چې کوم د رسول اکرم ﷺ په زمانه کښې موجود وو. خو دې خلقو هم د خپل پلار نيکه په شان انکار او نفرت کولو. نو حکمي طور دوئ هم هغه شان شو.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | الَّذِينَ | لَقُوا | وَإِذَا |
| | | | \| ملاويږی \| دهغه کسانو سره | | \| اوکله چې |
| | | | او کله چې دوئ مسلمانانو سره مخامخ شي | | |
| خَلَا | وَإِذَا | آمَنَّا ج | قَالُوا | | آمَنُوا |
| خاله شي | \| اوکله چې \| | \| چې ايمان راوړي دي مونږ | نو وايئ | | \| چې ايمان ئې راوړې دې \| |
| | | | نو [دوی ته] وائی [تاسو چه څنګه ايمان راوړي دي دغه شان] مونږ هم ايمان راوړئی دې \| او چې کله شي | | |
| فَتَحَ اللَّهُ | بِمَا | أَتُحَدِّثُونَهُم | قَالُوا | إِلَىٰ بَعْضٍ | بَعْضُهُمْ |
| چې ښودلی دی الله \| | \| په هغه خبروا | \| ايا تاسوخبروئ هغوئ | \| نو وائي | ادځينو نورو سره | ځيني دهغوئ |
| | | | په خپل مينځ کښې يو بل سره يوځائي شي(۱) نو وائي چې اياتاسو مسلمانانو ته هغه خبرې ښائی کومې چې | | |

[1] **ديشودو عالمانو بد خصلتونه**:- د نبي کريم ﷺ صفتونه دهغوی په کتابونو کښې وو ، هغوی په دې ټولو کښې تاويلونه اوکړل داصل مطلب نه ئي لرې کړی وو. داشان حلال به ئي حرام ، حق به ئي باطل کول. رشوتونه به ئي اخستل اود غلطو مسائلو وئيلو عادت په کښې وو. خو کله کله چه به ورته د رشوت اخستلو امکان نه وو ، درياست د تللو ويره به ورته نه وه ، دمريدانو نه به جدا شو نو حق خبره ئي هم کوله. مسلمانانو سره به ملاويدل نو وئيل به ئي ستاسو نبي رښتوني دې ، دا په حقه پيغمبر دې ، (الطبری) خو بيا چه به خپلو کښې کيناستل نو وئيل به ئې چه ولې عربو ته داخبرې کوني بيا خو به دوی په تاسو باندې غالب شي اودالله ﷻ په نيز به هم تاسو لره لاجوابه کړي. نوددې په جواب کښې الله ﷻ اوفرمائيل چه آيا دې بې وقوفوته دومره علم نشته دې چه مونږ ته پټ او ښکاره هر څه معلوم دي.

| عَلَيْكُمْ | لِيُحَاجُّوكُمْ | بِهٖ | عِنْدَ رَبِّكُمْ ط |
| --- | --- | --- | --- |
| تاسو ته | دپاره ددې چې جګړه اوکړي تاسو سره | په ذريعه دهغې | په نزد د رب ستاسو |
| الله تعالیٰ تاسو ته خودلی دی [ د دې نه نقصان دا دې] چه [مسلمانان به] تاسوسره دالله په مخکښې جګړه کوی | | | |
| اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ۝ | | | |
| آيا نه پوهيږئ [په دې] | | | |
| نوتاسو ولې نه پوهيږئ | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او چه کله دا خلق دهغه (مؤمنانو) سره ملاؤ شي چه د مخکښې نه ئې ايمان راوړې دې نو په (وبه) بانديې وائي چه (مونږ) هم ايمان راوړې دې او چه کله دوی يو بل سره يواځې والې کښې لاړ شي نو (خپلو کښې يو بل ته) وائي چه "آيا تاسو دې (مسلمانانو) ته هغه خبرې کوئ چه الله تعالیٰ تاسو ته کهلاؤ کړې دي دپاره چه دا (مسلمانان) ستاسو پروردګار څخه لاړ شي نو دې لره ستاسو خلاف بطور دليل پيش کړي؟ آيا تاسو کښې دومره عقل هم نشته؟

## خلاصه تفسير

﴿وَإِذَا لَقُوا الَّذِينَ آمَنُوا﴾ او کله چه يو ځائې کيږي [ ديهوديانو منافقان] مسلمانانو سره ﴿قَالُوا آمَنَّا وَإِذَا خَلَا بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ﴾ نو [هغوی ته خو وائی چه مونږ هم] ايمان راوړې دے او کله چه يواځې لاړ شي [دا څېنې] يهوديان [منافقان] نورو څېنو [ښکاره وو] يهودو سره [نو هغوی سره دهغوی دملګرتيا اويوخيالئ دعوے کوی پډ.غه وخت] دغه [نور يهوديان] ﴿قَالُوا أَتُحَدِّثُونَهُمْ﴾ دوی ته وائی چه تاسو [دا] څه [غضب کوئی چه] مسلمانانوته [دخوشامندو نه] ﴿بِمَا فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ﴾ هغه خبرې ښانی چه [دهغوی دمذهب دپاره مفيد دی]الله ﷻ [په تورات کښې] په تاسوښکاره کړی دی [خو مونږ ئې دڅه ښيګړے په وجه پټے ساتو] ﴿لِيُحَاجُّوكُمْ بِهِ عِنْدَ رَبِّكُمْ﴾ نتيجه به يئ داوی چه دغه خلق به په حجت کښې په تاسو غالب راشي چه [اوګورئ] دا مضمون د الله ﷻ د طرفه [ستاسو په کتاب کښې راغلې] دې ﴿أَفَلَا تَعْقِلُونَ﴾ آيا تاسو [په دومره غټه خبره هم] نه پوهيږئ؟

**فائده**: منافقانو به کله کله يوه نيمه خبره د خوشامندئی په طور مسلمانانو ته کوله اودا به هم دوئ صرف د خپل ايمان دښکاره کولو په غرض کوله. دوئ به وئيل چې تورات کښې درسول اکرم ﷺ متعلق زيری راغلی دی.يا د قرآن عظيم الشان متعلق خبر راغلې دې. وغيره وغيره نو په دې به نورو خلقو دوئ ملامته کول.

أَوَلَا يَعْلَمُونَ　أَنَّ اللَّهَ　يَعْلَمُ　مَا

| اوولې معلومه نهٔ ده دوی ته | چې بیشکه الله ته | معلوم دی | هغه څه

| او ایا دا یهودیان [په دې خبره] نه پوهیږی چې الله ته د دوی هغه خبرې کومې[۱]

يُسِرُّونَ　وَمَا　يُعْلِنُونَ ۝　وَمِنْهُمْ　أُمِّيُّونَ　لَا يَعْلَمُونَ

چې دوی ئې پټوی | او هغه څه | چې ښکاره کوی ئې دوی | او خینی د دوی نه | امیان دی | چې نهٔ پوهیږی

چه دوی پټوی او کومې چه ښکاره کوی ټولې معلومې دی | او په دوی کښې خینې خلق امیان دی چې بیخې

الْكِتَابَ　إِلَّا　أَمَانِيَّ　وَإِنْ هُمْ　إِلَّا يَظُنُّونَ ۝　فَوَيْلٌ

په کتاب | مگر | صرف په ارزوگانو | او نهٔ دی دوی | مگر گمانونه چلوی | نو هلاکت دې

په کتاب [چه توراة دې] نه پوهیږی | تش د زړه ارمانونه او خپل گمانونه کوی | نو افسوس دې

لِّلَّذِينَ　يَكْتُبُونَ　الْكِتَابَ　بِأَيْدِيهِمْ　ثُمَّ يَقُولُونَ　هَٰذَا　مِنْ عِندِ اللَّهِ

دپاره د هغه کسانو | چې لیکی | کتاب | په لاسونو خپلوا | بیا | وائی | چې دا | د طرفه د الله نه دی

د هغه چا په حال چې اول په خپلو لاسونو یو کتاب اولیکی | بیا وائی چې دا کتاب د الله د طرفنه دې

لِيَشْتَرُوا　بِهِ　ثَمَنًا　قَلِيلًا ۚ　فَوَيْلٌ لَّهُم　مِّمَّا　كَتَبَتْ

دپاره ددې چې واخلی | په هغې | قیمت | لږ | نو تباهی ده دپاره د هغوی | په سبب د هغې | چې لیکلی دی

چې ددې [دهوکې] په ذریعه [د دنیا] لږ مال واخلی | نو د دوی په دې لیکلو باندې افسوس دې

أَيْدِيهِمْ　وَوَيْلٌ　لَّهُم　مِّمَّا　يَكْسِبُونَ ۝

لاسونو د هغوی | او تباهی ده | دپاره د هغوی | په سبب د هغې | چې گټی ئې هغوی |

او د دوی په دې کار کسب بیا افسوس دې [چه د کتاب ناشکره دی

## آسان ترجمه قرآن

آیا دا خلق (چه داسې خبرې کوی) په دې نه پوهیږی چه الله تعالیٰ ته د هغه ټولو خبرو علم دې چه کومې دوی پټوی او دوی ئې ښکاره کوې؟ او په دوی کښې څځې خلق امیان دی چه د کتاب (تورات) علم خو نه لری البته څه ارزوگانې کوی او د دوی کار بس هم دغه دې چه وهم او گمان کوی لهٰذا هلاکت دې هغه

---

[۱] د یهودیانو پټې خبرې نبی کریم ته معلومیدل:- مجاهد رحمه الله فرمائی چه نبی کریم ﷺ د قریظه په ورځ د یهودیانو په قلعه کښې اودریدلو او وې فرمائیل چه انې د شادوگانو او خنزیرانو او د طاغوت د عبادت کوونکو رونړو ،.( الطبری) نو دوی په خپلو کښې اووئیل چه زمونږ د کور دا خبره دوی ته چا اوکړه ؟ خبردار خپلې خبرې دوی ته مه کوئ گنی هغه به د الله ﷻ په مخکښې حجت جوړشی. اوس الله ﷻ اوفرمائیل اگر چه تاسو پټوئی لیکن زما نه هیڅ یو څیز نشی پټیدلې ، تاسو دا پټ په پټه ولې خپلې ډلې ته وائې چه خپلې خبرې هغوی ته مه رسوئی او دا چه تاسو د خپل کتاب خبرې پټوئی نو ستاسو ددې خراب کار نه څه بنه خبر یم اودا تاسو چه خپل ایمان ښکاره کوئی نو ستاسو ددې اعلان حقیقت هم ماته پته ده.

خلقولره چه په خپلو لاسونو کتاب ولیکی او بیا (خلقوته) وائی چه دا دالله د طرف نه دې دې دپاره چه ددې په ذریعه څه لږ مال اوګټي پس هلاکت دې دې خلقولره دهغه لیکلوپه وجه هم چه دوی په خپلو لاسونو لیکلې دې او هلاکت دې دوی لره دهغه مال په وجه هم چه دوی ګټي.

## خلاصه تفسير

﴿اَوَلَا يَعْلَمُوْنَ اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ۝﴾آیا دوی ته ددې علم نشته چه الله ﷻ ته هر قسم خبر دهغه څیزونو هم چه پټ یې ساتلی دی اود هغې هم چه ښکاره کوئ [نو منافقانو دمومنانو نه خپل کفر پټ ساتلے وو نوپه دې سره څه اوشو؟. اوکه دے ملامت ګرو درسول الله ﷺ د زیری وغیره مضامین پټ کړی وو نو څه اوشو؟. الله ﷻ ته ددې ټولو خبر شته دې. حالانکه الله ﷻ ددې دواړو مضمونو نه ځائې په ځائې خبر کړی دی په دې ایت کښې خو د یهودیانو د لوستو[پوهانو] خلقو ذکر وو اوس ورپسے دنالوستو[ناپوهانو] خلقو ذکر په داشان فرمائی چه] ﴿وَمِنْهُمْ اُمِّيُّوْنَ﴾ اوپه دوی [یهودیانو]کښې ډیر نالوستی [ناپوهان] [هم] دی ﴿لَا يَعْلَمُوْنَ الْكِتٰبَ﴾ چه کتابی علم ئې نشته ﴿اِلَّا اَمَانِيَّ﴾ لیکن [بے سنده] زړه خوشحاله وونکی خبرې [ئې ډیرے یادے دی] ﴿وَاِنْ هُمْ اِلَّا يَظُنُّوْنَ۝﴾او دغه خلق بل څه نه [هم داسې بے بنیاده] خیالات کوی [او ددې وجه داده چه څه خو ددوی دعلماوتعلیم ناقص او ګډوډ دې. او ورسره پرې دا خبره هم چه دوی کښې دپوهے کمے دې په داسې صورت کښې سوا دبے بنیادو خیالاتو نه د واقعی حقیقتونو تحقیق کله نصیب کیدیشی. یعنی د یو کس د وینا مطابق چه کریلا چه دنیم ونے تریخوالے پرې پورې کړې شوې وی په هغې کښې به د خوږ والی درك څنګه اولګی. چونکه د دوی په وهم پرستئ کښې ددوی دعلماو خیانت ډیر دخل لری څکه ئې جرم هم د خپلو عوامو نه زیات شو ددې بیان اوس داسې کوی. هرکله چه دغه ذکر شوی عوام د زورنے اورتنے قابل دی چه دجاهل والی اصل سبب ئې علماء دی] ﴿فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ﴾ نولویه خرابی به د هغه چا وی چه ﴿يَكْتُبُوْنَ الْكِتٰبَ بِاَيْدِيْهِمْ﴾ لیکی [بدلولو رابدلولو] کتاب [تورات]په خپلو لاسونو [او] بیا [عوامو ته] ﴿ثُمَّ يَقُوْلُوْنَ هٰذَا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ﴾ وائی چه دا [حکم] د الله ﷻ له طرفه [همدا شان راغلې ] دې. [او] ﴿لِيَشْتَرُوْا بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا﴾غرض ئې [صرف] داوی چه په دې ذریعه څه پیسے لږ قدرې واخلی ﴿فَوَيْلٌ لَّهُمْ﴾نولویه خرابی [به ورته مخے ته] راشی ﴿مِّمَّا كَتَبَتْ اَيْدِيْهِمْ﴾ د دوی د [بدلولو د] کتاب په وجه [هم] چه د دوی لاسونو لیکلے وو﴿وَوَيْلٌ لَّهُمْ﴾ او ډیره خرابی به وی دوی ته ددې [پیسو] په وجه [هم] ﴿مِّمَّا يَكْسِبُوْنَ۝﴾چه دوی اخستلې.

**فائده:** عوامو ته به ئې غلطې مسئلې خودلې او په دې کښې به ورته څه نقد وغیره ملاویدل. او دهغوئ په نظر ددوئ ښه قدر هم وو. په دې وجه به ئې تورات کښې لفظی او معنوی بدلون راوستلو. په دې آیت مبارك هم په دې باندې وعید دې.

وَقَالُوْا　لَنْ تَمَسَّنَا　النَّارُ　اِلَّآ اَيَّامًا مَّعْدُوْدَةً ؕ　قُلْ　اَتَّخَذْتُمْ

اووائی هغوی|هیڅکله به ونه رسیږی مونږ ته| وور | مګرڅوورځې|شمارلې شوی |ورته اووایه |آیا تاسو اخستې ده

وائی چې چې مونږ ته د شمیر د څو ورځو نه سوا ددوزخ اور نه رارسی | ورته اووایه آیا تاسو[په دې باره کښې] د

عِندَ اللهِ عَهْدًا فَلَن يُخْلِفَ اللهُ عَهْدَهُ أَمْ تَقُولُونَ عَلَى اللهِ مَا

دالله نه | څه وعده | پس هیڅکله نه کوي خلاف الله | دوعدې خپلې | یا وایئ تاسو | په الله باندې | هغه

الله تعالی نه څه لوظ اخستې دې | چې هغه به کنې دخپل لوظ خلاف نه کوي | او که نه تاسو دخانه په الله باندې

لَا تَعْلَمُونَ ۝

چې نۀ ده معلومه تاسو ته |

هیڅ بې هیڅه دروغ جوړونې |

## آسان ترجمه قرآن

**او یهودو وئیل دي چه مونږ لره به د شمیر یو څو ورځو نه علاوه اور هرګز راونه رسي ته دوی ته ووایه چه آیا تاسو د الله نه څه وعده اخستې ده چه د هغې د وجې نه هغه د خپلې وعدې خلاف ورزې نه کوي یا تاسو د الله تعالی په ذمه هغه خبره لګوئ چه تاسو ته ئې پته هم نشته؟.**

## خلاصه تفسیر

﴿وَقَالُوا لَن تَمَسَّنَا النَّارُ﴾ او یهودیانو [دا هم] اووئیل چه هیچرې به مونږپورې هور [د دوزخ] اونه لګی ژاو نه [هوا] ﴿إِلَّا أَيَّامًا مَّعْدُودَةً﴾ مګر [ډیرے] لږے ورځې چه [په ګوتو به شمیرلے شي ﴿قُلْ أَتَّخَذْتُمْ عِندَ اللهِ عَهْدًا﴾ [ائې محمد ﷺ] تاسو [دوی ته] داسې اوفرمائ آیا تاسو خلق دالله ﷻ نه [دې باره کښې] څه لوظ اخیستے دې ﴿فَلَن يُخْلِفَ اللهُ عَهْدَهُ﴾ چه په هغې کښې الله ﷻ دخپل قول نه خلاف نه کوی ﴿أَمْ تَقُولُونَ عَلَى اللهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ﴾ [یا ېے دڅه لوظ قول همداسې ]په الله ﷻ داسې یوه خبره ورتپی چه هیڅ علمی سند درسره نشته دې.

**فائده**: د یهودیانو ددې قول مفسرینو ډیر وضاحتونه کړی دی. دهغې څخه یو دا دې چې دا تحقیق شوې امر دې چې که مؤمن ګناهګار وی نو د ګناه د سزا په قدر به دوزخ ته داخلیږی. خود ایمان په وجه به همیشه دپاره جهنم کښې نه وی. څو وخت پس به ورته خلاصې ملاؤ شی. نو د یهودو د دعوې حاصل دا وو چې د هغوئ په ګمان کښې د عیسی ؑ دین نه دې منسوخ شوې. نو هغوئ مؤمنان دی، د عیسی ؑ و محمد ﷺ د نبوت څخه انکاری شوی نه دی. که د یو ګناه په وجه دوزخ ته داخل هم شی خو بیا به راویستلې شی. او دا دعوی بناء الفاسد علی الفاسد ده. څکه چې د عیسی ؑ د دین د همیشوالی دعوی کول غلط دی. نو څوک چې د عیسی ؑ او محمد ﷺ د دین څخه منکر دی هغه کافر دی. اوکافر دپاره څو ورځې په دوزخ کښې تیرول او بیا راوتل په هیڅ یو آسمانی کتاب کښې نشته دې او دې ته الله ﷻ د عهد تعبیر ورکړو. نو دا ثابت شو چې د عوی بلا دلیل بلکه خلاف دلیل ده.

بَلَىٰ مَن كَسَبَ سَيِّئَةً وَأَحَاطَتْ بِهِ خَطِيئَتُهُ

| ولې نه | چاچې | وکړه | بدی | اوچاپیره شوه | دهغه نه | ګناه دهغه

| بلکه خبره داده چې څوک ګناه اوکړی | اوخپل ګناهونه ترینه راچاپیره شي

| فَاُولٰٓئِكَ | اَصْحٰبُ | النَّارِ ۚ | هُمْ | فِيْهَا | خٰلِدُوْنَ۝ | وَالَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نو هغوئ | خاوندان | دووردي | هغوئ به | په هغې کښې | همیشه وي | او هغه کسان |
| نو هم دغه کسان دوزخیان دی او تل تر تله به په اور کښې پراته وي او کومو کسانو چه ایمان راوړې دې | | | | | | |

| اٰمَنُوْا | وَعَمِلُوا | الصّٰلِحٰتِ | اُولٰٓئِكَ | اَصْحٰبُ | الْجَنَّةِ ۚ | هُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې ایمان ئې راوړو | او وې کړو عمل | نیك | هغوئ | خاوندان دي | دجنت | هغوئ به |
| او د ایمان راوړلو نه پس صرف په ایمان بسوالې نه کوي بلکه نیک کارونه کوي نو هغوئ جنتیان دي | | | | | | |

| فِيْهَا | خٰلِدُوْنَ۝ |
|---|---|
| په هغې کښې | همیشه وي |
| تول عمر به جنت کښې عیش وعشرت کوي | |

## آسان ترجمه قرآن

(او ربه تاسو ته) ولې نه (در رسي) ؟ چه کوم خلق هم ګناه کوي او د هغوي ګناه هغوي لره راګیر کړي نو هم داسې خلق دوزخ والا دي هغوي به همیشه په دې کښې اوسیږي او هغه خلق چه ایمان راوړي او نیك عمل کوي نو هغه دجنت والا دي هغوي به په دې کښې همیشه اوسیږي.

## خلاصه تفسير

**د خلود في النار ضابطه**[1] ﴿بَلٰى مَنْ كَسَبَ سَيِّئَةً﴾ [سوا دځو ورځو نه به تاسو ته هور د دوزخ] ولې نه [در رسي بلکه تل ترتله په کښې پاتې کیدل ضروري دی ولې چې زمونږ قانون دا دې چه] څوك په قصد ناکاره خبرو کښې په مخه لګیاوی ﴿وَّاَحَاطَتْ بِهٖ خَطِيْٓـَٔتُهٗ﴾ او هغه دده خطا [او قصور دا شان] تول راګیر کړي [چه چرته دنیکئ اثر هم پاتې نشي] ﴿فَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ﴾ نو داسې کسان به دوزخیان وي [او] دوی به په دې کښې همیشه [همیشه] اوسیږي ﴿وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ﴾ او هغه څوك چه [په الله ﷻ او په رسول ﷺ] ایمان راوړي او نیك کارونه کوي ﴿اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ﴾ داسې خلق جنتیان وی [او] ﴿هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ﴾ دوی به په دې کښې همیشه [همیشه] پاتې کیږي.

**فائده** د خطاګانو د احاطې کومه معنی چې پورته ذکر شوې ده هم دا قسم احاطه ددې معنی سره دکافرانو سره مخصوص ده. ځکه چې کفر سره هیڅ یو نیك عمل نه قبلیږي. بلکه د کفر څخه وړاندې ئې چې څه نیك عملونه هم کړي وی نو هغه هم ضائع او ضبط دی. په دې وجه به کافرانو کښې تول تبوله بدی بدی وی. او ددې سزا جهنم دې. پخلاف دایماندارو چې اول خو ددوئ دپاره ایمان یو لوئې نیك عمل دې، بل فرعیه عملونه هم ددوئ په اعمال نامه کښې درج دی. په دې وجه هغوئ د نیکئ داثر څخه خالی نه دی. نو دا مذکوره احاطه ددوئ په حالت باندې نه ثابتیږي.

---

[1] ترجمه: په دوزخ کښې همیشه اوسیدو ضابطه (قاعده)

خلاصه دا شوه چې هر کله ددې ضابطې مطابق د کافر دپاره جهنم کښې همیشه اوسیدل ثابت شو، نو چونکه موسی ﷺ خاتم الانبیاء نه دې بلکه دوئ څخه روستو حضرت عیسی ﷺ او محمد ﷺ هم دی. نو یهودو ددوئ څخه انکار اوکړو او د کافرانو په زمره کښې راغلل. نو ددې ضابطې مطابق به هغوئ هم خالد فی النار وی. نو دهغوئ مذکوره دعوی د دلیل قطعی مطابق باطله شوه

<table>
<tr><td>وَاِذْ　　اَخَذْنَا　　مِيْثَاقَ　　بَنِیْٓ اِسْرَآءِيْلَ</td></tr>
<tr><td>| اویاد کړئ کله چې| واخسته مونږ |پخه وعده| داولاد داسراءیل نه |</td></tr>
<tr><td>|او[یاد کړئ کله] چې مونږبنی اسرائیلونه پوخ لوظ واخستلو</td></tr>
<tr><td>لَا تَعْبُدُوْنَ　　اِلَّا اللّٰهَ　　وَبِالْوَالِدَيْنِ　　اِحْسَانًا　　وَّذِی الْقُرْبٰى　　وَالْيَتٰمٰى</td></tr>
<tr><td>چې مهٔ کوئ عبادت| مګر د الله|اودمورا وپلارسره اکوئ احسان |اوخپلوانو سره |اویتیمانو سره</td></tr>
<tr><td>چې بغیر د الله پاک نه به دبل چا عبادت نه کوئی| اومورپلارسره به نیکی کوئی |اوخپلوخپلوانویتیمانو</td></tr>
<tr><td>وَالْمَسٰكِيْنِ　　وَقُوْلُوْا　　لِلنَّاسِ　　حُسْنًا　　وَّاَقِيْمُوا　　الصَّلٰوةَ　　وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ</td></tr>
<tr><td>اودمسکینانو سره | اوکوئ| خلقو سره |ښې خبری |اوقائیموئ مونځ | اوورکوئ زکاة</td></tr>
<tr><td>مسکینانوسره به هم نیکی کوئی|اوخلقوسره به په خوږه خوله خبره کوئی|اومونځونه به کوئی اوزکاة به ورکوئی</td></tr>
<tr><td>ثُمَّ　　تَوَلَّيْتُمْ　　اِلَّا قَلِيْلًا　　مِّنْكُمْ　　وَاَنْتُمْ　　مُّعْرِضُوْنَ</td></tr>
<tr><td>خو بیا |واپس شوئ تاسو| بغیرد لږو کسانو| ستاسو نه| اوحال داچې تاسو| مخ اړونکی یئ|</td></tr>
<tr><td>نوبیا لږکسانو نه بغیرتاسولوظ نامې ته شاکړه| اوتاسوهمیشه [دالله دحکمونونه]مخ ګرزولې دې</td></tr>
</table>

## آسان ترجمه قرآن

**او (هغه وخت یاد کړه) چه مونږ د بنی اسرائیلو نه پخه وعده اخستې وه چه "تاسو به د الله نه سوا دبل چا عبادت نه کوئ اود مور پلار سره به ښه سلوك کوئ اود خپلوانو سره هم او د یتیمانو سره هم او د مسکینانو سره هم او خلقو ته ښې خبرې کوئ او مونځ قائموئ او زکوة ورکوئ (خو) بیا په تاسو کښې دلږو خلقو نه علاوه نورټول (ددې وعدې نه) واوړیدل.**

## خلاصه تفسیر

﴿ وَاِذْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَ بَنِیْٓ اِسْرَآءِيْلَ﴾ او [هغه زمانه یاده کړئ] چه واخستلو مونږ [تورات کښې] لوظ او قول دبنی اسرائیلونه ﴿لَا تَعْبُدُوْنَ اِلَّا اللّٰهَ﴾ چه عبادت مه کوئی [دهیچا] بغیر د الله نه ﴿وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا﴾او دمور پلار ښه خدمت کوئی ﴿ وَّذِی الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَقُوْلُوْا لِلنَّاسِ حُسْنًا﴾ او د خپلوانو هم او د بې پلاره ماشومانو هم دغریبانو محتاجو هم او عامو خلقوته [چه څه] خبره [کول وی نو] په ښه شان [په ښه اخلاقو سره یئ] کوئی ﴿وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ﴾ او پابندی کوئی دمونځ اوادا کوئی زکات ﴿ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ اِلَّا قَلِيْلًا مِّنْكُمْ وَاَنْتُمْ مُّعْرِضُوْنَ﴾ بیا تاسو [دلوظ اوقول کولو نه پس] دې نه واوړیدئ بغیر د شمیر دځو کسانو نه او ستاسو خود معمول عادت دے دلوظ قول نه اوړیدل.

**فائده**: دا لږ هغه خلق دی چې په تورات باندې ئې پورا پورا عمل کړې وو. د تورات د منسوخ

کیدو څخه وړاندې د موسی ﷺ ددین پابند وو. هر کله چې تورات منسوخ شو نو د شریعت محمدیه پابند شو.

**مسئله**: ددې آیت څخه معلوم شو چې دا احکام په اسلام او وړاندینو شریعتونو کښې یو شان وو. په دې کښې توحید، د مور پلار، رشته دارو، یتیمانانو او مسکینانو خدمت او ټولو انسانانو سره په خبرو کښې نرمی کول او مونځ او روژه ټول داخل دي.

**تعلیم او تبلیغ کښې سخت کلامي کافرو سره هم صحیح نه دي** قوله تعالیٰ: ﴿وَقُولُوا لِلنَّاسِ حُسْنًا﴾ څخه مراد قولا د احسن دي، ددې حاصل دادې چې کله خلقو ته خطاب کوئی نو نرمه خبره کوئی. په ښو اخلاقو او د زړه فراخئ سره ئې کوئی. مخاطب نیک وي او که بد، سني او که بدعتي، خو ددین معامله کښې مداهنت او د هغه خاطره [په لحاظ] حق مه پټوئی. ددې وجه داده چې کله الله ﷻ موسی ﷺ او هارون ﷺ فرعون ته اولیږل نو دا هدایت ئې ورته اوفرمائیل چې ﴿فَقُولَا لَهُ قَوْلًا لَّيِّنًا﴾ [۲۰: ۴۴] نو نن چې کوم کلام کوؤنکي یعني مقررین دې هغه د موسی ﷺ څخه افضل نه دي. او مخاطبین یعني آؤریدونکې که هر څومره خراب وي خو د فرعون څخه زیات خراب نه دي.

طلحه بن عمر ﷫ فرمائي چې ما د تفسیر او حدیث امام عطاء ﷫ څخه تپوس اوکړو چې تاسو ته داسې خلق راجمع کیږي چې دهغوئ عقائد فاسد دي. او زما مزاج کښې تیزي ده کله چې داسې خلق راشي نو زه ورته سختې خبرې کوم. عطاء ﷫ اوفرمائیل چې دا سې مه کوه، د الله ﷻ حکم دې چې ﴿وَقُولُوا لِلنَّاسِ حُسْنًا﴾، په دې کښې یهودیان او نصاری هم داخل دي، مسلمان که هر څنګه وي نو هغه به په دې کښې ضرور داخل وي. [قرطبی][1]

| وَإِذْ | أَخَذْنَا | مِيثَاقَكُمْ | لَا تَسْفِكُونَ | دِمَاءَكُمْ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| او یادکړئ کله چې | واغسته مونږ | محکمه وعده ستاسو نه | چې مه تویوئ | وینې خپلې |

او [یادکړئ] هغه وخت چې مونږ ستاسو مشرانو نه پوخ لوظ[2] اخستې وو چې خپلې وینې مه تویوئ

[1]) تفسیر القرطبي تحت هذه الآية: ۲/ ۱۶

[2]) **د یهودیانو خپل مینځ کښې جګړې کول** :- اوس او خزرج د مدینې د انصارو دوه قبیلې وې. داسلام نه مخکښې ددې قبیلو په خپلو کښې څه اتفاق نه راتلو. هیشه به ئې خپلو کښې جنګونه کول. د مدینې دیهودو درې قبیلې وې. ① بنو قینقاع ② بنو نضیر ③ بنو قریظه. بنو قینقاع او بنو نضیر خو د خزرج طرفدار اوددوی سره ئې رورولی وه. اود بنو قریظه رورولی د بنواوس سره وه. کله چه به د خزرج اود اوس جنګ وو نو دیهودو دې دریواړو قبیلویه هم دخپل حلیف ملګرتیا کوله. اودوی سره یو ځائې شو اوددوی دښمنانو سره به جنګیدل. د دواړو طرفونو نه به یهود د یهودیانو دلاسه مړه کیدل او موقعې ته به ئې کتل اودیویل کورونه به ئې هم ورانول. او د وطن نه به ئې بې دخله کول هم. اودهغوی په مال اودولت باندې به ئې هم قبضه کوله. کله چه به جنګ ختم شو نو مغلوبې ډلې به څه فدیه ورکړه او خپل قیدیان به ئې راخلاصول. او ونیل به ئې چه مونږ ته دالله ﷻ حکم دې چه په مونږ ټولو کښې څوک قید شی نومونږ دې فدیه ورکړو او هغه دې راخلاص کړو. په دې موقعه باندې الله ﷻ فرمائی چه ددې څه وجه ده چه تاسو زما دا حکم اومنلو. او ما خو دا هم ونیلی دی چه په خپلو کښې یویل لره مه قتل کونی. اودکورونو نه ئې هم مه اوباسئ، دا ولې نه منئ؛ په یو حکم باندې ایمان راوړل او بل حکم نه انکار کول دا دکومه ځایه ایمانداری ده ؟ په دې آیت کښې اوفرمائیلې شو چه خپلې وینې مه تویوې او خپل ځانونه دکورنو نه مه اوباسئ؛ دا په دې وجه چه یو مذهب والا دیو ځان په شان وی......←

| وَأَنتُمْ | ثُمَّ أَقْرَرْتُمْ | مِّن دِيَارِكُمْ | أَنفُسَكُم | وَلَا تُخْرِجُونَ |
|---|---|---|---|---|
| اوتاسو | بيا اقرار وكړو تاسو | د كورونو خپلو نه | كسان خپل | اومه اوباسئ |

اوخپل خپلوان د كوركلي نه مه شړئ نو[هغه وخت]تاسو په دې لوظ كلك اقرار اوكړو او په دې خبره

تَشْهَدُونَ ﴿٨٤﴾

گواهان يئ |

[اوس هم]گوايان يئ

**آسان ترجمه قرآن**

**او(ياد كړئ) چه كله مونږ تاسونه پخه وعده اخستې وه چه تاسو به ديو بل وينه نه تويوئ اوخپل خلق به دخپلو كورونونه نه وباسئ بيا تاسو اقرار كړې وو او تاسو پخپله ددې گواهان يئ.**

**خلاصه تفسير**

پورته ذكر شوې پوخ لوظ چه اخستے شوې وو په دې ايت كښې دهغې تتمه بيانيږي. لكه وائى چه ﴿وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ﴾ او [هغه زمانه ياده كړئ] چه مونږ تاسو نه دا لوظ او قول هم واخستلو چه

......←۶دا په حديث كښې هم دى چه ټول ايماندار په دوستئ كښې ، صله رحمئ كښې او رحم وكرم كښې ديو بدن پشان دى. ديو اندام په درد سره ټول جسم لړزيږى، تبه ئې اونيسى او دشپې خوب ئې خراب شى. (صحيح بخارى)داشان په يوادنى مسلمان باندې دټول جهان مسلمانانو لره لړزيدل پكار دى.
**دعبدالله بن سلام ﷺ يوه واقعه:**- عبدخير ﷺ وائى چه مونږ د سلمان بن ربيعه ﷺ په نگرانئ كښې په بلخبر كښې جهاد كولو ، دمحاصرې نه پس مونږ دا ښار فتح كړو او په دې كښې ډير قيديان ملاؤ شو. حضرت عبدالله بن سلام ﷺ په هغوى كښې يو وينځه په اووه سوه واخستله. مونږ چه كله راس الجالوت ته اورسيدو نو عبدالله بن سلام ﷺ هغې لره ورغلو او وې فرمائيل چه دا وينځه خو ستا مذهب والا ده ،ما دا په اووه سوه اخستې ده ، اوس تاسو دا زما نه واخلئ او آزاده ئې كړئ. هغه اووئيل چه ډيره ښه ده خه دا په څوارلس سوه اخلم . دوى اوفرمائيل چه خه ئې د څلورو زرو نه كمه نه خرڅوم . هغه اووئيل چه خه ئې بيا نه اخلم. دوى اووئيل چه يا خو ته دا واخله كنې ستا دين به لاړشى. په تورات كښې ليكلى دى چه د بنى اسرائيلو څوك بنده گرفتار شى نو هغه واخلئ اوآزاد ئې كړئ اوكه قيد شى او تاسو لره راشى نو فديه ئې وركړئ اوهغه راخلاص كړئ او دهغوى دخپلو كورونو نه مه بې دخله كوئ. اوس خو ته يا تورات لره اومنه اودا واخله او يا دتورات نه منكر شه. هغه پوهه شو او وې وئيل چه داسې معلوميږى چه ته شائد عبدالله بن سلام ئې؟ دوى اوفرمائيل چه آو. هغه څلور زره راوړې او دوى ترې دوه زره واخستلې او دوه زره ئې واپس كړې.
بعضو روايتونو كښې دى چه راس الجالوت په كوفه كښې وو. دوى به دهغه وينځو فديه نه وركوله چه عربو نه بچ شوې نه وى. نو په دې باندې عبدالله ﷺ هغوى ته دتورات آيت واورولو. غرض په دې آيت كښې ديهوديانومذمت شوې دې چه هغوى دالله ﷻ احكام پيژنى او بيا هم هغه شانته غورزوى. امانتدارى او ايماندارى اوچته شوې وه. د نبى كريم ﷺ صفات ، د نبى كريم ﷺ نښې ، د نبى كريم ﷺ دنبوت تصديق ، د نبى كريم ﷺ دپيدائش مقام مبارك ، د هجرت ځائې وغيره ټول څيزونه دهغوى په كتاب كښې موجود وو. خو دوى هغه پټ كړې وو او دومره هم نه بلكه دوى به د نبى كريم ﷺ مخالفت كولو ، هم په دې وجه په هغوى باندې ددنيا رسوائى راغله او په نه كميدونكى او آخروى عذاب كښې هم اخته شو.

[خپل مینځ کښې یو تر بله جنګ کولو سره] ﴿لَا تَسْفِكُونَ دِمَآءَكُمْ وَلَا تُخْرِجُونَ أَنفُسَكُم مِّن دِيَارِكُمْ﴾ وینے مه تویونی اویو بل په وطن پریښودو مه مجبوریٔ کونی ﴿ثُمَّ أَقْرَرْتُمْ وَأَنتُمْ تَشْهَدُونَ﴾ بیا [زمونږ په دې لوظ اخستلو باندې] تاسو اقرار اوکړو [دځه بلې خبرې په ضمن کښې نه بلکه] داشان چه تاسو [په دې لور] ګواهی [هم] ورکونی.

**فائده**: کله کله داسې اوشی چې د یو مقرر د تقریر څخه د یو کار باره کښې اقرار راؤځی اګر چې واضح اقرار نه وی. خو په عرف او عقل کښې هغه هم اقرار ګڼړلې شی. خو د لته ئې په ﴿ثُمَّ أَقْرَرْتُمْ﴾ سره دا شبه هم ختمه کړه. او دا ئې اوفرمائیل چې دا اقرار دومره صریح او واضح ورلکه څنګه چې شهادت صفا او واضح وی. د وطن د پریخودلو د ممانعت مطلب دادې چې څوك په آزار رسولو دومره مه تنګوئی چې په وطن پریخودلو مجبوره شی.

ثُمَّ أَنتُمْ هَٰؤُلَآءِ تَقْتُلُونَ أَنفُسَكُمْ وَتُخْرِجُونَ

| بیا هم تاسو | هغه کسان یئ | چې وژنئ | خانونه خپل | اواوباسئ تاسو |

بیاهم دغه تاسویئ چې خپل خپلوان بې دریغه وژنئ او اوباسئ

فَرِيقًا مِّنكُم مِّن دِيَارِهِمْ تَظَاهَرُونَ عَلَيْهِم بِالْإِثْمِ

څه خلق | د روړولې خپلولی | د کو رونو دهغوئ نه | مرسته کوئ یو بل سره | دهغوئ خلاف | په ګناه

خپنې [کمزوری] خلق دکورونونه شړی یئ اودهغوئ خلاف [دهغوی دشمنانوسره] په ګناه

وَالْعُدْوَانِ وَإِن يَأْتُوكُمْ أُسَارَىٰ تُفَادُوهُمْ

اوپه زیاتئ سره | اوکه چرې | راشی هغوئ تاسو ته | په حیثیت دقیدیانو | نوپه فدیه ورکولوسره تاسو آزادوئ هغوئ

اوزیاتی کولو کښې مدد کوی او [عجیبه خبره داده] چې که دغه خلق قیدیان شی اوتاسوته دمدد دپاره راشی

وَهُوَ مُحَرَّمٌ عَلَيْكُمْ إِخْرَاجُهُمْ أَفَتُؤْمِنُونَ بِبَعْضِ

حالانکه حرام کړې شوی وو | په تاسو باندې | ویستل دهغوئ | آیا تاسو ایمان راوړئ | په یوه حصه

نوتاسودهغوئ دخلاصولودپاره فدیه ورکوئی حال دا چه د دوی [دکورونونه] ویستل ناروا وو نو آیا تاسو

الْكِتَابِ وَتَكْفُرُونَ بِبَعْضٍ فَمَا جَزَآءُ مَن يَفْعَلُ ذَٰلِكَ

د کتاب | اوکفر کوئ | په بله حصه | نو نه ده | بدله | دهغه چا | چې کوی | داسې کار

ایمان لرئی په بعضې حصه د کتاب اود بعضې نه انکارکوئی نوپه تاسو کښې څوک چې داسې کارونه کوی

مِنكُمْ إِلَّا خِزْيٌ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يُرَدُّونَ

ستاسو نه | ماسوا | درسوایئ | انه په ژوند د دنیا کښې | اوپه ورځ | دقیامت | به واپس کړې شی

هغوئ لره فقط دومره سزابس ده چې په دنیا کښې به د رسوائی ژوند تیروی اودقیامت په ورځ به

إِلَىٰ أَشَدِّ الْعَذَابِ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ

سخت عذاب ته | اونهٔ دې الله | ناخبره | دهغه کارونو نه | چې تاسو ئې کوئ |

ډیر سخت عذاب کښې واچولې شی اوالله پاک ستاسود کارونونه بې خبر نه دې

## آسان ترجمه قرآن

ددې نه روستو اوس تاسو هغه خلق يئ چه خپل ملګرى وژنئ اوخپل خلق دخپلو كورونونه اوباسئ او دهغوى خلاف د ګناه اود زياتى ارتكاب كوئ او (ددوى د دښمنانو) مدد كوئ اوكه هغوى د(دښمنانو) قيديان جوړشى او تاسوسره راشى نو تاسوهغوى ته فديه وركړئ اوهغوى خلاصوئ حالانكه هغوى د (كورونو نه) ويستل هم تاسو لره حرام وو لو آيا تاسو د كتاب (تورات) په څنو حصو باندې خو ايمان راوړئ او دځنونه انكار كوئ؟ اوس وښايئ چه كوم كس داسې كاراوكړى دهغه سزا ددې نه سوا څه ده چه په دنيا كښې د هغه رسوائى وشى؟ اودقيامت په ورځ به داسې خلق سخت ترين عذاب ته اوليږلې شى او تاسوچه كوم عمل كوئ الله تعالىٰ د هغې نه ناخبره نه دې.

## خلاصه تفسير

دلوظ په تتمه كښې كوم حكم چه دوى ته وركړې شوې وو دهغې باره كښې دوعدې ماتولو بيان په دې ايت كښې شوې دې. بيا [د دے ښكاره اقرار نه پس] تاسو[څنګه چه ئې] ﴿ثُمَّ أَنتُمْ هَٰؤُلَاءِ تَقْتُلُونَ أَنفُسَكُمْ﴾ دا [دسترګو په وړاندې] موجود ئے چه خپل مينځ كښې يو تر بله جنګ وجدال هم كوئى ﴿وَتُخْرِجُونَ فَرِيقًا مِّنكُم مِّن دِيَارِهِمْ﴾او يو بل وطن پرېښودو ته هم جوړوئى [په دې سے شان چه] ﴿تَظَاهَرُونَ عَلَيْهِم بِالْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ﴾ دخپلو په مقابله كښې [د دوى دمخالف قومونو] امداد كوئى ګناه او ظلم سره [نودا دوه حكمونه خو هسے په غوږ زولو] او [يو بل دريم حكم چه آسان شان مو اوګڼړلو په هغې عمل كولو ته خوښه تيار اوسيږئ چه] ﴿وَإِن يَأْتُوكُمْ أُسَارَىٰ تُفَادُوهُمْ وَهُوَ مُحَرَّمٌ عَلَيْكُمْ إِخْرَاجُهُمْ﴾كه چرې ددغه خلقو څښې په تاسو كښې څوك قيدى تاسو ته راورسى نو داسې خلق ئے تاوان وركولو سره خلاصوئى حالانكه داخبره [هم معلومه]ده چه تاسو لره د دوى وطن پرېښودو ته جوړول [او وژل خو نور هم زيات] دغه شان منع دى. آيا نو [بس داسې اووائى چه] ﴿أَفَتُؤْمِنُونَ بِبَعْضِ الْكِتَابِ﴾دكتاب [تورات] په بعضو [احكامو] تاسو ايمان لرئ ﴿وَتَكْفُرُونَ بِبَعْضٍ﴾ او په بعضو [احكامو] ايمان نه لرئ ﴿فَمَا جَزَاءُ مَن يَفْعَلُ ذَٰلِكَ مِنكُمْ إِلَّا خِزْيٌ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا ۖ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يُرَدُّونَ إِلَىٰ أَشَدِّ الْعَذَابِ﴾ نو بله څه سزا [پكارده] ددې سې كس چه تاسو خلقو نه داسې حركت كوى سوا درسوائى نه په دنيوى ژوند كښې او دقيامت په ورځ به ډير سخت عذاب كښې اوغورزولے شى ﴿وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ﴾ او الله ﷻ [هيڅ] بې خبره نه دې ستاسو د [ناكار] عملونو نه.

## معارف او مسائل

**فائده: قوله تعالىٰ:** ﴿ثُمَّ أَنتُمْ هَٰؤُلَاءِ تَقْتُلُونَ أَنفُسَكُمْ﴾ په دې باره كښې په دوئ درې حكمونه منل لازم وو ① يو دچانه وژل ② وطن نه اوبنكلوته نه مجبوره كول ③ دخپل قوم څنې څوک چې بندى اوونى نوپه رقم لګولوسره هغه راخلاصول. نودغه خلقوخواول دوه حكمونه پرېښودل اود دريم حكم منلوئې پور بندوبست كولو قصه داسې ده چې دمدينې منورې ددوؤ قومونو ① اوس او ② خزرج ترمنځه به دشمنى روانه وه چې كله كله به پكښې جنګ جګړه هم راپيښيده اودمدينې په خواؤشاكښې، ديهودودوه قومونه بنونضير اوبنوقريظه آبادوو، اوس اوبنى قريظه يوتربله ترلى ملګرى وواودخزرج اوبنى نضيرو يوتربله يارانه وه، د اوس او خزرج ترمينځه چې دښمنئ وې نو كله كله به جنګ ته اورسيدله چه د اوس اوخزرج ترمنځه به جنګونه وشو نو د

دوستاني ياراني په بنياد به بنو قريظه داوس، اوبنونضير دخزرج امداد كولونو په جگړه كښې به چه اوس اوخزرج كله وژل كيدل او بې دركه اوخواروزاركيدل دغه شان به ورسره خپل ملگرى او دوستان بنونضيرو اوبنوقريظه هم خواروزاراوبې دركه كيدل،اوښكاره خبره ده چې د بنونضيرو په قتلولواواوښكلوكښې به دبنو قريظوڵاس امدادوواودبنوقريظۍپه اوښكلو او وژلو كښې به دبنونضيرلاس اوامدادوو،خود يهوديانودغه دواړه ډلې به چې دبندى په حيث بل مقابل ته په لاس ورغلل نوبلې ډلې به خپل دوستان اوملگرى په مال راضى كړل اودغه قيديان به ئې راخلاص كړل،اوكه چابه ترتپوس اوكړوچه داسې ولې كوې،[هم شپيلۍ اوهم ستوان] نووئيل به ئې چې دخپلويهودوخلاصول زمونږفرض دى اوكه په جنگ جگړه كښې ددوئ دمخالف په امدادى جوړيدلوبه چااعتراض كولونووئيل به ئې چې ياردوست سره امدادنه كول هم دشرم خبره ده،چنانچه الله تعالى په دې آيت كښې ددې خبرې شكايت كړې دې اوددوئ چل ول ئې برسيره كړې دې،

په دې آيت كښې دكوم مخالف قومونودامدادچه ذكردې،دې نه مراد اوس اوخزرج دى چې اوس به دبنوقريظه په ملگرتياكښې دبنونضيرومخالف وواوخزرج به دبنونضيروپه ملگرتيا كښې دبنوقريظه مخالف وو،

اثم وعدوان [ظلم اوگناه] دؤولفظونوراوړلوكښې دې خبرې ته اشاره كيدې شى چې په دې كښې دوه حقونه ضائع كيږى ① دحكم الهى نه په سرغړلوسره دالله حق ② اوبل ته آزارور كولوسره دبندگانو حق ضائع كيږى،اوس ورپسې په دغې لوظ اوقول ماتولو باندې دملامتيا اوشكايت سره سره،سزائې هم ښه په ښكاره بيانيږى،فرمائى،

آيانو [بس داسې اووائې چه] دكتاب [تورات] په څنې [احكامو] تاسوايمان لرئ اوپه څنې [احكامو] ايمان نه لرئ بلكه څه سزا[پكارده] دداسې كس چې دتاسوخلقوځنې [څخه] داسې حركت كوى سوادرسوائې نه په دنيوى ژوندكښې اودقيامت په ورځ به ډيرسخت عذاب كښې اوغورځولې شئ اوالله تعالى [هيڅ] بې خبره نه دې ستاسود[ناكاره] عملونونه.

**فائده** اگرچه دغه ذكرشوى يهود،درسول الله ﷺ نه دانكاركولوپه وجه كافروؤخودلته ئې دغه نه بلكه په څينواحكام الهى عمل نه كول كفراوبلل،حالانكه حرامولره چې څوک حرام گڼرى هغه نه كافركيږى،ددې جواب دادې چې كومه گناه په تولوكښې زياته سخته وى په شرعى محاوراتوكښې هم په هغې دكفراطلاق كولې شى چنانچه داسې مثالونه زمونږپه محاوراتو كښې هم شپه اوورځ،استعماليږى لكه يوگنده حركت كوونكى ته چوړې وئيل په دې بناوى چې دبنگى نه خلق كركه كوى اومطلب ئې ددغه گنده حركت انتهائې سپكوالې ښكاره كول وى. داشان هم دغه تعبيرپه «من ترك الصلوة متعمدافقدكفر»(۱) كښې هم دې،

په دې مقام دوه سزاگانې ذكردى،ړومبۍ سزاپه دنياكښې ذلت اورسوائى ده چې درسول الله ﷺ په زمانه مباركه كښې په دې ډول واقع شوه چې مسلمانانوسره دمعاهدې په خلاف كولو، بنوقريظه قيداوقتل كړې شواوبنونضيرپه ډيرسپكاوى اوذلت سره شام ملک ته اوشړلې شو

(۱) جامع الترمذي، أبواب الإيمان، باب ما جاء في ترك الصلاة: ۲/ ۹۰

| |
|---|
| أُولَٰٓئِكَ الَّذِينَ |
| دا هغه خلق دي |
| دا هغه کسان دي چې |

| اشْتَرَوُا | الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا | بِالْاٰخِرَةِ | فَلَا يُخَفَّفُ | عَنْهُمُ | الْعَذَابُ | وَلَا هُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې اخستي ئې دي | ژوند د دنيا | په مقابله د آخرت | نو سپك به نه کړې شي | د دوئ نه | عذاب | او نه به د دوئ سره |

| |
|---|
| د آخرت په بدل کښې ئې د دنيا ژوند غوره کړې دې نو د دوی نه به نه خو عذاب سپکولې شي او نه به ئې |
| يُنْصَرُونَ ﴿۸۶﴾ |
| امداد او کړې شي |
| هيڅ مدد او کړې شي |

**آسان ترجمه قرآن**

دا هغه خلق دي چه دوی د دنيا ژوند د آخرت په بدله کښې اخستې دې لهٰذا نه به د دوئ په عذاب کښې څه سپکوالې کيږي او نه به د دوی څه مدد کيږي.

**خلاصه تفسير**

[او هغوی د پاره د سزا وجه داده چه] ﴿أُولَٰٓئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا بِالْاٰخِرَةِ﴾ دا هغه خلق دی چه [د احکامو خلاف کولو سره ئې] د دنياوی ژوند [مزې] واخستې په بدل [د تجارت] د آخرت کښې [چه ذريعه ئې فرمانبرداری ده] ﴿فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ﴾ نو نه خو به [د سزا ورکونکی له طرفه] د دوی په سزا کښې [څه] کمې کولې شی ﴿وَلَا هُمْ يُنْصَرُونَ﴾ او نه يې څوك [وکيل دوست يا خپلوان] طرفداری [او مرسته] کولې شي.

| وَلَقَدْ | اٰتَيْنَا | مُوْسَى | الْكِتٰبَ | وَقَفَّيْنَا |
|---|---|---|---|---|
| او يقيني خبره ده | چې ورکړې وو مونږ | موسی ته | کتاب | او پر له پسې ليږلي وو مونږ |

| |
|---|
| او بيشکه مونږ موسی ﷺ ته کتاب [تورات] ورکړې وو او هغه پسې |

| مِنْ بَعْدِهٖ | بِالرُّسُلِ | وَاٰتَيْنَا | عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ | الْبَيِّنٰتِ |
|---|---|---|---|---|
| روستو د هغه نه | رسولان | او ورکړې وې مونږ | عيسی خوئ د مريم ته | ښکاره نښې |

| |
|---|
| مو پر له پسې نور پيغمبران اوليږل او عيسی ﷺ د مريم خوئې ته مو ښکاره معجزې ورکړې |

| وَاَيَّدْنٰهُ | بِرُوْحِ الْقُدُسِ | اَفَكُلَّمَا | جَآءَكُمْ | رَسُوْلٌ |
|---|---|---|---|---|
| او امداد کړې وو مونږ د هغه | په روح پاك سره | ايا نو هر کله چې | راغې تاسو ته | يو رسول |

| |
|---|
| او په روح القدس [جبريل] سره مو د هغه مدد کړې وو پس کله چه راوړی تاسو ته يو پيغمبر |

| بِمَا | لَا تَهْوٰٓى اَنْفُسُكُمُ | اسْتَكْبَرْتُمْ | فَفَرِيْقًا | كَذَّبْتُمْ |
|---|---|---|---|---|
| د هغه حکمونو سره | چې نه به خوښول نفسونو ستاسو | نو لوئي او کړه تاسو | نو څه خلق | دروغ او گڼړل تاسو |

| |
|---|
| داسې حکمونه چې هغه ستاسو د خوښې مطابق نه وی نو تاسو به کبر شروع کړئ چاته به دروغژن وائي |

| وَفَرِيقًا | تَقْتُلُونَ ۝ |
| --- | --- |
| او څه خلق | [ او وژل تاسو ] |
| او خوک به وژنئ | |

## آسان ترجمه قرآن

بې شکه مونږ موسٰی علیه السلام ته کتاب ورکړې وو او دهغه نه وروستو موهم پرله پسې پیغمبران لیږلی وو او مونږ عیسٰی ابن مریم ته صفا صفا معجزې ورکړې وې او په روح القدس سره مو دهغه تائید کړې وو بیا آخر دا څه معامله ده چه کوم یو پیغمبرهم تاسوته څه داسې خبره راوړې چه ستاسو نفسانی خواهشاتو ته هغه خوښه نه وی نو تاسو تکبر وکړو؟ نو څنې تاسو دروغژن کړل او څنې به مو وژل.

## خلاصه تفسیر

﴿وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ﴾ او مونږ [ائې بنی اسرائیلو ستاسو د هدایت دپاره لوئې لوئې انتظامات اوکړل چه دټولو نه اول مو] موسی ﷺ ته کتاب [تورات] ورکړو او[بیا] ﴿وَقَفَّيْنَا مِنْ بَعْدِهٖ بِالرُّسُلِ﴾ددې نه پس [په مینځ کښې] یو بل پسې مو[په مخه مختلف] پیغمبران اولیږل او[بیا ددې خاندان دسلسلې په آخر کښې] ﴿وَاٰتَيْنَا عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنٰتِ﴾مونږ عیسی ﷺ زوئې دمریم لره [دنبوت] واضح دلیلونه [انجیل اومعجزې] ورکړې ﴿وَاَيَّدْنٰهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ﴾ او مونږ دهغه په روح القدس [جبریل ﷺ] سره [چه کوم] ملا تړاوکړو[چه د خپل ځائې ځان له یو سرگند دلیل وو نو] آیا [دحیرانتیا خبره نه ده چه په دې هم تاسوسرکشی کوله] ﴿اَفَكُلَّمَا جَآءَكُمْ رَسُوْلٌۢ بِمَا لَا تَهْوٰٓى اَنْفُسُكُمُ﴾ اوکله به [هم] چه پیغمبر تاسو ته داسې احکام راوړل چه زړونو به مو نه خوښول نو[دغه وخت هم] تاسو [ددغه پیغمبرانو د فرمانبردارئ نه]﴿اسْتَكْبَرْتُمْ﴾تکبر کول شروع کړل ﴿فَفَرِيْقًا كَذَّبْتُمْ﴾ تاسو دروغژن اوگڼل ﴿وَفَرِيْقًا تَقْتُلُوْنَ﴾ او بعضې مو [ېې دریغه] نو څینې[نعوذ باالله] اووژل.

**فائده:** قرآن عظیم او حدیث کښې ځائې په ځائې جبرائیل ﷺ ته روح القدس وئیلې شوی دی. لکه څنګه چې د قرآن پاک آیت پدې کښې دی چې ﴿قُلْ نَزَّلَهٗ رُوْحُ الْقُدُسِ﴾ [۱۶: ۱۰۲] او حدیث پاک کښې د حسابن بن ثابت ﷺ دا شعردې چې:

و جبریل رسول الله فینا　　وروح القدس لیس له کفاء(۱)

او د جبرائیل ﷺ په وا سطه ډیرو طریقو سره د عیسی ﷺ تائید شوې دې. اول د ولادت په وخت کښې د مس شیطان څخه حفاظت، بیا ددوئ چوف کولو سره د بی بی مریم حمل کیدل، او یهود چونکه ډیر زیات د عیسٰی ﷺ مخالف وو نو په دې وجه به جبرائیل ﷺ د حفاظت دپاره عیسی ﷺ سره وو، او تر دې چې دهغوئ په ذریعه آسمان ته پورته کړې شو. یهودیانو د ډیرو پیغمبرانو ﷺ تکذیب کړې دې او د عیسی ﷺ تکذیب ئې هم کړې دې او زکریا ﷺ او یحیی ﷺ ئې قتل هم کړل.

۱) صحیح مسلم، کتاب الفضائل، باب فضائل حسان بن ثابت: ۲/ ۳۰۱، ترجمه: د الله تعالی قاصد جبرائیل مونږ ته راغې او روح القدس (یعنې جبرائیل) څوک هم برابر نشته.

وَقَالُوْا قُلُوْبُنَا غُلْفٌ ط بَلْ

او وائی هغوئ | زړونه زمونږ | پرده بندد ی | نه ده داسې بلکه |

او [یهودیان] وائی چې زمونږ زړونه انغختی دی [د اسلام آواز نه ورسی] نه بلکه

لَّعَنَهُمُ اللّٰهُ بِكُفْرِهِمْ فَقَلِيْلًا مَّا يُؤْمِنُوْنَ۝

لعنت کړې دې په هغوئ باندې | الله | په سبب د کفر د هغوئ | نو ډیر لږ دی | هغه | چې ایمان راوړی

دوئ د کفر په وجه الله ﷻ رټلی دی [هم دا وجه ده] نو ډیر لږ کسان په کښې ایمان راوړی

## آسان ترجمه قرآن

او دا خلق وائی چه "څمونږ زړونه په پردو کښې دی" نه بلکه د دوی د کفر د وجې نه الله تعالیٰ په دې باندې مهر وهلې دې دې وجې نه دوی ډیر لږ ایمان راوړي.

## خلاصه تفسیر

﴿وَقَالُوْا قُلُوْبُنَا غُلْفٌ ط﴾ او دا [یهود د تېوقو نه] وائی چه زمونږ زړونه [داسې] محفوظ دی [چه په دې کښې د مخالف مذهب اسلام هیڅ اثر نشی کیدې څکه مونږ په خپل مذهب ښه کلك ټینګ یو الله ﷻ فرمائی چه دا محفوظ کیدل کلکوالے نه دې] ﴿بَلْ لَّعَنَهُمُ اللّٰهُ بِكُفْرِهِمْ﴾ بلکه د دوی د کفر په وجه په دوی د الله ﷻ لعنت دے [چه د حق مذهب اسلام نه تښتی او په منسوخ شوی مذهب ټینګ دی] ﴿فَقَلِيْلًا مَّا يُؤْمِنُوْنَ۝﴾ نو دوی ډیر لږ ایمان لری [خو لږ ایمان هر کله چه مقبول نه دې څکه کافر او ټاکلے شو]

**فائده:** دا لږ شان ایمان صرف د هغه امورو په وجه دې کوم چې د دوئ مذهب او اسلام کښې مشترك دی. کله د الله ﷻ لره منل، د قیامت منل، د دې امورو هغوئ هم قائل وو. خو د محمد ﷺ د نبوت او د الله ﷻ د کلام قرآن پاك نه منکر وو. په دې وجه ایمان ئې پوره نه وو. او دې لږ ایمان ته ئې د لغت په اعتبار سره ایمان اووئیلو، او د دې معنی ده یقین، اګر چې دا خینې څیزونو سره تعلق ساتی. دې ته شرعی اعتبار سره ایمان نشی وئیلې. شرعی طور سره هغه ایمان معتبر دې چې شرعی ټولو امورو باندې یقین راوړی.

وَلَمَّا جَآءَهُمْ كِتٰبٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ لا

اوهر کله چې | راغې دوئ ته | کتاب | د طرفه د الله نه | چې تصدیق کونکې دې | د هغه کتاب | چې د دوئ سره دې

او هر کله چې دوئ ته د الله ﷻ د طرفنه داسې کتاب راغلو چې د دوی د مذهبی کتابو سره [په اصولو کښې موافق] وو

وَكَانُوْا مِنْ قَبْلُ يَسْتَفْتِحُوْنَ عَلَى الَّذِيْنَ

او حال دا چې وو دوی | مخکښې د راتلو د دې کتاب نه | چې فتحه به ئې غوښتله | په مقابله د هغه کسانو کښې

احال دا دې چې د دې کتاب نه د راتلو نه وړاندې دوئ فتحه غوښتله د هغه کسانو په مقابله کښې

كَفَرُوْا ۚ فَلَمَّا جَآءَهُمْ مَّا عَرَفُوْا كَفَرُوْا

چې کافران وو | خو کله چې | راغې دوئ ته | هغه پیغمبر | چې اوپیژندو دوئ | نو انکار ئې اوکړو |

چې کافر وو خو هر کله چې هغه کتاب دوی ته راغلو او دوئ په ښه شان اوپیژندو نو انکار ئې اوکړو

| | |
|---|---|
| زه | فَلَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ۝ |
| دمنلو دهغې نه | نو لعنت دالله دې \| په دې انکار کونکو \| |
| ددې نه نو په داسې انکار کوونکو باندې دالله لعنت وريږي | |

## آسان ترجمه قرآن

او چه کله دوی ته د الله د طرف نه هغه کتاب راغې (يعنی قرآن) چه دهغه (تورات) هم تصديق کوی چه د مخکښ نه دوی سره دې (نو ددوی طرزعمل اوګوره) باوجود ددې چه دوی پخپله په شروع کښ د کافرو (يعنی بت پرستو) خلاف (ددې کتاب په حوالې سره) د الله نه د فتح دعا ګانې غوښتې مګرچه هغه څيز دوی سره راغې چه هغه دوی وپيژندوهم نودوی دهغې نه انکار اوکړو پس لعنت د الله دې وی په کافرو باندې.

## خلاصه تفسير

﴿وَلَمَّا جَآءَهُمْ كِتٰبٌ﴾ اوکله چه دوی ته [يو] کتاب راغلو [يعنی قران کريم] ﴿مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ﴾ چه دالله ﷻ د طرفو نه دې [او] ﴿مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ﴾ دهغه [کتاب هم] رښتونې بلونکې دې چه [د روميې نه [مخکښې څخه] دوی سره دې [يعنی تورات] ﴿وَكَانُوْا مِنْ قَبْلُ﴾ حالانکه ددې نه وړاندې ﴿يَسْتَفْتِحُوْنَ عَلَى الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ [به دوی پخپله بيان کولو] کافرانو ته [يعنی دعربو مشرکانو ته چه يو نبی راتلونکې دې چې يو کتاب به هم ځان سره راوړی مګر] ﴿فَلَمَّا جَآءَهُمْ مَّا عَرَفُوْا كَفَرُوْا بِهٖ﴾ بيا چه کله هغه څيز ورته راورسيدو کوم چه دوئ يئ [ښه پيژنی دهغې نه يئ [صفا] انکار اوکړو [بس] ﴿فَلَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ۝﴾ دالله ﷻ لعنت دےوی په داسې منکرانو [چه په قصد سره اود تعصب په وجه انکار کوی].

**فائده:** قرآن پاک ته ئې د تورات تصديق کوونکې اووئيل. ددې وجه داده چې په تورات کښې د محمد ﷺ د بعثت او د قرآن د نازليدو چې کومه پيشنګوئی شوې وه هغه ظاهره شوه. نو کوم خلق چې تورات منی نو هغه د قرآن عظيم الشان او صاحب قرآن ﷺ تکذيب نشی کولې او که داسې نه کوی نو دې به د تورات تکذيب کوونکې وی.

**يوه شبه او دهغې جواب:** اوکه چا ته دا شبه وی چې هغوئ خو حق پيژندلو بيا هغوئ ته مؤمن ولې اونه وئيلې شو کافران ورته ولې او وئيلې شو؟

نو ددې جواب دادې چې ايمان صرف د پيژندګلو نوم نه دې بلکه دمنلو نوم دې. ګنې هسې خو شيطان د ټولو څخه زيات حق پيژندلو. خو د پيژندګلو باوجود ئې انکار اوکړو. اوددې انکار په وجه ئې نور هم په کفر ورښخ شو. په دې وجه په راتلونکی آيت مبارک کښې دهغوئ د کفر وجه عناد خودلې شوې ده. نو ارشاد دې چې:

| | |
|---|---|
| بِئْسَمَا | اشْتَرَوْا |
| بد دي هغه څيز | چې خرڅ ئې کړل |
| ډير بد دي هغه څيز چې دوى پرې خرڅ کړې دى | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِهٖٓ | اَنْفُسَهُمْ | اَنْ يَّكْفُرُوْا | بِمَآ | اَنْزَلَ اللّٰهُ | بَغْيًا |
| په هغې سره | ځانونه خپل چې | انکار کوى دوئ | د هغه کتاب نه | چې نازل کړو الله | صرف د دي ضد په وجه |
| خپل ځانونه [هغه دا] چې د الله ﷻ د کتاب نه د بغض په وجه انکار کوى [او مسلمانانو سره حسد ساتى] چې [ولې] | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَنْ يُّنَزِّلَ | اللّٰهُ | مِنْ فَضْلِهٖ | عَلٰى مَنْ | يَّشَآءُ | مِنْ عِبَادِهٖ | فَبَآءُوْ |
| چې نازلوى | الله | فضل خپل | په هغه چا | چې خوښه ئې وى | د بندګانو خپلونه | نو مستحق شوى وى |
| الله خپل فضل په هغه چا کوى چې پخپلو بندګانو کښې د هغه خوښ شى [او پيغمبر مونږ کښې ولې نه راليږى] | | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِغَضَبٍ | عَلٰى غَضَبٍ | وَلِلْكٰفِرِيْنَ | عَذَابٌ | مُّهِيْنٌ۝ |
| د يو غضب | د پاسه د بل غضب | او د پاره د کافرانو | عذاب | اسپکونکې |
| څکه خو دوئ په لاندې باندې غضب کښې اخته شو او کافرو د پاره سپکونکې سزا مقرر ده | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

بد دي هغه قيمت چه د هغې په بدله کښې دوى خپل ځان خرڅ کړې دي چه دوى د الله د کتاب صرف د دې حسد د وجې نه انکار کوى چه الله تعالىٰ د خپل فضل څه حصه (يعنى وحى) په خپلو بندګانو کښې چه چا لره وغواړى (ولې) راليږى؟ دوى (د خپل دې حسد په وجه) غضب د پاسه په بل غضب کښې اخته شو او کافران د ذلت والا د عذاب مستحق دي.

## خلاصه تفسير

﴿بِئْسَمَا اشْتَرَوْا بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ﴾ د هغه حالت [ډير زيات] بد دي چه د دې په اختيارولو سره [دوى په خپل ګمان] خپل ځانونه [د آخرت د سزا نه] خلاصول غواړى [او هغه حالت] ﴿اَنْ يَّكْفُرُوْا بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ بَغْيًا﴾ دا [دې] چه کفر [انکار] کوى په دا سې څيز چه الله ﷻ [په يو ربښتونى پيغمبر] ﴿اَنْ يُّنَزِّلَ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ﴾ نازل کړو [يعنى قران او د غه انکار هم] صرف په [دې] ضد چه الله ﷻ د خپل فضل نه ﴿عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ﴾ په کوم بنده چه ورته منظور وى [يعنى محمد ﷺ باندې ئې ولې] نازل کړو نو [د دې حسد په وجه چه کفر نه يئ علاوه دي] ﴿فَبَآءُوْ بِغَضَبٍ عَلٰى غَضَبٍ﴾ د غه خلق د غضب د پاسه په بل غضب ګرفتار شول او [آخرت کښې] ﴿وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ۝﴾ د دې کفر کوونکو لره به داسې سزا وى چه په کښې به [د تکليف نه علاوه] ذلت [هم] وى.

**فائده:** يو غضب په کفر او بل په حسد باندې. يعنى غضب د پاسه غضب ئې اوفرمائيلو. عذاب سره د مهين بيانولو مقصد دا دي چې دا عذاب به صرف کافرانو سره خاص وى. څکه چې مؤمن د پاره خو به عذاب صرف د ګناهونو د پاکولو د پاره وى، ذلت د پاره به نه وى.
او دې راتلونکى آيت مبارک کښې ئې چې د هغوئ کوم قول نقل کړې دي د دې څخه د دوئ کفر ثابتيږى، او حسد ترې هم ښکاره دې.

| |
|---|
| وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ اٰمِنُوْا بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ قَالُوْا نُؤْمِنُ |
| او کله چې اوونیلې شي \| دوئ ته \| چې ایمان راوړئ \| په هغه \| چې نازل کړې دې الله \| نو وائی \| مونږ ایمان راوړو |
| اوهر کله چې دوئ ته اوونیلې شي چې دالله په کتاب ایمان راوړئ نو وائی چې مونږ خو په هغه کتاب ایمان ساتو |
| بِمَآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا وَيَكْفُرُوْنَ بِمَا وَرَآءَهٗ |
| په هغه \| چې نازل کړې شوې دې \| په مونږ \| او انکار کوی \| دمنلو دهغې نه \| چې ماسوا دی دهغې نه |
| چې مونږ ته [اوزمونږ کورنئ ته] رالیږلې شوې دې او دهغې نه بغیر د نورو کتابونو نه انکار کوی |
| وَهُوَ الْحَقُّ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَهُمْ ؕ قُلْ فَلِمَ تَقْتُلُوْنَ |
| حالانکه هغه \| حق دې \| تصدیق کونکې دې \| د هغه کتاب \| چې د دوئ سره دې \| اووایه \| نو ولې \| وژل تاسو |
| اوحال دا چې دا کتاب [قران پاک] حق دې او د دوئ د کتاب [توراة] تصدیق کوی ورته اووایه چې ولې مو اووژل |
| اَنْۢبِيَآءَ اللّٰهِ مِنْ قَبْلُ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۝ |
| پیغمبران \| دالله \| مخکښې د دې نه \| که چرې \| یئ تاسو \| مؤمنان \| |
| رومبی پیغمبران دالله ﷺ که تاسو ربښتونی مؤمنان یئ |

## آسان ترجمه قرآن

**او کله چه دوی ته اووئیلې شی چه الله کوم کلام نازل کړې دې په هغې باندې ایمان راوړئ نو دوی وائی چه مونږ خو (صرف) په هغه کلام باندې ایمان ساتو کوم چه په مونږ باندې نازل کړې شوې (یعنی تورات) او دوئ دهغې نه سوا (د نورو اسمانی کتابونو) نه انکار کوی حالانکه هغه هم حق دی (او) کوم کتاب چه دوی سره دې هغه دهغې تصدیق کوی. (اې پیغمبره!) ته دوی ته اووایه چه که تاسو واقعی (په تورات باندې) ایمان لرلو نو تاسو په اوله زمانه کښې دالله تعالی پیغمبران ولې وژل؟**

## خلاصه تفسیر

﴿وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ اٰمِنُوْا بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ﴾ او کله چې دې [یهودیانو] ته اووئیلې شی چه تاسو ایمان راوړئ په هغه ټولو کتابونو چه الله [په ګڼرو پغمبرانو] نازل کړی دی [اوپه دې ټولو کتابونو کښې قران کریم هم شامل دې] ﴿قَالُوْا نُؤْمِنُ بِمَآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا﴾ نو [جواب کښې] وائی چه مونږ [خو صرف] په هغې کتاب ایمان راوړو چه په مونږ [خلقو په ذریعه د حضرت موسی ﷺ] نازل کړې شوې دې یعنی تورات ﴿وَيَكْفُرُوْنَ بِمَا وَرَآءَهٗ﴾ او باقی ځومره کتابونه چې د دې ځخه علاوه دی [لکه انجیل او قرآن عظیم الشان د دې ځخه] دوی انکار کوی ﴿وَهُوَ الْحَقُّ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَهُمْ﴾ حالانکه دا [تورات نه بغیر کتابونه] هم [په خپل ځائې کښې] حق [او واقعی] دی او [په خپل ځائې دحق کیدو نه علاوه] ربښتونی بلونکی هم دی د هغې [کتاب] چه دوی سره دې [یعنی تورات] ﴿قُلْ فَلِمَ تَقْتُلُوْنَ اَنْۢبِيَآءَ اللّٰهِ مِنْ قَبْلُ﴾ تاسو [دا هم] اووائې [چه] بیا مووله وژل د الله ﷺ پیغمبران د دې نه په وړاندې زمانه کښې ﴿اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۝﴾ که تاسو [په تورات] ایمان لرونکی وې.

**فائده**: یهودیانو دا وئیل چې مونږ صرف په تورات باندې ایمان راؤړو په نورو کتابونو باندې نه راؤړو. نو ددوئ دا قول بالکل ښکاره کفر دې. او دې سره ئې دا هم اووئیل چې دا تورات چې په مونږ باندې نازل شوې دې ددې څخه حسد ښکاریږي. ددې مفهوم صفا دې، یعنی نور کوم کتابونه چی دی هغه په مونږ باندې نه دی نازل کړې شوی. په دې وجه مونږ په هغې باندې ایمان نه راؤړو. الله ﷻ ددوئ ددې قول په درې طریقو سره رد اوفرمائیلو:

① اول دا چې ددې کتابونو حقیقت او او واقعیت هم په دلیل قطعی سره ثابت دې، نو بیا ددې څخه انکار ولې کوئی؟ اوکه په دې دلیل کښې څه خبرې وې نو هغه به تاسو پیش کړې وې، او د ځان تسلی به مو کړی وې، آخر د انکار کولو دا څخه وجه ده؟

② نور کتابونه لکه قرآن مجید ، دا هم د تورات تصدیق کوؤنکې دې نو ددې د انکار څخه معلومیږی چې تاسو د تورات څخه هم انکار کوئی.

③ دریم دا چې نبیان ﷺ قتل کول د ټولو آسمانی کتابونو په لحاظ سره کفر دې، بیا ستاسو د ډلې خلقو ډیر نبیان ﷺ قتل کړل، او هغوئ هم د تورات تعلیم ورکولو، او تاسو هغه قاتلان خپل پیشوا او مشران ګنړئی. نو دا خو داسې ده لکه چې تاسو نیغ په نیغه په تورات کفر کوئی. نو ستاسو په تورات باندې د ایمان دعوی هم غلطه شوه. غرض دا چې په هیڅ طریقې سره ستاسو قول او فعل صحیح نه دې.

وړاندې څینې نورو وجوهاتو سره ددې یهودو رد کولې شی، نو ارشاد فرمائی چې:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | | وَلَقَدْ | جَآءَكُمْ |
| | | | | اوپه تحقیق سره | راغلي ووتاسو ته |
| | | | | اوراغلي وو تاسو ته | |
| مُّوسٰى | بِالْبَيِّنٰتِ | ثُمَّ | اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ | مِنْۢ بَعْدِهٖ | وَاَنْتُمْ |
| موسی | په ښکاره معجزو سره | بیا | اونیووتاسوئ سخې | روستو دهغه نه | او وئ تاسو |
| موسی په معجزوڅرګندو | [ددې باوجود] تاسوسخې | [ګیلګی؛] معبود جوړ کړلو | دهغه [کوه طور ته دتلونه] پس | | |
| ظٰلِمُوْنَ ۝ | | | | | |
| ظلم کونکی | | | | | |
| اوپه ځان مو زیاتې کوؤ | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

**اوپخپله موسٰی علیه السلام تاسوته واضحه نښې راوړې وې بیا تاسو دهغه نه روستو داظلم اوکړو چه سخې لره موپه خدایتوب اونیولو.**

## خلاصه تفسیر

﴿وَلَقَدْ جَآءَكُمْ مُّوسٰى بِالْبَيِّنٰتِ﴾ او [حضرت موسی ﷺ] تاسو خلقو ته صفا صفا دلیلونه [دتوحید او رسالت] راوړل ﴿ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ مِنْۢ بَعْدِهٖ﴾ مګر په دې هم تاسو خلقوڅخې [ګیلګی] [معبود] جوړ

کړو دموسی ﷺ کوه طور ته دتلو] نه پس ﴿وَأَنتُمْ ظَٰلِمُونَ﴾ او تاسو [په دې تجویز کښې] ظالمان ئې.

**فائده:** د بینات څخه هغه دلائل مراد دی چې ددې قصې څخه وړاندې ووا و لا ورته تورات نه وو ملاؤ شوې. اود موسی ﷺ په حقه نبی کیدو باندې قائم شوی وو، لکه عصا، او ید بیضاء دریاب کښې لارې جوړیدل وغیره.

د رد د تقریر حاصل په ښکاره دادې چې تاسو خو د ایمان دعوی کوئی. او تاسو په ښکاره شرك کښې اخته یئی. او ددې څخه دموسی ﷺ بلکه د الله ﷻ ښکاره تکذیب ښکاری. د څخی [گیلګی] د عبادت معامله اګر چې دې یهودو سره نه وه کوم چې د رسول اکرم ﷺ په زمانه کښې د قرآن پاك د نازلیدو په وخت کښې موجود وو، خوداً خلق د خپلو پلرونو او نیکونو حامی او مدد کوؤنکی وو. نو په دې وجه دوئ هم په دې رد کښې شامل دی.
او ددې څخه دا خبره هم ښکاره ده چې د چا اسلافو د موسی ﷺ تکذیب اوکړو نو که هغوئ د محمد ﷺ څخه انکار اوکړې نو دا څه لرې خبره خو نه ده.

| |
|---|
| وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ |
| \| اویاد کړئ کله چې \|او اغستله مونږ \|پخه وعده ستاسو نه \|اوپورته کړو مونږ \|د پاسه ستاسو |
| او [یاد کړئی] چې مونږ ستاسو نه پوخ لوظ واخستو او مونږ ستاسو د پاسه کوه طور |
| الطُّورَ ۚ خُذُوا مَا آتَيْنَاكُم بِقُوَّةٍ وَاسْمَعُوا ۖ |
| طور غر \| چې اونیسئ \| هغه \| چې درکوو مونږ تاسو ته \| په سختئ سره \| او په غوږونو ئې واورئ |
| اوچت کړو چې مونږ کوم کتاب درکړې دې هغه مضبوط اونیسئ [ز مونږ د خبرې آوریدو پشان] واورئی |
| قَالُوا سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا وَأُشْرِبُوا فِي قُلُوبِهِمُ |
| اووئیل هغوئ \|او اوریدل مونږ \| او ونه منل مونږ \| او څکلې شوی وو \| په زړونو دهغوئ کښې |
| نو دوئ اووئیل چې مونږ واوریدلې خو منلې ئې نه شو خکه چې د دوئ زړونه د څخې په مینه کښې |
| الْعِجْلَ بِكُفْرِهِمْ ۚ قُلْ بِئْسَمَا يَأْمُرُكُم بِهِ |
| محبت د سخی \| په سبب د کفر د هغوئ \| ورته اووایه \|بد دې هغه خیز \|چې حکم کوی تاسو ته \|په هغې سره |
| د کفر په وجه خړوب شوی وو ورته اووایه چې ډیر خراب تعلیم درکوی تاسو ته |
| إِيمَانُكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ۝ |
| ایمان ستاسو \| که چرې یئ تاسو \| مؤمنان \| |
| دا ایمان ستاسو که چرې تاسو مؤمنان یئ [نو دا خوڅه عجیبه غوندې ایمان دې] |

## آسان ترجمه قرآن

او هغه وخت یاد کړئ چه مونږ تاسو نه وعده واخسته او ستاسو د پاسه موکور اوچت کړو (او دا مو ووئیل چه) کوم څه چه مونږ تاسو ته درکړی دی هغه مضبوطیا سره اونیسئ او (څه چه درته ووئیلې شی هغه په

هوش سره) واورئ دوی ووئیل چه مونږ(مخکښې هم) اوریدلی وولیکن عمل مونه ووکړې (او س به هم داسې کوؤ) او(په اصل کښې) ددوی دکفر د سپیره توب د وجې نه د سخې هغه محبت د دوی په زړونوکښې مضبوط شوې وو ته (دوی ته) ووایه که چرې تاسو مؤمنان یئ. نو څومره بدې دي هغه خبرې چه تاسوته ستاسو ایمانونه ذهغې خودنه کوی!

## خلاصه تفسیر

﴿وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ﴾ او[هغه زمانه یاده کړئ] چه کله مونږ ستاسونه لوظ اوقول اخستلې وو او [ددې لوظ اوقول] اخستلو دپاره ئې]﴿وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّورَ﴾ مونږ طور ستاسو [دسرونو] دپاسه اودرولو [او دغه وخت مو حکم ورکړې وو چه]﴿خُذُوا مَا آتَيْنَاكُم بِقُوَّةٍ﴾ واخلئ چه څه [احکام] مونږ تاسو ته درکوو په همت [او مضبوطیا] سره ﴿وَاسْمَعُوا﴾ او [هغه احکام د زړه نه] واورئ ﴿قَالُوا سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا﴾ [دغه وخت] دوی [دویرے نه په ژبو خو] اووئیل چه مونږ [قبول کړل او] وا موریدل او [چونکه په حقیقت کښې داخبره دزړه نه نه وه په دې وجه گویا چه په زبان حال سره یئ داسې هم اووئیل چه] مونږ نه به دا عمل اونشی او [وجه د دوی دبد دلئ داوه چه] ﴿وَأُشْرِبُوا فِي قُلُوبِهِمُ الْعِجْلَ بِكُفْرِهِمْ﴾ د دوی [د] زړونو [په رگ رگ]کښې هغه څخې ورننوتے وو ددوی د[وراندینی] کفر په وجه [کله چه دتریودریاب پورې اووتل اوذیو بت پرست قوم په لیدو سره یئ منت کړې وو چه مونږ دپاره دې داسې یو مجسم معبود تجویز کړې شی] ﴿قُلْ بِئْسَمَا يَأْمُرُكُم بِهِ إِيمَانُكُمْ﴾ تاسو اووائې چه [اولیدل تاسو دخپل گمان ایمان کارو نه نو] دا کارونه ډیر بد دی چه دهغې ښودنه ستاسو ایمان تاسو ته کوی ﴿إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ﴾ که یې [په خپل گمان کښې اوس هم ایمان خاوندان [یعنی دا ایمان نه دې].

**فائده:** دې آیت مبارک کښې چې کوم اسباب او مسببات ذکر شوی دی دهغې د ترتیب حاصل دادې چې کله دوئ تریو دریاب څخه پورې وتل نو ددوئ دخولو څخه د کفر یو کلمه اووتله، اگر چې د موسی ﷺ په رتلو سره ئې ددې څخه توبه اوویستله خو د توبې هم ډیر مراتب وی. ددوئ توبه د اعلی درجې نه وه، په دې وجه ددوئ په زړونو کښې څه تیاره پاتې شوې وه او هغې پرمختګ کولو کولو او ددې پرمختګ په نتیجه کښې دوئ د څخی عبادت شروع کړو. بیا ددې توبې باره کښې ځینې قتل هم کړې شو. او ځینې ته غالبا د قتل څخه معافی هم ملاؤ شوه لکه څنګه چې ځینې مفسرینو لیکلی دی. ددوئ توبه به هم کمزورې توبه وه. او کوم خلق چې د څخی د عبادت څخه محفوظ پاتې شوی وو، هغوئ د څخی عبادت کوؤنکو څخه نفرت اونه کړو، په دې کښې کوتاهی اوکړه او د شرکیه گناه یو اثر ددوئ په زړونو کښې پاتې شو. د ضعیفې توبې یا د کفر څخه د نفرت نه کولو په وجه ددوئ زړونو کښې ددین د سستئ آثار پیدا شوی وو. نو په دې وجه کوه طور کښې ددې خبرې ضرورت راپیښ شو چې په دوئ کوه طور معلق کړې شو.

| قُلْ | إِنْ كَانَتْ | لَكُمُ |
|---|---|---|
| دوئ ته اووایه | [که چرې وی | ستاسودپاره |
| ورته اووایه | که | [د]آخرت |

الدَّارُ الْاٰخِرَةُ عِنْدَ اللّٰهِ خَالِصَةً مِّنْ دُوْنِ النَّاسِ فَتَمَنَّوُا

کور د آخرت | په نزد الله | خالص | ماسوا دنورو خلقو نه | نو آرزو اوکړئ |

[نعمتونه] خالص تاسودپاره مقرر وی اودنورچاپه کښې څه برخه نه وی نوراځئ د مرګ خواهش اوکړئ

الْمَوْتَ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ۝ وَلَنْ يَّتَمَنَّوْهُ اَبَدًا بِمَا

دمرګ | که چرې يئ تاسو | رښتينئ | اوهرګزبه آرزو اونکړی | هميشه دپاره | په سبب دهغه

که تاسو په [پخپله دعوی کښې] رښتونی يئ اودوی به دمرګ خواهش هيڅ کله اونکړی

قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ ۭ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالظّٰلِمِيْنَ۝

چې مخکښې ليږلي دي | لاسونه ددوئ | اوالله | ښه خبردې | په حال ددې ظالمانو |

دخپلو [بدو] عملونو په وجه | اوالله ﷻ ظالمان خلق ډير ښه پيژني |

## آسان ترجمه قرآن

ته (دوی ته) ووايه چه که دالله تعالی په نيز د آخرت کور د ټولو انسانانو نه علاوه صرف تاسو دپاره خاص وی (څنګه چه ستاسو وينا ده) نو د مرګ آرزو وکړئ که واقعی رښتيني يئ او (مونږ وايو چه) دوی چه کوم عمل مخکښې ليږلي دي دهغې د وجې نه به دوی چرې هم دا آرزو ونکړي الله تعالی ظالمان ښه پيژني.

## خلاصه تفسر

بعضې يهوديانو به دعوی کوله چه دآخرت نعمتونه هم زمونږ حق دے، الله ﷻ ددې دعوے د باطل ګرزولودپاره اوفرمائيل ﴿قُلْ اِنْ كَانَتْ لَكُمُ الدَّارُ الْاٰخِرَةُ عِنْدَ اللّٰهِ خَالِصَةً مِّنْ دُوْنِ النَّاسِ﴾ [ائې محمد ﷺ] تاسو [دے خلقو ته] اووائې چه که [ستاسو په خبره] دآخرت کور صرف ستاسو دپاره سومنده وی د بل دشرکت نه بغير نو تاسو [ددې د تصديق دپاره لږ شان] ﴿فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ﴾ دمرګ خواهش کولوسره اوښائی ﴿اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ۝﴾ که تاسو [په دې دعوی کښې] رښتونی يئ او [مونږ ورسره داهم وايو چه] ﴿وَلَنْ يَّتَمَنَّوْهُ اَبَدًا﴾ دا خلق به هيچرې هيڅ کله هم ددې [مرګ] خواهش او نه کړی ددغه [کفری] عملونو [دسزا د ويرے د وجې] ﴿بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ ۭ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالظّٰلِمِيْنَ۝﴾ چه په خپلو لاسونو ئے راټول کړی دی او الله ﷻ ښه خبردے ددې ظالمانو [په حال باندې] چه دمقدمے تاريخ راشی فرد جرم به ورته واوروله شی اودسزا حکم به پرې اوکړې شی.

**فائده:** د قرآن عظيم الشان د نورو آيتونو مبارکو څخه هم ددوئ د دعوؤ مفهوم راوځی لکه: ﴿وَقَالُوْا لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ اِلَّآ اَيَّامًا مَّعْدُوْدَةً ۭ﴾ [۲:۸۰] (۱) ﴿وَقَالُوْا لَنْ يَّدْخُلَ الْجَنَّةَ اِلَّا مَنْ كَانَ هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰى ۭ﴾ [۲:۱۱۱] (۲) ﴿وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ وَالنَّصٰرٰى نَحْنُ اَبْنٰۗؤُا اللّٰهِ وَاَحِبَّاۗؤُهٗ ۭ﴾ [۵:۱۸] (۳) وغيره.

ددې ټولو دعوؤ حاصل دادې چې مونږ په حق دين باندې يو. او مونږ ته به په آخرت کښې ضرور نجات ملاويږی. مونږ کښې چې کوم توبه ګار يا مورده ګان دی هغوئ ته خو به دشروع څخه

(۱) ترجمه: يهوديانو اوئيل چه اور به مونږه د شمار څو ورځو نه علاوه هرګز نه سوزه وی.

(۲) ترجمه: يهوديان او عيسايان وائي چه په جنت کښی د يهوديانو او عيسيانو نه علاوه څوک هم هرګز نه داخليږی.

(۳) ترجمه: يهود او نصاری وائي چه مونږ د الله ځامن او نيازبين يو.

جنت ته د تلو اجازت ملاؤ شی. او چې کوم ګناهګار دی هغوئ ته به د څو ورځو عذاب تیرولو څخه روستو نجات ملاؤ شی. او کوم چې مطیع دی، هغوئ په مثل د ابناء او احباء دی یعنی محبوب او مقرب خلق.

د ځینو عنواناتو څخه دا معلومیږی چې په حق دین باندې د قائمیدو په صورت کښې فی نفسه دا بالکل رښتیا او درست دی، لیکن هغه خلق دخپل دین منسوخ کیدو په وجه په خپل دین باندې قائم پاتې نشو. نو په دې وجه الله ﷻ ځائې په ځائې مختلفو عنواناتو سره ددوئ د دروغو ذکر فرمائیلې دې. دلته یو خاص طریقه ذکر کړې شوه، که دعام عادت مطابق بحث او دلائلو سره فیصله نه کیږی نو راځئ چې ما فوق العاده طریقې یعنی معجزې سره دا فیصله کړو، په هغې کښې نه د زیات فهم ضرورت وی او نه په کښې د ژور نظر څه کار وی. صرف د ژبې خوزلو ضرورت وی مګر مونږ پیشن ګوئ کوؤ چې تاسو په ژبه بالکل دا نشئ وئیلې چې مونږ د مرګ خواهش لرو.

ددې پیشن ګوئی څخه روستو مونږ دا وئیلې شو چې که تاسو په خپلو دعوؤ کښې رښتونی یئ نو دا کلمه اووائې، که دا مو اونه وئیله نو بیا ستاسو دروغژن کیدل ثابت شو.

دوئ ته دا ښه معلوم وو چې مونږ په باطل او کفر باندې یو او رسول اکرم ﷺ او مؤمنان په حقه دی. په دې وجه په دوئ داسې مصیبت راغلو چې ددوئ ژبو باندې هیبت راغلو یا وینا ته جوړې نه شوې، یا دوئ ویریدل که تاسو دا کلمه اووئیله نو سمدستی به درته مرګ راشی اوبیا به نیغ جهنم کښې داخل کړئی شئ. رسول اکرم ﷺ سره چې ددوئ کومه دښمنی وه د هغې پیش نظر هغوئ ته پکار وو چې ددې په آوریدو په کښې جوش راغلې وې او پکار ورله دا وو چې دا کلمات ئې ضرور وئیلې وې.

حقیقت کښې د اسلام د حقانیت د ثبوت دپاره دا واقعه کافی ده. دلته دوه دلائل قابل ذکر دی:

① اول دا استدلال هغه یهودو سره وو چې د رسول اکرم ﷺ په زمانه کښې موجود وو، او د دوئ د رسول اکرم ﷺ سره عناد او دښمنی وه او په دې وجه ئې د رسول اکرم ﷺ څخه انکار اوکړو، دا دهرې زمانې یهودو ته خطاب نه دې.

② بل په دې شبه کښې اوسیدل نه دی پکار چې خواهش کول د زړهٔ او ژبې دواړو څخه وی چې ممکنه ده هغوئ د زړهٔ څخه خواهش کړې وی. اول خو دا په دې وجه صحیح نه دی چې د الله ﷻ فرمان قوله تعالی: ﴿وَلَنْ يَّتَمَنَّوْهُ﴾ ددې صفا تردید کوی بل که هغوئ د زړهٔ څخه دا خواهش کولو نو په ژبه به ئې ضرور ددې اظهار کولو. ځکه چې په دې کښې یوه ګټه وه. او د رسول اکرم ﷺ په دروغه ګنړلو یو ښه موقع وه.

اودا شبه هم کول نه دی پکار چې هغوئ به خواهش کړې وی، مګر دا خبره به نه وی مشهوره شوې. دا په دې وجه صحیح نه دی چې د اسلام د همدردو اومدد کوؤنکو شمیر همیشه د دښمنانو معاندینو په مقابله کښې کم وی. که داسې خبره وې نو د وئ به دا ښه مشهوره کړې وې چې اوګورئی تاسو چې کوم معیار د حق او صدیاقت اختیار کړې وو مونږ په هغې کښې پوره یو.

| |
|---|
| وَلَتَجِدَنَّهُمْ |
| او خامخا به ته بیا مومي دوئ |
| او ته به دوئ او مومې |

| يَوَدُّ أَحَدُهُمْ | أَشْرَكُوا | وَمِنَ الَّذِينَ | عَلَىٰ حَيَاةٍ | أَحْرَصَ النَّاسِ |
|---|---|---|---|---|
| غواړي هريو سړئ د دوئ | چې شرک ئې کړې دی | او دهغه خلقو نه | په ژوند باندې | زيات حرص کوونکې د خلقو نه |
| په دوئ کښې هريو داغواړي | او د مشرکانو نه هم زيات حرصناک | | په ژوندن پسې | ډير زيات حرصناک د ټولو خلقو نه |

| مِنَ الْعَذَابِ | بِمُزَحْزِحِهِ | هُوَ | وَمَا | أَلْفَ سَنَةٍ | لَوْ يُعَمَّرُ |
|---|---|---|---|---|---|
| د عذاب نه | خلاصونکې ده لره | هغه | او حال دا چې نه دې | زر کاله | که عمر ورکړې شی |
| که ورته زر کاله عمر ورکړې شی نو بيا به وی اخو نشی خلاصولې دوئ د عذاب [ د الله نه ] | | | | | |

| يَعْمَلُونَ | بِمَا | بَصِيرٌ | وَاللَّهُ | أَنْ يُعَمَّرَ |
|---|---|---|---|---|
| چې کوی ئې دوئ | دهغه عمل | اليدونکې دې | او الله | چې ورکړې شی عمر |
| او الله د دوئ کارونه ډير ښه وينې ګوری | | | | دعمر زيات والې |

## آسان ترجمه قرآن

(بلکه) ته به دوی لره يقيناً ووينې چه دوی ته د ژوندی پاتې کيدلو حرص د نورو ټولو انسانانو نه زيات دې تردې چه د مشرکانو نه هم زيات، د دوی يو يو کس دا هم غواړی چه د ده عمر زر کاله شی حالانکه د چا ډير عمر کيدل هغه د عذاب نه نشی خلاصولې او دوی چه څه عمل هم کوی الله تعالی هغه ښه وينې.

## خلاصه تفسير

او [دے خلقو به دمرګ خواهش څنګه کولو] ﴿وَلَتَجِدَنَّهُمْ أَحْرَصَ النَّاسِ عَلَىٰ حَيَاةٍ﴾ تاسو [خو] به دوی لره د [دنيوی] ژوند حرص کوونکی [او عامو] خلقو نه] هم زيات [حرص کوونکی] بيا اومومئ ﴿وَمِنَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا﴾ او [دنورو خو به لاځه ياد ګيرنه کوے حيرانتيا خو داده چه بعضې] مشرکانو نه به هم [ته ددوی نه دژوند زيات حرص کوونکوی اووينې او د دوی خو داشان دې ﴿يَوَدُّ أَحَدُهُمْ لَوْ يُعَمَّرُ أَلْفَ سَنَةٍ﴾ چې پدوی کښې يويو کس]په دې ارمان کښې دې چې د ده عمر دے زر کاله شی او [فرض که دومره عمر ئے هم شی نو څه اوشو] ﴿وَمَا هُوَ بِمُزَحْزِحِهِ مِنَ الْعَذَابِ﴾ دا خبره خو ئے دعذاب نه نشی خلاصولې چې ﴿أَنْ يُعَمَّرَ وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِمَا يَعْمَلُونَ﴾ [دچا زيات] عمر شی اود الله ﷻ د نظر وړاندې دی د دوی عملونه [بد چه دوی ته به پرې عذاب ورکولې شی].

فائده: په دې کښې د حيرانيدو خبره داده چې د عربو مشرکان خو د آخرت څخه منکران وو. دنيا او ددې بهار او عيش وعشرت د دوئ هر څه دی. که د اوږد عمر خواهش اوکړی نو څه لرې خبره نه ده.خو يهود خپل ځان د آخرت قائل او په خپل ګمان کښې خپل ځان د آخرت د نعمتونومستحق ګڼړی بيا هم دوئ په دنيا کښې د اوسيدو خواهش کوی. دا د تعجب او حيرانتيا خبره ده.

نو د آخرت اعتقاد لرو باوجود د اوږد عمر خواهش کول ددې خبرې دلیل دې چې خپل ځان د آخرت د نعمتونو مستحق ګڼړلو دعوی کول صرف یو دعوی ده. ددې حقیقت دوئ ته هم ښه معلوم دې چې هلته رسیدل دی او جهنم ته داخلیدل دی. ترکومې چې دوئ خلاص دی نو خلاص دی.

قُلْ مَنْ كَانَ

| اووایه هغه څوک چې وی

ورته اووایه هرڅوک چې

عَدُوًّا لِّجِبْرِيْلَ فَإِنَّهٗ نَزَّلَهٗ عَلٰى قَلْبِكَ بِإِذْنِ اللّٰهِ

دشمن | دجبریل | نو بیشکه هغه | نازل کړې دې دا [قرآن] | په زړه ستا | په حکم دالله |

دښمن دې دجبریل [نو تکړه دې شی] بیشکه داقران هم هغه دالله په حکم سره ستا په زړۀ نازل کړې دې

مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَهُدًى وَّبُشْرٰى

تصدیق کونکې دې | دهغه کتابونو چې مخکښې دده دی | او هدایت دې | او زیرې دې |

چې د مخکینو کتابونو تصدیق کوی | او دالله لار خودونکې او زیرې ورکوونکې دې

لِلْمُؤْمِنِيْنَ ۝ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّلّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَرُسُلِهٖ وَجِبْرِيْلَ

دپاره دمومنانو | هرڅوک چې وی | دشمن دالله | او دفریښتو دهغه | او درسولانو دهغه | او دجبریل

مومنانو ته | څوک چې دښمن وی دالله او دهغه دفرښتو او دهغه درسولانو او د جبریل علیه السلام

وَمِيْكٰىلَ فَإِنَّ اللّٰهَ عَدُوٌّ لِّلْكٰفِرِيْنَ ۝

او دمیکائیل | نو بې شکه چې الله | دشمن دې | دکافرانو |

او د میکائیل | نو بیشکه الله تعالی دکافرانو دښمن دې |

## آسان ترجمه قرآن

(اې پیغمبره!) ته ووایه که یو کس دجبریل علیه السلام دښمن وی نو (وی دې) هغه خو دا کلام دالله په اجازت سره ستا په زړه باندې رالیږلې دې چه دځان نه دمخکښ کتابونو تصدیق کوی او دایمان والو دپاره هدایت او خوشخبری ده که یو کس د الله دهغه د فرښتو، او د رسولانو، او دجبریل او میکائیل دښمن وي (نو هغه دې واوری) چه الله د کافرو دښمن دې.

## خلاصه تفسیر

بعضې یهودیانو چه د رسول الله ﷺ نه دا خبره واورریدله چه جبرائیل علیه السلام وحی راوړی نو هغوی اووئیل چه ده سره زمونږ په دې وجه دښمنی ده چه ده زمونږ په قوم باندې ډیرے ویرونکې واقعې او سخت احکام راوړی وو. ددې نه خو میکائیل علیه السلام ښه دې چې باران او رحمتونه راوړی او که چرې ده وحی راوړې وې نو مونږ به دده وحی منله. نو الله ﷻ اوفرمائیل چه ﴿قُلْ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيْلَ﴾ اې محمد ﷺ تاسو [دوی ته] دا اووایې چه څوک جبرائیل علیه السلام

سره دښمني کوي نو [هغه پوهه شه او کار ئے پوهه شه خو قران کريم نه منلو کنبي ددې څه دخل دې؟] دې باره کښې خو هغه صرف يو سفير محض [راوړونکې دې] ﴿فَإِنَّهُ نَزَّلَهُ عَلَىٰ قَلْبِكَ بِإِذْنِ اللَّهِ﴾ نو [صرف ديو راوړونکي په حيثيت] هغه دا قران ستا زړه ته راوړسولے دے دالله ﷻ په حکم سره [نو د راوړونکي خصوصيت ته ولې ګورې قران کريم اوګورئ چه څنګه دے؟ نو] ﴿مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ﴾ ددې [قران کريم پخپله] داحال دې چې تصديق کوي دخپل ځان نه وړاندے [دآسماني] کتابونو ﴿وَهُدًى وَبُشْرَىٰ لِلْمُؤْمِنِينَ﴾ او لار ښاني [دضروري ښيګړو] او زيرے ورکوي ايماندارو ته [اود آسماني کتابونو شان هم داوي. پس قران په هر حال کښې آسماني اود تابعدارئ وړ کتاب دې. نوبيا په دې وجه نه منل څه عجيبه خبره او ښکاره کم عقل توب دې. چه دوی حضرت جبرائيل ﷺ سره دښمني کوي. دجبرائيل ﷺ سره د دښمنئ په باره کښې فيصله داوه چه د الله ﷻ په نزدپخپله د الله ﷻ سره دښمني کول، دده دنورو فرښتو سره دښمني کول، دده نورو رسولانو سره دښمني کول يا ميکائيل سره دښمني کول چه چا سره دوی د دوستئ دعوے کولے دتولو يو شان حکم دې چې] ﴿مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِلَّهِ﴾ که څوک د الله ﷻ دښمن وی [نو هم] ﴿وَمَلَائِكَتِهِ﴾ او که څوک د فرښتو دښمن وی [نو هم] ﴿وَرُسُلِهِ وَجِبْرِيلَ وَمِيكَالَ﴾ که څوک دهغه د پيغمبرانو دښمن وی [نو هم] که د جبرائيل دښمن وی [نوهم] اوکه دميکائيل دښمن وی [نو هم ددې ټولو وبال دادې چه] ﴿فَإِنَّ اللَّهَ عَدُوٌّ لِلْكَافِرِينَ﴾ الله ﷻ دښمن دے ددې سې کافرانو.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | | وَلَقَدْ | أَنْزَلْنَا |
| | | | | | | او په تحقيق سره | نازل کړی دی مونږ |
| | | | | | | [او [ائې پيغمبر] مونږ درليږلی دی | |
| إِلَيْكَ | آيَاتٍ | بَيِّنَاتٍ | وَمَا يَكْفُرُ | بِهَا | إِلَّا | الْفَاسِقُونَ | |
| تاته | داسې آيتونه | چې ښکاره دی | اونهٔ کوی انکار | دهغې نه | مګر | فاسقان خلق | |
| تاته ښکاره آيتونه \| اودهغې نه بل څوک نه صرف فاسقان [نافرمانه] انکار کوی | | | | | | | |

**آسان ترجمه قرآن**

**بې شکه مونږ په تا باندې داسې آيتونه راليږلي دی چه هغه حق ښکاره کوونکی دی اودهغې انکار هغه خلق کوی چه نافرمان دی.**

**خلاصه تفسير**

او بعضې يهوديانو حضور ﷺ ته وئيلی وو چه تاسو داسې څه واضح دليل نه دې راوړې چه هغه مونږ هم پيژندلے وے.ددې په جواب کښې وئيلی کيږی چه دوی خو هر وخت ديو واضح دليل په باره کښې غوښتنه کوی] ﴿وَلَقَدْ أَنْزَلْنَا إِلَيْكَ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ﴾ نو مونږ تاسو ته ډير واضح دليلونه نازل کړی دی [داسې چه دوئ يئ هم ښه پيژني نوانکاردنه پيژندلو په وجه نه بلکه په دې چه دوی د خوئيدلو عادت دی] او [دا يو کليه ده چه] ﴿وَمَا يَكْفُرُ بِهَا إِلَّا الْفَاسِقُونَ﴾ هيڅوک دالله ﷻ د حکم نه انکار نه کوی [ددا سې دليلونو] مګر صرف هغه خلق چه دحکم نه منلو عادت دی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَوَكُلَّمَا | عٰهَدُوْا | عَهْدًا | نَّبَذَهٗ | فَرِيْقٌ | مِّنْهُمْ ط | بَلْ |
| آیا داسې نه ده چې هرکله | اوکړه هغوئ | وعده | نوهيره کړه هغه | يوې ډلې | دهغوئ نه | بلکه |
| آیا هرچرې چې دوی یو لوظ نامه اوکړی نو [خواه مخواه] يوډله به هغه لوظ نامه ماتوی بلکه | | | | | | |
| اَكْثَرُهُمْ | لَا يُؤْمِنُوْنَ۝ | | | | | |
| زيات خلق دهغوئ | نه راوړی ایمان | | | | | |
| دوئ زيات [خو په توراة هم] ايمان نه راوړی | | | | | | |

**آسان ترجمه قرآن**

**دا آخر څه معامله ده چه دې خلقو کله يوه وعده اوکړه نو يوې ډلې هميشه دا ماته کړې ده؟ بلکه په دوی کښې اکثر خلق ايمان نه راوړی.**

**خلاصه تفسير**

[بعضې يهوديانو ته چه هغه لوظ وريادکړې شو چه کوم دوی نه الله ﷻ په تورات کښې د حضور ﷺ په باره کښې اخستې وو نو دوی بالکل ددغه لوظ نه انکار اوکړو نو الله ﷻ په دې وجه اوفرمائيل چه] آيا [ددې لوظ اخستلو نه دوی انکاريان دی] او [دا ددوی عادت دی چه هيڅکله خپل منلې شوی لوظونه نه دی پوره کړی بلکه] ﴿اَوَكُلَّمَا عٰهَدُوْا عَهْدًا نَّبَذَهٗ فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ﴾ کله هم چې دې خلقو [ددين په باره کښې] څه لوظ به کړې وی [خامخا] دغې لره به ددوی نه څه نه څه ټولگی شا ته غورزولې وی ﴿بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ۝﴾ بلکه پدوی [په خپل لوظ کلك ولاړو] کښې به زيات داسې خلق راوځی چه [دسره نه به ددغه لوظ] يقين [هم] نه لری [نو په لوظ پوره عمل نه کول خو هم ناکاره خبره وه او يقين پرې نه کول ددې نه زيات کفر دې].

**فائده:** اود يوې ډلې تخصيص په دې وجه اوکړې شو چې دوئ کښې به څينو وعدې پوره کولې هم او تردې چې آخر کښې ئې په نبی کريم ﷺ باندې ايمان هم راوړ.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَمَّا | جَآءَ | هُمْ | رَسُوْلٌ | مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ | | |
| اوهرکله چې | راغې | دوئ ته | يو رسول | دطرفه دالله نه | | |
| اوهرکله چې دوئ ته دالله دطرفه رسول راغلو | | | | | | |
| مُصَدِّقٌ | لِّمَا | مَعَهُمْ | نَبَذَ | فَرِيْقٌ | مِّنَ الَّذِيْنَ | |
| چې تصديق کونکې دې | دهغه کتاب | چې ددوئ سره دې | نو اوغورزولو | يوې ډلې | دهغه کسانونه | |
| چې ددوئ سره دموجوده کتاب تصديق اوتائيد کوی نو ددغې | | | | | | |
| اُوْتُوا | الْكِتٰبَ ق | كِتٰبَ اللّٰهِ | وَرَآءَ | ظُهُوْرِهِمْ | كَاَنَّهُمْ | |
| چې ورکړې شوې وو | ورته کتاب | کتاب دالله | روستو | دشاګانو خپلو نه | لکه چې دوئ | |
| اهل کتابو خلقونه يوې ډلې دالله کتاب داسې شاته اوغورزولو لکه چې دوئ | | | | | | |

لَا يَعۡلَمُونَ ۝

نه پوهیږي په هیڅ څیزا

هډود سره نه پیژندوا

## آسان ترجمه قرآن

او چه دوی ته د الله د طرف نه یو رسول راغلو چه دهغه (تورات) تصدیق ئې کولو چه دوی سره دي نو اهل کتابو کښې یوې ډلې د الله دې کتاب لره (تورات او انجیل) داسې شاه ته وغرځولو چه ګویا دوی هډو پوهیدل نه (چه په دې کښې د نبی علیه السلام په باره کښې څه هدایات ورکړې شوې وو).

## خلاصه تفسیر

[په دې ایت کښې دیو خاص قول د ماتولو ذکر شوې دې چه په رسول الله ﷺ باندې د ایمان راوړلو په باره کښې په خبره وه نو وې فرمائیل چه] ﴿وَلَمَّا جَآءَهُمۡ رَسُولٌ مِّنۡ عِنۡدِ اللّٰهِ﴾ او کله چه دوی ته یو [لوئې] پیغمبر راغلو د الله ﷻ له طرفه چه [د رسول الله ﷺ د رسول کیدو باوجود] ﴿مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمۡ﴾ رښتنی کو، نکی دې د هغه کتاب چې دې خلقو سره دې [یعنی د تورات خکه چه په کښې د دوی د پغمبرئ خبر دې په داسې حالت کښې پدوی ایمان راوړل به په عین تورات باندې عمل کول وو چه پخپله ئې هم کتاب الله ګنړی خوسره ددې نه هم] ﴿نَبَذَ فَرِيقٌ مِّنَ الَّذِينَ أُوتُوا الۡكِتَٰبَ كِتَٰبَ اللّٰهِ وَرَآءَ ظُهُورِهِمۡ﴾ ددې اهل کتابو نه یو ټولګی پخپله هم کتاب الله سره داشان روستو اوغوزولو ﴿كَأَنَّهُمۡ لَا يَعۡلَمُونَ ۝﴾ لکه چه دوی ته [ددغې مضمون یا ددې کتاب الله کیدلو] ګویا دوی ته بالکل علم نشته.

وَاتَّبَعُوا مَا تَتۡلُوا الشَّيَٰطِينُ عَلَىٰ مُلۡكِ

او ورپسې شوا په هغه څیز پسې ا چې پیش کوؤ به ا شیطانانو | په زمانه د بادشاهئ

ا او په هغو خبرو [منتر جادو ا] پسې روان شول چې شیطانانو به په زمانه د بادشاهئ

سُلَيۡمَٰنَ وَمَا كَفَرَ سُلَيۡمَٰنُ وَلَٰكِنَّ الشَّيَٰطِينَ كَفَرُوا

د سلیمان | حالانکه نه دې کفر کړې | سلیمان هیڅرې | لیکن | شیطانانو به | کفر کولوا

د سلیمان کښې کولې ا او سلیمان علیه السلام هیڅ کله کفر نه وو اختیار کړې کفر خو به شیطانانو کولو

يُعَلِّمُونَ النَّاسَ السِّحۡرَ وَمَآ أُنۡزِلَ عَلَى الۡمَلَكَيۡنِ

چې ښودو به ئې ا خلقو ته | جادو | او په هغه څیز پسې ا چې نازل شوې وو ا په دوؤ فرښتو

چې ناپوهه اوساده خلقو ته به ئې جادو خودلو ا او په هغې پسې روان شو چې نازل شوې وو په دوؤ فرښتو

بِبَابِلَ هَٰرُوتَ وَمَٰرُوتَ ۚ وَمَا يُعَلِّمَٰنِ مِنۡ أَحَدٍ حَتَّىٰ

په بابل کښې ا چه هاروت او ماروت وه | اونه به | ښودلو هغوئ دواړو ا هیچا ته | تر دې پورې ا

هاروت او ماروت باندې په بابل ښار کښې ا او هغې دواړو به تر هغې هیچا ته تعلیم نه ورکولو

يَقُوْلَآ إِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ فَلَا تَكْفُرْ فَيَتَعَلَّمُوْنَ

چي اوبه وئيل دواړو | چي مونږ | آزميښت[امتحان] يو| نومه كوه ته كفر| نو زده كولو به هغوئ

چي اول به ئي ورته اونه وئيل چي گوره مونږ آزميښت [له راغلي] يو|نو كفر مه كوه| خو بياهم زده كول به

مِنْهُمَا مَا يُفَرِّقُوْنَ بِهٖ بَيْنَ الْمَرْءِ وَزَوْجِهٖ

ددي دواړونه | هغه څيز|چي جدائي راولي | په هغي سره | په منځ دسړي | اودښځي دهغه كښي |

دوئ هغه [تعويذونه]چي په هغي سره به ئي د خاوند او ښځي ترمينځه جدائي راوسته

وَمَا هُمْ بِضَآرِّيْنَ بِهٖ مِنْ اَحَدٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ

اونه وو | هغوئ | ضرررسونكي | په هغه جادو سره| هيچا ته | مگر | په حكم دالله|

اوپه دي [جادو] سره به ئي بي دالله دحكم نه هيچاته ضرر نشو رسولي

وَيَتَعَلَّمُوْنَ مَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ

اوزده كوو به هغوئ|هغه څيز| چي ضرر به ئي رسولو هغوئ ته| اونه به ئي وركوله| فائده هغوئ ته

خو [دومره څيز به ئي دهغي نه ] زده كولوچي پخپله ددوئ په حقله به زيان وو|اوسودمند به نه وو

وَلَقَدْ عَلِمُوْا لَمَنِ اشْتَرٰىهُ مَا لَهٗ

اويقينا|چي ښه معلومه ده هغوئ ته داخبره|چي خامخا هغه څوك| چي واني غستودا| نشته| هغه لره

اودوئ ښه پوهيدل چي چا دغه [جادو] اختيار كړوا هغه دپاره هيڅ حصه نشته دي

فِي الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ لَوْ

په آخرت كښي| څه برخه |او ډير بد دي |هغه څيز|چي خرچ كړل هغوئ|په هغي سره خانونه خپل|افسوس چي

د نيكئ په آخرت كښي | اودوئ خپل خانونه دخراب څيز په بدل كښي خرڅ كړي دي| كه چرې

كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ۝ وَلَوْ اَنَّهُمْ اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا

وې هغوئ | چي پوهيدلې| اوكه چرې| هغوئ |ايمان راوړې وې|اوتقوى ئې اختيار كړې وې|

دوئ پوهيدي [نوداسې به ئي نه ووكړي] او[كاش]كه دوئ ايمان راوړې وې او خان ئ [دجادونه] بچ ساتلي دي

لَمَثُوْبَةٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ خَيْرٌ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ۝

نوخامخا هغه ثواب|چي دطرفه دالله نه دي|هغه ډير بهتر وو|افسوس كه چرې|وې هغوئ | چي خبروي

نوالله دطرفنه به لږ ثواب هم[ددي هرڅه]نه بهتر وو | كاش كه دوئ پوهيدلي [نو داسې به ئي نه وو كړي]

### آسان ترجمه قرآن

اودا (بني اسرائيل) هغه (منتروتو) پسې شو چه د سليمان عليه السلام د بادشاهت په زمانه كښې به شيطانانو لوستل او سليمن عليه السلام هيڅ كفر نه ووكړې البته شيطانانو به خلقو ته د جادو تعليم وركولو او دغه شان د كفر ارتكاب به ئې كولو(دابني اسرائيل) په هغه څيز پسې هم شو چه په بابل ښار كښې په هاروت او ماروت نومې دوه فرښتو باندې نازل شوې وو دې دوه فرښتو به تر هغه وخته پورې چا

**ته تعليم نه ورکولو ترڅو چه به ئې هغه ته دا نه وو وئيلي چه مونږ خو صرف دامتحان د پاره (راليږلي شوي) يو لهٰذا ته (جادو په سې کيدو په وجه) کفر مه اختيار وه بيا هم دې خلقو به دهغوی نه هغه څيز ازده کولو چه دهغې په ذريعه دوی د خاوند او ښځې په مينځ کښې جدائی راولی (دا خبره دې واضحه وی چه) دوی ددې په ذريعه د الله تعالیٰ دخوښې نه بغير چا ته نقصان نه شو رسولې (مګر) دوی داسې خبرې ازده کولې چه دوی لره نقصاني وې او فائده مندې نه وې او هغوی په دې هم پوهيدل چه کوم يو کس دا واخلی نو په آخرت کښې به دده هيڅ حصه نه وي او حقيقت دادې چه هغه څيز ډير خراب وو چه د هغې په بدله کښې دوی خپل ځانونه خرڅ کړل کاش چه دوی ته (ددې خبرې حقيقي) علم وې. او (ددې په خلاف) که دوی ايمان راوړې وې او تقوٰی ئې اختيار کړې وې نو دالله د طرف نه چه کوم ثواب ملاويږی نو هغه يقيناً ډير بهتر وو کاش چه دوی ته (ددې خبرې هم حقيقي) علم وې.**

**خلاصه تفسير**

[او يهوديان داسې کم عقل دی چه] هغوئ [دالله ﷻ دکتاب تابعداری خو اونکړه او] ﴿وَاتَّبَعُوا مَا تَتْلُوا الشَّيٰطِيْنُ﴾ ددې سې څيز [يعنی دسحر او جادو] تابعداری [يې] اوکړه چه دهغې شهرت به کولو شيطانانو [يعنی ناکاره پيريانو] ﴿عَلٰى مُلْكِ سُلَيْمٰنَ﴾ دحضرت سليمان ؈ په [زمانه د] بادشاهئ کښې او [بعضې بې وقوفان چه په حضرت سليمان ؈ د جادو شك کوی بالکل بې هوده خبره ده ځکه چه په جادو اعتقاد کول او په دې عمل کول کفر دے او] ﴿وَمَا كَفَرَ سُلَيْمٰنُ﴾ سليمان ؈ [نعوذ بالله چرې هم] کفر نه کړې ﴿وَلٰكِنَّ الشَّيٰطِيْنَ كَفَرُوْا﴾ مګر شيطانانو [يعنی ناکاره پيريانو] به [بيشکه د] کفر [خبرې اوکار يعنی سحر] کولو او حالت دا وو چه [پخپله ئې هم کولو ﴿يُعَلِّمُوْنَ النَّاسَ السِّحْرَ﴾ اونورو] خلقو ته به يئ [ددغه] سحر زدکړه کوله [نو هم دغه سحر نسل په نسل راروان دې چې يهودے ئې په کولو کښې پوهراندې روان دی] او [داشان] ددې [سحر] هم [تابعداری کوی] ﴿وَمَا اُنْزِلَ عَلَى الْمَلَكَيْنِ بِبَابِلَ هَارُوْتَ وَمَارُوْتَ﴾ چه په هغه دوو فرښتو [يو خاص حکمت دپاره] نازل کړې شوي وو [چه] په بابل [ښار] کښې [اوسيدلي وې او نومونه يئ] هاروت او ماروت [وو] ﴿وَمَا يُعَلِّمٰنِ مِنْ اَحَدٍ حَتّٰى يَقُوْلَآ﴾ اودغه دواړو به [دغه سحر] چا ته نه ور ازده کولو ترڅو چه [داحتياط په طور دوړاندے نه] به دوی [ورته] دا او [نه] وئيل ﴿اِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ فَلَا تَكْفُرْ﴾ چه زمونږ وجود هم [خلقو دپاره] يو امتحان [دالله ﷻ] دے [چه زمونږ دخلے نه په سحر خبريدو سره څوك په کښې راګير دی او څوك ترے بچ دی] نو چه [په دې خبرشئ] چه کافر جوړ نشئ [په دې شان چه په کښې اونښلئ] ﴿فَيَتَعَلَّمُوْنَ مِنْهُمَا﴾ نو [بعضې] خلقو به ددې دواړو [فرښتو] نه داسې سحر زده کولو چه دهغې په ذريعه [عمل کولو سره] ﴿مَا يُفَرِّقُوْنَ بِهٖ بَيْنَ الْمَرْءِ وَزَوْجِهٖ﴾ به يئ ديو سړی اودهغه دښځې تر مينځه جداوالیٔ راولی او [ددې نه دې څوك په دې ويره کښې نه اخته کيږی چه جادوګر څه غواړی هغه کولے شی ځکه چه دا يقيني خبره ده چه] ﴿وَمَا هُمْ بِضَآرِّيْنَ بِهٖ مِنْ اَحَدٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ﴾ دا [جادوګر] خلق ددې [جادو] په ذريعه چا ته [يو ذره هم ضرر نشی رسولے مګر دالله په [ازلی حکم سره] او [داسې جادو زده کولو سره بس] ﴿وَيَتَعَلَّمُوْنَ مَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ﴾ داسې څيزونه زده کوی چې خپله دګناه کيدو په وجه ضرور رسونکی دی [او يومعتقد به درجه کښې دوئ دپاره فائده مند هم وی [چه پوره يقين پرې

کیدې شی نو یهودیان به هم دسحر په شوق کولو سره غټ نقصان کښې پاتې شی] [دا خبره صرف مونږ نه کوو بلکه] ﴿وَلَقَدْ عَلِمُوا لَمَنِ اشْتَرٰىهُ﴾ضرور دا[یهودیان] دومره پوهیږی چه څوک دا[سحر د الله ﷻ دکتاب په بدله کښې]اختیار کړی ﴿مَا لَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ﴾ نو دداسې کس به آخرت کښې هیڅ حصه [پاتې] نه وی ﴿وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ﴾او بیشکه بد دې هغه څیز [یعنی جادو اوکفر] چه [د] هغې[په اخستلو]کښې دغه خلق خپل ځانونه ورکوی ﴿لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ﴾ افسوس چه ددوی [دومره] عقل وے ﴿وَلَوْ اَنَّهُمْ اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا﴾ اوکه دغه خلق [ددې کفر]او بدعملونو په ځائے ایمان اوپرهیزګاری [اختیار] کړې وې ﴿لَمَثُوْبَةٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ خَيْرٌ﴾ نود الله ﷻ په نزد بدله [ددې کفر اوبدعملونو په زر درجې] غوره وه، ﴿لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ﴾ افسوس چه [دومره]عقل يې لرلې.

## معارف اومسائل

**قوله تعالٰی:**﴿وَاتَّبَعُوْا مَا تَتْلُوا الشَّيٰطِيْنُ﴾ ددې آیتونودتفسیراوشانِ نزول په باره کښې دنقل کړی شوؤاسرائیلی روایاتونه ډیروخلقوته مختلف قسم شبهې راپیښیږی ددغې ټولوحل،سیدی حضرت حکیم الامت تهانوی قدس سره، په زیات واضح اوآسان اندازکښې پیش کړې دې چې سراسر هم هغه نقل کول کافی دی، فرمائی:

① کوموبیوقوفوخلقوبه چې حضرت سلیمان علیه السلام ته جادومنسوب کولو،دایهودیان وو ځکه الله تعالٰی دآیت په منځ کښې دحضرت سلیمان علیه السلام بیزاری اوصفائی هم ښکاره کړه

② په دې آیتونوکښې دیهودیانوبدی بیانول ځکه دی چې په هغوئ کښې دجادوزیات رواج وو،دې آیتونوسره دزهره،تړلې شوې اوږده قصه هم مشهوره ده چې په څه معتبرروایت سره ثابته نه ده،دعلماء ځخه چاچه،داقصه دشرعی قواعدوخلاف ګنړلې ده،هغوئ ردکړې ده اوچاچه په کښې تاویل کول خلافِ شرع نه دی ګنړلې نوهغوئ ردکړې نه ده،دلته په دې وخت دابیانول مقصود نه دی

چه داقصه صحیح ده که غلطه،البته دابه ضروراووایوچه ددې آیتونوتفسیرپه دې قصه اړه نه لری لکه چې دمعارف اومسائل ددې مضمون لوستلونه به څه اندازه اولګی،

③ یهودوته داټولې خبرې په ښه شان معلومې وې خوعمل ئې دهغې په خلاف کولواوعقل فکرنه ئې کارنه اغستلو،ځکه ئې اول په دې ددوئ ډپوهیدلوخبرورکړواوبیاپه آخره کښې ئې ترپه داشان نفی کړوچه:

کاش:ددوئ علم اوعقل وې،ولې چې په کوم علم عمل نه وی اونه ورسره څه سوچ فکروی نودغه علم دبې علمئ اوجهل پشان دې،

④ په یوزمانه کښې چې دمحققانه رائې په بناء،ئې ټاکل او تعین نشم کولې،په ټوله دنیا او خصوصا بابل کښې دجادوزبردست رواج وؤ،چه جاهلانوخلقوددې عجیبه اثرات اولیدل نو ددې په حقیقت اودپیغمبرانو علیهم السلام دمعجزوپه حقیقت کښې بیلتون ورته ګران شو او قسماقسم شبهې اوشکونه ئې راولاړشو،تردې چې ځنوخلقو،جادوګران داسې پاکیزه خلق اوګنړل چې ددوئ په نقش قدم تلل ئې څه عیب اونه ګنړلو،ځنوخلقودانیک کاراوګنړلو،دائې زده کولواو عمل به ئې پرکولولکه نن صباچه څنګه مسمریزم [کوډې موډې] په خلقوکښې رواج موندلې دې،الله تعالٰی دداسې قسم ټولوغلطواوشکونولرې کولواورفع کولودپاره په بابل کښې

دهاروت ماروت په نوم دوه فرښتې راوليږلې چې خلق دجادو دحقيقت اوددې دبرخونه خبر کړي اوخلقوخان ساتل ترممکن شی، څنګه چې دانبياؤ ﷺ نبوت اومعجزې په دلائلوسره ثابتولې شي دغه شان په دې هم دلائل قائم کړې شو چې هاروت اوماروت دواړه فرښتې دی، غرض داؤچه ددوئ په احکامو اوارشاداتوعمل کول اوتابعداری کول ئې ممکن اوآسان شی،

**د جادو سحر او معجزو مينځ کښې فرق واضح کولو کار بې د انبياء کرامو نه ولې وانغستو؟** دا کارئې دانبياؤ ﷺ نه څکه وانغستوچه هغوئ دجادوګرانوفريق مخالف ؤونودفيصلې دپاره دريمګړې تاکل ډيره مناسبه طريقه وه چې مقصدترنه دجادوګرو اوانبياء ترمنځه بيلتون راوستلووو،

طريقه داده چې داکاردجادو دالفاظو اوعمل نقل کولونه بغيرنشو کيدې ليکن دا د پيغمبرانو د شان سره څکه نه ښائي چې دوئ دهدايت دظاهريدوځائ وی، که څوک دااووائي چې دکفری خبرونقل کول کفرنه وی خوبياهم مناسب نه ووچه داکارپيغمبرانونه واغتسې شی څکه دې کار له پاره فرشتې اوټاکلې شوې چې ددوئ کارعموماتکوين سره وی چې خيراوشردواړه په کښې شامل دی، مطلب داچه دفرشتوتړون داسې کارونوسره هم کيدې شی چې دخيراوشردواړه اړخه لری مثلادتولې دنياپه اعتبارسره دعام مخلوق دښيګړې داړخه خويؤکاربه دخيروی مګردخه ناکاروالی اوخرابوالی راولاړيدوله مخې په اصل اوذات کښې به دشرکاروی، لکه دظالم، جابر ياموذی څناورپالنه اوخصمانه وغيره کول چې تکوينی اعتبار سره خودرست اوښه کاردې خو تشريعی لحاظ سره بې سمونه اوخراب کاردې، په خلاف دانبياؤ ﷺ نه چې خالص د تشريعاتو کار تراغستې شی چې دهراړخه سراسر خيروی، په دې بناهرکله چې دخيرښيګړې په غرض دجادو اوسحرنقل کول ياحکايت ئې. کول اګرچه يوتشريعی کارووخوددې احتمال په وجه چې هسې نه دغه نقل اوحکايت، په جادو باندې دعمل کولوسبب جوړنشی لکه څنګه چې واقع کښې اوشو، نوڅکه انبياء ﷺ دنقل اوحکايت په وجه هم ددې سبب جوړيدل مناسب اونه ګڼړلې شو،

البته کليات شرعيؤسره دپيغمبرانو ﷺ په ذريعه هم ددې مقصودتکميل اوکړې شو خو ددې [کلياتو] دجزئياتوتفصيلات په دې وجه دانبياؤ ﷺ په ذريعه بيان نکړې شوچه دفتنې فساداحتمال پکښې ووومثلاپيغمبرانو ﷺ داښودلی دی چې رشوت اغستل حرام دی اوددې حقيقت ئې هم اوښودلوخوداجزئيات ئې اونه ښودل چې يوه طريقه درشوت داده چې دمعاملې صاحب سره داسې چل ول، کرتب اوچل بازی، ګتکه او دهوکه اوفلانئ خبره اوکړې وغيره وغيره، څکه چې داسې تفصيلاتوبيانولونه خلق دغه قسم ګتکې او دهوکې وغيره ازده کولې شي چې بيائې عمل کښې راولی يامثلادسحرپه اقسامو کښې يومثال داسې فرض کړه چې قواعد کليؤکښې داښودلې شوی دی چې ددست غيب په عمل سره بالنبت لاندې ياجيب کښې پيسې راوستل اوحاصلول ناجائزدی خودائې نهٔ دی ښودلی چې فلانی عمل سره روپئ داسې حاصليدې شی،

**د فرښتو کار او عمل:** حاصل دکلام داشوچه فرښتې. بابل ته راغلې اوخپل دغه کارئې شروع کړو چه دسحراصول اوفروع ئې ښکاره کړل اوخلقوته ئې ددې بدعمل نه دبچ کيدو او ساحرانو نه ئې دکرکې کولو او لرې اوسيدلو خبرداري ورکړواوددې تپنګارئې باندې اوکړو لکه يوعالم چې اووينی چې جاهل خلق دناپوهئ له کبله کفری کلمات دخلې نه اوباسی نوهغه عالم دغه کفری

خبرې په تقرير يا تحرير کښې رانقل کړي عوام باندې خبر کړي چې ګوری داد کفر کلمې دی چې بچ کېدل تر ضروری دی او دی نه احتياط کوئ،

**دخلقو د فرښتو نه د سحر زده کړه:** فرښتو چه داکار شروع کړونو دخلقو رفت. آمد. ورسره شروع شو خلقو ترې غوښتنه کوله چې مونږ هم ددې داصولو او فروعونه خبر کړئ چې دناخبرئ په وجه د خلقو په اعتقاديا عمل کښې خرابی پيدانشی، دغه وخت فرښتو داحتياط او تبليغ په ډول د ښيګړې په غرض خپل دامعمول جوړ کړو چې داصولو او فروعونه وړاندې به ئې داورته وئيل چې زمونږ ددې ښودلو په ذريعه، الله تعالى ته دخپلو بندګانو ازميښت کول هم مقصود دی چې ددې په خبريدو سره څوک دخپل دين ساتنه او اصلاح کوی چې دبدونه په خبريدو تر ځان اوساتی او څوک خپل دين په دې شان خرابوی چې په دې بدو خبرداریٔ موندلو سره پخپله هم دغه بد اختيار کړی چې انجام ئې کفروی، خواه عملی کفر وی يا اعتقادی، دائې به ورته هم وئيل چې ګورئ مونږ درته نصيحت کوؤ چه په ښه نيت ځان تر خبر کړئ او بيا هم په دغه [ښه] نيت ټينګ پاتې کيږی، داسې نه چې مونږ ته او وائی چې په سم نيت ئې دبدونه دبچ کيدو په غرض تاسونه پوښتنه کوؤ او بيا پخپله په دغه بدو کښې اخته شئ او خپل ايمان برباد کړئ،

ښکاره خبره ده چې دې نه زياته خيرخواهی هغوئ نوره څه کولې شوه، غرض داچه چابه ورسره داسې قسم لوظ او قول او کړونو هغه ته به دوئ دسحر، جادو ټول اصول او فروع بيان کړل، که بيا به چاخپل دغه لوظ، قول مات کړو او په قصد به کافر او فاجر جوړ شونو دادهغه کار وو، اوس دغه يهود په خپلو دغه وعدو ټينګ پاتې نشوا و جادوئې دخلقو د ضرر دپاره استعمالول شروع کړل، چې ورسره فاسقيدل خو ضروری وو او ځنې داستعمال طريقې پکښې دکفر هم جوړيدلې، او په داشان فاجران او کافران جوړ شول،

**د پوهې دپاره يو مثال:** اوس ددې مثال داسې اوګڼئ چې څوک يو جامع منقول او معقول عالم باعمل ته لاړ شی هغه نه خواست او کړی چې ماته قديم يا جديد فلسفه په دې غرض رازده کړئ چې خپل ځان هم دهغه شبهاتونه محفوظ کړم چې داسلام خلاف په فلسفه کښې بيانولې شی او مخالفينو ته هم جواب ورکړم او دې عالم ته دااحتمال وی چې هسې نه په دهوکه ئې زمانه ازده کړی او بيا پخپله ئې داسلام او شريعت په خلاف دباطلو عقائدو د مضبوطولو دپاره استعمالوی او ددې احتمال په وجه ورته نصيحتونه کوی چې داسې مه کوه، دغه کس ورسره وعده او کړی چې داسې به نه کوم، اوس ددې لوستلونه پس ئې که دغه کس دفلسفې دغه خلاف اسلام نظريات او عقائد صحيح اوګڼړی نو ښکاره خبره ده چې په دغه معلم او ورازده کوونکی به هيڅ ملامتيا او الزام نشی لګولی، همدغه شان، که دې فرښتو هم په دغه طريقو دسحر او جادو د اصولو او فروعونه خلق خبر کړل نو په دوئ به هم هيڅ قسم شبه يا شک کول نه دی پکار،

او ددې غرض پوره کولونه پس غالبا هغه فرشتې بيا آسمان ته بيرته غوښتلې شويدی، والله اعلم بحقيقة الحال [بيان القرآن] (۱)

**دسحر حقيقت:** سحر په زير د سين سره، هر داسې اثر ته وئيلې شی، چه سبب ئې ظاهر نه وی [قاموس] (۲)

---

۱) تفسير بيان القرآن تحت هذه الآية: ۱/ ۶۳

۲) القاموس المحيط: ۱/ ۴۲۱

خواه هغه سبب معنوي وي لکه دخاصو خاصو کلماتو اثر، یادغیر محسوسو شیزونو اثر وي لکه دپیریانو اوشیطانانو اثر، یامسمریزم او کوډي کښې دقوت خیالیه اثر، یاد داسې محسوساتو اثر چې هغه محسوسات پټ وي لکه دمقناطیسو راښکل [راکشول] ځان ته او سپنې لره کله چې مقناطیس دنظر نه پټ وي، یادهغه داروګانو [دوایانو] اثرچه پټ وي یا د ستورو او سیاراتو اثر،

په دې بناد جادو ډېراقسام جوړیږي خوعرف عام کښې هغه شیزونوته جادو وائي چې پکښې دپیریانو اوشیطانانو دخل وي یادمسمریزم دقوت خیالیه اثرپه کښې وي یادخه الفاظو او کلماتو دخل په کښې وي، ځکه چې داخبره په عقل هم ثاپته ده اوپه تجربې اولیدلو کتلو سره هم، چه قدیم اوجدید فلسفه ئي هم مني چې دخاص حروفو اوکلماتوهم څه تاثیرات وي اوخاص حرف اویا خاص کلمه په خاص شمیرکښې په خاص طریقې سره وئیلو کښې اثرات لیدلې کیږي، یاداسې تاثیرات شوچه انساني ویښتویانو کونو اونوروأندامونولره یاد انسان داستعمال جاموسره دنوروشیزونوپه یوځائ کولو پیدا کولې شي، چه عرف عام کښې ورته ټونړه یاتویټکه کوډې منترونه وئیلې شي اوجادو کښې حسابیږي،

اوقرآن اوسنت په اصطلاح کښې سحرداسې یوعجیبه شیزته وئیلې شي چې پکښې دشیطانانو خوشحالولو سره دهغوئ نه مددموندلې شوي وي، دشیطانانو دراضي کولوهم مختلف صورتونه دي کله داسې منترونه پوک وهلې شي چې کفري اوشرکي کلمات پکښې وي دشیطانانو ښه والې پکښې بیان شوي وي یادستورووغیره عبادت پکښې کړې شوي وي چې ورسره شیطان خوشحالیږي، کله داسې عملونه اختیارولې شي چې شیطان ئي خوښوي لکه چې په ناحقه دوژلي شوي وینه چې استعمال کړې شي، یادجنابت اوپیلتئ په حالت کښې پاتې کیدل، پاکئې نه ځان ساتل وغیره،

څنګه چې دالله تعالی دپاکوفرشتومدد، هغه اقوالو اوافعالوسره حاصلولې شي چې فرشتې ئي خوښوي، مثلا تقوی، پاکي، اوپاکیزګي، بدبوئې اوپلیتئ نه ځان ساتل، دالله ذکراونیک کارونه کول،

داشان دشیطانانو امداد، په داسې اقوالو اوافعالوسره حاصلیږي چې شیطانان ئي خوښوي، په دې وجه سحراوجادو کښې داسې خلق کامیابیږي چې ګنده اوپلیت پاتې کیږي، دپاکئ او د الله تعالی دنوم نه لرې پاتې کیږي، دخبیثو کارونو عادت وي، ښځې هم چې دحیض په ورځو کښې داکارونه کوي نواثرلري، باقي دشعبدو، ټونړو، ټوټکو او کوډو منترونو. یادلاس د صفائې کارونو یامسمریزم وغیره ته سحرمجازا وئیلې شي، [روح المعاني] [1]

**دسحرقسمونه**: امام راغب اصفهاني په مفردات القرآن کښې لیکي چې سحرمختلف قسمونه لري.

**يومبې قسم دسحر**: یوقسم ئي نظربندي اوخیال کښې راوستل وي چې په واقع کښې هیڅ حیثیت نه لري لکه ډیرشعبده بازان چې دخپل لاس په چالاکئ سره داسې کارونه کوي چې عام خلق ئې په سترګو نشي لیدلې یادقوت خیالیه، مسمریزم وغیره په ذریعه دچاپه دماغو داسې اثر واچولې شي چې هغه خوپه سترګویوشیزوینې اومحسوسوي ئي مګرحقیقت کښې هیڅ نه وي، کله داکار دشیطانانو داثرنه هم کیدې شي چې دچاپه سترګو اودماغو داسې اثرواچولې شي چې

---

[1] روح المعاني تحت هذه الآية: ۱/ ٤٣٦

يوغير واقعي څيز، واقعي اوګڼړي، په قرآن كريم كښې ذكرشوې دفرعون دساحرانوړومبې قسم سحروو لكه ارشادفرمائي،

﴿سَحَرُوٓاْ أَعۡيُنَ ٱلنَّاسِ﴾ هغوئ دخلقوپه سترګوجادواوكړو.

اوارشادفرمائي: ﴿يُخَيَّلُ إِلَيۡهِ مِن سِحۡرِهِمۡ أَنَّهَا تَسۡعَىٰ﴾ ددوئ دِسحرنه دموسى عليه السلام په خيال كښې راتلل شروع شوچه دا [دپړورسيوماران] منډې وهي،

په دې كښې ديخيل لفظ دابښائي چې دساحرانودپړواوهسماګانونه چې ساحرانوپه ميدان كښې غورځولې وې نه خوپه حقيقت كښې ماران جوړشوي وواونه هغوئ څه حركت كړې وو بلكه دحضرت موسى عليه السلام قوتِ خيالي اثرقبول كړواووې ګڼړل چې دامنډې وهونكي ماران دي.

**د سحر دويم قسم:** بل داسې قسمَ خيال كښې راوستل اونظربندي ده چې څنې وختونوكښې د شيطانانو داثرنه كيږي لكه چې دقرآن كريم ددې ارشادنه معلوميږي،

**قوله تعالى:** ﴿هَلۡ أُنَبِّئُكُمۡ عَلَىٰ مَن تَنَزَّلُ ٱلشَّيَٰطِينُ ۝ تَنَزَّلُ عَلَىٰ كُلِّ أَفَّاكٍ أَثِيمٍ﴾ زه تاسوته اوبښايم چې په كومو خلقو شيطانان راكوزيږي اوښكته كيږي.په هردوغ تړونكي ګناهګارو باندې راكوزيږي[كښته كيږي] اوبل ځائ كښې ارشادفرمائي:

**قوله تعالى:** ﴿وَلَٰكِنَّ ٱلشَّيَٰطِينَ كَفَرُواْ يُعَلِّمُونَ ٱلنَّاسَ ٱلسِّحۡرَ﴾ شيطانانوكفراختياركړوچه خلقوته ئې سحرورازده كولو

**دسحر دريم قسم** دسحردريم قسم دادې چې ددې په ذريعه ديوڅيزحقيقت بدل كړې شي لكه چې يوبنيادم يا ځناورنه څه بل ځناورياكاڼړې جوړكړې شي،امامِ راغب اصفهاني رحمه الله ابوبكرجصاص رحمه الله وغيره حضراتوددې نه انكاركړې دې چې دسحر په ذريعه ديوڅيزحقيقت بدليدې نه شي بلكه دسحراثر صرف په خيال كښې راوستل اونظربندي كيدې شي(۱)، او بس، چناچه معتزله هم داسې وائي، مګردجمهوروعلماؤتحقيق دادې چې په حقيقت اوذات بدليدو كښې نه خرڅه عقلي خنډشته اونه شرعي مثلايوجسم كاڼړې جوړشي يايوقسم څيزپه بل قسم څيزكښې بدل شي، او د فلسفيانو ددې مشهورقول چې حقيقتونه بدليدل ممكن نه دي،مطلب دادې چې حقيقتونه محال ممكن او واجب يوپه بل سره نشي بدليدې،چناچه محال ممكن اوواجب نشي ګرځيدې اوداشان نور صورتونه واخله،

قرآن كريم چې دفرعوني ساحرانوسحرته تخييل وئيلې دې هغې نه دانه لازميږي چې هر سحر، دې صرف تخييل وي،داشان څنې حضراتودسحرپه ذريعه دحقيقت بدليدوپه جواز،دحضرت كعب احبار رضي الله عنه دهغې حديث نه هم استدلال كړې دې چې په مؤطاامام مالك رحمه الله كښې په روايت دقعقاع بن حكيم داسې منقول دې، **لولاكلمات اقولهن لجعلتني اليهودحمارا،**(۲) كه ماداپوڅوكلمات وظيفه كړې نه وې نويهوديانوبه زما څخه خرجوړكړې وو،

دخرمجازي معنى بيوقوف هم كيدې شي خوبې ضرورته دحقيقت نه مجازته تلل دقواعدو نه خلاف دي،نودحديث اصل معنى به هم داوي چې، كه ماپوڅوكلمات وظيفه كړې نه وې نو يهوديانوبه مانه خرجوړكړې وې،

---

(۱) مفردات القرآن للأصفهاني: ۱/ ۲۲۶

(۲) مؤطا، باب التعوذ عند النوم: ۷۲۳

دي حديث نه دوه خبرې ثابتې شوې ① دسحرپه ذريعه انسان نه خرجوړيدې شی ② ددغه وظيفه کړوکلماتوتاثيرداديې چې سحراوجادوپراثرنشی کولي، حضرت کعب اخبار ؓ نه چې ددغه کلماتوتپوس اوشونوهغوئ ؓ ورته داکلمات وراوښودل،

**اعوذبوجه الله العظيم الذي ليس شئٌ اعظم منه وبكلمات الله التامات التي لايجاوزهن بر ولا فاجر وباسماء الله الحسنى كلها ما علمت منها ومالم اعلم من شرماخلق وبرء وذرء** [اخرجه في المؤطاباب التعوذعندالنوم] زه دلوئ الله پناه نيسم چې هيڅ شې ترلوئ نشته اوپناه نيسم دالله دکلمات تاماتوچه ترهيڅ نيک اوبدانسان وړاندې نشی وتلې اوپناه نيسم دالله دټولواسمائ حسنی، چه ئې پيژنم اوکه ئې نه پيژنم دهغه څيزدشرنه چې الله پيداکړو، شته ئې کړواو خورئې کړو [مؤطاامام مالک]

**په سحراومعجزه کښې فرق:** څنګه چې دپيغمبرانو ؑ اواوليائ کرامو ؒ نه خلاف عادت واقعات مخې ته راځی چې ورته خرق عادت وئيلې شی، دسحراوجادوپه اثر، په ظاهره دغسې واقعات هم مخې ته راځی، ځکه څنې جاهلان په دې کښې فرق نشی کولې او د جادوګرو تعظيم کوی، په دې وجه ددې دواړوترمنځه فرق بيانول ضروری دی،

فرق په دوؤلحاظوسره کيږی، ① داصل حقيقت په لحاظ، ② اوظاهری نخښونښانوپه لحاظ د حقيقت په لحاظ فرق داديې چې دسحراودجادوداثرنه چې کوم څيزونه مخې ته راځی هغه داسبابو لاندې وی اومعجزې، کرامات د اسبابولاندې نه وی، کوم اسباب چې په ظاهره مخې ته راشی هغه د تعجب څيزنه وی مګرڅه وخت چې دغه اسباب په ښکاره مخې ته راشی نوعوام د اسبابو نه پيژندلو په وجه يې خرق عادت بولی، حالانکه په حقيقت کښې دغه دهغه اسبابو لاندې وی چې پټ وی، مثلاً مشرق بعيدکښې دنن ليکلې شوې خط که دچاپه وړاندراپريوځی نو ليدونکې به ئې خرق عادت اوګڼړی حالانکه پيريانواوشيطانانوته داقوت ورکړې شوې دې [څنګه چې وړاندهم ددې تفصيل بيان شوې دی]

خلاصه داچه په نتيجه کښې ښکاره کيدونکې نخښې نښانې دطبعی [عامو] اسبابولاندې وی هر کله چې دغه پټ وی نوعوام ئې په غلطئ خرق عادت بولی په خلاف د معجزه چې د اسبابولاندنه وی براه راست [بلاواسطه] دالله تعالی فعل وی، چنانچه حضرت ابراهيم ؑ دپاره الله تعالی اوورته اوفرمائيل چه، په هغوئ ؑ يخ شه خودومره هم يخ نه چې تکليف پرې رسی بلکه په داسې شان يخ شه چې سلامتی پرې حاصليږی، ازپه دې حکم الهی سره اوريخ شو،

نن هم داسې خلق شته چې څه مصالحې په بدن اومږی اورکښې دننه لاړشی اوسوځی نه، دامعجزه ځکه نشی کيدې چې داسبابو [داروامصالحو] په سبب وی، خوهرکله چې داپه ښکاره په نظرنه راځی نوعوام پرې دوکه شی اوخرق عادت ئې بولی

مونږپورته داذکراوکړوچه معجزه براه راست دالله تعالی فعل وی لکه. چې قرآن کريم کښې په داګه فرمائی،

﴿وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ﴾ [د کانړوموټې چې تاسووراوغورځولو] هغه په حقيقت کښې تاسو نه وو ورغوځولې بلکه الله تعالی ورغورځولې وو،

مطلب داچه دخاوړواوکانړودک موټې غورځول اودهريوکافرسترګوته ئې رسيدل، دا ستاسو ؐ عمل نه بلکه دالله تعالی فعل دې، داهغه معجزه ده چې دبدرپه غزاکښې ښکاره شوې وه

چې رسول الله ﷺ دخاؤرواودقتکانړو[شګو] ډک موټې دکفاروپه لښکرو راوویشتو چه دټولو سترګو کښې پرې وتې.

دسحراومعجزې دابیان شوې فرق اګرچه ډیرواضح دې خوبیاهم سوال پیداکیږی چې عوام به په دې فرق څنګه پوهیږی ولې چې ظاهری صورت ددواړویوشان دې؟ جواب ئې دادې چې الله تعالی ددې نظام هم په داشان پیداکړې دې،

①معجزه اوکرامت دداسې خلقوپه ذریعه ښکاره کیږی چې تقوی، پاکیزګی، اخلاق او اعمال ئې دخلقوپه وړاندې وی، خودذې په عکس، دجادواثرصرف دداسې خلقوپه ذریعه ښکاره کیږی چې ګندګی، ناپاک وی، دالله تعالی دنوم اوعبادت نه ئې لرې اوسی. په داشان دغه فرق پیژندل آسان څه چې بالکل ښکاره دې،

②بل انتظام الله تعالی داکړې دې، چه څوک دپیغمبرئ په دروغه دعوی اوکړی اودمعجزې په نوم څه جادوکول غواړی نوهیچرې به نشی کیدې، عام پلیت اوغلیظ انسان که جادوکول غواړی نوهغه کولې شی،

**آیاپه پیغمبرانو ﷺ دجادواثرکیدې شی:** څنګه چې مونږمخکښې بیان کړی دی چې دجادواثرد طبعی اسبابواثروی چې انبیاء ﷺ ترهم متاثرکیدې شی اودادپیغمبرئ دشان نه خلاف خبره څکه نه ده چې هغوئ لره لوړه تنده وی، ناجوړه کیږی اورغیږی. مطلب داچه څنګه پیغمبران ﷺ دظاهری اسباب طبعیؤنه متاثرکیږی همدغه شان دباطنی اوپټ اسبابو طبعیؤنه هم متاثرکیږی چې د شان نبوت نه خلاف خبره نه ده چنانچه په رسول الله ﷺ باندې یهودوسحرکړې وو، په هغوئ ﷺ ددې څنې نخښې نښانې ښکاره شوې وې، په ذریعه دوحی ورته ددغې سحر خبر ورکړې شوې وواوهم دوحی په ذریعه دهغې ازاله شوې وه چې صحیح احادیثونه ثابت دی، داشان د حضرت موسی ﷺ دسحرنه متاثرکیدل په قرآن کریم کښې ذکردی لکه فرمائی: ﴿فَأَوْجَسَ فِىْ نَفْسِهٖ خِيْفَةً مُّوْسٰى﴾. یعنی دموسی ﷺ په خیال کښې دا راتلل چې دغه پړی او همساګانې ماران دی، موسی ﷺ باندې ویره راتلل هم ددغه جادواثروو،

**دسحرشرعی احکام:** دتیرشوی بیان مطابق دقرآن اوحدیث په اصطلاح کښې سحریواځې دې ته وئیلې شی چې دفسق، فجور، کفراوشرک اختیارولو سره پیریان اوشیطانان راضی کړې شی او مدد تر واغستې شی اوددې په نتیجه کښې څه عجیبه واقعات مخې ته راغلې وی، چنانچه په قرآن کریم کښې ذکر شوې دبابل سحرهم دغه سحروو[جصاص][۱] چې قرآن کریم ورته هم کفرفرمائیلی دی، ابومنصور ﷫ فرمائی، صحیح خبره داده چې مطلقا، دسحرټول قسمونه د کفر قسمونه نه دی، بلکه یواځې هغه سحر کفردې چې پکښې دایمان خلاف خبرې اوعملونه اختیارکړې شوی وی [روح المعانی][۲] اوداښکاره خبره ده چې شیطانانو باندې لعنت کولو او ورسره ددښمنئ اومخالفت کولواحکام په قرآن کریم کښې بیا بیاراغلی دی، اوددې په عکس ورسره دوستی کول، ددوئ دراضی کولوفکرکول، پخپله یوه ګناه ده، بیاهغوئ هله راضی کیږی چې انسان په کفراوشرک کښې اخته شی، چه ایمان هم ورسره سلب کیږی، یاکم ناکم په

---

[۱] ) أحكام القرآن للجصاص، باب الاختلاف فى حكم السحر: ۱/۱

[۲] ) روح المعانى تحت هذه الآية: ۱/ ۴۳۷

فسق اوفجور کښې اخته شی،دالله تعالی اودفرښتودخوښې کارونونه په عکس ګنده او پلیت ګرځی، هم ګناه ده اوکه دجادوپه ذریعه ئې چاته په ناحقه نقصان اورسولونودالابله ګناه ده.

غرض داچه قرآن کریم اوسنت کښې چې څه ته سحروئیلې شوې دې هغه داعتقادی یاکم ناکم دعملی کفرنه خالی نه وی،که دشیطانانوراضی کولوپه غرض چادکفراوشرک اقوالو یا اعمالو نه کار واغستونو کفرِحقیقی اعتقادی به وی اوکه کفری اوشرکی حرکتونونه بچ شی نو د نوروګناهونو کوونکې جوړشی چې عملی کفرشو،دقرآن کریم په ذکرشوی آیتونو کښې چې سحرته کفروئیلې شوې دې هغه ورته هم په دې اعتباروئیلې شوې دې چې سحرپه هیڅ صورت کښې دکفرحقیقی اعتقادی یا کفرعملی نه نه خالی کیږی.

خلاصه داشوه چې کوم سحرکښې کفری عمل اختیارکړې شوې وی لکه شیطانانونه مدد غوښتل دستوروتاثیر،مستقل منل،سحرته معجزه وئیل اوپه دې بنیاددخپل نبوت دعوی کول وغیره شو،نو داسې قسم سحرپه اجماع کفردې،په کوموکښې چې داسې قسم کفری اعمال نه وی خوګناه ترکیږی نو داګناه کبیره ده،

**مسئله:** هرکله چې معلوم شوچه داسحرداعتقادی یاعملی کفرنه خالی نه وی نوددې پخپله ازده کول اوبل ته ئې ورازده کول هم حرام شو،عمل پرې باندې کول هم حرام شو،البته د مسلمانانو د ضرر دفع کولوپه غرض،دضرورت په اندازه چې زده کړې شی نوځنې فقهاؤددې اجازت ورکړې دې،[شامی وعالمګیری(۱)

**مسئله:** هغه تعویذونه اوګنډونه چې عاملان ئې کوی،په دې کښې هم دپیریانو اوشیطانانونه مدد غوښتل وی،نودسحرپه حکم کښې دی چې حرام دی اوکه داسې الفاظ وی چې شکی وی یائې معنی معلومه نه وی،دشیطانانو اوبتانونه دامدادغوښتلواحتمال پکښې وی نوداهم حرام دی،

**مسئله:** دقرآن اوسنت له مخې،داصطلاحی سحردبابل نه علاوه،دسحرنورقسمونه هم چې پکښې کفراوشرک اوکړې شی نوداهم حرام دی،

**مسئله:** اوکه صرف دمباحواوجائزواموروته پکښې کارواغستې شی نوبیاپه دې شرط روادی چې څه ناحق مقصددپاره استعمال نکړې شی،

**مسئله:** که صرف دقرآن کریم اوحدیث دکلماتونه کارواغستې شی خوناروامقصددپاره استعمال کړې شی نوداهم ناروادی،مثلا،چاته په ناحقه ضررورکولوڅه تعویذاوکړې شی یاوظیفه اولوستې شی اګرچه دالله تعالی دنومونومبارکویادقرآنی آیتونووی بیاهم حرام دی،[فتاوی قاضیخان وشامی]

| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ | ءَامَنُوا۟ | لَا تَقُولُوا۟ | رَٰعِنَا | وَقُولُوا۟ | ٱنظُرْنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| اے هغه کسانوچې ایمان موراوړې دې | | مه وایئ | راعنا ټکې | اووایئ | انظرنا |
| ائې مسلمانانو تاسوهیچرې لفظ د راعنا مه وائې (۲) | | | | او ددې په ځائې انظرنا وائې | |

۱) شامی، مطلب السحر أنواع: ۱/ ٤٥، عالمګیری، کتاب الکراهیة، الباب الثلاثون فی المتفرقات: ٥/ ۳۷۸

۲) **مسلمانانو ته د خطاب نه پس:-** حضرت ابن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه کله تاسو په قران کریم کښې واورئی چه ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾ نو غوږ ورته کیږدئی اودزړه په توجه سره ئې آورئی ... [باقی په راروانه صفحه.

| وَاسْمَعُوْا | وَلِلْكٰفِرِيْنَ | عَذَابٌ اَلِيْمٌ |
|---|---|---|
| اوواورئ خبره په توجه سره | اودې دپاره دكافرانو | عذاب دردناك |
| اوخبرې ته ښه غوږ اوونيسئ؛ اوكافرو دپاره دردناک عذاب مقرر دې | | |

## آسان ترجمه قرآن

ايمان والو! (چه رسول الله ﷺ سره خطاب کوئ) "راعنا" مه وايئ او "أُنظُرنا" وايئ او واورئ او کافرانو لره دردناك عذاب دې.

## خلاصه تفسير

[بعضې يهودو دايوشرارت كولو چه كله به درسول الله ﷺ په مجلس كښې ناست وو نو هغوى به يئ په راعنا لفظ سره بلل. داپه عبرانئ ژبه كښې يوے ښيرې ته وئيلې شى او دے يهودو به هم دا په دې غرض استعمالولو.خو په عربئ ژبه كښې يئ مطلب دادې چه [زمونږ دښيگړے خيال ساتئ]. خو عرب ددوى په دې مطلب باندې نه پوهيدل او بعضې نيكو مسلمانانو هم حضور ﷺ په دې لفظ سره مخاطب كول شروع كړل.نو پدې سره دې شرارتيانو ته نور گنجائش ملاؤشو. دوى به پخپلوكښې به يې خندل او دا يئ وئيل چه تر اوسه خويه صرف مونږ ورته دالفظ د راعنا وئيلو او اوس خو ورته خپل ملگرى هم وائى نواوس خو به يئ مونږ هم په ښكاره وايو ځكه چه مسلمانان ئے ورته هم وائى.او په خپل مينځ كښې به ئےتوقے كولے. نو ددې

---

....باقى د تير مخ] نود څه بدئى نه به ممانعت وى يا به دنيكئ حكم وى. حضرت خيثمه رحمه الله فرمائى چه په تورات كښې الله ﷻ بنى اسرائيلو ته خطاب كوى او فرمائى چه ﴿يآايها المساكين﴾ خو د محمد ﷺ امت ته ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ په معززو الفاظو سره خطاب كوى. د ﴿رَاعِنَا﴾ معنى ده زمونږ طرفته غوږاونيسه. لكه (عاطنا). (الطبرى) حضرت مجاهد رحمه الله فرمائى چه ددې معنى دمخالفت ده (ابن ابى حاتم)يعنى خلا ف مه وايه . ددوى نه دا هم روايت دې چه مطلب دادې چه ته زمونږ واوره او مونږ به ستا . انصارو هم دا لفظ نبى كريم ﷺ ته وئيل شروع كړې وو ، خو قران پاك ددې نه دوى منع كړل. (ابن ابى حاتم)حضرت حسن رحمه الله فرمائى چه راعن وائى دخندا خبرې ته يعنى تاسو د نبى كريم ﷺ خبرو او اسلام سره خندا مه كوئى. ابوصخر رحمه الله وائى چه كله به نبى كريم ﷺ تلو او دوى به ورته څه خبره كوله نودوى به وئيل خپل غوږ دې خوا كړه. الله ﷻ دوى ددې بې ادبئ نه منع كړل. او دخپل نبى دعزت كولو تعليم ئې وركړو. حضرت سدى رحمه الله فرمائى چه رفاعه بن زيد يهودى نبى كريم ﷺ سره خبرې كولې اودا الفاظ ئې وئيل. مسلمانانو هم دا خيال اوكړو چه دا د ادب لفظ دې نودوى هم دا لفظ وئيل شروع كړو. چه ددې نه دوى منع كړې شو. لكه څنگه چه په سورت نساء كښې دى . مقصد دادې چه داكلمه الله ﷻ ته ښه او نه لگيده او ددې د استعمال نه ئې مسلمانان منع كړل. لكه څنگه چه په حديث مبارك كښې دى چه انگور ته كرم او غلام ته عبد مه وائې (صحيح مسلم) وغيره . او الله ﷻ ددې بدظنو خلقو حسد او بغض بيانوى چه ائې مسلمانانو ! چه تاسو ته ددې كامل نبى ﷺ په ذريعه كامل شريعت ملاؤ شوې دې ، ددې نه دوى سوزى، دوى ته اووايه چه دا خودالله ﷻ فضل دې چه چاته ئې وركول غوارى نو وركوى ئې . هغه ډير نونې فضل والا او كرم والا دې.

وجي الله ﷻ داموقع ختمول غوښتل نو مسلمانانو ته يئ حکم اوکړو چه] ﴿يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقُوْلُوْا رَاعِنَا﴾ اې ايمان دارو تاسو دراعنا [لفظ] مه وائې او [ددې په ځائې د] ﴿وَقُوْلُوا انْظُرْنَا وَاسْمَعُوْا﴾ انظرنا [لفظ] وائې [ځکه چه ددې او د راعنا مطلب په عربئ ژبه کښې يو دې. چونکه د راعنا لفظ يهود په غلط مقصد کښې استعمالوی نودغه پرېږدئ اودا لفظ يعنی انظرنا استعمالوئ] او[دا حکم په ښه شان] واورئ [او ياد ساتئ] ﴿وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ اَلِيْمٌ﴾ او[دې] کافرانو دپاره دردناکه سزا ده [چه دپيغمبر ﷺ په شان کښې بې ادبی په چالاکئ سره کوی].

**مسئله**: ددې آيت مبارك څخه دا معلومه شوه چې كه د خپل يو جائز فعل په وجه نورته د ناجائز كاركولو موقع ملاويږی نو دا جائز فعل هم جائز نه دې. لكه يو عالم دې اودهغه د يو جائز فعل څخه جاهل په مغالطه كښې اخته كيږی او په ناجائزه كارونو كښې داخته كيدو انديښنه وی نو هغه عالم دپاره دا جائز فعل هم ممنوع دې، په دې شرط چې دا فعل شرعی طور سره ضروری او شرعی مقاصدو څخه نه وی، قرآن وسنت كښې ددې ډير مثالونه موندې شی [پيدا كيږی]. ددې يو دليل هغه حديث پاك دې چې په هغې كښې ارشاد دې چې رسول اكرم ﷺ اوفرمائيل چې قريشو دجاهليت په زمانه كښې دبيت الله شريف كوم تعمير كړې دې هغې كښې ئې ډير څيزونه د ابراهيم ؑ دبناء خلاف دی. زما زړه د اغواړی چې داشهيد كړم اوددې په ځائې دابراهيم ؑ د بناء مطابق تعمير اوكړم. خو په دې كښې دا خطره ده چې ناپوهه خلق به په فتنه كښې اخته شی. نوپدې بالفعل داسې نه شم كولې[1]. داسې كارونوته دفقه په اصولو كښې سد ذرائع وئيلې كيږی. اوداډولو فقهاء كرامو په نزد معتبروی. او خاصكر حنابله ددې زيات اهتمام كوی [قرطبی]

مَا يَوَدُّ الَّذِيْنَ
| نه خوښوی | هغه کسان |
| نه خوښوی هغه کسان |

كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ وَلَا الْمُشْرِكِيْنَ اَنْ يُّنَزَّلَ
| چې دحق نه ئې انکارکړې دې | د اهل کتابونه | اونه د مشرکانونه | دا خبره چې | نازل شی |
| چه کفرئې کړې دې د اهل کتابو نه | اونه بت پرست مشرکان | چې نازل شی |

عَلَيْكُمْ مِّنْ خَيْرٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ ؕ وَاللّٰهُ يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهٖ مَنْ
| په تاسو باندې څه | خيرد طرفه درب ستاسو نه | اوالله | خاص كوی | په رحمت خپل سره | هغه څوك چې |
| په تاسو باندې دخپل پروردګار دطرفنه لږ ډيرخير اوحی] | اوالله خپل رحمتونه خاص هغه چا ته ورکوی |

يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ۝
| خوښ ئې شی | اوالله | خاوند | دفضل | لوئ دې |
| چې چاته ئې رضا شی هغه دچانه مشورې نه اخلی] | اوالله لوئې فضل والا دې |

[1] صحيح البخاري، کتاب المناسک، باب فضل مكة وبنيانها: ۱/ ۲۱۵

## آسان ترجمه قرآن

**کافران خواه که د اهل کتابونه وي که د مشرکینوله وي دا نه خوښوي چه ستاسو د پروردگار دطرف نه تاسو ته څه خیر نازل شي حالانکه الله تعالی چه څوك وغواړي نوخپل رحمت سره ئې خاص کوی او الله تعالی د لوئ فضل مالك دي.**

## خلاصه تفسیر

درسول الله ﷺ سره چه دیهودو کوم سلوك ووهغه په دې مخکښې ایت کښې ذکر شو اوس دې کښې دیهودو رویه دمسلمانانوسره بیانیږي. بعضې یهودو مسلمانانو ته اوئیل چه قسم په خدائې مونږ دزړه نه ستاسو خیرخواه یو اوپه زړ خل دا زمونږ خوښ دی چه تاسو ته د دین احکام زمونږ د دین نه زیات ښه درکړې شی نو مونږ به یې هم قبول کړوخو څه اوکړو چه ستاسودین زمونږ ددین نه ښه ثابت نشو.الله ﷻ ددوی دے دعوے ته دروغ وائی چه] ﴿مَا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ لږ هم نه خوښوی کافر خلق [خواه] ﴿مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ﴾ددې اهل کتابو نه [وی] او [خواه] ﴿وَلَا الْمُشْرِكِينَ أَنْ يُنَزَّلَ عَلَيْكُمْ مِنْ خَيْرٍ مِنْ رَبِّكُمْ﴾که دمشرکانو نه وی داخبره چه تاسو ته دې ستاسو دپروردگارله طرفه په څه شان سره بهتری [هم] نصیب شی او [د دوی په حسد هیڅ نه کیږی ځکه چه] ﴿وَاللَّهُ يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهِ مَنْ يَشَاءُ﴾الله ﷻ په خپل رحمت [او مهربانئ] سره څوك چه ورته خوښ شی مخصوص کوی یئ او ﴿وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ﴾ الله ﷻ لوئې فضل کوونکې دې.

**فائده:** ددې یهودیانو دوه دعوې وې. اول د یهودیت بهتر کیدل اسلام دې. بل ددې خیرخواه کیدل. نو اول دعوی خو ئې بالکل ثابت نه کړه. دې دعوؤ سره څه کیږی. او بیا دا دعوی ده څه فضول خبره ده. کله چې ناسخ رازی نو منسوخ ترك کیږی. افضل د غیر افضل فرق باندې موقوف نه دې. نو دا خبره ډیره واضحه او ښکاره ده په دې وجه دې ځائې کښې ددې جواب ذکر نه کړې شو. صرف په دویمه دعوی د خیرخواهئ باندې کلام کړې شو بدې. او د اهل کتابو سره د مشرکینو ذکر کولو د مضمون د قوی کیدو او مؤکد کیدو دپاره اوکړې شو. لکه څنګه چې مشرکان ستاسو خیرخواه نه دی نو داشان دوئ اوګنړئی.

مَا نَنْسَخْ　　مِنْ آيَةٍ

| هغه چې منسوخ کوؤ مونږ | یو آیت

| مونږ چې کوم حکم منسوخ کړو

أَوْ نُنْسِهَا　نَأْتِ　بِخَيْرٍ　مِنْهَا　أَوْ مِثْلِهَا　أَلَمْ　تَعْلَمْ

یائې هیر کړو | نو راوړو مونږ | بهتر | د هغه ایت نه | یا په مثل دهغې | آیانشته | علم تاته

یائې ستا زړه نه هیروؤ | نودهغې نه غوره یا دهغې پشان [بل حکم] رالیږو | ولې ته نه پوهیږې

أَنَّ اللَّهَ　عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ　قَدِيرٌ　أَلَمْ　تَعْلَمْ　أَنَّ اللَّهَ　لَهُ　مُلْكُ

چې بیشکه الله | په هرڅیز باندې | قادر دې | آیا نشته | پته تاته | چې بیشکه الله | لره ده | بادشاهی

چې الله په هرڅه قدرت لری | آیا ته نه پوهیږې [بلکه ښه پوهیږې] چې بادشاهی

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۖ وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ۝

دآسمانونو | اودزمکې | اونشته | ستاسو دپاره | ماسوا د الله نه | څوك دوست | اونه مددګار |

دآسمانونو اودزمکې يوازې دالله ده | او بې دالله نه ستاسو څوک دوست نشته | اونه څوک مددګار شته |

## آسان ترجمه قرآن

مونږ چه کله هم يو آيت منسوخ کړو يا هير کړو هغې لره نو ددې نه بهتر يا ددې پشان (آيت) راوړو آيا تاته دا خبره معلومه نه ده چه الله تعالیٰ په هر څه قادر دې؟ آيا تاته دا معلومه نه ده چه الله تعالیٰ هغه ذات دې چه د زمکې او آسمان بادشاهت هم يوائې دهغه په اختيار کښې دې او د الله تعالیٰ نه سوا ستاسو نه څوک ساتونکې شته او نه امداد کونکې؟.

## خلاصه تفسير

[دقبلې د تبديلۍ واقعه چه پيښه شوه نو يهوديانو په دې پيغور ورکړو او مشرکانوهم دبعضو احکامو په منسوخ کيدو باندې دا چغې اوهلې نو الله ﷻ د دوی د پيغورونو اواعتراض په جواب کښې وائی چه] ﴿مَا نَنْسَخْ مِنْ اٰيَةٍ﴾ مونږ ديو ايت حکم چه معطل کړو [ګويا چه دا آيت په قران کښې يا په ذهن کښې پاتې وی] ﴿اَوْ نُنْسِهَا﴾ يا [هم] دغه آيت [دذهنونو نه] هير کړو نو[داځه د اعتراض خبره نه ده ځکه چه په دې کښې هم مصلحت وی حالانکه] ﴿نَاْتِ بِخَيْرٍ مِّنْهَآ اَوْ مِثْلِهَا ۗ﴾ مونږ ددغې آيت نه بهتر يا هم ددې آيت پشان [په ځائې ئې بل څيز] راوړو [ائې اعتراض کوونکويه!] ﴿اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝﴾ آيا تاته داپته نشته چه الله ﷻ په هر څيز قدرت لرى [نو داسې دقدرت ذات ته د مصلحينو خيال ساتل څه مشکل دی او] ﴿اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ﴾ آيا تاته پته نشته چه الله ﷻ داسې [يو ذات] دے ﴿لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۗ﴾ چه خاص هم دده بادشاهی په آسمانونو او زمکه ده [هرکله چه دده په دې قدرت اوبادشاهۍ کښې څوك شريك نشته نوداسې مصلحتونو په رعايت کولو په بل حکم ورکولو کښې ورسره څوك مخالفت کولے شی؟.غرض دا چه په بل حکم صادر کولو کښې هم څه بنديز نشته او ددغه حکم په جاری کولو کښې هم څه منع کوونکې نشته] او [په دې هم پوهه شئ چه] ﴿وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ۝﴾ ستاسو دپاره دالله ﷻ نه سوا بل څوك مدد ګار نشته [نو هر کله چې دې ملګرے دے نو په احکامو کښې به دمصحلت ضرور لحاظ ساتی اوهر کله چه مددګار دے نوپه دې احکامو دعمل کولو په وخت به تاسو دپاره ستاسو دمخالفو خلقو د تکليف نه هم ضرور حفاظت کښې ساتی البته که ددې ضرور نه هم څه زيات دآخرت فائده ملاويدونکې څيزوی نو په ظاهره د مخالفو خلقو په حلقه کښې راتلل بله خبره ده].

## معارف اومسائل

قوله تعالیٰ-﴿مَا نَنْسَخْ مِنْ اٰيَةٍ اَوْ نُنْسِهَا﴾ په دې آيت کښې ئې دقرآن ديوآيت دمنسوخ کيدوټول صورتونه رايوځائې کړې دی،نسخ په لغت کښې لرې کولواوليکلوته وئيلې شی،په دې دامت دټولو مفسرينو اتفاق دې چې په دې آيت کښې دنسخ نه مرادزائل [الرې] کول يعنی منسوخ کول دی،اوپه دې وجه دکتاب الله اوسنت په اصطلاح کښې نسخ دې ته وئيلې شی چې ديوحکم په ځائې بل حکم جاری کړې شی خواه دغه بل حکم داوی چې ړومبې حکم بيخی ختم کړې شی

یاداوی چې ددې په ځائ بل عمل اوښودلې شي،

**په احکام الهیه کښې دنسخ حقیقت:** ددنیاپه حکومتونواوادارو کښې یوحکم ماتول اوبل جاری کول مشهوره خبره ده لیکن احکام ماتول کله په دې وجه کیږي چې ړومبې دڅه غلط فهمئ په وجه څه حکم جاری کړې شوی وی اوبیادحقیقت معلومیدوپه وجه حکم بدل کړې شي اوکله په دې وجه کیږي چې ړومبې حکم جاری کول دهغه وخت دحالاتومناسب ؤو دراتلونکو حالاتو هیڅ اندازه نه لګیده چې هغه حالات بدل شونوحکم هم ورسره بدل شو،خودادواړه صورتونه په احکام خداوندی کښې نشی موجودیدلې،

دریم صورت داهم کیدې شي چې حکم ورکوونکی ته دشروع نه دحالاتوبدلیدوحکم وی چې په دغه وخت کښې به بیادغه حکم مناسب نه وی اوبل حکم به جاری کول راځی،په داسې بصیرت سر هغه نن یوحکم اوکړی اوکله ئې چې دخپل علم مطابق حالات بدل اولیدل نودخپل ړومبی تجویزمطابق ئې حکم هم بدل کړو،ددې مثال بیخی داسې اوګڼړی چې یوډاکټریاحکیم په یووخت کښې یومریض دپاره څه دارو او دوا تجویزکړی هغه پوهیږی چې په دوه ورځوکښې به ددې مریض حالت بدل شی نونوردارو به ورلره تجویزکړی نودې سره دخپلې پوهې مطابق یوورځ څه مناسب داروو ورلره تجویزکړی اودوه ورځې پس په حالاتوبدلیدوورددپاره نورداروتجویزکړی،

ماهرحکیم یاډاکټرداهم کولې شي چې په ړومبئ ورځ دپوره علاج نظام پوره لیکلې داشان ورکړی چې دوه ورځوپورې دادارواستعمالوه بیادرې ورځوپورې فلانی دارو،بیایوه هفته فلانی دارو،لیکن دې طریقې سره دمریض په طبیعت بې وجې پیټې ورغورځول دی، او د غلطوپوهیدوله کبله پکښې دعملی خلل خطره هم وی،په دې وجه هغه دړومبې نه ټول تفصیلات نه ښائی،دالله تعالی په احکام اودده په نازل کړی کتابونو کښې دنسخ صرف داآخری صورت کیدې شي اوهمدغسې به کیدل، هریوراتلونکی نبوت اوهرنازلیدونکی کتاب دتیرشوی نبوت اوکتاب ډیراحکام منسوخ کړی اونوی احکام ئې جاری کړی دی اوهم داشان په یونبوت اوشریعت کښې به هم داسې کیدل چې څه موده به یو حکم چلیدوبیادحکمت خداوندی په تقاضاسره به دغه حکم بدل،اوبل به ئې دهغې په ځائې جاری کړې شو دصحیح مسلم په حدیث کښې راغلی دی،

**لم تکن نبوة قط الاتناسخت** [مسلم](۱) هیڅ یوانوې] نبوت داسې نه دې راغلې چې هغې به په احکامو کښې نسخ اوردوبدل نه وی کړې [قرطبی]

**جاهلانه شبهې:** البته څه جاهلویهودیانو دخپل جهالت له کبله،داحکام الهیؤنسخ ددنیوی احکامو دنسخ په ړومبی دؤوصورتونوقیاس کړه اوپه نبی کریم ﷺ باندې دپیغورژبه راپرانسته یعنی خلاصه کړه اوهم ددې په جواب کښې داآیتونه نازل شو[ابن جریر ابن کثیر وغیره]

دمسلمانانوځنې دمعتزله فرقې ځنوخلقو،شایدداسې مخالفینودپیغورنه دبچ کیدودالار راؤښکله [راواویستله] چې په احکام الهیه کښې دنسخ امکان خوشته،هیڅ یوخبره ددې امکان دپاره خندنشی جوړیدې خوپوره قرآن کریم کښې نسخ چرته هم نه ده واقع شوې نه څه آیت ناسخ

۱ ) صحیح مسلم، کتاب الزهد: ۲/ ۴۰۹

دي اونه منسوخ شوي دي، داقول ابومسلم اصفهاني رحمه الله ته منسوب کيږي چې دامت علماؤ پرې هميشه ردکړي دي او دغه خبره ئې بده ګڼلې ده، تفسيرروح المعاني کښې دي:

**واتفقت اهل الشرائع على جواز النسخ ووقوعه وخالفت اليهود غير العيسوية في جوازه وقالوا يمتنع عقلا وابومسلم الاصفهاني في وقوعه فقال انه وان جاز عقلا لكنه لم يقع** [روح ۳۵۲ص ج ۱] ټول اهل شرائع دنسخ په جوازاوواقع کيدو[دواړو] متفق دی اويهودوبغيردعيسويه نه ددې دامکان نه انکارکړې دې اودوئ وائی چې داعقلاهم نشی کيدې اوابو مسلم اصفهانی ددې واقع کيدونه انکارکړې دې هغه وائی چې په احکام الهيؤکښې خونسخ ممکنه ده خوچرته واقع شوې نه ده؟

اوامام قرطبی رحمه الله پخپل تفسيرکښې فرمائيلی دی:

**معرفة هذا الباب اكيدة وفائدته عظيمة لاتستغنى عن معرفته العلماء ولاينكره الا الجهلة الاغبياء** [قرطبی ص ۵۵ ج ۱] [د باب نسخ معرفت ډير زيات ضروری دې او ددې فائده ډيره زياته ده. ددې د معرفت څخه علماء کرام مستغني کيدې نشی اودجاهلانو اوبې وقوفانو څخه سواددې څخه څوک انکارنشی کولې]

قرطبی رحمه الله دلته يو واقعه دحضرت علی کرم الله وجهه نقل کړيده چې يوځل هغه رضي الله عنه جمات ته تشريف راوړو، يوسړی وعظ کولو، حضرت علی رضي الله عنه دخلقونه تپوس اوکړوداسړې څه کوی، خلقواوئيل: وعظ اونصيحت کوی، هغوئ رضي الله عنه اوفرمائيل: داسې نه ده، دې وعظ اونصيحت نه کوی بلکه داوئيل غواړی چې زه فلانی ځوئ دفلانی يم نواوم پيژنئ، بيائ دغه سړې راوبللواوتپوس ئې تراوکړوچه آياته دقرآن کريم ناسخ اومنسوخ احکام پيژنې، هغه اوئيل: نه نه ئې پيژنم، حضرت علی رضي الله عنه اوفرمائيل: زمونږ جمات نه اوځه، بيادلته وعظ مه کوه،

په قرآن اوسنت کښې دنسخ دوجوداوواقع کيدومتعلق دصحابه کرامو رضي الله عنهم اوتابعينو دومره آثاراواقوال موجوددی چې نقل کول ئې مشکل دی، تفسيرابن جرير، ابن کثير، درمنثور وغيره کښې صحيح اوقوی اسنادونوسره هم ډيرروايات ذکرشوی دی او د ضعيفو رواياتو خو هډو شميرنشته[1]،

په دې وجه امت کښې دامسئله هميشه اجماعی پاتې شوې ده صرف ابومسلم اصفهانی اوڅو معتزله کسانودنسخ دواقع کيدونه انکارکړيدې، په چاچه امام رازی رحمه الله په تفسير کبير کښې ډيراوږد تفصيلی ردکړې دې،

**دنسخ په مفهوم کښې دمتقدمينواومتاخرينوپه اصطلاحاتوکښې فرق:** دنسخ، اصطلاحی معنی حکم بدلول دی، ددې بدلولو ① يوصورت دادې چې يوحکم ختم کړې شی اوبل دهغې په ځائ راوړې شی لکه دبيت المقدس په ځائ بيت الله شريف لره دقبلې جوړول، ② دابدلول په دې صورت هم کيدې شی چې يومطلق ياعام حکم کښې څه قيداوشرط زيات کړې شی دامت پخوانی بزرګانونسخ لره په دې دواړومعنوکښې استعمال کړې ده، ① يعنی ټول سراسر حکم بدلول ② ياڅه برخه ئې بدلول چې څه قيد، شرط يااستثناء ورسره اولګولې شی په دې بنا د پخوانو بزرګانو په نزد دقرآن کريم پنځه سوه آيتونه منسوخ حسابيږی،

روستنی علماء، نسخ داسې بدلولوته وائی چې داول حکم سره ئې په هيڅ صورت جوړښت اوسمون نه برابريږی، بناپه دې دمنسوخ آيتونوشميره ډيره کميږی چانچه په متاخرينو علماؤ

[1] تفسيرابن كثير: ۱/ ۳۷۸، وتفسير الطبرى: ۲/ ۴۷۳، ۴۷۴

کښې علامه سیوطی رحمه الله صرف شل آیتونه منسوخ حسابوي، او حضرت شاه ولی الله رحمه الله په دې کښې یو تربله جوړښت او تطبیق راستولو سره صرف پنځه آیتونه منسوخ اوبلل چې پکښې هیڅ قسم سمون، جوړښت او تطبیق نشی راتلې لهٔونه پکښې تاویل بعید کیدې شی، داخبره په دې وجه هم ډیره ښه ده چې احکامو کښې اصل ددې په ځائ پاتې کیدل دی او نسخ خلاف اصل دې نو چرته هم چې په آیت شریف باندې د عمل کولو په څه شان سره صورت پیدا کیدې شی هلته بې ضرورته نسخ منل صحیح نه دی،

لیکن ددې کموالی نه دامطلب هیڅکله نه دی اغستل پکارچه دنسخ مسئله په اسلام یاقرآن باندې څه عیب وو، څوارلس سوه کاله ددې عیب لرې کولو کوشش جاری وو په آخره کښې دحضرت شاه ولی الله رحمه الله کوشش کامیاب شو منسوخ آیتونه ئې پنځه اوبلل او نور انتظار ددې چې یو نوې محقق دا پنځه نسخ هم دمنځه اوباسی،

داسې قسم مطلب اغستل او داسې خیال لرل، داسلام او قرآن څه صحیح خدمت نه دې، اونه په داسې کولو سره دصحابه کرامو [عنه] او تابعینو او د متقدمینو او متاخرینو علماؤ څوارلس سوه کلن مقالات او تحقیقات دسره ورکولې او ختمولې شی، او د مخالفینو د پیغورونو ورکولو خلې اوژبې هم ورسره بندیدې نشی بلکه دې سره به دملحدینو خلقو خلې نورې هم وازې شی اودژبو تورې به داشان استعمال کړی چې څوارلسو سوو کالو راسې دټولو علماء امت تحقیقات وغیره په دې باره کښې [معاذالله] په غلطه وو بلکه قرآن او شریعت به هم محفوظ پاتې نشی، مخالف خلق به وائی چې ځنګه څوارلس سوه کلن تحقیقات غلط ثابت شو نو اوسنی تحقیقات او راتلونکی تحقیقات هم غلط ثابتیدې شی لهذا قرآن کریم او شریعت [معاذالله] دسره دعمل جوګه نه دې چې عمل پرې او کړې شی،

دموجوده زمانې دځنې علماؤ ځنې داسې تحریرونه مې دنظرنه تیرشوی دی چې هغوئ دیوې قضئې فرضئې لکه ﴿لَوۡ كَانَ فِيهِمَآ ءَالِهَةٌ﴾ اولکه ﴿قُلۡ إِن كَانَ لِلرَّحۡمَٰنِ وَلَدٞ﴾ پشان آیت لره داسې جمله ګرځولې ده چې متضمن ده معنی دشرط لره، اودا آیت ئې صرف دامکان دنسخ دلیل ګرځولې دې، اودوقوع دنسخ نه ئې انکار کړې دې [حالانکه دهغه جملې چې متضمن وی معنی دشرط لره اودقضئې شرطئې په منځ کښې ډیرفرق دې] اوداهغه استدلال دې چې ابومسلم اصفهانی او معتزله ئې پیش کوی،

لیکن هرکله چې دصحابه کرامو رضی الله عنهم اوتابعینو رحمهم الله تفسیرونه اودپوره امت تراجم اوکتلې شی نو دې نه پس ورته مدلول قرآنی وئیل په هیڅ شان سره دقبلیدو وړ نشی ګرځیدې چنانچه صحابه کرامو [عنه] دې آیت کریم نه دنسخ په واقع کیدلو استدلال کړې دې اوګڼو واقعات ئې شمیرکړی دی [ابن کثیر، ابن جریر وغیره] (۱)

او هم په دې وجه دمقدمینو او متاخرینو علماؤ ځنې هیچا هم دنسخ دواقع کیدونه مطلقا انکار نه دې کړې، چنانچه حضرت شاه ولی الله رحمه الله خوشمیر اګرچه کم اوښودلو خوبیائې هم دنسخ دواقع کیدونه انکارنه دې کړې اودې نه روستو هم، لوئ لوئ علماء دیوبند ټول دنسخ دواقع کیدلو قائل راروان دی چې پکښې دګڼو حضراتو مستقل یاجزوی تفسیرونه هم موجود دی چا دنسخ دواقع کیدونه مطلقا انکارنه دې کړې، والله سبحانه وتعالی اعلم،

---

(۱) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ۱/ ۳۷۸

[اَوۡ نُنۡسِهَا] دمشهورقرات مطابق دادانسء [مزيد] اونسيان [ثلاثی مجرد] نه ماخوذدي، معنی ئې داده چې کله دیوآيت منسوخ کيدل په دې صورت کښې وی چې دغه آيت درسول الله ﷺ اودصحابه کرامو [عنه] دذهنونو نه بيخی هيرکړې شی لکه چې ددې په تفسيرکښې ددې پشان ګڼرې واقعې مفسرينوحضراتوذکرکړی دی، ددې هيرولومقصدهم داوی چې آئنده کښې په دې باندې دچاعمل کول مطلوب نه وی،

دنسخ په باره کښې دپاتې نوروا حکاموتفصيلات دلته نشی کيدې ددې اصل ځائ داصول فقه کتابونه دی،

| اَمۡ تُرِيۡدُوۡنَ | اَنۡ تَسۡـَٔلُوۡا | رَسُوۡلَكُمۡ | كَمَا | سُئِلَ |
|---|---|---|---|---|
| نوآيا تاسو غواړئ | اچې تپوسونه اوکړئ | د رسول خپل نه | لکه څنګه چې | تپوسونه شوی وو |
| آيا تاسودخپل پيغبرنه هغه شان تپوسونه کول غواړئی لکه څنګه چې به د دې نه وړاندې د موسی | | | | |

| مُوۡسٰى | مِنۡ قَبۡلُ ؕ | وَمَنۡ يَّتَبَدَّلِ | الۡكُفۡرَ | بِالۡاِيۡمَانِ | فَقَدۡ |
|---|---|---|---|---|---|
| دموسی ﷺ نه | مخکښې ددې نه | حالانکه څوك چې بدلوی | کفر | په ايمان باندې | نو يقينا چې |
| نه ددې تپوسونه کولې شوا | | اوچاچې کفرپه ايمان بدل کړو | | نوبيشکه | |

| ضَلَّ | سَوَآءَ السَّبِيۡلِ ۝ |
|---|---|
| بې لارې شو | دصحيح لارې نه |
| هغه دسمې لارې نه واوړيدو [اوپه غلطه لار روان شو] | |

## آسان ترجمه قرآن

**آيا تاسودا غواړئ چه د خپل نبی نه داسې قسم سوالونه اوکړئ لکه چه مخکښې د موسٰی عليه السلام نه شوې وو؟ او هر يو کس چه د ايمان په بدله کښې کفر اختيار کړي هغه يقيناً د نيغې لارې نه خطاء شو.**

## خلاصه تفسير

[بعضې يهودو د بغض او کينې په وجه دحضور ﷺ په مخکښې عرض اوکړو چه څه رنګ په موسیﷺ باندې په يوځل [تول] قران نازل شو دغه شان تاسو هم ټول په يو ځل قران کريم راوړئ ددې په جواب کښې ورته الله ﷻ ارشادکوی چه] ﴿اَمۡ تُرِيۡدُوۡنَ اَنۡ تَسۡـَٔلُوۡا رَسُوۡلَكُمۡ﴾ آيا تاسو غواړئ [چه دخپل وخت] درسول ﷺ نه [هيڅ بی ځايه څه] خواستونه اوکړئ څنګه چه ددې نه مخکښې[ستاسو د بزرګانو له طرفه دحضرت] ﴿كَمَا سُئِلَ مُوۡسٰى مِنۡ قَبۡلُ ؕ﴾ څنګه چې موسیﷺ نه هم [دغسې] خواستونه شوی وو [لکه چه په ښکاره دالله ﷻ دليدلو خواست ترې نه شوې وو اوداسې خواستونه چه هغې سره صرف په رسولﷺ اعتراض کول اود الله ﷻ په ښکرو کښې مخالفت کول مقصود وی او د ايمان راوړو ئې بيا هم اراده نه وی. داتولې دکفر خبرې دی او] ﴿وَمَنۡ يَّتَبَدَّلِ الۡكُفۡرَ بِالۡاِيۡمَانِ﴾ څوك چه دايمان راوړلو په ځائې [د] کفر [خبرې] کوی ﴿فَقَدۡ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِيۡلِ ۝﴾ بيشکه دغه کس دصحيح لارې نه لرې شو.

**فائده** دې خواست ئې فضول څکه اوئيل چې په کار کښې دالله ﷻ حکمتونه او مصلحتونه جدا وی. بنده ته په دې کښې هيڅ حق حاصل نه دې چې هغه اووائی چې دا دې داشان و

او دا دې داشان وي. او دا کار خو خامخا پکار دي.

زبان تازه کردن باقرار تو　نينگيختن علت از کار تو(۱)

**ترجمه:** شيخ الهند رحمه الله کښې دا خطاب مسلمانانو ته دې، ددې حاصل دا دې چې مسلمانانو ته په دې باندې تنبيه پکار ده چې د رسول کريم ﷺ فضول سوالات مه کوئ.

| وَدَّ | كَثِيرٌ | مِّنْ أَهْلِ الْكِتَٰبِ | لَوْ يَرُدُّونَكُم |
|---|---|---|---|
| غواړي | اکثر خلق | د اهل کتابونه | چې واپس کړي تاسو |
| دير اهل کتاب [کافر] داغواړي چې | | | |

| مِّنْ بَعْدِ | إِيمَٰنِكُمْ | كُفَّارًا | حَسَدًا | مِّنْ عِندِ أَنفُسِهِم | مِّنْ بَعْدِ مَا |
|---|---|---|---|---|---|
| روستو | دايمان ستاسونه | اوشئ تاسو کافران | دوجې دحسدنه | دطرفه دخپلونفسونو | روستو دهغې نه |
| چې تاسودايمان راوړلونه پس بيادوباره کافران کړي | خکه چې په زړونو کښې ئې حسدشته دې سره ددې نه چه | | | | |

| تَبَيَّنَ | لَهُمُ الْحَقُّ | فَاعْفُوا | وَاصْفَحُوا | حَتَّىٰ | يَأْتِيَ اللَّهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې ښکاره شو | هغوئ ته حق | نو معافي کوئ | اومخ اړوئ | تر هغې پورې چې | راوليږي الله |
| په ښه شان سرګنده شوې ده چې دادين [اسلام] حق دې نو تاسو [في الحال] دوئ معاف کړئ اومخ ترې واړوئ تردې | | | | | |

| بِأَمْرِهِ | إِنَّ اللَّهَ | عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ | قَدِيرٌ | وَأَقِيمُوا | الصَّلَوٰةَ | وَآتُوا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فيصله خپله | بيشکه چې الله | په هر څيز باندې | قادر دې | اوقائموئ | مونځ | اوورکوئ |
| چې الله خپل حکم راوليږي | بيشکه الله په هرڅه پوره پوره قدرت لري | اومونځونه کوئ او زکاة | | | | |

| الزَّكَوٰةَ | وَمَا | تُقَدِّمُوا | لِأَنفُسِكُم | مِّنْ خَيْرٍ | تَجِدُوهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| زکاة | اوهغه | چې مخکښې ليږئ تاسو دپاره دځانونو خپلو | څه | نيکی | اوبه مومئ هغه |
| ورکوئ او تاسو چې ځان نه مخکښې هر څه نيکي اوليږله نويقين اوکړئ چې بيا مومئ | | | | | |

| عِندَ اللَّهِ | إِنَّ | اللَّهَ | بِمَا | تَعْمَلُونَ | بَصِيرٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| دالله سره | بيشکه | چې الله | د هغه څه | چې کوئ ئې تاسو | اليدونکې دې |
| هغه دالله سره بيشکه چې الله ستاسو کارونه ويني ګوري اودوئ واي: | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

(مسلمانانو !) دير اهل کتاب د زړونو د حسد په وجه دا غواړي چه ستاسو د ايمان راوړو نه وروستو تاسو کفر ته واړوي باوجود ددې نه چه حق په دوی باندی واضح شوې دې نوتاسو معاف وکړئ او درګزر وکړئ تر دې چه الله تعالی پخپله څه فيصله راوليږي بې شکه الله تعالی په هر يو څيز قادردې او مونځ قائم کړئ او زکوة ادام کړئ او (يادساتئ) چه کوم دنيکئ کار تاسو دخپلې فايدې دپاره مخکښې وليږئ نوهغه په د الله سره ومومئ يقيناً تاسوچه څه عمل هم کوئ الله تعالی هغه ويني.

---

(۱) ترجمه: ستا سو په اقرار سره ژبه تازه کول نه چه ستا سو په کار کښې علت را اوښکل.

## خلاصه تفسير

[بعضې يهود به د دوستئ په جامه کښې شپه ورځ په دې کښې اخته وو چه مسلمانان د اسلام نه واړوی او سره د ناکامئ نه به هم دخپل دے مشغولا نه نه منع کیدل نو الله ﷻ مسلمانان په دې خبره خبردار کړل چه] ﴿وَدَّ كَثِيرٌ مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ﴾ دد ےاهل کتابو [یهودو] بعضې خلق د زړه نه دا غواړی ﴿لَوْ يَرُدُّونَكُم مِّن بَعْدِ إِيمَانِكُمْ كُفَّارًا﴾ چه تاسو ستاسو د ایمان راوړلو نه پس بیا کافران کړی [اودا خواهش څه ددوی خیر خواهی نه ده چه څنګه ئے دوی ښکاره کوی بلکه] ﴿حَسَدًا مِّنْ عِندِ أَنفُسِهِم﴾ صرف د حسد دوجې نه چه [ستاسو طرفه دڅه خبرې په سبب پیدا شوې نه دې بلکه] پخپله هم ددوی د زړونونه [جوش وهونکې] دې [اوداسې هم نه ده چه دوی ته به ګنې حق ښکاره نه وی بلکه] ﴿مِّن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْحَقُّ﴾ دحق ښکاره کیدو نه پس [ئې دا حالت دے اوس دا د مسلمانانو د غصے ځائې وو خکه چه ارشاد فرمائی چه] خیر[اوس خو یئ] ﴿فَاعْفُوا وَاصْفَحُوا حَتَّىٰ يَأْتِيَ اللَّهُ بِأَمْرِهِ﴾ معاف کړئ او مخ ترې اوګرزوئ تر کومے چه الله ﷻ [ددې معاملے په باره کښې] خپل حکم [نوې قانون] راولیږی [په اشارے سره دې اوخودلے شوچه د دوی د ورانو چاروأو شرارتونو یو علاج اوبندوبست مونږ د امن عام انتظام په قانون یعنی چه جنګ او جزیه ده ددې علاج زر تر زره کوونکی یو. په دې سره دمسلمانانو حیرانتیا خکه کیدیشی چه خپل خانونه کمزوری او هغوی ئے زورور اولیدل نو الله ﷻ فرمائی چه په دې کښې تعجب دڅه خبرې] ﴿إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ الله ﷻ په هر څیز[چه دمعمول مطابق وی اوکه دمعمول مطابق نه خلاف [عجیبه وی] قادر دے او[دا وخت صرف] ﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ﴾ مونځونه په پابندئ سره ادا کوئی او [چه په چا زکات فرض وی] ﴿وَآتُوا الزَّكَاةَ﴾ زکات ورکوئی [اوکله چه نافذ شی نوې حکم نو ددې نیکو کارونو سره سره په هغې هم عمل کوئی] او [ګمان مه کوئی چه تر څو پورې د جهاد حکم نه وی راغلې نو د مونځ او روژے په ثواب کښې به کمے راځی دا خبره نه ده بلکه] ﴿وَمَا تُقَدِّمُوا لِأَنفُسِكُم مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوهُ عِندَ اللَّهِ﴾ کوم یو نیك کار هم چه دخپلې ښیګړے دپاره په مخه جمع کوئی الله ﷻ سره [چه اورسی] دابه [پوره کره او سره د بدلے] بیا مومئ ﴿إِنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ﴾ خکه الله ﷻ ستاسو ټول کړی کارونه وینی ګوری [په دې کښې به زره برابر هم بےکاره نشی].

**فائده**: د هغه وخت د حالت مطابق هم دا تقاضا وه چې بیا الله ﷻ دا وعده پوره کړه. اود جهاد آیتونه نا زل شو. اودې څخه روستو یهودیانو سره هغه قانون اوکړې شو. او خرابو خلق سره د هغوئ د حیثیت مطابق د فساد بدله کښې قتل یا جلاوطنی یا جزیه باندې عمل اوکړې شو.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَقَالُوا | | | | | | | | |
| اووائی دوئ | | | | | | | | |
| اودوئ وائ | | | | | | | | |
| لَن يَدْخُلَ | الْجَنَّةَ | إِلَّا | مَن | كَانَ | هُودًا | أَوْ نَصَارَىٰ | تِلْكَ | أَمَانِيُّهُمْ |
| هر ګز به داخل نشی | جنت ته | مګر | هغه څوك | چې وی | یهودی | یا عیسائی | دا | آرزوګانې ددوئ دی |

چې جنت ته به بل څوک نه ننوځی مګر [یهودوانی چې یهودیان او] [نصاری وائی] نصاری وادودوئ هسې آرزوګانې دی

قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ﴿۱۱۱﴾ بَلَىٰ مَنْ أَسْلَمَ

ورته اووایه | راوړئ | دلیل خپل | که چرې یئ تاسو | ربښتني | حق دادي چاچي | تابعدار کړو

ورته اووایه چي خپل دلیل پیش کړئ که تاسو ربښتوني یئ | بلکه هرڅوک چه خپل ځان الله ته اوسپاري

وَجْهَهُ لِلَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَلَهُ أَجْرُهُ عِنْدَ رَبِّهِ

ځان خپل | دالله | اوهغه | په نیك لارتلونکي وي | نودي هغه لره | اجر دهغه | درب خپل سره |

....... اونیک کارونه کوي | نو دهغه ثواب د خپل رب سره موجود دي | چه هغه ته به ثواب ورکوي

وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿۱۱۲﴾ وَقَالَتِ الْيَهُودُ لَيْسَتِ

اونه به وي يره په هغوئ | اونه به هغوئ | غمژن شي | اووائي | يهوديان | نه دي |

اوپه داسي خلقوبه هيڅ قسم ويره نه راځي | اونه به غمژن کيږي | او يهوديان وائي | چي عيسايان

النَّصَارَىٰ عَلَىٰ شَيْءٍ وَقَالَتِ النَّصَارَىٰ لَيْسَتِ الْيَهُودُ عَلَىٰ شَيْءٍ

عيسايان | په هيڅ څيز [حق دين] | او وائي عيسايان | نه دي يهوديان | په هيڅ څيز [حق دين]

په هيڅ دين نه دي. ........... | اونصاري وائي چي ديهودو مذهب هيڅ مذهب نه دي

وَهُمْ يَتْلُونَ الْكِتَابَ كَذَٰلِكَ قَالَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ

حال دا چي دوئ دواړه | لولي | کتاب | هم دغه شان | وائي | هغه کسان | چي علم نه لري

[اوعجيبه داده] چي دا دواړه د الله کتابونه وائي | داشان نورونا پوهه خلقو [مشرکانو اومجوسيانو]

مِثْلَ قَوْلِهِمْ فَاللَّهُ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا

پشان د وينا ددوئ | نوالله | به فيصله کوي | په منځ ددوئ کښي | په ورځ | دقيامت | په هغه کارونوکښي

هم ددوي پشان خبري اترې کړي دي | نوالله به دقيامت په ورځ په هغه خبرو کښي د دوي په مينځ کښي

كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿۱۱۳﴾

چي وو دوئ | چي په هغې کښي به ئې | اختلاف کولو |

پخپله فيصله کوي په کومو کښي چه دوي اختلاف کوي |

## آسان ترجمه قرآن

اودا (يهود اونصارئ) وائي چه په جنت کښې به سوا ديهودو او نصاراؤ نه نورڅوك نه داخليږي داصرف ددوی آرزوګانې دی ته دوی ته ووایه که تاسو (په دې دعوی کښې) رښتيني يئ نو په دې څه دليل پيش کړئ ولې نه ده؟ (قاعده دا ده چه) کوم کس هم الله تعالی ته خپله غاړه کيږدي اوهغه نيك عمل کوونکې وی هغه ته به خپل اجر دخپل پروردګار سره ملاويږی اوداسې خلقو باندې به نه څه ويره وی اونه به دوی غمژن شی او يهوديان وائی چه د عيسايانو د (مذهب) څه بنياد نشته او عيسايان وائی چه ديهودو د (مذهب) څه بنياد نشته حالانکه دوی ټول (آسماني) کتاب لولي دغه شان هغه (مشرکان) چه هغوی سره (آسماني) علم د سره نشته هغوی هم ددې اهل کتابو پشان خبرې شروع کړی دی پس الله تعالی به د قيامت په ورځ ددوی په مينځ کښې د هغه خبرو فيصله کوی چه په هغې کښې دوی اختلاف کوی.

## خلاصه تفسير

﴿وَقَالُوا لَنْ يَدْخُلَ الْجَنَّةَ إِلَّا مَنْ كَانَ هُودًا أَوْ نَصَارٰى﴾ اويهود اونصاری [داسې] وائی چه جنت ته به هيڅرے څوك داخل نشی بغير دهغې کسانو نه چه يهوديان دی [دا خوديهوديانو وينا ده]. او يا دهغې کسانو چه نصاری دی [دا دنصاری وينا ده، الله ﷻ د داوړه خبرې ردکوی او فرمائی چه] ﴿تِلْكَ أَمَانِيُّهُمْ﴾ دا [صرف] ددوئ د زړه مشغولولو خبرې دی [او حقيقت په کښې هيڅ نشته] ﴿قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ﴾ تاسو [دوی ته داخو] اووائې چه [ښه ده] خپل دليل راوړئ ﴿إِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ﴾ که تاسو [دې دعوی کښې] رښتنی يئ [نودوی به څه دليل راوړی؟ دليل ورسره بالکل نشته دې، اوس زمونږ د دوی خلاف اول خو دا دعوی کوو چه] ضرور به [نور خلق هم جنت ته] ځی [بيا ددې خبرې دليل راوړئ چه زمونږ قانون چه دآسمانی ملتونو [دينونو] منونکو په اتفاق سره ثابت شوې دې، دادې چه] ﴿بَلٰى مَنْ أَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ﴾ بيشکه څوك هم خپل روح الله ﷻ ته تابع کړی [يعنی اعمالو او عقائدو کښې فرمانبرداری اختيار کړی] ﴿وَهُوَ مُحْسِنٌ﴾ او [دے سره] هغه مخلص هم وی [چه تابعداری ئے دزړه نه اختيار کړې وی صرف دخولے خبرې نه وی] ﴿فَلَهٗ أَجْرُهٗ عِنْدَ رَبِّهٖ﴾ نو داسې کس ته دده [دتابعدارئ] بدله به ملاويږی چه الله ﷻ ته اورسی ﴿وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ﴾ اوپه داسې خلقو به [قيامت کښې] نه څه ويره [دڅه مصيبت] وی او نه به داسې خلق [په دې ورځ] غمژن وی [ځکه چه فرښتې به يئ په زيری اورولو سره بے فکره کړی] ددليل جوړولو حاصل داشو چه هر کله دا قانون منلے شوې دې نواوس اوګورئ چه داخبره چا سره سمون خوری نو ښکاره خبره داده چه د مخکښنی حکم منسوخ کيدو نه پس په هغې عمل کوونکې هيڅکله تابعدار نشی ګڼړلے ځکه يهود او نصاری تابعدار نشو بلکه په دويم [ناسخ] حکم عمل کول فرمانبرداری ګڼړلے شی اودا شان د مسلمانانو دې چې دوی نبوت اوشريعت محمدی ﷺ قبول کړو او جنت ته به تلونکی هم داخلق وی. اود [مخلصينوپه قيد سره منافقان ددې نه بهر شو ځکه چه دشريعت له مخه هغوی هم په کفارو کښې داخل شوچه دوی هم دجهنم مستحق دی] او [يو وار يهود او نصاری يو ځائے کښې راغونډ شول او په خپل مينځ کښې يئ يو مذهبی بحث شروع کړو. يهوديانو به دخپلې عقيدې په زړا کښې د نصرانيانو دين باطل ګڼړلو اود حضرت عيسی ﷺ د نبوت او انجيل مقدس نه به يئ انکار کولواو دا به يې وئيل چه انجيل خو دالله ﷻ کتاب نه دې. په دې سره نصاری هم په غصه او تعصب کښې شول اود يهودو دين ئے باطل اوګرزولو او حضرت موسی ﷺ ئے پيغمبر نه منلو او تورات ئے دالله ﷻ کتاب نه منلو نو الله ﷻ ددې قيصے دنقل کولو سره د ترديد په طريقه فرمائی چه] ﴿وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ لَيْسَتِ النَّصٰرٰى عَلٰى شَيْءٍ﴾ يهوديانو اووئيل چه [مذهب د] نصرانيانو په څه بنياد [ولاړ] نه [بلکه هدو غلط دې] ﴿وَقَالَتِ النَّصٰرٰى لَيْسَتِ الْيَهُوْدُ عَلٰى شَيْءٍ﴾ او [دغه شان] به نصاری [هم] اووئيل چه يهودی مذهب] په څه بنياد [ولاړ] نه دې [بلکه بالکل غلط دې] ﴿وَهُمْ يَتْلُوْنَ الْكِتٰبَ﴾ حالانکه داټول [د دواړو فرقودخلق آسمانی] کتابونه [هم] لولی [يعنی يهود تورات او نصاری انجيل لولی او ګوری چه دواړو کتابونو کښې د دواړو رسولانو اودواړه کتابونو تصديق موجود دې چې دا د دواړو مذهبونو اصل بنياد دے که دمنسوخ کيدو په وجه دواړو اوس دعمل قابل پاتې نشو دا بيله خبره ده. اواهل کتابو خو به هم داسې دعوے کولې چې دوی ئے اوليدل نوپه

مشرکانو باندې هم میرې اخته شو او] ﴿كَذَٰلِكَ قَالَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ مِثْلَ قَوْلِهِمْ﴾ دا شان دے خلقو [هم] چه [صرف] بے علمه دی [هم] ددې [اهل کتابو] پشان خبرو باندې شخوند وهل شروع کړل [چه ددې يهودو او نصرانيانو ټول دين هيڅ بنياد نه لری په حق ولاړ خو صرف مونږ يو] ﴿فَاللَّهُ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾ نو [دې خائې کښې دوی په خپله خپله خبره باندې شخوند وهی] الله ﷻ به ددې ټولو ترمينځه [عملی] فيصله اوکړی دقيامت په ورځ ﴿فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ﴾ په هغې ټولو [مقدمو] کښې چه يو تر بله به يې مخالفت په کښې کولو [عملی فيصله به داوی چه اهل حق به جنت ته بوتلے شی او اهل باطل به په جهنم کښې ورواچولے شی، دعملی فيصلې قيد په دې وجه بيان کړې شو چه دعقلی او نقلی دليلونو په ذريعه په خبرو او دليلونو سره فيصله خو دنيا کښې شوې ده].

## معارف اومسائل

**قوله تعالى:** ﴿وَقَالَتِ الْيَهُودُ لَيْسَتِ النَّصَارَىٰ عَلَىٰ شَيْءٍ﴾ په دې آيتونو کښې الله تعالى ديهودو او نصاراؤ ترمنځه په خپلو کښې اختلافات بيان کړل، په خپل مينځ کښې په يو بل باندې د ذکرئې اوفرمائيلو، ددوئ ناپوهی اوددغې اختلافاتو مضراثرات ئې بيان کړل، بيائې اصل حقيقت ښکاره کړو، په دې ټولو واقعاتو کښې دمسلمانانو دپاره ډيرزبردست هدايات دی چې بيان ئې راروان دې،

**ديهودو او نصاراؤ دعوې او حقيقت:** يهودواونصاراؤدواړودخپل خپل دين اصل حقيقت هيرکړې دمذهب په نوم ئې يوقوميت جوړکړې وواوهريوقوم ددې معتقدووچه هم مونږدالله تعالى په نزدمقبول اوجنتيان يواوزمونږنه سوادونياټول قومونه ګمراه اودوزخيان دی،ددې نامعقول اختلاف نتيجه داراوختله چې مشرکان هم ببرشو، عيسائيت اويهوديت دواړه ئې بې بنياداوبلل اودادعوی ئې اوکړه چې حق اوصحيح هم زمونږبت پرستې ده،

**نيک عمل به هم هغه قابل قبول وی کوم چې د قرآن پاک او سنت موافق وی:** الله تعالى ددې دواړو قومونو جهالت اوګمراهی په دې شان بيان کړه چې داقومونه،جنت ته دتلود اصل سبب نه ناخبره دی صرف دمذهب په نوم،قوميت پسې روان دی،خوحقيقت دادې چې ديهودی عيسائی اواسلامی مذهبونوجرړه اوروح دوه څيزونه دی،① يوداچه بنده خپل ځان په سرسترګوسره خدائ ته اوسپاری،دده اطاعت اوفرمانبرداری،خپله عقيده اومذهب اوګنړی،خواه که هريومذهب کښې داحاصله شی،که ددين اومذهب حقيقت هيرکړې شی ياشاته اوغورځولې شی اويهودی يا نصرانی قوميت خپل مذهب جوړکړې شی نودادين اومذهب نه بې خبری اوګمراهی ده،

بله خبره داده چې جنت ته دتلودپاره يوائې داخبره هم کافی نه ده چې څوک په زړه سره خودالله تعالى دفرمانبردارئ قصددرست کړی مګرداطاعت،فرمانبردارئ اوعبادت طريقې دخپله څانه پخپله جوړې کړی بلکه ضروری دادی چې دعبادت،فرمانبردارئ اوحکم منلوطريقې هم هغه اختيارکړی چې الله تعالى دخپل رسول ﷺ په ذريعه ښودلې اوټاکلې دی،

رومبئ خبره د ﴿بَلَىٰ مَنْ أَسْلَمَ﴾ په ذريعه اودويمه خبره د ﴿وَهُوَ مُحْسِنٌ﴾ په ذريعه په ډاګه کړې شوه حتی چې تر معلومه شوه چې دآخرت دخلاصی اوجنت ته تلودپاره صرف دفرمانبردارئ قصدکافی نه دې بلکه ښه عمل هم ضروری دې اوحسن عمل به هغه تعليم اوطريقه بللې شی

چې دقرآن اودسنت درسول خیرالانام ﷺ مطابق وی،

**نسلي مسلمان وی که یهودي یانصراني وی دالله تعالی په نزد ددې هیڅ قیمت نشته اصل څیز ایمان اونیک عمل دی:** څوک چې ددې بنیادی اصولوځنې څه یواصل هم پریږدی اوصرف دیومذهب په نوم د قومیت په نشه کښې خپل ځان دجنت ټیکیداراوګڼړی نودأصرف ځان تیرویستلو او دهوکه ورکول دی چې حقیقت سره ئې هیڅ قسم تړون نشته،خواه داسې خلق یهودیان،نصرانیان یامسلمانان وی،نو صرف ددغه قومونوپه اړانړه او سهارا دالله تعالی نزدیکت هیڅوک نشی حاصلولې اونه یومقبول بنده جوړیدې شی تر څوپورې چې ده کښې دایمان اونیک عمل روح موجودنه وی،

اصول دایمان خودهررسول اوهرشریعت په زمانه کښې شریک اویوشان پاتې شوی دی البته دنیک اومقبول عمل شکلونه به بدلیدل رابدلیدل،دتورات دزمانې عمل صالح به هغه ووچه دحضرت موسی علیه السلام اودتورات دتعلیم مطابق به وو،دانجیل دزمانې عمل صالح به یقیناهغه ووچه دحضرت عیسی علیه السلام اودانجیل تعلیم سره به ئې جوړښت لرلو،اواوس دقرآن کریم په زمانه کښې به هغه عمل دعمل صالح ګڼړلوجوګه وی چې دنبی آخرالزمان ﷺ دفرمان اودهغوئ ﷺ دراوړلی شوی کتاب الله، قرآن مجید دهدایت مطابق وی،

خلاصه دکلام داشوه چې ددې اختلاف په باره کښې دیهودواونصاراوُدواړوډلوخبرې الله تعالی د جهالت خبرې اوګرځولې،دجنت ټیکیدارپه دې دواړوکښې یوقوم هم نه دې ددواړومذهبونه او بې اصله اوبې بنیاده دی بلکه ددواړومذهبونوصحیح بنیادمو جوددې، دغلط فهمئ اصل سبب دادې چې دې دواړودمذهب اوملت اصلی روح یعنی عقائداواعمال اونظریات پریښودل په نسلی یاوطنی بنیادئې څوک یهوداوڅوک نصرانی اوګرځول،یعنی داسې اوشوچه دیهودوپه نسل کښې پیدا،یاد یهودوپه علاقه کښې استوګن یادیهودوپه فهرست دمردم شمارئ کښې لیکلې شوې یاهغه څوک چې ځان ته یهودی وائی هغه یهودی اوګڼړلې شواوهم په داسې ټګ او تشخیص باندې څوک نصرانی اوګڼړلې شولیکن دایمان داصولوپه ماتولواوداعمال صالحه نه په مخ اړولوُنه خونه څوک یهودی یهودی پاتې کیدې شی اونه څوک نصرانی،نصرانی پاتې کیدې شی،

قرآن کریم ددې اختلاف اوددې فیصلې ذکرځکه اوکړوچه مسلمانان واؤری اوخبردارشی چې هسې نه چې دوئ هم صرف په دې بنا،ځان مسلمان اوبولی چې پشت په پشت مسلمانان راغلی یوپه هردفتر اورجسټرکښې مونوم دمسلمانانوپه خانه کښې لیکلې شوې دې یاپه ژبه اوخله هم ځان ته مسلمانان وایو،اوبله غلطی پرداونکړی چې دجنت خپل ځانونه ټیکیداران اوګڼړی اونه خپل ځان دهغه ټولوانعامی وعدوحقداراوګڼړی چې درسول الله ﷺ په ذریعه مسلمانانوسره شوی دی،

**صرف په دعوی سره څوک مسلمان نشی کیدې:** ددې فیصلې په وجه په مسلمانانوواضح کیدل پکار دی چې صرف دعوې سره څوک حقیقی مسلمان نشی جوړیدې،نه په دې حقیقی مسلمان کیدې شی چې دهغه نوم مسلمان لیکلې شی یاد مسلمانانوپه پشت کښې دې یاددوئ په علاقه کښې پیدادې بلکه مسلمانیدودپاره اول اسلام ضروری دې چې معنی ئې خپل ځان سپارل اودسنت مطابق خپل عمل سمول دی،

د قرآن کریم ددې راغلې خبردارۍ باوجود، ډیر مسلمانان دیهودیانو اونصرانیانو ددې غلطیو ښکارشول، الله اورسول ﷺ نه غافل خلق دمسلمانیدودپاره داکافی ګڼړی چې مسلمان نه پیدایم اوپه قرآن کریم اوحدیث کښې داسې ټولې وعدې خپل ځان دپاره ګڼړی چې ددنیااودآخرت دخلاصی دپاره مسلمانانوسره شوی دی چې دغه وعدې پوره کیدل اونه وینی نودقرآن اوحدیث په وعدوکښې شکونه کوی، دې ته نه ګوری چې قرآن کریم صرف دیونوم مسلمان سره داوعدې نه دی کړی ترڅوچه خپلې ټولې ارادې دالله تعالی اودهغه درسول ﷺ تابع نه کړی اوهم دهغوئ ﷺ په طریقود عمل صالح پابندنه وی اوهم داخلاصه ده ددې آیت، قوله تعالی: ﴿بَلَىٰ مَنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُ لِلَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَلَهُ أَجْرُهُ عِندَ رَبِّهِ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ﴾

نن صبادټولې دنیامسلمانان دقسماقسم مصیبتونواوآفتونوښکاردی، ډیرناواقف خلق چې دې ته اوګوری نوداوګڼړی چې ددې سبب زمونږ دااسلام دې خودپورته لیکلونه داواضح شوچه ددې اصلی سبب زمونږ اسلام نه بلکه داسلام پریښودل دی چې مونږ صرف داسلام نوم اخلونه مونږ ددې عقائد اختیارکړیدی نه اخلاق اونه عملونه ګویا

*وضع میں ہم ہیں نصاریٰ تو تمدن میں ہنود*

**ترجمه**: په وضع قطع کښې مونږ نصارا یو او په تمدن کښې هندوان،

نوزمونږ داحق څنګه جوړیدې شی چې اسلام اومسلمان دپاره د کړووعدواوانعامونوپه انتظار کښې اوسیږو،

**یو سوال او دهغې حل**: البته دلته داسوال پیداکیږی چې مونږ هرڅنګه چې یوداسلام نوم خوا خلودالله اودهغه درسول نوم اغستونکی یو، کوم کفارچه په ښکاره دالله اورسول مخالفت کوی، داسلام نوم اغستل هم نه خوښوی هغوئ په دنیاکښې هرقسم ترقی کوی د لویو لویو حکومتونو خاوندان دی ددنیالوئ لوئ کاریګرئ، کارونه اوتجارتونه دهغوئ په لاس کښې دی، که زمونږ دبدعملئ سزا، مونږته داملاویږی چې مونږ هر چرته شرمیدلې، خوار، ذلیل، او پریشانه یو نو کافرانو او فاجرانو ته ددې نه زیاته سزاملاویدل پکاردی لیکن که پوټې غوراوکړې شی نوداشبه پخپله ختمیږی،

اول داچه دوست دشمن سره معامله یوشان نشی کیدې، دوست قدم په قدم اوپه هره خبره ټوکلې شی، اولاداوشاګردته په نه څه خبره سزاورکولې شې، خودشمن سره داسې رویه نه وی، هغه ته ډیل ورکولې شی چې وخت راشی نوناڅاپه نیولې شی،

مسلمان ترڅوچه داسلام اوایمان نوم اخلی اودالله تعالی دعظمت اومحبت اظهار کوی، هغه ددوستانوپه فهرست کښې داخل دې هغه ته دبدوعملونوسزاعموماپه دنیاکښې ورکولې شی چې دآخرت پیټې ئې سپک شی خوپه کافرودباغیانواودشمنانوقانون جاری دی ددنیاپه سپکوسپکوسزا ګانوسره دهغه دعذاب بارنشی سپکیدې په یوځل به په عذاب کښې راګیرولې شی چنانچه د رسول الله ﷺ دارشادهم دغه مطلب دې چه، دنیامؤمن دپاره قیدخانه اوکافرانودپاره جنت دې[۱]،

---

[۱]) مشکوٰة، کتاب الرقاق: ۲/ ۴۳۹

**دهوم عمل دپاره چې کوشش او فکر کیږي ترقي هم په هغې حاصلیږي**: د مسلمانانو د کمزورئ، بې وسئ او پریشانئ، او د کفارو د ترقئ او آرام دویمه ضروري خبره داده چې الله تعالی د هر عمل بېل بېل خصوصیت ایښې دې، دې وعمل خاصیت د بل سره نشي بیاموندې، مثلاد تجارت خصوصیت دادې چې مال کښې ورسره زیاتوالې راځي، ددارو خصوصیت دادې چې بدن ته صحت حاصلیږي نو که څوک شپه او ورځ تجارت کښې اخته وي، د بیمارئ هیڅ علاج ته مخه نه کوي نو یواځې د تجارت په وجه هغه د بیمارئ نه خلاصې نشي موندې، داسې بالعکس واخله چې د بیمارئ په علاج کولو سره په تجارت کښې ګټه نشي راتلې، د کفارو دنیوي ترقي او د مال دولت نتیجه نه ده بلکه کفار و هر کله چې د آخرت فکر پریښوا و په پوره شان د دنیا د مال، دولت، عیش عشرت او د آرم په فکر کښې ډوب شو، د تجارت، کاریګرئ، ذراعت. حکومت، او سیاست مفیدلارې ئې اختیار کړې د مضرو طریقو نه بچ شو نو دنیائې ور ده بیاموندہ. که هغوئ هم، زمونږ پشان د خپل مذهب نوم اغستې او خپه په خپه ناست وې او د دنیوي ترقئ د پاره ئې د دې د اصولو مطابق کوشش نه کولې نو د هغوئ کفر به هغوئ له د مال دولت یا حکومت مالک نوې جوړ کړې، بیا د امونږه څنګه او ګنړو چه زمونږ اسلام چې هغه هم تش په نوم دې، زمونږ د ټولو کامیابو دروازې څنګه پرانیځي یعني خلاص ئې کړئي، اسلام او ایمان که بیخي په صحیح اصولو بنا وي نو د دې اصلي خاصیت او نتیجه، د آخرت نجات او جنت د همیشه راحت دې، په دنیا کښې د مال دولت پریماني او ډیروالي یاد عیش او آرام فراخي د دې په نتیجه کښې حاصلید ل ضروري نه دي ترڅو چه د دې دپاره مناسب کوشش اونه کړې شي،

او د اخیره تجربې سره ثابته ده چې کله یو مسلمان، د تجارت، کاریګرئ، حکومت او سیاست صحیح اصول ازده کړي او په هغې عمل شروع کړي نو هغه هم د دنیوي میوؤ او نتیجو نه محرومه نه پاتې کیږي کومې چې یو کافر ته حاصلیږي،

دې نه واضحه شوه چې په دنیا کښې زمونږ خواري، غریبي، مصیبتونه او آفتونه زمونږ د اسلام نتیجې نه دي بلکه یوطرفته د اسلامي اخلاقو او اعمالو پریښودو او بل ارخ ته د هغې ټولو کارونو نه د مخ اړولو نتیجه ده چې هغې له په کار کښې راوستو سره په مال دولت کښې وده او ترقي کیږي،

**د کافرانو نه مونږ څه زده کړل**: افسوس دې چه کله مونږ ته دیورپ خلقو سره د ګډون موقع په ګتوراغله نو مونږ تریواځې د هغوئ کفر، د آخرت نه غفلت، بې حیائې، او بد اخلاقي ټول ازده کړل لیکن د هغوئ هغه اعمال موازده نه کړل چې د هغې په وجه سره هغوئ په دنیا کښې کامیاب لیدې شي، هغوئ چې کوم مقصد دپاره ملاوتړي، هغې پسې ښه کوشش کوي، معامله صفا کوي، خبره ئې رښتیاوي او په دنیا کښې کلک تعلقاتو پیدا کولو دپاره نوې نوې هغه طریقې استعمالوي چې په حقیقت کښې هم د اسلام اصلي تعلقات دي، مونږ ورته ګورو او په دې کښې د هغوئ د نقل کولو کوشش نه کوؤ نو آیا د ازمونږ قصور شو او که د اسلام قصور شو؟

غرض داچه د قرآن دې آیتونو دا واضحه کړه چې یواځې په نسلي ډول د اسلام نوم ایښودل هیڅ نتیجې ته څوک نشې رسولې ترڅو چه ایمان او نیک عمل په مکمل شان سره اختیار نه کړې شي.

| |
|---|
| وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ |
| اوڅوک دي \| زيات ظالم \| دهغه چانه \| |
| اوهغه چانه بل لوئي ظالم څوک کيديشي |
| مَّنَعَ مَسٰجِدَ اللهِ اَنْ يُّذْكَرَ فِيهَا اسْمُهٗ وَسَعٰى |
| چي منع کوی\|عبادت خاني دالله\|ددي نه چي \|يادکړې شي \|په هغې کښې\|نوم دهغه\|اوکوشش کوي |
| چي جماتونه ددې خبري نه بندوی چي په هغې کښې دالله نوم واخستې شي \|اود هغې په شاړولو |
| فِيْ خَرَابِهَا ۭ اُولٰۗىِٕكَ مَا كَانَ لَهُمْ اَنْ يَّدْخُلُوْهَآ اِلَّا |
| په ورانولو دهغې کښې\|داسې خلق \|نه دی لائق هغوئ له \|چې داخل شي دغه عبادت خانوته \| مگر |
| کښې کوشش کوی [هغه وخت نزدې دې چې] هم دوئ به دغې جماتونو ته په ويره ويره ورځي |
| خَاۗىِٕفِيْنَ ڛ لَهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ وَّلَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ |
| يرېدونکي \|دپاره ددوئ \| په دنيا کښې \| شرمندگی ده\|اودپاره ددوئ \| په آخرت کښې \| عذاب \| |
| ......... هم دوئ لره په دنيا کښې خواري او[رسوائی] ده \| اودوی دپاره په آخرت کښې لوئې عذاب |
| عَظِيْمٌ ۝ وَلِلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ ۤ فَاَيْنَمَا تُوَلُّوْا فَثَمَّ |
| لوئ دي \|اودپاره دالله دي \| طرف دمشرق\|اودمغرب \| نوهرطرفته\|چي تاسو مخ گرزوئ \| نو هم هغه طرفته |
| دي \|. ..... اومشرق دي که مغرب، ټول اړخونه دالله پاک دی نو چي کوم اړخ ته مخ اوگورزئي هغې اړخ ته |
| وَجْهُ اللّٰهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ۝ |
| مخ دالله دي \| بيشکه الله \|ډيرفراخئ والا دي\| په هرڅه عالم دي\| |
| الله ﷻ شته \|الله د فراخيوخاوند او ښه پوهه دي \| |

**آسان ترجمه قرآن**

او دهغه کس نه لوئې ظالم به څوک وي چه دالله تعالی په جماتونو باندې ددې خبرې پابندي ولگوي چه په دې کښې دالله نوم واخستې شي او دهغې د ورانولو کوشش کوي دداسې خلقو دا حق نه کيږي چه دې جماتونو ته داخل شي مگر په ويره داسې خلقو دپاره په دنيا کښې رسوائي ده او دوی لره به په آخرت کښې لوئې عذاب وي او مشرق او مغرب ټول دالله تعالی دي لهٰذا کوم طرف ته چه هم دوی مخ کوی هغه طرف ته دالله تعالی مخ دې بې شکه الله تعالی ډير فراخئ والا دې ډير علم والا دې.

**خلاصه تفسير**

کله چه د قبلې د بدليدو حکم راغلو نو يهودو به د کم علمئ په وجه د خلقو په ذهنونو کښې شکونه اچول او په دې لړ کښې به يې قسماقسم اعتراضونه کول.که دغه شکونو په عامو خلقو اثر کړې وې نو دا نتيجه به ضرور راختله چه درسالت نه به انکاري شوې وې.او خلقو به مونځ پرېښودې وې اودې سره به جماعتونه هم شاړ او خالی شوی وو.او دا يو لازمی خبره وه.او دا يهود د مونځونو پرېښودلو او د جماعتونو شاړولو او خاص کر د مسجد نبوی ﷺ د شاړيدو

باعث جوړيدل.او دروم بعضي مخکښني بادشاهان چه دا د نصرانيانو پخواني مشران وو اودے نصرانيانو به ددوی افعال بد نه ګڼړل اګر چه دوی به نصرانيان نه وو.په څه وخت کښې يهودو په شام باندې حمله کړې وه اوپه دې کښې جنګ وجدال هم شوې وو اوپه دغه جنګ کښې د بعضې جاهلانو دلاسه دبيت المقدس دمسجد بے حرمتی هم شوې وه اود بدحالۍ او بد امنۍ په وجه په کښې د مونځ اهتمام هم نه ووشوے.په دې وجه د نصرانيانو تير شوی مشران په مونځ پريښودو د جماعت د ورانولو اوشاړولو باعث جوړ شوی وو.او نصرانيانو به دا کار بد نه ګڼړلو او دوی ورسره په دې کښې شامل وو.ددغې بادشاه نام طيطس وؤ او دا خبره نصرانيانو ته په دې وجه بده نه ښکاره کيده چه په دې کښې د يهودو بے عزتی شوې وه.او حال دا وو چه دوی د يهودو دښمنان وو.اود فتح مکه نه مخکښې چه کله رسول الله ﷺ په مکه مکرمه کښې د خانه کعبے طواف او په مسجد حرام کښې مونځ کول اوغوښتل نو دمکے مشران ددې خلاف شول. او نبی کريم ﷺ يې مکې مکرمې ته پريښود تر دې چې نبی ﷺ په دې وجه په دغه کال واپس تشريف يوړو.نو مطلب داشو چه مشرکان هم د مسجد حرام شاړولو باعث جوړ شول نو ځکه الله ﷻ په عامه صيغه سره ددې خباثت او بدی ښکاره کړه] ﴿وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ مَّنَعَ مَسٰجِدَ اللّٰهِ﴾ او هغه چا نه زيات بل څوك ظالم وی چه دالله په مسجدونو کښې [چه په دې کښې دمکے مکرمے مسجد حرام، دمدينے مسجد نبوی ﷺ، بيت المقدس او نور ټول مسجدونه راغلل] ﴿اَنْ يُّذْكَرَ فِيْهَا اسْمُهٗ﴾ دے کښې ذکر [او عبادت] کولو نه بنديز راولی ﴿وَسَعٰى فِيْ خَرَابِهَا﴾ اوددې [مسجدونو] په شاړولو کښې کوشش کوی ﴿اُولٰٓئِكَ مَا كَانَ لَهُمْ اَنْ يَّدْخُلُوْهَآ اِلَّا خَآئِفِيْنَ﴾ دې خلقو دپاره خو کله هم بے هيبته [او بيباکه] کيدلو سره په دې [مسجدونو] کښې قدم ايښودل نه وو پکار [بلکه چه کله هم ورتللے نو ډير په ادب او احترام سره ورتللے.نو هر کله چه بغير د خطرے د ورننوتلو حق ئے هم نشته نود بے عزته کولو حق ئے دکومے رسی چه ورته ظلم اووئيلې شو] ﴿لَهُمْ فِى الدُّنْيَا خِزْىٌ﴾ ددې خلقو به په دنيا کښې هم رسوائی [په حصه کښې] وی ﴿وَّلَهُمْ فِى الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ﴾ او د دوی دپاره به په آخرت کښې هم لويه سزا وی.[يهودو دا اعتراض کولو چه اخر ولے مسلمانان ديو طرف نه بل طرف ته واوړيدل نو ددې په جواب کښې ورته الله ﷻ فرمائی] ﴿وَلِلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ﴾ اوپيو اځې د الله ﷻ [په] ملك [کښې] دی [ټول طرفونه] مشرق هم او مغرب هم [اوهغه دده مکان نه دې] نو هر کله چه هغه مالك دې ځکه چې مالك په خپله خوښه قبله ټاکلے شی نو په قبله ټاکلو کښې مثلا د عبادت کوونکو متفق کيدل او دجمعی حاصليدل مقصود وی او دا حکمت په هر طرف سره حاصليدے شی.دکوم طرف چه حکم اوکړی هم هغه به مقرر شی البته که د معبود ذات نعوذ بالله يو خاص طرف سره تعلق ساتلے نو دهغې ټاکل به دقبلے جوړيدو دپاره يو ښه کار وو نوهر کله چه داسې نه ده نو هم دغه خبره سمه ده] ﴿فَاَيْنَمَا تُوَلُّوْا فَثَمَّ وَجْهُ اللّٰهِ﴾ نو تاسو خلق چه کوم طرف ته مخ کوئی [هم هغې ]طرف ته دالله [د پاك ذات] مخه ده ځکه چه الله ﷻ [پخپله په ټولو طرفونو او څيزونو] راچاپيره دې [څنګه چه دهغه شان سره ښائيږی ليکن سره دمحيط او غير محدود کيدول يې بيا هم دعبادت دپاره طرف ئے په دې خاطر مقرر کړلو چه ﴿اِنَّ اللّٰهَ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ﴾ هغه] دکامل علم خاوند دې [چه د هر څيز ښه والیٔ ښه پيژني چونکه د هغه په علم کښې دا تعين د بعضې مصلحتونو نه وو په دې وجه يې دهغې دټاکلو حکم اوکړلو].

**فوائد از بیان القرآن** : ① دمسجدونو د ویرانوونکو چې کومه ډله وه د هغوئ په دنیا کښې رسوائی داسې اوشوه چې، دا ټول حکومتونه د اسلامی حکومت لاندې راغلل او دوئ چونکه کافران دی نو دوئ دپاره آخرت کښې عذاب یقینی دې. او د مسجدونو دویرانولو په وجه به په دوئ دا عذاب نور هم سخت وی. اودې پورته آیت مبارك کښې چې کومو دریو ډلو دا دعوی کړې وه چې هغوئ په حق دی، نو ددې قصې څخه د هغوئ د تردید یو مفهوم هم راؤتلوچې داسې داسې کارونه کوی او وائی چې مونږ صاحب حق یو. اودا ډیره د شرم خبره ده.

② د قبلې د تعین باره کښې چې یو حکمت د مثال په طور بیان شوې دې. نو دې سره د د اسلام د ځینو مخالفینو دا اعتراض ختم شو چې مسلمان کعبه پرست دی.

دجواب خلاصه دا شوه چې عبادت خو صرف د الله ﷻ دپاره دې. خو دعبادت په وخت کښې د زړه د توجو ضرورت دې. داشان دعابدانو د اجتماعی حالت هم دې یکسوئی کښې دخل دې اودا دواړه خبرې تجربې او مشاهدې څخه ثابتې دی. نو ددې اعتراض او شبې هیڅ ګنجائش نشته دې.

اوکه په دې باندې څوك د خپل د برې کیدو دا دعوی اوکړی چې مونږ هم بتان خپلې مخې ته په دې غرض او مقصد باندې ایږدو، نو اول خو دخپل برې کیدو سره د دعوې په مسلمانانو باندې دا مذکور دا اعتراض راګرزی، هغه بدستور مرتفع پاتې شو، او هم دا په دې مقام باندې اصلی مقصد دې.

دویم د عامو مسلمانانو او کافرانو د حالت معلومیدو څخه د عبادت د نه کولو دعوی کښې مسلمانان په حق دی او نور په دروغه کیدل، دا هروخت هر سړی ته معلومیدې شی.

دریم دا چې علی سبیل التنزل وئیلې کیږی. که دا دعوی په رښتیا اومنلې شی، نوبیا هم ددې د تعین او تقیید دپاره د یو غیر منسوخ شریعت حکم پیش کول لازمی دی. او دا د اهل اسلام څخه علاوه نورو سره مفقود دی.

او د ترجمې او تفسیر په بیان کښې چې د حکمت دبیان دپاره چې د مثلا کوم لفظ استعمال شوې دې نو دهغې وجه داده چې دالله ﷻ د احکام او مصلحتونو او حکمتونو انحصار او استیعاب سره د چا په پوهه کښې نه شی راتلې. نو په دې کښې به په زرګونو حکمتونه وی په دې کښې په یو یا په دوؤ باندې انحصار او دنورو نفی نشی کیدې.

③ او دا چې فرمائی چې هم دې طرفته د الله ﷻ مخ دې، اودا شان چې فرمائی چې هغه احاطه کوونکې دې نو داسې مضمونونو کښې ډیر ژور تلل نه دی پکار. لکه څنګه چې د الله ﷻ د ذات پوهه د یو بنده دپاره ممکن نه دی نو داشان دهغه لوئې ذات ﷻ دصفاتو د حقیقت هم د فهم څخه بهر دی. اجمالی طور دې په دې ټولو باندې ایمان راؤړی. ددې څخه زیات انسان مکلف نه دې.

عنقا شکار کس نشود دام باز چین  کا ینجا همیشه باد بدست است دام را(۱)

---

۱) ترجمه: عنقا مرغې د چا په ښکار کښې نه راځي، خپل جال اچت کې، دلته په جال کښې همیشه هوا راځي.

## معارف او مسائل

**دبيت المقدس بې حرمتي او خرابي**: **قوله تعالٰی**: ﴿وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ مَّنَعَ مَسٰجِدَ اللّٰهِ﴾ په دې دؤو آيتونو کښې دوه اهمې مسئلې بيان شوې دي، ړومبی آيت ديو خاص واقعې باره کښې نازل شوې دې چې داسې وه،

دأسلام دزمانې نه وړاندې کله چې يهودو،حضرت يحيی عليه السلام شهيد کړونو،ړوم عيسايان ددوئ نه د انتقام اخستو په غرض يومجوسی [۱] دعراق بادشاه سره ملګرې شواودخپل بادشاه طيطوس په مشرئ کښې ئې د شام په بنی اسرائيلوچپاؤاوکړو،او وې وژل،لوټ ئې کړل، د تورات نسخې ئې اوسيزلې،بيت المقدس کښې ئې پليتې اوخنزيران وراوغورځول، ددې عمارت ئې وران ويجاړکړو،دبنی اسرائيلوطاقت او رعب چپ چوراودل بل او پامال ئې کړواودرسول الله صلی الله عليه وسلم مبارکې زمانه پورې بيت المقدس هم هغسې وران ويجاړوپروت وو، دفاروق اعظم رضی الله عنه دخلافت په زمانه کښې چې شام اوعراق فتح شونوددوئ په حکم بيت المقدس دوباره آبادکړې شو،اوترډيرې زمانې پورې دغه علاقې دمسلمانانوپه قبضه کښې پاتې شوې،بياځه زمانه پس،بيت المقدس دمسلمانانودقبضې نه اووتواوسلوکالوپورې د يورپ دعيسايانوپه قبضه کښې پاتې شو،په شپږمه هجری صدئ [پيړۍ] کښې سلطان صلاح الدين ايوبی رحمه الله بيا فتح کړو،

درومې نصاراؤپه دې بې ادبئ چې تورات ئې اوسيزلو،بيت المقدس ئې وران ويجاړ کړو، ددې بې حرمتی ئې اوکړه داآيت نازل شو:داقول دمفسرقرآن، حضرت عبدالله بن عباس دې او حضرت ابن زيد رضی الله عنه وغيره،نورومفسرينو رحمهم الله ددې آيت شان نزول دابنودلې دې چې دمکې مشرکانودحديبې د واقعې په وخت هرکله چې رسول الله صلی الله عليه وسلم په مسجدحرام کښې دداخليدو او طواف کولونه ايسارکړو نوداآيت نازل شو،ابن جرير رحمه الله ړومبې روايت اوابن کثير رحمه الله دويم روايت غوره ګنړلې دې([۲])،

بهرحال شان نزول هريوچه واغستې شی خوددې بيان په عامولفظونوکښې دومسئلې ضابطې اوقانون بيان دې چې د نصاراؤاومشرکينودپاره مخصوص اونشی ګڼړلې بلکه د دنيا تولوقومونو دپاره عام پاتې شی چنانچه دې آيت کښې دبيت المقدس دنوم اغستوپه کوم کس دالله تعالی په هريوجمات کښې،خلق دالله تعالی دذکرکولونه ايسارکړی،ياځه داسې کار اوکړی چې جمات او مسجد ورسره ويران شی نو هغه ډيرزيات ظالم دې،دالله د جماتونو دعظمت مقتضاداده چې ورننوتونکې دورته په هيبت،عظمت، خشوع اوخضوع سره ورننوځی ځنګه چې شاهی دربارته په ويره،لوئې،عاجزئ سره داخليږی،

**په آدابو کښې ټول جماتونه برابر دي**: ① ددنياټول جماتونه دآدابوپه لحاظ سره يوشان اوبرابردي لکه دبيت المقدس، مسجد نبوی صلی الله عليه وسلم او مسجدحرام،بيعزتی چې لوئ ظلم دې،دغه شان د نورو عاموجماعتونوهم دغه حکم دې،دابيله خبره ده چې مسجدحرام کښې ديومونځ کولو ثواب ديولاکومونځونوبراابراوپه مسجدنبوی کښې دپنځوسو زرومونځونوبرابردې،په دې

[۱] ځينې مفسرينو ددې بادشاه نوم بخت نصر خودلې دې خو ددې ځخه مشهور بخت نصر مراد نه دې ځکه چې دهغه زمانه ديحيی عليه السلام ځخه ډيره مخکښې وه. دا ممکن دی چې روستو بل بادشاه ته چرته بخت نصر ثانی ونيلې شوی وی. [محمد شفيع]

[۲]) تفسير الطبری تحت هذه الآية: ۲/ ۵۲۰، وتفسير ابن کثير تحت هذه الآية: ۱/ ۳۸۸

دري واړو جماعتونو کښې د مونځ کولو په خاطر دلري لرې هيوادونو نه راتلل، لوئ ثواب او ډير برکتونه لری، او ددې دريؤنه علاوه نورو جوماتونو کښې صرف د مونځ کولو په خاطر دلرې نه ورد پاره سفر کول رسول الله ﷺ منع فرمائيلی دی[۱]،

② په جوماتونو کښې د ذکرا و مونځونو نه د منع کولو څومره صورتونه چې کيدې شی دا ټول ناروا او حرام دی، يو صورت خوئې دا دې چې جماعت د تلو نه يا هلته د مونځ او ذکرنه په ښکاره ډول بنديزا وکړې شی، بل صورت ئې دا دې چې په جماعت کښې د ننه يا ورسره خواؤشا کښې داسې شورشغب، هله ګله او حرکات اوکړې شی يا په ريډيو، باجو وغيره غږولو [ږغولو] سره د خلقو په مونځونو او ذکر کښې خلل واچولې شی دا ټول د ذکر الله او مونځ نه د منع کولو صورتونه دی،

داشان د مونځونو په وختونو کښې کله چې خلق په نفل مونځ يا تسبيح، تلاوت، وظيفه وغيره کښې مشغول وی نو په جماعت کښې په اوچت آوازسره تلاوت يا ذکر کول هم د ذکر الله نه د منع کولو يو صورت جوړيږی ځکه فقهاؤ حضراتو دې ته هم ناروا وئيلی دی البته که جومات د عامو مونځ ګذارونه خالی وی، دغه وخت په زوره تلاوت يا ذکر کول څه بديت نه لری،

دغه شان کله چې خلق، په مونځ او تسبيح کښې مشغول وی نو په جماعت کښې ځان د پاره سوال کول وی او که څه دينی کار د پاره چنده کول وی دا ټول منع دی،

**په جماعت کښې قسم خرابيه او ورانئ حرام دي:** دريمه ترې دا مسئله معلومه شوه چې د جماعت دو يجاړولو چې څومره صورتونه دی هغه ټول حرام دی، څنګه چې په ښکاره ډول جوماتونه ورانول حرام دی دغه شان هغه اسباب پيدا کول هم حرام دی چې په هغې سره جماعت ورانيږی، د جماعت ورانول دا هم دی چې هلته مونځونو کولو له خلق نه راځی يا کم شی ځکه چې د جماعت آبادی په ديوالونو، چهتونو، او نقش اونګارنه ده بلکه داده چې ذکرا و مونځونو نه پکښې اوکړې شی لکه قرآن کريم کښې ارشاد دې ﴿إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَٰجِدَ اللَّهِ مَنْ ءَامَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَأَقَامَ الصَّلَوٰةَ وَءَاتَى الزَّكَوٰةَ وَلَمْ يَخْشَ إِلَّا اللَّهَ﴾ په اصل کښې د جوماتونو آبادی په هغه خلقو وی چې په الله تعالی او په ورځ د قيامت ايمان راوړی، مونځ قائموی او زکوة اداکوی او الله تعالی نه سوا د هيچا نه هم نه ويريږی،

او هم په دې وجه په حديث شريف کښې رسول کريم ﷺ فرمائی چې قيامت ته نزدې به د مسلمانانو جوماتونه په ښکاره آباد، ښکلی او ښائسته وی مګر په حقيقت کښې به وران وی داسې چې ورته حاضريدونکی مونځ ګذار به کم شی،

حضرت علی المرتضی رضي الله عنه اوفرمائيل: د شرافت او انسانيت کارونه شپږ دی، درې په حضر [کور] او درې په بهر [په سفر] کښې دی د کور درې کارونه دادی: د قرآن کريم تلاوت کول، جماعتونه آبادول، د داسې دوستانو راغونډول چې د الله تعالی او دين په کارونو کښې امداد کوی، او د سفر درې کارونه دادی، د خپلې توښې او خرڅې نه په غريبو ملګرو خرڅ کول، په ښه خوئې سره پيش راتلل او د سفر ملګرو سره د خندا او خوشحالئ تفريح او خوش طبعئ په حالت کښې پاتې کيدل په شرط د دې چې خوش طبعی د ګناه حد ته پورې نه ووځی،

---

[۱]) صحيح البخاری، كتاب التهجد، باب فضل الصلاة فى مسجد مكة والمدينة: ۱/ ۱۵۸

په دې ارشادکښې دجوماتونوآبادولو مطلب هم دادې چې هلته خشوع اوخضوع سره حاضرهم وی اوپه ذکراوتلاوت کښې مشغول اوسيږی،اوس ددې په مقابله کښې دجماعت ورانيدل به داوی چې هلته مونځ ګذارپاتې نشی ياکم شی ياداسې اسباب راپيداشی چې ورسره خشوع اوخضوع کښې خلل راځی،

که دآيت کريمه شان نزول دحديبئې واقعه اودمکې دمشرکانو،مسلمانانولره دمسجدحرام نه ايسارول وی نودې آيت نه به هم واضح شی چې دجماعت ورانيدل يواځې دانه دی چې اونړولې شی بلکه دائې هم ورانيدل دی چې هغه مقصدپکښې نه ترسره کيږی کوم دپاره چې دا جوړشوې وی يعنی مونځ اوذکرالله پکښې نه وی ياکم شی نودغسې جماعت به وران بللې شی،

**مسلمانانوته تسلی**: په دويم آيت کښې رسول الله ﷺ اوصحابه کرام رضی الله عنهم ته تسلی ورکړې شوې ده چې دمکې مشرکانواګرچه تاسولره دمکې مکرمې اوبيت الله نه په هجرت کولومجبورکړل او مدينې منورې په رسيدوپه ړومبئ زمانه کښې شپاړس اوولس مياشتې تاسوته بيت المقدس اړخ ته په مخ کولوسره د مونځ کولوحکم درکړې شوخوپه دې کښې ستاسوهيڅ زيان،تاوان نشته اونه تاسولره دغمژن کيدوڅه وجه شته ځکه چې دالله تعالی پاک ذات يوخاص اړخ کښې نه،بلکه هرځائ کښې دې نومشرق او مغرب په دې باره کښې يوشان شو،که کعبې ته په مانځه کښې مخ کوئ اوکه بيت المقدس ته،په دواړوکښې څه ذاتی خصوصيت نشته بلکه دواړه ځايه په حکم الهی عمل کول دفضيلت سبب دې؟

دادِحق راقابليت شرط نيست بلکه شرط قابليت دادهست

[دالله جل جلاله ورکړې دپاره قابليت شرط نه دې بلکه دقابليت شرط د الله جل جلاله ورکړه ده]

کوم وخت اوکومه زمانه کښې چې کعبې ته دمخ کولوحکم وو،په هغې کښې فضيلت وو اوکله چې بيت المقدس ته دمخ کولوحکم اوشونوپه دې کښې فضيلت دې،تاسوزړه مه خفه کوئ،دالله تعالی مخه په دواړوحالتونوکښې يوشان ده هرکله چې بنده په حکم عمل کوی،

څومياشتودپاره بيت المقدس لره دقبلې ګرځولوحکم ورکولوسره عملااوهغوئ ﷺ قولا دا خبره واضحه کړه چې يوخاص مکان يااړخ قبله ګرځول دامطلب نه لری چې [معاذالله] الله تعالی خاص په دغه ځائ يادغه اړخ کښې دې اوبل ځائ کښې نشته بلکه الله تعالی په هرځائ او هر اړخ کښې توجه سره موجوددې،يوخاص اړخ،ددنيادخلقوقبله جوړول په نورو مصلحتونو او حکمتونو باندې بناده ولې چې هر کله چې دالله تعالی توجه او علم يوخاص ځائې يااړخ پورې تړلې نه ده نواوس دعمل دوه صورتونه کيدې شی ① يوداچه هرڅوک دهغه اړخ ته مونځ کوی چې خپله خوښه ئې وی ② بله داچه ټولوخلقودپاره يو خاص اړخ مقررکړې شی،اول صورت د پراګندګئ،اختلاف اوګډوډئ دې او بل صورت دتنظيم اتفاق يووالی دې،په دې بنا دټولو خلقو دپاره قبله يوټاکل زيات مناسب دی،اوس بيت المقدس وی اوکه بيت الله دواړه مقدس او برکتی مقامات دی دهرقوم اوهرې زمانې مناسب دالله تعالی داړخه احکام راځی،څه زمانې پورې بيت المقدس قبله جوړکړې شوبيادرسول الله ﷺ دآرزوپه مطابق دغه حکم منسوخ شو او د دنيا دټولوخلقو دپاره قبله کعبه اوګرځولې شوه او ارشاد اوشوچې:

﴿قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَآءِ ۚ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضٰىهَا ۠ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ؕ وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ شَطْرَهٗ﴾ يعنی کعبې لره دقبلې جوړولوپه مينه ستاسوبيابياآسمان ته مخ پورته کول مونږ وينو

[چې شاید فرښته حکم راوړی] ځکه به درته هغه قبلې ته دمخ ګرځولو حکم درکوؤچه ستاخوښه ده نوته خپل مخ مانځه کښې مسجد حرام ته کوه، داحکم یواځې تاسولره نه دې بلکه ستاسو ﷺ ټول امت لره دې چې تاسو چیرته یئ مسجدِحرام ته مخ کوی حتی که بیت المقدس کښې هم یئ.

غرض داچه آیت، قوله تعالیٰ: ﴿وَلِلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ﴾ قبلې ته دمخ کولو پوره حقیقت واضح کړو چه ددې منشاء [معاذالله] دبیت الله یابیت المقدس عبادت کول نه دی اونه دې دواړوخایونو سره دالله تعالی پاک ذات مخصوص دې بلکه دهغه ذات په ټولو کائناتو محیط دې اوهراړخ ته ئې توجه یوشان ده نوبیاپه یوخاص مکان او خاص اړخ مخصوص کولوکښې به نورڅه حکمتونه وی،

ددې آیت دمضمون واضح کولواوپه زړه کښې کیښنولودپاره شاید رسول الله ﷺ اوصحابه کراموته دهجرت په رومبو [اولینو] ورځو کښې، شپاړسواولسو میاشتوپورې بیت المقدس ته په مخ کولوسره دمونځ کولوحکم ورکړې شواوعملی طورورته اوښودلې شو، چه زمونږتوجه هرخواه ته ده، نوافلو کښې ئې داحکم همیشه دپاره جاری اولرلوچه په سفرکښې څوک چې په څه سورلئ، مثلااوښ، اس وغیره باندې سوروی نوورته اجازت دې چې په سورلئ سورپه اشاره نفلی مونځ اداکوی چې هغې دپاره قبلې اړخ ته مخ کول هم ضروری نه دی، کوم اړخ ته ئې چې دسورلئ مخه وی هغې ته مخ کول کافی دی

ځینو مفسرینو ﷺ قوله تعالیٰ: ﴿فَاَیْنَمَا تُوَلُّوْا فَثَمَّ وَجْهُ اللّٰهِ﴾ آیت لره دنفلی مونځ حکم ګرځولې دې، خو یادلرئ چې داحکم هغه سورلئ دپاره دې چې په روانه کښې دهغې مخه قبلې ته کول مشکل وی اودکومې سورلئ مخه کول قبلې ته چې مشکل نه وی لکه اورګاډې، داوبو جهاز، هوائی جهازشوددې هم هغه حکم دې کوم چې دحضر [کور] حکم دې یعنی مخ خپل به مونځ ګذارقبلې ته کوی [البته که ددې قسم سوارلوهم په روانه کښې رخ اومخه بدله شی اومونځ ګذارقبلې ته مخ نشی راګرځولې نوبیادپه وړاندینی حالت مونځ پوره کړی]

دغه شان چرته چې مونځ ګذارته دقبلې اړخ معلوم نه وی نوهلته هم دغه حکم دې چې په خپله اندازه اودلیل دې یواړخ دقبلې مقررکړی چې هم هغه به ئې قبله وی، که مونځ ختمولونه. پس ورته دغه اړخ غلط ثابت شی نو کړې مونځ ئې صحیح دې دوباره ګرځول ضروری نه دی،

دا آیت ددې بیان اودحضور ﷺ دتعامل [معمول] اومذکوره جزئیاتونه، قبلې ته دمخ کولود شرعی حکم پوره حقیقت واضح شو.

| | | |
|---|---|---|
| وَقَالُوا | اتَّخَذَ اللّٰهُ | وَلَدًا |
| اووائی دوئ | اچې نیولې دې الله | خوئې |
| اویهوداونصاری وائی چې الله خوئې لری | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| سُبْحٰنَهٗ | بَلْ | لَهٗ مَا | فِي السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | كُلٌّ لَّهٗ | |
| پاکی ده هغه لره | بلکه | هغه لره دی هرهغه څه | چې په آسمانونو کښې دی | اوپه زمکه کښې دی | ټول هغه لره | |
| هغه پاک دې [دهغه خوئې ته حاجت نشته ځکه چې] دآسمانونواوزمکې د مالک ټول څیزونه [هسې هم] | | | | | | |

| قٰنِتُوْنَ۝ | بَدِيْعُ | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ ؕ | وَاِذَا | قَضٰٓى | اَمْرًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| تابعدار دی | هغه پیداکونکې دې | دآسمانونو | اودزمکې | اوهرکله چې | فیصله کوی | دیوکار |

فرمان منونکی دی | الله عجیبه دآسمانونو اوزمکې پیداکونکې دې | اوهغه چې دیوکارفیصله اوکړی

| فَاِنَّمَا | يَقُوْلُ | لَهٗ | كُنْ | فَيَكُوْنُ۝ |
|---|---|---|---|---|
| نوبیشکه | وائی | هغه کارته | شه | نو هغه موجود شی |

نووائی چې اوشه [نوهغه کار هم هغه شان] اوشی

## آسان ترجمه قرآن

دا خلق وائی چه الله تعالی ځوی نیولی دې (حالانکه) دهغه ذات (دې قسم خلقونه)پاك دې بلکه په زمکه اوآسمان کښ چه څه دي هغه ټول هم دهغه دي ټول په ټوله دالله تعالی تابعداردی هغه د زمکې اوآسمان ایجاد کوونکې دې اوکله چه دیوې خبرې فیصله کوی نودهغې په باره کښ صرف دومره ووائی چه وشه نوهغه وشی.

## خلاصه تفسير

بعضې يهودو به حضرت عزير ﷺ او بعضې نصرانيانو به حضرت عيسى ﷺ دخدائې زوے گنړلو او د عربو مشركانو به فرښتې د الله لونړه گنړلے او بللے به يې لكه چه څنگه په مختلفو ايتونو كښې ددې خبر وركړې شوې دې نو الله ﷻ ددې بدی اوباطلوالی بيانوی چه] ﴿وَقَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا ۙ سُبْحٰنَهٗ ؕ﴾ او دا خلق [په مختلفو عنواناتو سره] وائی چه الله ﷻ اولاد لری [سبحان الله څه یې مطلبه خبره ده] ﴿بَلْ لَّهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ﴾ بلكه [دهغه خو اولاد كيدل دعقل لحاظ سره هم ممكن نه دی ځکه چه دا اولاد به دوو حالتونو نه به خالی نه وی یا به یې اولاد دبل جنس وی او یا به یې دخپل جنس نه وی.نو رومبئ خبره خو دعیب ده او الله ﷻ خو دعيب نه پاك دے اودا خبره عقلی لحاظ سره او نقلی لحاظ سره منلے شوې ده چه په دې باندې سبحانه دلالت کوی او دويمه خبره هم ځکه باطله ده چه دالله ﷻ سره هيڅ هم جنس نشته دې او واجب ذات سره لازم صفات كمال،الله ﷻ سره مخصوص دی او په بل چا كښې نشته.اود لازم نفی كيدل د ملزوم دنيشتوالی دليل دے نو غيرالله به واجب ذات نه وی اووجوب پخپله عين حقيقت يا لازم باطل شو اوس صفات كمال صرف دالله ﷻ سره دمختص كيدو دليلونه بيانيږی اول داچه] خاص د الله ﷻ ملكيت دی هغه څه چه په آسمانونو اوزمكه كښې [موجودات او كائنات] دی [بله دا چه مملوك كيدلو سره سره] ﴿كُلٌّ لَّهٗ قٰنِتُوْنَ۝﴾ ټول دهغه محكوم [هم] دی [په دې معنا چه دهغه دقدرت په تصرفاتو كښې لكه مړه كولو ژوندی كولو كښې هيڅ څوك او هيڅ څيز ركاوټ نشی جوړيدلے اگر چه دشريعت داحكامو څوك مخالفت كوی او دريم داچه] ﴿بَدِيْعُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ﴾ الله ﷻ په اول ځل پيداكوونكې [هم]دې دآسمانونو او زمكې او [څلورم داچه په اول ځل دا پيدا كولو قدرت ئے هم داسې عجيبه دے ﴿وَاِذَا قَضٰٓى اَمْرًا﴾ كله چه ديو كار دپيدا كولو] كول اوغواړی نو صرف [دومره خبره ده چه] دغے ته [دومره] ﴿فَاِنَّمَا يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ۝﴾ اوفرمائی چه شه پس هغه [هم دغه شان] شی [او دې ته د اوزارو، اسبابو اوكاريگرو او مدد گارو ضرورت نه راځی اودا خبره هغه خلقوهم منل چا راځی اودا څلورخبرې دالله نه سوا په بل چا كښې نشی موندې اودا خبره هغه خلقوهم منل چا

چه الله ﷻ دپاره د اولاد کیدلو دعوی کوله پس دلیل سره داختصاص مقدمه هم ثابته شوه او حجت هم تمام شو].

**فوائد**: ① خاص خاص کارونو باندې خاص خاص ملائیکې مقررول، لکه باران، رزق وغیره او داشان اسباب اومواد واوقوی څخه کاراخستل، داټول دالله ﷻ په حکمت باندې مبنی کیږی، په دې وجه نه چې خلق دااسباب اوقوات خپل حاجت رویان اوداستعانت اومدد طلبګار اومنی.

② بیضاوی رحمه الله فرمائی چې وړاندې شریعتونو کښې الله ﷻ ته د سبب اول کیدلو په وجه به یې پلار وئیل شو. جاهلانو د ولادت معنی کښې اختیار کړو، پدې وجه دا عقیده لرل او داسې وئیل کفر اوګرځولې شو. د فساد د ختمولو د پاره اوس داسې الفاظ وئیل جائز نه دی([1]).

| وَقَالَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ |
|---|
| اووائی \| هغه کسانا \| چې نه لری پوهه \| |
| ..................اوناپوهه کسان وائی |
| لَوْلَا يُكَلِّمُنَا اللّٰهُ أَوْ تَأْتِيْنَآ اٰيَةٌ ط كَذٰلِكَ قَالَ الَّذِيْنَ |
| ولې نهٔ کوی خبری زمونږ سره الله\| یا ولې نهٔ راځی مونږته\|یوه نښه\|هم دارنګ \|به وئیل \| هغه کسانو |
| چې الله پاک مونږ سره ولې پخپله خبرې نه کوی\| یاولې مونږته [ستاد صداقت]نښې نه رالیږی \|دغسې خبرې |
| مِنْ قَبْلِهِمْ مِّثْلَ قَوْلِهِمْ ط تَشَابَهَتْ قُلُوْبُهُمْ ط قَدْ بَيَّنَّا |
| چې مخکښې ددوئ نه وو \| په شان دوینادوئ\| یوشان شوی دی\| زړونه ددوئ \| بیشکه بیان کړی دی مونږ |
| پخوانو خلقوهم کړې وې \|ددوئ اودهغوئ زړونه [په کفر کښې]یود بل پشان دی\| مونږ بیان کړی دی |
| الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ﴿۱۱۸﴾ |
| آیاتونه \|دپاره دهغې خلقو\|چې یقین لری \| |
| نښې نښانې دیقین لرونکودپاره \| |

## آسان ترجمه قرآن

اوکوم خلق چه علم نه لری هغوی وائی چه الله تعالی مونږسره مخامخ ولې خبرې نه کوی؟ یا مونږته څه معجزه ولې نه راځي؟ کوم خلق چه دوی نه مخکښې تیر شوې دي هغوی به هم داسې خبرې کولې لکه چه دوی څنګه کوی ددوی ټولو زړونه یوشان دي حقیقت دادې کوم خلق چه یقین کول غواړي هغوی دپاره مونږ دلائل مخکښې واضح کړي دی.

## خلاصه تفسير

﴿وَقَالَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ لَوْلَا يُكَلِّمُنَا اللّٰهُ﴾ او [بعضې] جاهل [یهود او نصاری اومشرکان درسول الله ﷺ په مقابله کښې] داسې وائی چه [پخپله] الله ﷻ مونږ سره خبرې ولې نه کوی [دفرښتو نه بغیر لکه چه پخپله فرښتو سره خبرې کوی یاد فرښتو په ذریعه لکه چه پغمبرانو سره دوحی په

[1]) تفسير البيضاوی تحت هذه الآية: ۱/ ۱۵۶

شکل کښې خبرې کوی اوپه دغه خبرو کښې دے یا خو راته پخپله احکام اوښائی چه دبل چا یو رسول ضرورت مونږ ته پاتې نشی یا کم ازکم دومره دې راته اووائی چه محمد ﷺ زمونږ رسول دے نو مونږ به هم د دوی د پغمبرئ په منلو کښې هم ددوی تابعداری شروع کړو] یا [که خبرې راسره نه کوی نو] ﴿أَوْ تَأْتِينَا آيَةٌ﴾ مونږ ته دې څه بل دلیل [دپغمبرئ د ثبوت] راشی [الله ﷻ اول ښائی چه دایو دجاهلانورسم دې ځکه چه] ﴿كَذَٰلِكَ قَالَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِم مِّثْلَ قَوْلِهِمْ﴾داشان به هغه [جاهل] خلقو هم وئیل چه دوی نه مخکښې تیر شوی وو هم د دوی پشان [جاهلانه] خبرې [نو معلوم شو چه دا قول نه څه د قدر وړ دے او نه په څه باریك بینئ باندې مبنی دې تشے لافے اوولی. اوبیا ددې قول غرض او سبب بیانوی چه] ﴿تَشَابَهَتْ قُلُوبُهُمْ﴾ددې ټولو [مخکښې روستو جاهلانو] زړونه [په کوږ والی کښې] په خپل مینځ کښې دیو بل پشان دی [نو دټولو نه خبره هم یو شان راوزی بیا دویم ځل ددې قول جواب ورکوی اوهر چه ددې قول ړومبۍ حصه خالصه بے وقوفی وه چه خپل ځان ئے ملائکو اوپیغمبرانو سره په تله کښې اچولو چه باطل والی کښې یې هیڅ شك نشته دې. ځپوره خله او لوئې خبرې ځکه د دوی د بے وقوفئ داخبره بالکل څه خبره نه ګڼړی او د دویمے حصے جواب ورکوی چه تاسوهم یو دلیل راوړئ] ﴿قَدْ بَيَّنَّا الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يُوقِنُونَ﴾ مونږ خو ډیر دلیلونه [دمحمد ﷺ رسالت په ثبوت کښې] صفا صفا بیان کړې دې [خو دا] هغه خلقو دپاره [نفع ورکونکې اوکافی کیدیشی] چه یقین کول [او اطمینان حاصلول] غواړی [هر کله چه د اعتراض کوونکو مقصد صرف ضد دې دحق غوښتونکی نه دی چه هغه شان تحقیق اوکړی نوددا سې خلقو د تسلئ څوك ذمه وار جوړیدیشی؟

**فائده**: یهودیان اونصرانیان خو اهل کتاب وو، دوئ ځینې عالمان هم وو. ددې باوجود الله ﷻ دوئ ته جاهل اوفرمائیل. دا په دې وجه چې دوئ ته قطعی او قوی دلائل ډیر زیات قائم کړې شوی وو خو بیا بۀ هم دوئ انکار کولو. نو دا جهالت نه دې نور څه دی. اودې ته بۀ د جاهلانو پشان خبره وئیلې کیږی. نو الله ﷻ هم دوئ ته جاهلان اوفرمائیل

| إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ | بِالْحَقِّ | بَشِيرًا |
|---|---|---|
| بیشکه لیږلې ئې مونږ تۀ | په حق سره | زیرې ورکونکې |
| ا اوددې نه لویه ننبه به څۀ وی چې امونږ ته په حقه سره (دجنت ازیرې ورکونکې[1] | | |

[1] په تورات کښې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم صفتونه:- مسند احمد کښې دی چه حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص ﷺ نه حضرت عطاء بن یسار ﷺ تپوس اوکړو چه د رسول کریم ﷺ صفت او ثناء په تورات کښې څنګه ده؟ نو دوی اوفرمائیل چه آو په الله ﷻ قسم چه کوم صفتونه د رسول کریم ﷺ په قران پاك کښې دی هم هغه په تورات کښې دی . په تورات کښې دی چه ائې نبی ﷺ مونږ ته ګواه او زیری ورکوونکی او ویرولو والا او دان پرهو بچ کولو والا لیږلې ئې ،ته خما بنده او خما رسول ئې ، ما ستا نوم متوکل اینبودې دې. نو نه خو بدزبانه ئې ، نه سخت زبانه ، نه بداخلاقه ، نه په بازارونو کښې شور کولو والا ، نه دبدئ په بدله کښې بدئ کولو والا ئې. بلکه ته خو معاف کولو والا ئې. الله ﷻ به هغه تر هغه وخته پورې ددنیا نه اوچتوی تر څو چه دهغه په وجه ...[باقی په راروانه صفحه.

| وَنَذِيرًا | وَلَا تُسْـَٔلُ | عَنْ أَصْحٰبِ الْجَحِيْمِ ۝ |
|---|---|---|
| اويرونكي | اونۀ به كيږى ستانه تپوس | په باره دخاوندانو د دوزخ كښې |
| او[دعذاب نه] ويرونكي ليږلي ئي | اوستانه به ددوزخيانوپاره كښې تپوس نه كيږى | |

## آسان ترجمه قرآن

(اې پيغمبره) بې شكه مونږتاته حق دركړي دې او ته مو داسې ليږلې ئې چه ته زيرې وركړې او (جهنم نه) ووېروې خلق اوكومو خلقو چه (په خپله خوښه) د جهنم (لاره) اختيار كړې ده د هغوى په باره كښې به تاته څه تپوس نه كيږى.

## خلاصه تفسير

هر كله چه درسول الله ﷺ شان او ذات د رحمة للعالمين وو ددې تقاضا داكديشوه چه هغه ددغې خلقو د جهالت او ضد په وجه زړه تنګ كړې وې او ددوى د ايمان نه راوړو هيڅ اميد چه ورته په ذهن كښې نه وې راغلې نو كيديشو چه دوى خفه شوى وې ځكه الله ﷻ د دوى د تسلئ دپاره فرمائى چه ائې محمد ﷺ! ﴿إِنَّآ أَرْسَلْنٰكَ بِالْحَقِّ﴾مونږ تاسو ته يو رېښتينے دين دركړې دې [خلقوته مو] ليږلے ئې چه [منلو والو خلقو ته] ﴿بَشِيْرًا وَّنَذِيْرًا﴾ زيرې وركوه او [نه منلو والا دسزا نه] ويره وه ﴿وَّلَا تُسْـَٔلُ عَنْ أَصْحٰبِ الْجَحِيْمِ﴾ تاسه به دوزخ ته دتلونكو څه تپوس نه كيږى [چې دې خلقو ولے قبول نه كړو ولے دوزخ ته لاړل؟. تاسو خپل كار جارى ساتئ دچا دمنلو او نه منلو هيڅ غم مه كوئ].

| وَلَنْ تَرْضٰى |
|---|
| اوهيڅكله به راضى نشى |
| اوستا نه يهود او |

| عَنْكَ | الْيَهُوْدُ | وَلَا النَّصٰرٰى | حَتّٰى | تَتَّبِعَ | مِلَّتَهُمْ | قُلْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ستانه | يهوديان | اونۀ عيسايان | ترهغې پورې | چې ته روان شې | په طريقې دهغوئ | ورته اووايه |
| نصارى هيڅكله نه راضى كيږى[۱] | | ترڅو چې ته ددوئ د مذهب تابعدارى اونكړې | | | | ورته اووايه |

....باقى د تير مخ] دين صحيح نه كړى او درست ئې نكړى او خلق د ﴿لا اله الا الله﴾ اقرار اونكړى. اوددوى رندې سترګې غړې نشى . اوددوى كاڼره غوږونه آوريدونكى نشى . او ددوى زنګ شوى زړونه صفا نشى. دبخارى په كتاب البيوع كښې هم دا حديث دې او په كتاب التفسير كښې هم . (صحيح بخارى)

[۱] ددې پورتنى آيت مطلب دا دې چه خلق هيڅ كله ستانه نۀ راضى كيږى. ته دوى پريږده او د رب په رضا پسې روان شه. دوى ته د رسالت دعوت اورسوه. حق دين هغه دې چه كوم الله ﷻ تاته دركړې دې. ته په دې باندې قائم اوسه. په حديث كښې دى چه ځما دامت يو جماعت به په حق قائم وى اود نورو مقابله به كوى اوغلبې سره به وى.تردې پورې چې قيامت راشى.(صحيح مسلم)

| أَهْوَآءَهُمْ | وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ | هُوَ الْهُدٰى ط | إِنَّ هُدَى اللّٰهِ |
|---|---|---|---|
| دخواهشاتو دهغوی | بس هغه حقیقي لارښودنه ده \| اوکه چرې تابعداری اوکړه تا \| | | چې بیشکه لارښودنه دالله \| |
| چې الله ماته کومه لار خودلې ده \| هم هغه سمه لار ده \| اوکه ته ددوی دخواهشاتو پسې روان شوې | | | |

| وَلَا نَصِيرٍ | مِنْ وَّلِيٍّ | مِنَ اللّٰهِ | مَا لَكَ | مِنَ الْعِلْمِ لا | جَآءَكَ | بَعْدَ الَّذِيْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اونه مددگار | خوک دوست \| | دالله نه سوا \| | ستا دپاره \| | انو نښته | علم | روستو دهغې نه \| چې راغلې دې تاته \| |
| دپوره علم نه پس نو الله [د عذاب] نه دبچ ساتلو به ستا هیڅ دوست او مددگار پیدا نشي | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او یهود او نصارې به ستا نه هغه وخته پورې هرگز خوشحاله نشي ترڅو چه تا دهغوی دمذهب تابعداری نه وې کړې ته ووایه چه حقیقي هدایت خو دالله تعالیٰ هدایت دې او تاته چه (دوحی په ذریعه) کوم علم راغلې دې که چرې تا ددې نه روستو هم ددې خلقو د خواهشاتو تابعداري وکړه نو تا لره به د الله تعالیٰ نه بچ کولو دپاره نه څوک دوست وي او نه مددگار.

## خلاصه تفسیر

﴿وَلَنْ تَرْضٰى عَنْكَ الْيَهُوْدُ وَلَا النَّصٰرٰى حَتّٰى﴾ او کله به خوشحاله نشي تاسو نه دا یهود او نصرانیان ترڅو چه تاسو [الله ﷺ دې نه کړي] ﴿تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ ط﴾ چه ددوی دمذهب [بالکل] تابع نشې [او دا محال دی څکه ددوی راضي کیدل هم محال دی] اوکه چرې ددوی د [ژبې یا حال نه ددې قسم خبرې څه بوئی یا اشاره سرگند شي نو] ﴿قُلْ إِنَّ هُدَى اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى ط﴾ تاسو [ورته ښکاره] اووائې چه [روره] حقیقت کښې دهدایت لار هغه ده چه الله ﷺ دهدایت لار بللې ده [اوپه دلیلونو سره ثابته شوې ده چه داسې لارصرف د اسلام ده نو دهدایت لارهم داشوه] ﴿وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَآءَهُمْ﴾ او [داخبره ناممکن څکه ده چه نعوذ بالله که تاسو د دوی دمذهب تابع شئ ولې چې دې نه بله ناممکنه خبره لازمیږي هغه داسې چه] که تاسو د دوی د غلطو خیالاتو تابعداری کول شروع کړئ [کوم چه دوی خپل مذهب گنړي خو څه د بدلون په وجه اوڅه د منسوخ کیدو په وجه اوس صرف دیو څو غلطو خیالاتو مجموعه پاتې شوې ده او بیا تابعداری هم په څنگه حالت کښې چه]

﴿بَعْدَ الَّذِيْ جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ﴾ دعلم [قطعي په وحی سره ثابت] راتلو نه پس [نو په داسې حالت کښې خو] ﴿مَا لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيرٍ﴾ دالله ﷺ نه ستاسوڅوک بچ پاتې کوونکې نه یار وی [په میدان کښې] اونه مددگار [بلکه توبه توبه دقهر په پنجه کښې به گرفتار شے چه محال اوناممکن څکه دی چه په یقیني دلیلونو سره دا ثابته ده چه الله ﷺ به تاسونه تل دپاره راضي پاتې کیږي نو غضب د الله په تاسو محال اوناممکن شو چه د ذکر شوی تابعدارئ په صورت کښې به الله ﷺ دې نه کړی په تاسو کیدیشو نو مذکوره تابعداری هم محال او بغیر تابعدارئ نه ددوی راضي کیدل هم ناممکن نو دداسې خبرې د امید کولو هیڅ گنجائش نشته دې څکه د زړه نه داخبره اوباسئ].

| حَقَّ | يَتْلُوْنَهٗ | الْكِتٰبَ | اٰتَيْنٰهُمُ | اَلَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|---|
| الکه څنګه چې حق دې | هغوئ لولي هغه کتاب | کتاب | چې ورکړې دې مونږ هغوئ ته | هغه کسان |

هغه خلق چاته چې مونږ کتاب [توارت] ورکړې دې اوهغوی په حقه د هغې کتاب تلاوت کوی(۱)

| بِهٖ | وَمَنْ يَّكْفُرْ | بِهٖ ط | يُؤْمِنُوْنَ | اُولٰٓئِكَ | تِلَاوَتِهٖ ط |
|---|---|---|---|---|---|
| دهغې نه | اوچاچې انکاراوکړو | په هغې باندې | ایمان راوړی | هغوئ | دوینا دهغې |

هم هغوئ په دې کتاب [قران] ایمان راوړی(۲) [اوقران دچا منت کونکې نه دې] اوڅوک چې ترې انکار اوکړې

(۱) **دتلاوت حق څه دې** :- بیا فرمائی چه مونږ چاته کتاب ورکړې دې هغوی دتلاوت حق ادا کوی او لولی ئې. قتاده رحمه الله وائی چه ددې نه مراد یهود اونصرانیان دی. او په بل روایت کښې دی چه ددې نه اصحاب درسول الله ﷺ مراد دی. ①حضرت عمر فاروق فرمائی چه دتلاوت حق دا دې چه دجنت د ذکر په وخت کښې دجنت سوال وی او دجهنم دذکر په وخت کښې ددې نه پناه غوښتل وی. (القرطبی) ②حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمائی چه دحرام اوحلال پیژندل ، کلمات په خپل ځاې ادا کول کمې زیاتې نه کول وغیره هم دا دتلاوت حق ادا کول دی. (الطبری) ③ حسن بصری رحمه الله فرمائی چه واضح آیتونو باندې عمل کول ، متشابه آیتونو باندې ایمان راوړل ، مشکلات دعالمانو په وړاندې پیش کول دتلاوت حق سره وئیل دی. ④حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه ددې مطلب د اتباع حق ادا کول هم روایت شوې دې. نو تلاوت په معنی داتباع دې. لکه څنګه چه ﴿وَالْقَمَرِ اِذَا تَلٰىهَا﴾ کښې دی. یو مرفوع حدیث کښې ددې هم دا معنی روایت شوې ده. خو ددې بعضې راویان مجهول دی اګر چه معنی صحیح ده. حضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه فرمائی چه د قران پاک اتباع کولو والا دجنت په باغیچو کښې کوزیدو والا دې.د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د تفسیر مطابق دا هم روایت دې چه رسول کریم ﷺ چه به کله د رحمت دذکر آیت لوستلو نو ادریدلو به او دالله ﷻ نه به ئې د رحمت طلب کولو اوکله چه به ئې دعذاب آیت تلاوت کولو نو اودریدلو به اوالله ﷻ نه به ئې پناه غوښتله . (ابن ماجه)

(۲) **د بعضې اهل کتابو په قران ایمان راوړل**:-بیا فرمائی چه په دې باندې ایمان هم دا خلق ساتی. یعنی چه کوم اهل کتاب خپل کتاب لره ښه په سوچ او پوهې سره تلاوت کوی ، دغه خلق د قران عظیم الشان نه متاثره شی او په دې خامخا ایمان راوړی لکه یو ځاې کښې ارشاد دې چه ﴿وَلَوْ اَنَّهُمْ اَقَامُوا التَّوْرٰىةَ﴾ (که دوی په تورات او انجیل باندې او دالله ﷻ دطرفنه په نازل شوی څیزباندې قائم پاتې وې نو دوی ته به د پورته نه او دلاندې نه خوراك ملاویدو..الخ) او فرمائی چه ﴿قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لَسْتُمْ عَلٰى شَيْءٍ حَتّٰى تُقِيْمُوا التَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ﴾ انې اهل کتابو ترکومې پورې چه تاسو په تورات او انجیل او هغه څیز چه ستاسو طرفته نازل شوې دې په هغې قائم پاتې نشئ نو تر هغه پورې تاسو په هیڅ څیزباندې نه یئ. ددې قائم ساتل لازم دی چه په دې کښې څه دی هغه ربښتیا اومنئ او په دې کښې د رسول کریم ﷺ ذکر او د رسول کریم ﷺ صفات اود رسول کریم ﷺ دتابعدارئی حکم دې ، ددوی همرکابی تول هر څه موجود دی. او په بل مقام باندې فرمائی چه کوم خلق د اُمی نبی تابعداری کوی ، چه دکوم رسول ذکر او تصدیق په خپل کتاب تورات اوانجیل کښې هم دوی لیکلې شوی ګوری . او په بل مقام باندې فرمائی چه ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ مِنْ قَبْلِهٖٓ﴾ (تاسو که ایمان راوړئ اوکه راونړئ چه چاته ددې نه مخکښې علم ورکړې شوې دې په هغوی باندې چه کله دالله ﷻ دکتاب تلاوت کیږی ...[باقی په راروانه صفحه.

| فَأُولَٰٓئِكَ | هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ۝ |
|---|---|
| نو هغوئ \| په اصل کښې نقصان موندونکئ دی \| | |
| نو هغوئ يوازې خپل تاوان کوی \| | |

## آسان ترجمه قرآن

چه کومو خلقوته مونږ کتاب ورکړې دې هغوی ددې تلاوت داسې کوی څنګه چه د تلاوت کولو حق دې نو دغه خلق (په حقیقت کښې) په دې ایمان راوړي او کوم چه ددې نه انکار کوی نو هغوی تاوانیان دي.

## خلاصه تفسير

[ددې آیت نه په مخکښې ایت کښې دعناد کوونکو اهل کتابو ذکر ووا و ورسره د مخالفینو د ایمان نه دسراسر ناامیدئ بیان وو. ددې نه پس دعادت مطابق اوس دانصاف پسندو اهل کتابو بیان دے چا چه دحق واضح کیدو نه پس درسول الله ﷺ ریښتینولی اوکړه د دوی ﷺ تابعدار شو نو ارشاد فرمائی] ﴿اَلَّذِیْنَ اٰتَیْنٰهُمُ الْکِتٰبَ﴾ کومو خلقو ته چه مونږ کتاب [تورات اوانجیل] ورکړو [په شرط ددې] ﴿یَتْلُوْنَهٗ حَقَّ تِلَاوَتِهٖ﴾ چه دوئ يئ لولی [په دې شان] څنګه چه ددې دلوستلو حق دے [چه خپل علمی قوت ئے د مضامینو په پوهیدلو کښې خرچ کړو او خپل قوت ارادی يې د حق د تابعدارئ په قصد کولو کښې استعمال کړو ﴿اُولٰٓئِكَ یُؤْمِنُوْنَ بِهٖ﴾ داسې خلق [البته ضرور ستاسو] په دې [حق دين او علم [باندې ایمان راوړی او ﴿وَمَنْ یَّکْفُرْ بِهٖ﴾ او څوك چه نه منی [دچا زیان او تاوان به اوکړی] ﴿فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ﴾ هم پخپله به داسې خلق په زیان کښې پاتې کیږی [چه په ایمان باندې کوم انعامات ورکولې شی دهغې نه به بې خبره پاتې کیږی].

| يٰبَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ | اذْكُرُوْا | نِعْمَتِیَ | الَّتِیْٓ |
|---|---|---|---|
| اے بنی اسرائیلو \| | یاد کړئ \| | نعمت زما \| | هغه |
| ای دحضرت یعقوب [علیه السلام] اولاده څما هغه نعمت یادکړئ | | | |

| اَنْعَمْتُ | عَلَیْكُمْ | وَاَنِّیْ | فَضَّلْتُكُمْ | عَلَی الْعٰلَمِیْنَ ۝ | وَاتَّقُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| چې ماکړې وو \| | په تاسو باندې \| | اوبل دا چې ما \| | غوره کړی وئ تاسو \| | په خلقو \| | اواویریږئ |
| چې په تاسومې کړې وو \| اوتاسومې [دخپلې زمانې] په ټولوخلقوغوره کړې وئ \| او ویریږئ | | | | | |

....باقی د تیر مخ] نودوی په سجده کښې پریوزی اووائی چه زمونږ رب پاك دې اوزمونږ درب وعده بالکل ریښتونې او صحیح ده. او په بل ځائې کښې دی چه کومو خلقو ته مونږ ددې نه مخکښې کتاب ورکړې وو هغوی هم په دې باندې ایمان راوړی اوکله چه په هغوی دا لوستلې شی نوهغوی دخپل ایمان اقرار کوی او وائی چه مونږ خودا د مخکښې نه منو، دوی ته به ددوی دصبر دوچند اجر ورکولې شی. دا خلق بدئ لره په نیکئ سره لرې کوی. زمونږ په ورکړه کښې خیرات کوی . په بل مقام باندې فرمائی چه ﴿وَقُلْ لِّلَّذِیْنَ اُوْتُوا الْکِتٰبَ وَالْاُمِّیّٖنَ﴾ (دې لوستونکو او نه لوستونکی ته اووایه چه آیا تاسو اسلام قبلوئ؟ که دوی اومنی نو په لار دی اوکه نه منی نو په تاباندې صرف تبلیغ دې ، الله ﷻ خپل بندګان ښه وینی.

| یَوْمًا | لَّا تَجْزِیْ | نَفْسٌ | عَنْ نَّفْسٍ | شَیْئًا | |
|---|---|---|---|---|---|
| دهغه ورځې نه\| | چې نه به شي ورکولې\| | په بدله کښې یو نفس\| | دبل یونفس نه\| | هیڅ څیز | |
| دهغې ورځې [دنیولونه]چې هیڅوک به د هیچا په کار رانشي [که پلار وی اوکه اولاد اوکه یاران] | | | | | |
| وَّلَا يُقْبَلُ | مِنْهَا | عَدْلٌ | وَّلَا تَنْفَعُهَا | شَفَاعَةٌ | وَّلَا |
| اونه به شي قبولې\| | ددغه نفس نه\| | فدیه\| | اونه به ورکوی فائده دغه نفس ته\| | سفارش\| | اونه به |
| اونه به دچانه فدیه قبوله کړې شي \|اونه به چاته سفارش فائده اورسوی \|اونه به [دکافرانو] | | | | | |
| هُمْ | يُنْصَرُوْنَ۝ | | | | |
| دهغوئ سره \| | مدداوکړې شي\| | | | | |
| هیڅ قسمه مدداوکړې شي \| | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

**اې بنی اسرائیلو اځما هغه نعمتونه یاد کړئ کوم چه ما تاسو ته درکړي وو او دا خبره (یاده کړئ) چه ما تاسو ته په ټولو جهانونو فضیلت درکړې وو او دهغه ورځې نه ووېرېږئ چه په هغه ورځ به څوک هم دچا پکار رانشي، اونه به دچا نه څه قسم فدیه قبوله شي.نه به هغه ته څه سفارش فائده ورکوی اونه به دهغوئ څه مدد وشي.**

## خلاصه تفسیر

.ددې نه مخکښې ایتونو پورې د بنی اسرائیلو باره کښې دکومو خاصو مضامینو مقصد چه وو هغه ختم شو اوس ددې مضامینو ابتدائی تمهید دکوم داجمال چه دغه ټول تفصیل وو دوباره بیانولے شی مقصد دادې چه دتمهید دخاص مضمون دپاره عام او خاص انعامات دوباره وریاد کړې شی او د ویرولو دپاره قیامت مخے ته راوستې شی اودا په دوباره کولو سره بنه په ذهن کښې کښېنی ځکه چه یو لوئې اواصلی مقصد کلیات وی.چه دهغې پخپله مخے ته راوستل ددې د لنډوالی له وجې آسان شی اوهرکله چه دا جامع وی اوښه لګی نو ددې په ذریعه ددې د جزئیاتو محفوظ ساتل آسانیږی اوپه محاوراتو کښې دا بلیغ طرز هم داعلی مرتبے ګڼلے شی چه دتفصیلی او اوږدو خبرو کولونه مخکښې یومجمل عنوان سره داقائم کړې شی چه قدر مشترك ئې په ټولو تفصیلونو پوهیدلو کښې مدد اوکړی اوآخر ددغه تفصیل دخلاصے او نتیجے په طرزدغه مجمل عنوان بیادوباره کړې شی.لکه وئیلې شی چه تکبر ډیرضرر رسوونکې خوی دے اوددې یویوضرر تر شلوپورې بیانولونه پس بیا په آخرکښې داسې اووئیلې شی چه الغرض تکبر لوئې ضرر رسووونکې خوی دې په دې شان دا ایت یبنی اسرائیل دوباره کړې شوا ﴿يٰبَنِيٓ إِسْرَآءِيْلَ اذْكُرُوْا نِعْمَتِيَ﴾ اې اولاد دیعقوب ﷺ زما هغه نعمتونه یاد کړئ ﴿الَّتِيٓ أَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ﴾ چه دهغې مے په تاسو [وخت په وخت] انعام کړې وو اودا [هم یاد کړئ] ﴿وَأَنِّي فَضَّلْتُكُمْ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ۝﴾چه په ډیرو خلقو مے تاسو ته [په ډیرو خبرو کښې]فضیلت درکړو﴿وَاتَّقُوْا يَوْمًا لَّا تَجْزِيْ نَفْسٌ عَنْ نَّفْسٍ شَيْئًا﴾ او تاسو اووېرېږئ ددا سې ورځې نه [یعنی یوازے دقیامت ورځې نه] چه په کښې به هیڅوک دهیچا د طرفه نه څه مطالبه [او واجب حق] ادا کړیشی ﴿وَّلَا يُقْبَلُ مِنْهَا عَدْلٌ وَّلَا تَنْفَعُهَا شَفَاعَةٌ﴾ اونه به

دچا له طرفه څه بدله [دو اجب حق په ځاي] قبوله کړې شي او نه به دچا څه سفارش [چه ايمان ئې نه وي] فائده مند شي ا ﴿وَلَا هُمۡ يُنصَرُونَ﴾ اونه به دغه خلق څوك [په زور] خلاص کړې شي.

| وَاِذِ | اَبۡتَلٰٓى | اِبۡرٰهٖمَ | رَبُّهٗ | بِكَلِمٰتٍ |
|---|---|---|---|---|
| اويادكړئ كله چې | اوزآمايو | ابراهيم لره | رب د هغه | په څوخبرو |
| او[ياد كړه هغه وخت چې] دابراهيم رب په يوڅوخبرو كښې دهغه آزميښت اوكړو | | | | |

| فَاَتَمَّهُنَّ | قَالَ | اِنِّىۡ | جَاعِلُكَ | لِلنَّاسِ | اِمَامًا |
|---|---|---|---|---|---|
| نو هغه پوره كړې هغه خبرې | اووئيل الله | چې زه | جوړونكې يم تالره | دپاره دخلقو | پيشوا |
| نوهغه ټول حكمونه په ځاي كړل \| الله ورته اوفرمائيل چې زه تا د خلقو دپاره پيشوا گرځوم هغه اووئيل چې | | | | | |

| قَالَ | وَمِنۡ ذُرِّيَّتِىۡ | قَالَ | لَا يَنَالُ | عَهۡدِى الظّٰلِمِيۡنَ |
|---|---|---|---|---|
| اووئيل ابراهيم | اوداولادزما نه هم اوگرځوئ | اووئيل الله | نۀ شامليږي | وعده زما ظالمانو ته |
| زما په اولاد كښې هم [داسلسله قائمه اوساته] الله ورته اووئيل چې [ښهٔ ده خو] زما وعده د ظالمانو په حق كښې نه ده | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او (هغه وخت ياد كړئ) چه ابراهيم عليه السلام لره خپل پروردګار په يوڅو خبرو سره وآزمائيلو او هغه هغه ټولې خبرې پوره كړې ــ الله تعالى (هغه ته) ووئيل "چه څه تا د ټولو انسانانو پيشوا جوړوم" ابراهيم عليه السلام تپوس اوكړو "او د اولاد څما نه هم؟" الله تعالى ووئيل "څما (دا) وعده ظالمانو لره شامله نه ده".

## خلاصه تفسير

﴿وَاِذِ ابۡتَلٰٓى اِبۡرٰهٖمَ رَبُّهٗ بِكَلِمٰتٍ فَاَتَمَّهُنَّ﴾ او كله چه امتحان اوكړو په حضرت ابراهيم ﷺ باندې دهغه پرور دګار په څو خبرو كښې [دخپلو احكامو نه] او هغه دغه بالكل پوره كړل [دغه وخت] ﴿قَالَ اِنِّىۡ جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ﴾ الله ﷻ [هغه ته] اوفرمائيل چه زه به ستادپاره [ددې په بدله كښې پيغمبرى دركړم يا به دے امت زيات كړم] ﴿اِمَامًا قَالَ وَمِنۡ ذُرِّيَّتِىۡ﴾ د خلقو مقتدا جوړ كړم هغوى عرض اوكړو او زما د اولاد نه هم څه كسانو ته [پيغمبرى وركړې] ﴿قَالَ لَا يَنَالُ عَهۡدِى الظّٰلِمِيۡنَ﴾ ارشاداوشو چه [ستاسو خواست قبول دې او ددې طريقه واورئ چه] زما [دا] مرتبه [د نبوت] به [دقانون] خلاف ورزى كوونكو ته نه ملاوېږي [نو داسې خلقو ته خو په صفا الفاظو كښې جواب دې البته فرمانبردارو كښې به هم بعضې كسانو ته نبوت وركولې شي].

## معارف او مسائل

قوله تعالى: ﴿وَاِذِ ابۡتَلٰٓى اِبۡرٰهٖمَ رَبُّهٗ بِكَلِمٰتٍ فَاَتَمَّهُنَّ﴾ په دې آيت كښې د الله تعالى له ارخه په خپل يوخاص پيغمبر حضرت ابراهيم عليه السلام باندې دګڼرو امتحاناتو اوپه هغې كښې دكاميابئ په بدله كښې دوئ عليه السلام لره دانعاماتو وركولو بيان دې، دشفقت په بنا، هركله چې دوئ دغه انعامات دخپل اولاددپاره هم اوغوښتل نو ددې دوركولو دپاره ورته يو ضابطه، الله تعالى ارشادكړه هغه داسې

چې داانعامات به صرف ستاسو عليه السلام دهغې بعضې اولاددپاره وي چې فرمانبرداروي نه هغه اولاد ستاسو عليه السلام دپاره چې نافرمان اوظالمان وي،

**په حضرت خليل الله عليه السلام لوئ امتحانات اودامتحان مضامين** دلته څوخبرې دژورې کتنې جوګه دي:

① دچاقابليت معلومولودپاره امتحان اغستې شي هرکله چې الله تعالى عليم او خبير باندې د هيچا حالات اوکمالات پټ نه دي نوددې امتحان مقصدڅه وؤ؟

② ددې امتحاناتوعنوانات کوم کوم وؤ؟

③ دکاميابۍ نوعيت اوصورت څه وؤ؟

④ انعام څه ورکړې شوا وحيثيت ئې څه وؤ؟

⑤ ددې انعام دپاره دمقررشوې ضابطې څه وضاحت اوتفصيل؟

ددې پنځوسوالاتوجوابات په تفصيل سره ملاحظه کړئ؟

① دامتحان مقصد څه وو؟ لفظ دقوله تعالى: ﴿وَإِذِ ابْتَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ رَبُّهُ﴾ سرګند کړې دي هغه داسې چې ممتحن پخپله الله تعالى دي اوودده داسماء حسنى څنې دلته د. رب. راوړلو مطلب دادې چې د حضرت ابراهيم عليه السلام امتحان څه دجرم سزاورکولودپاره نه وواونه ديوتامعلوم قابليت د معلومولو په غرض وو بلکه دپالنې اوربوبيت دشان منشاءداده چې دآزميښتونوپه ذريعه دخپل تربيت کولوسره ئې درجاتواومقاماتوته رسول مقصوددی لکه څنګه چې دشان ربوبيت تقاضه داده چې يوڅيزرورو[کرار کرار]،دکمال درجې ته اورسولې شي بيا په دې جمله، [إِبْرَاهِيمَ رَبُّهُ] دمفعول وړاندې کول اودفاعل ورستوکول دحضرت ابراهيم عليه السلام دشان لوئ اوبزرګى نوره هم ښکاره کوي،

② دا امتحان په څه عنوان سره واخستې شو؟ دامتحان اغستوعنوان په قرآن کريم کښې صرف [كَلِمٰتٍ] راغلي دي چې په تفسيراوتشريح کښې ئې دصحابه کرامو رضي الله عنهم اوتابعينو رحمهم الله مختلف اقوال دي،چاتردأحکاموالهيؤځنې لس څيزونه شميرلى دى چادېرش،اوچاترڅه نورکم وزيات نورڅيزونه مراداغستى دى،خوحقيقت دادې چې په دې کښې هيڅ اختلاف ځکه نشته چې دغه ټول دحضرت ابراهيم عليه السلام دامتحان مضامين ووځنګه چې دتفسيردامامانوابن جرير رحمه الله اوابن کثير رحمه الله رائ ده.

**دالله تعالى په نزددزيات قدرورعلمى باريکۍ نه دې بلکه داخلاقواوکردارعملى ښکارده ؟** ددې امتحان ابراهيمى مضمون دمدرسواوتعليمي ادارودامتحان پشان فنى مسائل اودهغې تحقيقات نه بلکه داخلاقى قدرونواوعملى ښکارآزمائيل وو،چنانچه دې نه معلومه شوه چې دالله تعالى په نزدد زيات قدرورعملى باريکۍ نه بلکه عملى اواخلاقى پورتوالي دې،

اوس ددې امتحانى مضامينوځنې څوزيات ضرورى څيزونه واورئ:

هرکله چې الله تعالى ته دامنظوره وه چې حضرت ابراهيم عليه السلام ته دخپلې دوستۍ خاص انعام ورکړې نودسختوآزميښتونونه تيرکړې شو،ټول قوم خوئې پريږده چې ټول خاندان ئې هم بت پرست وو،ددې ټولودعقيدواورسومونو نه يومختلف دين حنيف دوئ عليه السلام ته ورکړې شوچه ددې تبليغ اوخپل قوم ته ددې دبلنې ورکولوپيټې په دوئ عليه السلام واچولې شو،دوئ عليه السلام بغيرد څه ويرې ترهې،پيغمبرانه جرات اوهمت سره خپل قوم د وحده، لاشريک له، اړخ ته راوغوښتو، د

بت پرستئ دشرمناک رسم خرابئ ئې په مختلفوعنواناتوسره بيان کړې،په عملی شان ئې دبتانو خلاف جهاداوکړو ،پوره قوم ورته جنګ جګړې ته په دې خبره ببرشو،ددغه وخت باشاه نمروداوقوم ئې په اورکښې دغورځولواوژوندی سوځولوفيصله اوکړه،خليل الله،دخپل مولادرضامندئ په خاطرپه دې ټولوتکليفونوراضی شواو خپل ځان ئې په اورکښې دسوځولودپاره پيش کړو ،الله چې خپل خليل په امتحان کښې کامياب بياموندونواو ورته ئې حکم اوکړو:

قوله تعالى:﴿قُلْنَا يٰنَارُ كُوْنِيْ بَرْدًا وَّسَلٰمًا عَلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ﴾ مونږحکم اوکړوچه اې اووره،ته په حضرت ابراهيم عليه السلام يخ اودسلامتئ ذريعه جوړشه:

داحکم هرکله چې عام وونوپه دنياکښې موجودټول اورونه يخ شواودغه خاص نمرودی اورهم يخ شوخودلته دبردا سره دسلامزياتولوحکمت دااووچه دومره يخ نه شي چې لکه دجهنم دطبقه زمهرير پشان مهلک عذاب جوړشی،

**حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام او اسماعيل عليه السلام دپاره دمکې انتخاب:** ددې آزميښت نه پس بل آزميښت پرډااوکړې شوچه دخپل ملک نه شام ملک ته هجرت اوکړی په ډيره مينه اوشوق ئې داقبول کړواوعملائې هم هجرت سرته اورسولو،

آنکس که تراشناخت جان راچه کند　　فرزندوعيال وخانمان راچه کند

[هغه کس چې ستا شناخت ئې اوکړو هغه په ځان څه کوی پخپل ا ولاد، عيال او کور والا څه کوی؟]

شام کښې اوسيدو سره ورته بل حکم اوشوچه داوطن هم پريږدئ اوسره دبی بی هاجرې اودپيو ماشوم حضرت اسماعيل عليه السلام کوچ اوکړئ [ابن کثير]

جبريل عليه السلام امين راغې دواړوسره روان شو،چرته چې به شنه زرغونه اوخيرازه زمکه راؤرسيده حضرت ابراهيم عليه السلام به حضرت جبريل عليه السلام ته وئيل چې زمونږدتيکاويدوځائ دادې.حضرت جبريل عليه السلام به ورته وئيل چې نه،ددې ځائ حکم نه دې شوې،اصلی ځائ لاوړاندې دې،کله چې اوچ کلک غرونه اوګرمه شګلنه زمکه راؤرسيده چرته چې دبيت الله شريف اودمکې مکرمې آبادول مقدررو،هلته تيکاؤکړې شو،دالله په مينه مست خليل الله دغلته سره دبی بی هاجرې اودتی دماشوم اسماعيل عليه السلام سره تيکاؤشو.ليکن دامتحان پدې ځائې کښې ختم نشو بلکه ورسره بل آزميښت پرډااوکړې شوچه دغه بی بی اوماشوم دلته پريږده اوپخپله دشام ملک ته واپس لاړشه،دالله تعالی دحکم عملی کولو په خاطرحضرت ابراهيم عليه السلام خليل الله دې ته هم غاړه اږدی اوشام ته روانيږی،اودومره تاخير هم پکښې نه کوی چې خپلې بی بی ته حال اووائی چې ماته چونکه د الله ﷻ حکم ملاؤ شو لهذا زه ځم، هغه ئې چې پخپله اوګوری چې ابراهيم عليه السلام ځې روان دې نوورته چغه کړی بياهم خليل الله جواب نه ورکوی بياچغه کړی چې دې تش تور ميدان کښې مونږولې پريږدې اوچرته ځې،ددې جواب ئې هم ورنکړو،دغه نيک بخته بی بی په اندازه پوه شوه اوپخپله ئې اووئيل آيادالله تعالی حکم شوې دې،هله ئې ورته اوفرمائيل چې هو.حضرت هاجرې بی بی په دې خبره آوريدوډيرپه تسلئ شوه او وې وئيل چې ښه ده لاړشئ کوم الله اومالک چې تاسوته دتلوحکم فرمائيلې دې هغه به مونږهم نه خرابوی اونه به موضائع کوی،

حضرت هاجره سره دماشومه په دغه خوشي ميدان کښې وخت تيروی، زياته تنده ئې اوبولټولوته مجبوره کوی، دصفااومروه په غونډونوبيابياخيژی، راکوزيږی چې چرته داوبوڅه نخښې نښانې بيا مومی ياڅوک انسان اووينی چې معلومات ترحاصل کړی، داووکرتو د منډو ترړو وهلونه پس واپس نا اميده دماشوم خواته راځی، رحمتِ الٰهی نازليږی، جبرئيل امين ﷺ راځی اوهم په دغه ځائ کښې داوبوچينه راؤباسی چې نن صَباورته زمزم وئيلې شی، داوبوپه ليدواول ځناورراځی اوددې په ليدوور پسې بنيادم دغلته راځی، دمکې مکرمې دآبادئ انتظام جوړيږی اودژوندتيرولوآسانې پيداکيږی،

دحضرت هاجرې دمنډې ديادګارپه ډول، ترقيامته پورې د صفااومروه ترمنځه اووه کرته منډه وهل په حج کښې يوضروری عمل ګرځولې شويدې،

حضرت اسماعيل ﷺ چې لوئ شوخپل کارئې پخپله کولې شو، حضرت ابراهيم ﷺ دالله په حکم ددوئ دواړوخواته کله کله تشريف راوړواوبيابه واپس تلو، په دې دوران کښې يوبل دريم آزميښت داسې ووچه دغه بې آسرې اودوالدصاحب دسرپرستئ بې نصيبه هلک حضرت اسماعيل ﷺ په خپل لاس مبارک ذبح کړه لکه قرآن کريم فرمائی،

**دحضرت اسماعيل ﷺ د ذبح کولو حکم: قوله تعالىٰ:** ﴿فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ السَّعْىَ قَالَ يٰبُنَىَّ اِنِّىٓ اَرٰى فِى الْمَنَامِ اَنِّىٓ اَذْبَحُكَ فَانْظُرْ مَاذَا تَرٰى ؕ قَالَ يٰٓاَبَتِ افْعَلْ مَا تُؤْمَرُ ۫ سَتَجِدُنِىٓ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ مِنَ الصّٰبِرِيْنَ۝﴾ کله چې دغه ماشوم خپل باباجی سره دکارروزګارجوګه شونوورته ئې اوفرمائيل: اې بچوړيه، زه وينم په خوب کښې چې تاذبحه کوم نواوايه، څه دخيال دې، نيک بخت خوئ ورته عرض اوکړوچه اې باباجی، هغه اوکړه چې دڅه حکم درته شوې دې ته به انشاءالله ددې په پوره کولو کښې ماله صبرکوونکې بيامومې،

دې نه پس واقعه هرمسلمان ته معلومه ده هغه داسې چې حضرت خليل الله ﷺ خپل فرزنددمنئ ميدان ته بوتلواودالله تعالى له اړخه دشوی حکم دپوره کولوئې کوشش اوکړوخوالله تعالى دحضرت اسماعيل ﷺ ذبح کول نه بلکه دخپل دوست امتحان کول منظور وو، که دخوب ليدلوپه الفاظوغوراوکړې شی چې حضرت خليل الله ﷺ دذبح کولوعمل ئې ليدلې وونه چې دائې اوليدل چې هغه ئې ذبح کړو، چنانچه هم په دغه شکل کښې ئې خپل خوب پوره کړولکه څنګه چې دوحی په ذريعه همدغسې منظوروو څکه ورته حکم اوشو ﴿قَدْ صَدَّقْتَ الرُّءْيَا ۚ﴾ [دخپل خوب ليدل دپوره کړل چې دغه حکم ئې پوره کړونوالله تعالى ددې فديه بدل دجنت نه راؤليږله اودهغې دقربانی کولوحکم ئې ورته اوکړوبيادا سنت ابراهيمی ﷺ د راتلونکی نسلونودپاره هميشه سنت طريقه جوړه شوه،

داهغه ګران اوسخت امتحانات ووچه حضرت خليل الله ﷺ ترپورې ويستې شو، داسې د نورو اعمالواواحکاموپابندئ پړاولګولې شوې چې دهغې څنې لس دفطرت په خصلتونوسره ياديږی او تعلق ئې دبدن صفاستره ساتلوسره دې اوورپسې دراتلوونکوتولوامتونودپاره مستقل احکام جوړ شول چنانچه حضرت خاتم النبيين ﷺ هم ددې دپاره خپل امت ته تاکيدی احکام ورکړی دی،

اوابن کثير ﷫ دحضرت عبدالله بن عباس ﷠ په روايت داهم نقل کړی دی چې دټول اسلام ديرش برخې دی دهغې نه لس په سورت براءت کښې ذکردی، لس په سورت احزاب کښې اولس په سورتِ مؤمن کښې ذکردی، حضرت ابراهيم ﷺ ددې ټولوځيزونوپوره حق اداکړواوداټول

امتحانونه ئې په اول نمبر کښې پاس کړل،

**د مؤمنانو لس مخصوص صفات او علامات:** په سورتِ براءت کښې دمؤمنانولس مخصوص علامات اوصفات په داشان بیان شوی دی،

﴿اَلتَّآئِبُوْنَ الْعٰبِدُوْنَ الْحٰمِدُوْنَ السَّآئِحُوْنَ الرّٰكِعُوْنَ السّٰجِدُوْنَ الْاٰمِرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَالنَّاهُوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَالْحٰفِظُوْنَ لِحُدُوْدِ اللّٰهِ ۗ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ توبه کوونکی، عبادت کوونکی، ثناکوونکی، روژې لرونکی، رکوع، سجده کوونکی، دنیکۍ تعلیم ورکوونکی اوبدوخبرونه ایسارونکی، اودالله تعالی د حدونوخیال لرونکی، اوداسې مؤمنانوته زیرې واوروه،

اوپه سورت مؤمنون کښې لس صفات داسې بیان شوی دی،

﴿قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ ۙ الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ صَلَاتِهِمْ خٰشِعُوْنَ ۙ وَالَّذِيْنَ هُمْ عَنِ اللَّغْوِ مُعْرِضُوْنَ ۙ وَالَّذِيْنَ هُمْ لِلزَّكٰوةِ فٰعِلُوْنَ ۙ وَالَّذِيْنَ هُمْ لِفُرُوْجِهِمْ حٰفِظُوْنَ ۙ اِلَّا عَلٰٓى اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَاِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُوْمِيْنَ ۚ فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَآءَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْعٰدُوْنَ ۚ وَالَّذِيْنَ هُمْ لِاَمٰنٰتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رٰعُوْنَ ۙ وَالَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَوٰتِهِمْ يُحَافِظُوْنَ ۘ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْوٰرِثُوْنَ ۙ الَّذِيْنَ يَرِثُوْنَ الْفِرْدَوْسَ ۗ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ﴾ یقیناهغه مسلمانانوخلاصې بیاموندوچه خپلومونځونوکښې عاجزی کوونکی دی، اوهغه کسان چې بې فائدې خبرونه په ډډه اوسیږی اوهغه چې خپل ځانونه پاکوونکی دی اودخپلو شرمګاهونوحفاظت کوی خودخپلوبیبیانو یادخپلووینځونه چې په دوئ هیڅ ملامتی نشته، نوچاچه طلب اوکړودې نه علاوه [دبل څیز] هغوی دحدنه تیریدونکی دی اوکوم چې د خپلو امانتونو او وعدوخیال لرونکی دی،

اوکوم خلق چې دخپلومونځونوپابندی کوونکی دی، داسې خلق میراث موندونکی دی چې دجنتِ فردوس وارثان به وی دوئ به په دی کښې همیشه او سیدونکی وی،

په سورت احزاب کښې لس ذکرشوی صفات دادی،

﴿اِنَّ الْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُسْلِمٰتِ وَالْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ وَالْقٰنِتِيْنَ وَالْقٰنِتٰتِ وَالصّٰدِقِيْنَ وَالصّٰدِقٰتِ وَالصّٰبِرِيْنَ وَالصّٰبِرٰتِ وَالْخٰشِعِيْنَ وَالْخٰشِعٰتِ وَالْمُتَصَدِّقِيْنَ وَالْمُتَصَدِّقٰتِ وَالصَّآئِمِيْنَ وَالصّٰٓئِمٰتِ وَالْحٰفِظِيْنَ فُرُوْجَهُمْ وَالْحٰفِظٰتِ وَالذّٰكِرِيْنَ اللّٰهَ كَثِيْرًا وَّالذّٰكِرٰتِ ۙ اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ مَّغْفِرَةً وَّاَجْرًا عَظِيْمًا﴾ بیشکه داسلام کارکوونکی نارینه اوزنانه اوایمان راوړونکی نارینه اوزنانه اوفرمانبرداری کوونکی نارینه اوزنانه، اورښتینی نارینه اوزنانه اوصبرکوونکی نارینه اوزنانه، اوعاجزی کوونکی نارینه اوزنانه، اوخیرات کوونکی نارینه اوزنانه، اوروژه لرونکی نارینه اوزنانه، اودخپلودحیاد اندامونوحفاظت کوونکی نارینه اوزنانه اوالله لره ډیریادوونکی نارینه اوزنانه، دې ټولو دپاره، الله تعالی بخښنه اولوئ اجرتیارایښې دې،

د مفسرقرآن حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما ددې ارشادنه معلومه شوه چې دمسلمان دپاره هغه ټول ضروری صفات علمی، عملی اواخلاقی مطلوب دی، ددې درې واړوسورتونوپه یوځو آیتونوکښې راجمع کړې شویدی اوهم دغه صفات، هغه کلمات دی چې دحضرت خلیل الله علیه السلام آزمیښت پرشوې وواوپه آیت ﴿وَاِذِ ابْتَلٰٓى اِبْرٰهٖمَ رَبُّهٗ بِكَلِمٰتٍ﴾ کښې هم دغه صفاتوته اشاره ده،

اوس ددریم سوال بیان په داشان شروع کیږی چې په دې امتحان کښې دحضرت ابراهیم علیه السلام د کامیابۍ درجه اومقام څه وو، ځکه چې قرآن کریم پخپله په خپل خاص اندازکښې ورته دکامیابۍ سند داشان ورکړو:

﴿وَاِبْرٰهِيْمَ الَّذِيْ وَفّٰٓى﴾ هغه ابراهیم علیه السلام چې پوره ئې کړل، خلاصه دخبرې داچه دهرامتحان دپوره کامیابۍ اعلان ئې اوفرمائیلو: داسوال چې ورته په دې څه انعام ورکړې شو؟ نوذکرئې په

قرآن كريم كښې داسې دي،

**امتحان كښې د كامیابۍ بدله او انعام قوله تعالى:** ﴿قَالَ إِنِّي جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ إِمَامًا﴾ [په امتحان كښې دپاس كيدونه پس ورته] الله تعالى اوفرمائيل زه دِ دخلقو پيشوا جوړونكې يم

دې نه دوه خبرې معلومې شوې ① په امتحان كښې دپاس كيدوپه انعام كښې حضرت خليل الله عليه السلام ته دخلقوپيشوائى اومقتداجوړيدل وركړې شو ② دامام اوپيشواجوړيدلودپاره ضرورى امتحان هغسې نه دې چې ددنياپه مدرسواويونيورسټوكښې ديوځومسئلودفني تحقيق اوعلمى باريكوراؤښكلوپه صورت كښې دهغې پاس كول په اعلى درجه كښې ګڼلې شي بلكه ددې دپاس كولوشرط دادې چې په هغه ديرشواخلاقي اوعملي صفاتوكښې كامل اومكمل شى چې اوس اوس دآيتونوپه حواله پورته ذكركړې شو، چنانچه بل خائ په قرآن كريم كښې هم دغه مضمون په داشان بيان شوې دې،

**قوله تعالى:** ﴿وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ أَئِمَّةً يَهْدُونَ بِأَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوا ۖ وَكَانُوا بِآيَاتِنَا يُوقِنُونَ﴾ مونږهغوئ لره پيشوايان اوامامان جوړ كړل چې زمونږپه حكم سره خلقوته هدايت كوى هركله چې هغوئ خپل نفس دخلاف شريعت خبرونه ايسارکړواوزمونږپه آيتونوئې يقين اوكړو،

دلته په دې آيت كښې دامامت اوپيشوائې دپاره ددغې ديرشوصفاتوخلاصه په دؤو لفظونو كښې ذكركړې شوې اوخائ كړې شوې ده يعنى صبراويقين، مطلب داچه يقين علمى واعتقادى كمال دې او صبراخلاقى اوعملى كمال دې،

پنځم سوال داؤچه راتلونكى نسلونودپاره دامامت اوپيشوائې دمنصب وركولودپاره ددې ضابطې څه مطلب دې چې ظالمانواوفاسقانوته به دا [منصب] نه ملاؤيږي،

ددې وضاحت داسې كولې شى چې امامت اوپيشوائى، په يوحيثيت سره دالله جل شانه، خلافت دې داسې كس ته ئې وركول نشى كيدې چې دالله تعالى باغى اونافرمانه وى، په دې وجه ضرورى شوچه مسلمانان دِ په خپله خوښه يااختيار، خپل، اميريانمائنده داسې كس نه مقرروى چې دالله تعالى باغى يانافرمان وى.

| وَإِذْ | جَعَلْنَا | الْبَيْتَ | مَثَابَةً | لِّلنَّاسِ | وَأَمْنًا |
|---|---|---|---|---|---|
| اوياد كړئ كله چې | مقرر كړو مونږ | دا كور | خائ دثواب [مركز] | دپاره دخلقو | اوخائى دامن |
| او [ياد كړه] هغه وخت چې مونږ بيت الله [خانه كعبه] دخلقو دپاره دثواب اودامن خائې مقرر كړو | | | | | |

| وَاتَّخِذُوا | مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ | مُصَلًّى | وَعَهِدْنَا |
|---|---|---|---|
| اوحكم مواوكړو چې جوړ كړئ | دخائ داودريدودابراهيم نه | خائى دمونځ | اوتاكيدى حكم كړى وۀ مونږ |
| اوخلقوته موحكم اوكړو چې تاسو په مقام ابراهيم كښې مونځونه كونى اوپيغام مو وركړو | | | |

| إِلَىٰ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ | أَن طَهِّرَا | بَيْتِيَ | لِلطَّائِفِينَ |
|---|---|---|---|
| ابراهيم او اسماعيل ته | چې پاك ساتئ تاسودواړه | كورزما | دپاره دطواف كونكو |
| ابراهيم [اودهغه نومړنى خوئې] اسماعيل ته چې زماكور [كعبه د هرڅه نه] پاكه كړنى د طواف كونكو | | | |

| | | |
|---|---|---|
| وَالْعٰكِفِيْنَ | وَالرُّكَّعِ | السُّجُوْدِ۝ |
| اودپاره داعتکاف کونکو | اودپاره د رکوع کونکو | دپاره دسجده کونکو |
| داعتکاف کونکو، رکوع کونکو اوسجده کونکو دپاره | | |

## آسان ترجمه قرآن

اوهغه وخت یادکړئ چه مونږ بیت الله لره خلقو دپاره داسې یوځائې جوړ کړو چه هغې طرف ته خلق بیا بیا راځي چه سراسر امن وی او تاسو مقام ابراهیم لره د مونځ قائمولوځائې جوړ کړئ او مونږ ابراهیم او اسماعیل علیه السلام ته ددې خبرې تاکید اوکړو چه "تاسو دواړه ځما کور د خلقودپاره پاک کړئ چه (دلته) طواف کوی او اعتکاف کښې کینی او رکوع او سجده کوی".

## خلاصه تفسیر

**د لغاتو حل:** ﴿مَثَابَةً﴾ دا لفظ د ثاب یثوب ثوبا و مثابا ځخه ماخوذ دې. او ددې معنی واپس کیدل دی. په دې وجه د مثابه معنی مرجع شوه. کوم ځائې ته چې سړې بیا بیا ځی.

﴿وَاِذْ جَعَلْنَا الْبَيْتَ﴾[او هغه وخت هم د یادولو قابل دې چې] کله مونږ خانه کعبه ﴿مَثَابَةً لِّلنَّاسِ وَاَمْنًا﴾ دخلقو د عبادت ځائې [او ځائې د] امن جوړکړو او ﴿وَاتَّخِذُوْا مِنْ مَّقَامِ اِبْرٰهٖمَ مُصَلًّى﴾ [په آخر کښې مو دمحمد ﷺ امت ته حکم ورکړو چه د برکت حاصلولو دپاره]مقام ابراهیم لره [کله کله]دمونځ کولو ځائې جوړکړئ او مونږ [دخانه کعبې جوړولو په موقع] ﴿وَعَهِدْنَآ اِلٰٓى اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ اَنْ طَهِّرَا بَيْتِىَ﴾ حضرت ابراهیم ﷺ او حضرت اسماعیل ﷺ ته حکم اولیږلو چه زما [دا] کور بنه پاك [او صفا]ساتئ ﴿لِلطَّآئِفِيْنَ وَالْعٰكِفِيْنَ وَالرُّكَّعِ السُّجُوْدِ۝﴾ د بهرنی او ځائې خلقو [دعبادت] دپاره او رکوع او سجده کوونکو دپاره.

## معارف اومسائل

**دحضرت خلیل الله هجرت دمکې ځخه اودبیت الله دجوړولوتفصیلی واقعه قوله تعالٰی:** ﴿وَاِذْ جَعَلْنَا الْبَيْتَ مَثَابَةً لِّلنَّاسِ وَاَمْنًا﴾ په دې آیت شریف کښې دبیت الله شریف خانه کعبې،تاریخ ته اشاره ده،دحضرت خلیل الله ﷺ اواسماعیل ﷺ دلاسه ددې نوی سره آبادولو،دبیت الله شریف اومکې مکرمې دخو خصوصیاتو اودبیت الله شریف داحترام باره کښې احکام ذکرشویدی،هم دامضمون دقرآن کریم په ډیروسورتونوکښې راغلې دې چې دلته په لنډو بیانولې شی چې ددغې آیتونوپوره مضمون به تر واضح کیږی چنانچه دامضمون دسورت حج په شپږویشتم آیت کښې داشان بیان شویدی: ﴿وَاِذْ بَوَّاْنَا لِاِبْرٰهِيْمَ مَكَانَ الْبَيْتِ اَنْ لَّا تُشْرِكْ بِىْ شَيْئًا وَّطَهِّرْ بَيْتِىَ لِلطَّآئِفِيْنَ وَالْقَآئِمِيْنَ وَالرُّكَّعِ السُّجُوْدِ۝ وَاَذِّنْ فِى النَّاسِ بِالْحَجِّ يَاْتُوْكَ رِجَالًا وَّعَلٰى كُلِّ ضَامِرٍ يَّاْتِيْنَ مِنْ كُلِّ فَجٍّ عَمِيْقٍ۝﴾ هغه وخت دیادولووړدې کله چې مونږحضرت ابراهیم ﷺ ته دخانه کعبې ځائ اوښودلو چې ماسره هیڅ څیزمه شریکوه اوپاك لره زماکورطواف کوونکو،قیام کوونکواورکوع سجده کوونکودپاره،

اوپه خلقوکښې اعلان اوکړه چې خلق درته راځی پیاده اوپه مانده کوډ واوښوچه دلرولارونه به درته راځی،

په تفسیرابن کثیرکښې دحضرت مجاهد رحمه الله وغیره دتفسیراماماتو نه نقل کړی دی چې حضرت ابراهیم ﷺ دشام په ملك کښې دیره وو،حضرت اسماعیل ﷺ ئې تی رودونکې

ماشوم څوئ وو کله چې ورته دالله تعالى داحکم اوشو چه دخانه کعبې ځائ درته مونږ ښايو، دغه ځائ صفاستره اوپاک کړه اوپه طواف [مونځ سره ئې آبادلره، ددې حکم دتعميل دپاره، جبرائيل امين سره براق حاضرشواو حضرت ابراهيم عليه السلام حضرت هاجره اوماشوم [حضرت اسماعيل عليه السلام ئې ځان سره په سفرروان کړل، په لاره کښې به چې کومه آبادي ورته ښکاره شوه نوحضرت ابراهيم عليه السلام به جبرائيل امين نه تپوس کولوچه آيامونږته دلته ددېره کيدوحکم دې.نوحضرت جبرائيل امين عليه السلام به فرمائيل:نه:ستاسوځائ نورهم وړاندې دې تردې چې دمکې مکرمې ځائ مخې ته راغلوچه پکښې دازغو ،جاړوبوټواودکيکرد اونو[درختو] نه سوا بل څه نه ؤوددغې زمکې خواؤشا داسې څه خلق اوسيدل چې. عمالين.به ورته وئيلې شو، دغه وخت بيت الله شريف ديوې غونډې شکل کښې وو ،دغلته چې حضرت ابراهيم عليه السلام د جبرائيل امين عليه السلام نه تپوس اوکړوچه آيادازمونږددېره کيدوځائ دې،نووې فرمائيل چې، هو،

حضرت ابراهيم عليه السلام سره دخپلې بي بي کډه واړوله،دغلته ئې يومعمولي څپر جوړ کړو او حضرت اسماعيل عليه السلام اوحضرت هاجره ئې هلته ديره کړل،ورسره ئې څه کهجورې خو زما وې اوپه مشکيزه کښې څه اوبه کيښودې،خوحضرت ابراهيم عليه السلام ته هلته دپاتې کيدوحکم نه ووکله چې دغه بي بي اوماشوم ئې دالله په حواله پريښودل نوحضرت هاجرې ورته عرض اوکړوچه مونږدې تش تور ميدان کښې پريږدې اوته رانه چرته ځې دلته خوزمونږدناستې پاستې، مدد کولوڅوک نشته اونه دژوند ضروريات دلته په لاس راځي،

حضرت خليل الله عليه السلام ورته هيڅ جواب ورنکړواوروان شو ،حضرت هاجره ورسره هم راپورته شوه اوبيائې همدغه تپوس بيا بيا کولو ،حضرت خليل الله عليه السلام هيڅ جواب نه ورکولوتردې چې پخپله ئې دا تپوس په زړه کښې راغلوچه آيادالله په حکم مودلته دالله په آسره پريږدې اوتاسورانه ځې،دغه وخت حضرت ابراهيم عليه السلام جواب ورکړو ،چه آو ،همدغسې ده،

په دې آؤريدوحضرت هاجرې اوفرمائيل چه تاسوپه شوق ځې،چاچه درته داحکم درکړې دې هغه ذات به مونږهم نه ضائع کوي،حضرت ابراهيم عليه السلام دالله تعالى دحکم پوره کولوپه غرض ددغه ځائ نه پاسيدوخودتې رودونکې ماشوم اودموربې بې فکرئې په زړه کښې په غورزنګونووکله چې دلارې يوګټ [ګړې لارې] ته اورسيدوچه حضرت هاجرې نشوليدې نوهلته اودريدواوالله تعالى نه ئې دادعا اوغښته چې دسورت ابراهيم ۳۶او۳۷آيت کښې داسې ذکرده([1])،

قوله تعالى: ﴿رَبِّ اجْعَلْ هٰذَا الْبَلَدَ اٰمِنًا وَّاجْنُبْنِيْ وَبَنِيَّ اَنْ نَّعْبُدَ الْاَصْنَامَ﴾ اې زماپروردګاره:دې ښارلره دامن ښار جوړکړې اوماأوزماخاص فرزندان دبتانود عبادت نه ساتلې لرې،

بيائې داسې دعادالله تعالى په حضورکښې پيش کړه،

قوله تعالى: ﴿رَبَّنَاۤ اِنِّيْۤ اَسْكَنْتُ مِنْ ذُرِّيَّتِيْ بِوَادٍ غَيْرِ ذِيْ زَرْعٍ عِنْدَ بَيْتِكَ الْمُحَرَّمِ ۙ رَبَّنَا لِيُقِيْمُوا الصَّلٰوةَ فَاجْعَلْ اَفْـِٕدَةً مِّنَ النَّاسِ تَهْوِيْۤ اِلَيْهِمْ وَارْزُقْهُمْ مِّنَ الثَّمَرٰتِ لَعَلَّهُمْ يَشْكُرُوْنَ﴾ اې زمونږپروردګاره:ما ،خپل اولاد ، ستا عزتمند کور

---

[1] ) مخکې د سورة بقره آيت نمبر ۲۲۸، او سوره ابراهم آيت نمبر ۳۵، ۳۷ لاندې حضرت مصنف خپله دا صحيح کرخولې دې، چه په دې موقع باندې حضرت ابراهيم عليه السلام هغه دعا کړې وه کومه چه په سوره بقره آيت نمبر ۱۲۶ کښې ذکر ده او سوره ابراهيم والا دعا ورستو کړې وه نو دوې وجهې نه په ظاهر کښې دلته سوره ابراهم والا آيات اندارج مرجوح قول باندې مبنى دې-والله اعلم

سره نږدې په داسې يو ميدان کښې ديره کړو چه زرغنه نه کوي، اې زموږ پروردګاره، چه د موږ خ پوره بندوبست اوکړي نو د څنو خلقو زړونه دوئ ته راماات کړې او خوراک د پاره ورته څه ميوې ورکړې چې دا خلق شکر کوي،

د شام نه د هجرت کولو په موقعه، حضرت ابراهيم عليه السلام ته دا حکم د الله له اړخه شوې ووچه زما کور پاک لره، حضرت خليل الله عليه السلام د دې پاکولو لو مطلب د ظاهری او باطني دواړو قسمو ګندګو او پليتونه پاک لرل مطلب اغستې وو، په دې وجه هر کله چې په دغه کړليچ اودريدو نو اول ئې د دې د آبادې د پاره د امن او حفاظت د خائ جوړيدو دعا اوکړه بيانې دا دعا اوکړه چې ما او زما اولاد د شرک او بت پرستئ نه په حفاظت کښې لرې، ولې چې حضرت خليل الله ته د الله تعالى د پيژندګلئ هغه مقام حاصل ووچرته چې انسان خپل وجود هم نيشت ګنړي، خپل ټول افعال عملونه او ارادې د الله تعالى په قبضه قدرت کښې ګنړي او دا يقين لري چې هر څه د الله تعالى په اراده او مرضئ سره کيږي ځکه ئې بيت الله لره د کفر او شرک نه پاک ساتلو په حکم الهى کښې هغه نه امداد او غوښتو، د لته د کفر او شرک نه د بيچ ساتلو په دعا غوښتو کښې يو خاص راز دا هم کيدې شي چې هر کله د بيت الله شريف د تعظيم او تکريم حکم اوشو نو دا احتمال هم ووچه په راتلونکي وختونو کښې هسې نه چې څوک ناخبره . بيت الله شريف معبود جوړ کړي او په دا شان په شرک کښې ګرفتار شي ځکه ئې دا دعا اوکړه چې ما او زما اولاد د شرک نه محفوظ اولرې، دې نه پس ئې په خپل تې رودونکې ماشوم ځوئ او بي بي باندې شفقت راغلو او دا دعائې د هغوئ د پاره اوکړه چې دوئ خوم ستا د حکم مطابق، ستا د عزت والا کور سره ديره کړل چې د زرغونې جوګه نه ده چې څوک پکښې خوارې کولو سره د خپل ژوند ضروريات ترحاصل کړې شي نو هم ته خالص په خپل فضل سره دوئ ته د ميوؤ رزق ورکړې،

دې دعا کولو نه پس حضرت خليل الله عليه السلام خپل وطن شام ته روان شو، او هلته حضرت هاجرې څه وخت په هغه قجور روا او بو تيرشو ، چه حضرت خليل الله عليه السلام ورته پريښې وې، د هغې په ختميدو او د تندې نه د دغې دواړو بې آرامه کيدل، دا وبو په لټون کښې د صفا مروه ترمنځه د حضرت هاجرې منډې وهل .کله د صفا او کله د مروه په غونډئ د هغې ختل راکوزيدل چې د حضرت اسماعيل عليه السلام سارنه هم اوکړي .دا ټولې خبرې په عامو مسلمانانو کښې مشهورې دی او د صفا مروه ترمنځه منډې وهل ترننه پورې د دغې يادګار دی،

د دې قصې په آخر کښې د حضرت جبرائيل امين عليه السلام هلته د الله په حکم رسيدل، د زمزم چينه جارې کول، د جرهم قبيلې څنې خلق ټيکاويدل او آباديدل، د دغې قبيلې يو بي بي سره د حضرت اسماعيل عليه السلام واده کول کله چې ځوان شو دا ټولې خبرې د صحيح بخاری په روايت کښې په تفصيل سره ذکر شوی دی، د حديث شريف د روايت د مجموعې نه معلوميږي چې د بيت الله شريف د آبادولو او د هغې د پاک او صفا ساتلو کوم حکم چې حضرت خليل الله عليه السلام ته ورکړې شوې وو نو په دغه وخت هم د غه هو مره عمل مقصود ووچه دا ځائ د د حضرت اسماعيل عليه السلام او حضرت هاجرې په ذريعه آباد کړې شي او د دې مخاطب يواځې حضرت ابراهيم عليه السلام وو، ځکه چې حضرت اسماعيل عليه السلام د غه وخت يو پئ رودونکي ماشوم وو او د غه وخت لا د بيت الله شريف د نوی سره د آبادولو حکم نه ووشوې. د سورة بقره په آيت، ﴿ وَعَهِدْنَآ اِلٰٓى اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ اَنْ طَهِّرَا بَيْتِىَ ﴾ کښې ورسره حضرت اسماعيل عليه السلام په دې کار کښې هله شريک شوې دې چې ځوان شو او د

دغې کارکولو جوګه شو او دغه وخت دواړو ته دبيت الله شريف دآبادولو حکم ورکړې شو،
دصحيح بخاري په روايت کښې راغلي دي چې يوه ورځ حضرت ابراهيم عليه السلام دخپل عادت مطابق دحضرت هاجرې اوحضرت اسماعيل عليه السلام دملاقات دپاره مکې مکرمې ته راؤرسيدو نوحضرت اسماعيل عليه السلام ئې ديوې اونې لاندې ناست په غشي جوړولو اوليدو، چه باباجی ئې اوليدونوراپاسيدو ملاقات ئې ورسره اوکړوبياورته باباجي اوفرمائيل ماته الله تعالى ديوکارکولوحکم راکړې دې، آياته به راسره په دې کښې امدادکوې، لائق فرزندورته عرض اوکړوچه په سرسترګوبه ئې کوم بياحضرت ابراهيم عليه السلام هغه غونډئ ته اشاره اوکړه چرته چې بيت الله شريف وواووې فرمائيل چې ماته ددې دآبادولوحکم شوې دې، دبيت الله شريف ګيرچاپيره څلور واړه حدود، الله تعالى حضرت ابراهيم عليه السلام ته ښودلي وو، دواړو بزرګانوچه په دغه کارشروع اوکړه نودبيت الله شريف زاړه بنيادونه راووتل په هغې دې دواړوتعميرشروع کړو[1] چه په راتلونکی آيت کښې بيان دي چنانچه په ﴿وَإِذْ يَرْفَعُ إِبْرَٰهِـۧمُ ٱلْقَوَاعِدَ مِنَ ٱلْبَيْتِ وَإِسْمَٰعِيلُ﴾ کښې دې خبرې ته اشاره ده چې په اصل کښې بانی دبيت الله شريف ابراهيم عليه السلام دې اوحضرت اسماعيل عليه السلام ورسره دامدادی په ډول شريک پاتې شوې دې،

**بيت الله شريف د روز اول نه په دنيا کښې موجود وو:** په دې ټولو آيتونو کښې غورکولو سره داحقيقت واضح کيږی چې بيت الله شريف د اول نه په دنيا کښې موجودوو، څنګه چې دحديث شريف په څنوروایاتو کښې اوپه تاريخ کښې چې بيان شويدی څکه چې په ټولو آيتونو کښې چيرته خو دبيت الله شريف دځائې ښودلوذکردې، کله ئې دپاک اوصفاساتلوذکردې، دا چرته هم نه دی ذکرشوی چې نن څه نوې کورآبادول دی، مطلب داچه حضرت ابراهيم عليه السلام اوحضرت اسماعيل عليه السلام دکعبې شريفې رومبی آبادونکی نه دی بلکه په زوړبنيادونوئې سردوباره آبادکړې دې ولې چې داده نوح عليه السلام په طوفان نړيدلې اووران شوې وؤ ياد غه وخت دزمکې نه پورته کړې شوې وؤ اوصرف بنيادونه ئې په ځائې پاتې وؤ،

اوس پاتې شوه دا معامله چې اول تعمير داچاأوکړواوڅه وخت ئې اوکړوولې چې دې باره کښې دحديث شريف څه صحيح اوقوی روايت منقول نه دې داهل کتابودځنې روایاتونه معلوميږی چې دټولونه اول دافرشتوآباکړې وؤکله چې حضرت آدم عليه السلام پيدانه وؤ، بياحضرت آدم عليه السلام داسردوباره آبادکړو، دحضرت نوح عليه السلام په طوفان چې وران شونودحضرت ابراهيم عليه السلام ترې زمانې پورې ديوغونډئ په شکل کښې موجودووچه حضرت ابراهيم عليه السلام اوحضرت اسماعيل عليه السلام دواړوسردوباره جوړکړو، دې نه پس به پکښې څه نړيدل اورڅيدل هميشه راتلل خومکمل نه دې وران شوې، درسول الله عليه السلام د پيغمبرکيدونه وړاندې دمکې مکرمې قريشوداوران کړواوسردوباره ئې جوړکړوچه دغه تعميرکښې ئې رسول الله عليه السلام خاص شرکت کړې وو،

**دحرم محترم باره کښې احکام اومسائل:** ① دمثابة لفظ نه معلومه شوه چې بيت الله شريف ته الله تعالى داخاص فضيلت ورکړې دې چې هميشه دپاره به دې ته خلق راځی اوبيابيابه دې ته دراتلوآرزومندوی،

[1] صحيح البخاري، کتاب الأنبياء، باب يزفّون النسلان في المشي: ۱/ ٤۷٦

دتفسیرامام حضرت مجاهد رحمه الله فرمائیلی دی: [لایقضی احدمنها وطرا [قرطبی] (۱) یعنی دهیچاړه به ددي دزیارت کولونه نه مړیږی بلکه هرواربه دړومبی ځل نه په زیات شوق دغلته بیرته راځي، اوځنې علماؤفرمائیلی دی چې دحج دقبلیدویوه نخښه داهم ده چې دحج کولونه پس بیاهلته دتلوشوق ئې په زړه کښې وی چنانچه عموماًلیدلې کتلې شی چې دهرځل دبیت الله شریف دزیارت شوق دړومبی ځل نه زیات وی او څومره ځل چې زیارت ئې کیږی نوپه شوق کښې ئې په مخه زیاتې کیږی،

دامعجزه دبیت الله شریف خصوصیت څکه کیدې شی چې ددنیاښکلی نه ښکلی مقاماتواو ځیزونوبیابیالیدوسره دانسان زړه تړډ کیږی اوکله چې نوبت شپږواووخلو ته اورسیږی نوبیاد هغې دلیدلوخیال ئې هم په زړه کښې نه تیریږی، دغلته خونه دسیل ځائ شته، نه څه زړه راښکونکې منظرشته، نه ورته رسیدل څه آسان دی، نه هلته ددنیاڅه اهم کاروبارشته، خوسره ددې هم دخلقوپه زړونوکښې ددې شوق همیشه په جوش وی، زرګونه لکونه روپئ لګوی، بیشمیره تکلیفونه تیروی اوهلته بیاهم درسیدومشتاق وی،

(۴) دلته دآمنا لفظ د مَامن په معنی دې اودبیت الله نه مرادیواځې بیت الله شریف نه بلکه ټول حرم مراددې، چنانچه دبیت الله اوکعبه دالفاظونه په قرآن کریم کښې ټول حرم مراداغستې شوې دې لکه فرمائی:

﴿هَدْيًا بٰلِغَ الْكَعْبَةِ﴾ څکه چې قربانی خاص په بیت الله شریف کښې کول ناروادی، نوددې آیت معنی به داوی چې مونږه دمکې مکرمې حرم دامن ځائ جوړکړې دې، ددې مطلب داراووځی چې خلق دحرم محترم لره دعام جنګ جګړواوبدل اغستوځائ نه جوړوی. [ابن عربی] (۲)

چنانچه دملت ابراهیمی علیه السلام دڅه نخښونښانوځنې، دجاهلیت په زمانه کښې یوداهم پاتې ووچه حرم محترم کښې به دخپل پلاریابل نزدې خپلوان دقاتل نه بدل نشواغستې اودلته به عام جنګ جګړه هم حرامه ګڼړلې شوه اوپه اسلامی شریعت کښې هم داحکم دغه شان باقی پریښودې شو البته دفتح مکې په موقعه یوڅوګینتهودپاره په زمین حرم کښې ددې اجازت شوې ووموګرهمدغه وخت سمدستی همیشه دپاره حرام اوګرځولې شواورسول الله ﷺ دفتح مکې په خطبه کښې ددې اعلان اوکړو[صحیح بخاری] (۳)

**دحرم مجرم ته حرم پناه نه ورکوی:** البته که څوک په حرم کښې داسې جرم اوکړی چې داسلامی شریعت له مخې دهغې سزاحدیا قصاص وی نوحرم ده ته امن نه ورکوی بلکه په ده به دامت په اجماع سره حداوقصاص جاری کیږی، [احکام القرآن جصاص وقرطبی] څکه چې دقرآن کریم ارشاددې ﴿فَاِنْ قٰتَلُوْكُمْ فَاقْتُلُوْهُمْ﴾ که حرم کښې درسره څوک جنګ جګړه کوی نوتاسوهم هغوئ لره هلته قتل کړئ! البته دمجتهدینو رحمهم الله په منځ کښې دامسئله اختلافی ده چې څوک بهرجرم کوونکې په حرم کښې پناه واخلی نوهغه سره به څه کولې شی کنه؟ ځنې مجتهدین امامان رحمهم الله هم دغلته پرحداوقصاص جاری کولوحکم کوی خوامام اعظم ابوحنیفه رحمه الله وائی چې اګرچه دسزانه ئې مَعافی نشته خودغلته به سزانشی ورکولې بلکه دومره به تنګ کړې شی چې پخپله

---

(۱) تفسیر القرطبي تحت هذه الآية: ۲/ ۱۱۰
(۲) أحكام القرآن لابن العربي تحت هذه الآية: ۱/ ۶۸
(۳) صحيح البخاري، كتاب المناسك، باب لا يحل القتال بمكة: ۱/ ۲۴۷

دحرم نه رابهرشی نوهلته به پرې باندې سزاجاري کړې شي اوداسې کس له دسزانه معافي ځکه نشته چې دحرم نه به دمجرمانو د پناه ځائې جوړشي اوپه دنیاکښې به ددې نه غټ غټ فسادونه راوالاړشي،

**قوله تعالٰی:** ﴿وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى﴾ دمقام ابراهيم نه دلته مرادهغه کاڼړې دې چې پکښې د حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام دقدمونو مبارکونشانات جوړشوي دي اوهغوئ عليه السلام دادبيت الله شريف دتعمير په وخت کښې استعمال کړې وو [صحيح بخاري]

حضرت انس رضي الله عنه فرمائي چې ماپه دې کاڼړې کښې دحضرت ابراهيم عليه السلام دقدمونو مبارکو نشانات اوليدل مګر دخلقو د زيات مسح کولو سره اوس هغه نښو څه کمزوري شويد ده [قرطبي] اودحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه دمقام ابراهيم تفسيرداسې نقل شوې دې چې دا ټول مسجدحرام دې، کيدې شي چې ابن عباس رضي الله عنه ترې دامرادځکه اغستې وي چې دطواف نه پس په مقام ابراهيم کښې ددؤو رکعاتوادا کولوکوم حکم چې شويدې هغه ټول مسجدحرام کښې پوره کيږي څنګه چې په دې دامت اکثرعلماء متفق دي،

④ په دې آيت کښې مقام ابرهيم لره دمونځ ځائ جوړول پخپله رسول الله صلى الله عليه وسلم په حجة الوداع کښې په خپل قول اوعمل سره داسې واضح کړې دي چې هرکله هغوئ صلى الله عليه وسلم مقام ابراهيم عليه السلام ته اورسيدل [چه بيت الله شريف نه په څه لږه فاصله اينښودې شوې دې] نوداآيت ئې تلاوت کړو **قوله تعالٰی:** ﴿وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى﴾ اوبيائې دمقام ابراهيم عليه السلام نه روستوا ړخ ته په داشان دوه رکعاته ادا کړل يعني ادا کړل چې مقام ئې په مينځ کښې راغلو اومخ مبارک ئې بيت الله شريف ته وو [صحيح مسلم] (۱) په دې وجه دامت فقهاؤفرمائيلي دي چې که چاته مقام ابراهيم سره جخت مونځ دمونځ ځائ ملاؤنشي نوهغه که مسجدحرام کښې هر څومره لرې په داشان دغه مونځ دا کړئ چې بيت الله شريف ته ئې مخ وي اوپه مينځ کښې مقام ابراهيم راځي نوددې حکم پوره تعميل ورسره کيږي.

**په مقام ابراهيم کښې دوه رکعته مونځ واجب دې:** ⑤ ددې آيت نه ثابته شوه چې دطواف نه پس دغه دوه رکعاته ادا کول واجب دي [جصاص ومناسک ملاعلي قاري] (۲)

البته دادوه رکعته خاص دمقام ابراهيم شاته اداکول سنت دي، اوکه په حرم کښې ئې بل ځائ اداکړل نوداهم کافي دي ځکه چې ثابته شوې ده چې رسول الله صلى الله عليه وسلم دارکعتونه دبيت الله شريف دروازې سره متصل اداکړي دي اوحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه هم دغلته اداکول ئې منقول دي [جصاص] (۳)

اوملاعلي قاري رحمه الله په خپل مناسک نومې کتاب کښې فرمائيلي دي چې د طواف دادوه رکعاته واجب دي چې دمقام ابراهيم شاته ئې اداکول سنت دي، که په څه وجه ئې دغلته ادانکړې شونو په حرم کښې دننه يادې نه بهراداکولوسره ئې واجب اداکيږي، په حجة الوداع کښې رسول الله صلى الله عليه وسلم سره حضرت ام سلمه رضي الله عنها ته هم داسې واقعه راپيښه شوې وه چې هلته مقام ابراهيم سره ئې دغه دوه رکعته ادا نکړې شو، چه مسجدحرام دې بلکه مکې مکرمې نه

---

۱) صحيح مسلم، کتاب الحج، باب حجة النبي صلى الله عليه وسلم: ۱/ ۳۹۵
۲) مناسک ملا علي القاري: ۱۵۵، وأحکام القرآن للجصاص: ۱/ ۷۴
۳) أحکام القرآن: ۱/ ۷۴، ۷۵

اوتل نوبیائي اداکړل، که دضرورت په وجه دادحرم شریف نه بهراداکړي شي نو د جمهورو علماء په نزدیږې باندې دم هم نه واجبیږي، په داسې صورت کښې صرف امام مالک رحمه الله ددم واجبیدو قائل دې [مناسک ملاعلي قاري رحمه الله (۱)]

قوله تعالی: ﴿طَهِّرَا بَيْتِيَ﴾ په دې کښې دبیت الله شریف دپاکولوحکم دې، دې نه مراد دظاهری پلیتو او باطنی لکه کفر، شرک ناکاره اخلاقو، بغض، حسد، حرص، خواهش، تکبر، غرور، ریا، نوم، نمود] نه پاکول دی داشان د[بَيْتِيَ] لفظ کښې دې ته اشاره ده چې دټولوجماتونوهم دغه حکم څکه دې چې ټول جوماتونه دالله تعالی کورونه دی لکه ارشاددې: ﴿فِي بُيُوتٍ أَذِنَ اللَّهُ أَنْ تُرْفَعَ﴾

حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه په جماعت کښې دیوسړی آوازواورید ونووې فرمائیل: ته خبرنه ئې چې کوم ځائ ولاړئې. [قرطبی] (۲) یعنی دجماعت ادب اواحترام پکاردې په دې کښې داسې قسم آوازونه اوخبرې کول نه دی پکارچه شریعت دهغې اجازت نه وی ورکړې، حاصل دخبرې داشوچه دبیت الله شریف پشان دټولوجوماتونوهم دباطنی اوظاهری پلیتونه پاک اوصفاساتل ضروری اوواجب دی، مطلب دا چې جوماتونوته دتلونکوخلقو، بدنونه اوجامې دی دټولو پلیتواوبدبویه څیزونونه پاکې اوصفاوی اود دوئ زړونه ددشرک، نفاق اوټولوناکاره اخلاقو، تکبر، حسد، بغض، حرص، ریاوغیره دپلیتونه پاک وی،

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چې څوک پیاز، اوږه وغیره بدبویه څیزونه اوخوری هغه د هغه وخت جماعت ته نه ځی، داشان ئې فرمائیلی دی چې جوماتونوته ماشومان اولیونی مه پریږدئ (۳)، ولې چې دوئ نه دپلیتولو خطره وی،

﴿لِلطَّائِفِينَ وَالْعَاكِفِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ﴾ دآیت شریف ددې کلماتونه څواحکام اوفائدې حاصلې شوې

① دبیت الله شریف دجوړولومقصد، طواف، اعتکاف، اومونځ دې، ② طواف دمونځ نه وړاندې دې [ابن عباس رضي الله عنه] ③ ددنیادکټ کټ او کونج کونج نه راتلوونکوحاجیانودپاره دطواف په نسبت مونځ غوره دې، ④ بیت الله شریف کښې مونځ کول مطلقا روادی، فرض وی اوکه نفل [جصاص] (۴)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | | وَإِذْ | قَالَ |
| | | | | او یادکړئ کله چې | اوونیل |
| | | | | او [یادکړئ هغه وخت] چې | اووئیل |
| إِبْرَٰهِـۧمُ رَبِّ | اجْعَلْ | هَٰذَا | بَلَدًا ءَامِنًا | وَارْزُقْ | أَهْلَهُ |
| ابراهیم اے ربه زما | جوړ کړه | دا | ښار د امن | او ورکړه | اوسیدونکو ددې ته |
| حضرت ابراهیم انې زما ربه دا ښار د امن ځائې اوګرزوه | | | | | اوددې ځائې خلقوته |

۱) ص: ۱۵۸

۲) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ۲/ ۱۱۴، ۱۱۵

۳) سنن ابن ماجة، أبواب المساجد، باب ما يكره في المساجد: ۱/ ۵۴

۴) أحكام القرآن: ۱/ ۷۶

مِنَ الثَّمَرٰتِ مَنْ اٰمَنَ مِنْهُمْ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ قَالَ

هرقسم ميوې | هغه چاته | چې ايمان ئې راوړې دې | ددوئ نه | په الله باندې | اويه ورځ دآخرت باندې | اووئيل الله

رنگ رنگ ميوې نصيب کړې | هغه چاته چې په الله او په ورځ دقيامت يقين لرى [په جواب کښې] الله اووئيل

وَمَنْ كَفَرَ فَاُمَتِّعُهٗ قَلِيْلًا ثُمَّ اَضْطَرُّهٗٓ اِلٰى عَذَابِ النَّارِ ؕ وَبِئْسَ

اوچاچې کفراوکړو | نوفائده به ورکړو هغه له هم | لږه | بيا به راکاږم هغه | عذاب د وورته | اوبد ځائې

اوځوک چې خمادحکم منلونه انکار اوکړو | هغه ته به هم لږه فائده ورکړم | بيابه دې په ذلت سره ددوزخ عذاب ته اوسپارم

الْمَصِيْرُ ۝ وَاِذْ يَرْفَعُ اِبْرٰهٖمُ الْقَوَاعِدَ مِنَ الْبَيْتِ وَاِسْمٰعِيْلُ ؕ

دورتلودې هغه | اويادکړئ کله چې | پورته کولو | ابراهيم | بنيادونه | ددې کور | اواسماعيل

کوم چه داستوګنې په لحاظ ډيرخراب ځائې دې او[يادکړه] کله چې ابراهيم او اسماعيل دبيت الله دديوالونو بنيادونه خيژول

رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا ؕ اِنَّكَ اَنْتَ السَّمِيْعُ

نو دعا به ئې کوله اې ربه زمونږ | قبول کړې | زمونږنه | بيشکه ته | هم خاص ته | دهرڅه اوريدونکې

[اودعائې غوښتله] ائې زمونږ ربه زمونږ [داخدمت] قبول کړه بيشکه ته آوريدونکې

الْعَلِيْمُ ۝ رَبَّنَا وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ وَمِنْ ذُرِّيَّتِنَآ

اويه هرڅه پوهه ئې | اې ربه زمونږ | جوړ کړې مونږ | تابعدار | ستا | اوورا پورته کړې داولاد زمونږنه

اويه هرڅۀ پوهه ئې | ائې زمونږ ربه مونږ دواړه خپل تابعدار اوفرمانبرداراوګرزوه | اوزمونږ په اولاد کښې هم

اُمَّةً مُّسْلِمَةً لَّكَ ۠ وَاَرِنَا مَنَاسِكَنَا وَتُبْ عَلَيْنَا ۚ

يوقوم | حکم منونکې ستا | او اوښايه مونږته | طريقې دعبادت زمونږ | اوقبولوالې د توبې اوکړه په مونږ

يوډله خپل فرمانبردارکړه اومونږته دحج طريقې اوښايه اوزمونږ توبه قبوله

اِنَّكَ اَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ۝

بيشکه ته | خاص هم ته | ډيرمعاف کونکې | اورحم کونکې ئې |

بيشکه ته توبه قبلونکې مهربان ئې |

**آسان ترجمه قرآن**

او(هغه وخت هم ياد کړئ) چه کله ابراهيم عليه السلام وئيلي وو چه : "اې پروردګاره ! دې ښار لره يوڅ امن ښار جوړ کړه او ددې په اوسيدونکو کښې چه څوك په الله تعالى او د آخرت په ورځ ايمان راوړي هغوی ته د قسم قسم ميوو نه رزق ورکړه الله تعالى وفرمائيل په دوی کښې چه څوك کفر اختيار کړي نو هغوی ته به د څه وخت دپاره د فائدې اخستو موقع ورکوم، (مګر) بيا به څه هغه دوزخ ته راکاږم او هغه ډير بد ځائې دې او هغه وخت ياد کړه چه کله ابراهيم عليه السلام د بيت الله بنيادونه اوچتول او اسماعيل عليه السلام هم (ده سره شريك وو او دواړو دا وئيل چه) اې څمونږ پروردګاره ! مونږ نه (دا خدمت) قبول کړه بې شکه ته او صرف ته د هر چا خبره اوري او هر يو باندې ستا علم دې اې څمونږ پروردګاره !

مونږ دواړه خپل مکمل تابعدار جوړ کړه او څمونږ دنسل نه هم داسې يو ټولي پيدا کړه چه ستا پوره تابعداروي او مونږ ته دعبادت طريقي اوښايه او څمونږ توبه قبوله کړه بې شکه ته او صرف ته دمعاف کولو عادت (او) دلوئ رحمت مالک ئې.

## خلاصه تفسير

﴿وَإِذْ قَالَ إِبْرَٰهِـۧمُ﴾ او [هغه وخت هم دياد ولو قابل دې] کله چه ابراهيم ﷺ په دعا کښې عرض اوکړو چه ﴿رَبِّ ٱجْعَلْ هَٰذَا بَلَدًا ءَامِنًا﴾ ائې زما پروردګاره د ا [ځائې] يو [آباد] ښار جوړ کړې [او ښار څه رنګې؟] دا من [او امان] والا ﴿وَٱرْزُقْ أَهْلَهُۥ مِنَ ٱلثَّمَرَٰتِ﴾ او ددې اوسيدونکو ته دميوو [د قسمونو] نه هم ورکړې [او ټولو اوسيدونکو ته نه بلکه خاص] ﴿مَنْ ءَامَنَ مِنْهُم بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ﴾ هغه چا ته چه د دوی نه په الله ﷻ او په ورځ د قيامت ايمان لرې [نورو سره ته پوهه شې] ﴿قَالَ وَمَن كَفَرَ فَأُمَتِّعُهُۥ قَلِيلًا﴾ الله ﷻ اوفرمائيل [چه هر کله زمونږ رزق خاص نه دې ځکه به ميوے ټولو ته ورکوم مومن ته هم] او هغه چا ته هم چه کافر پاتې کيږې [البته د آخرت نجات چونکه د ايمان خاوندانو سره خصوصيت لرې] نو [په دې وجه] داسې کس ته به [چه کله کافر پاتې کيږې] لږے ورځې [يعنی دنيا کښې] ښه آرام ورکوم ﴿ثُمَّ أَضْطَرُّهُۥٓ إِلَىٰ عَذَابِ ٱلنَّارِ﴾ [ليکن] بيا به [پس دمرګ نه دې په راخکلو راخکلو [راکشولو کشولو] نو ددوزخ عذاب ته غورځوم ﴿وَبِئْسَ ٱلْمَصِيرُ﴾ او دداسې رسيدلو ځائې خو ډير بد دے [الله ﷻ مو دے ترے محفوظ کړې ﴿وَإِذْ يَرْفَعُ إِبْرَٰهِـۧمُ ٱلْقَوَاعِدَ مِنَ ٱلْبَيْتِ وَإِسْمَٰعِيلُ﴾ او هغه وخت هم د يادولو قابل دې] کله چه پورته کول ابراهيم ﷺ ديوالونه دخانه کعبے او [ورسره] اسماعيل ﷺ [او دا به وئيل چه] ﴿رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّآ ۖ إِنَّكَ أَنتَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ﴾ ائې زمونږ پروردګاره [دا خدمت زمونږ نه قبول کړې بيشکه ته ښه اوريدونکې پوهيدونکې ئې [زمونږ دعاګانے اورے او زمونږ په نيتونو پوهيږے] ﴿رَبَّنَا وَٱجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ وَمِن ذُرِّيَّتِنَآ أُمَّةً مُّسْلِمَةً لَّكَ﴾ ائې زمونږ پروردګاره او [مونږ دواړه داهم دعاکوو چه] مونږ نور هم زيات خپل فرمانبرداران جوړ کړې او زمونږ د اولاد نه يو داسې ټولي پيدا کړې چه ستا فرمانبردار وی او [داشان] ﴿وَأَرِنَا مَنَاسِكَنَا﴾ مونږ ته د حج [وغيره] احکام هم اوښائې او ﴿وَتُبْ عَلَيْنَآ﴾ زمونږ په حال [مهربانی سره] توجه اوکړې ﴿إِنَّكَ أَنتَ ٱلتَّوَّابُ ٱلرَّحِيمُ﴾ او په حقيقت کښې يو اځې هم ته يئ توجه کوونکې او مهربانی کوونکې.

## معارف او مسائل

**قوله تعالى:** ﴿وَإِذْ قَالَ إِبْرَٰهِـۧمُ رَبِّ ٱجْعَلْ﴾ حضرت خليل الله عليه السلام دالله په لارکښې قربانئ ورکړې، مال، متاع، آل وعيال اودخپل نفس غوښتنې ئې شاته کړې دخپل پروردګارد حکمونو په ځائ راوړلو کښې دجلتئ او تلوارکومې کارنامې چې ترسره کړې هغه دزمانې په عجائباتو کښې حسابيږی،

بله داچه څنګه آل وعيال سره مينه ساتل او شفقت پرکول يو طبعی او فطری خبره ده دغه شان داحکم ربانی هم دې چې تيرشوی آيتونو نه ددې پوره پته لګی، هغوئ دخپل اهل وعيال ددين دنيا آرام او راحت دپاره دعاګانې غوښتې دی.

**دحضرت ابراهيم عليه السلام دعاګانې:** ددعا شروع ئې د رب دلفظ نه کړې ده چې ددعاچل راته اوښائی ولې چې درب معنی دپروردګار ده. او داسې قسم الفاظ دالله تعالی درحمتونو، مهربانيو او

فضلونو مخه ځان ته راګرځولو کښې ډیرزبردست اثرلری،بیادتولونه ړومبۍ دعائ داده چې داتش تور میدن [چه ستاپه حکم مې پکښې آل اولاددیره کړو] یوښارجوړکړې چې دلته په استوګنه کښې ددوئ زړونه نه بوګنیږی او ویریږی نه، دژوندضروریات ورته په آسانه لاس ته راځی چنانچه دادعا،سورۂ ابراهیم علیه السلام کښې د﴿هٰذَا الْبَلَدَ اٰمِنًا﴾ په الفاظوسره راغلې ده،چه البلد ئې په الف لام سره معرفه راوړې دې،ددې فرق وجه غالباداکیدې شی چې ړومبۍ دعادسورۂ بقره په هغه موقعه شوې ده چې داځائ سوردشت میدان وواود ښارهیڅ نخښه نښانه هم نه وه نوبلدلفظ ئې بغیرالف لام نه نکره راوړواودویمه دعاپه ظاهره دهغه وخت کیدې شی چې مکه مکرمه آباده شوې وه اوبومشهورښارترجوړشوې ووچنانچه قرینه ئې داده چې دسورۂ ابراهیم په آخری آیتونوکښې هرکله چې دابراهیم علیه السلام دادعاذکرشوې ده ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ وَهَبَ لِیْ عَلَى الْكِبَرِ اِسْمٰعِیْلَ وَاِسْحٰقَ﴾ نو داضرورد حضرت اسحاق علیه السلام دپیدائیش نه پس ده اوحضرت اسحاق علیه السلام دحضرت اسماعیل علیه السلام نه دیارلس کاله پس پیداشوې دې،[ابن کثیر] ([1])

دویمه دعاپه دې کښې داده چې داښاردامن ښارجوړکړې چې جنګ جګړو، لو مار، د کفارو دغلبې اوآفتونونه په امن اومحفوظ وی،

**مکه مکرمه بومحفوظ او د امن ځائې دې:** دحضرت خلیل الله دادعاقبوله شوه اومکه مکرمه داسې یوآبادښاراوګرځیدوچه دخپلې آبادئ نه علاوه دټولې دنیادخلقودراتلوځائ اوګرځیدو، د دنیا دګوټ ګوټ [کونج کونج] نه دغلته راتلل خلق خپله خوش قسمتی ګڼړی اوداشان دامن اوحفاظت ځائ هم جوړشو،چه دبیت الله شریف دهیڅ مخالف قوم یابادشاه په دې هیڅکله غلبه حاصله نه شوه،داصحاب فیل [دهاتیانودخاوندانو] واقعه پخپله په قرآن کریم کښې ذکرشویده چې په بیت الله شریف باندې دحملې په خیال راغلی ؤونوالله تعالی دغه ټول لښکرکسکراوریزمریز کړو،

داښار،دجنګ،جګړو،لوټ،مارنه هم په مخه محفوظ راروان دې،دجاهلیت دزمانې خلق هرڅومره چې دکفراوشرک په رسمونواوپلیتوکښې راګیراواخته ووخوبیابه ئې هم دبیت الله شریف قدراوعزت تردې حده خپل مذهبی فرض ګڼړل چې خپل بدترین دشمنانونه به ئې هلته بدل قدرې نه اغستو،بیواځې دانه،بلکه په عامه توګه به ټولوعربودحرم داستوګنو او اوسیدونکو خلق پوره پوره قدراوعزت کولواوهم دغه وجه وه چې دمکې مکرمې استوګن به تر لرې لرې،شام اویمن ته دتجارت په غرض تلل اوچابه ئې هیڅ قسمه مخه نه دبندوله،

دحرم شریف په حدودکښې هرکله چې الله تعالی وحشی ځناوراومارغانوته امن ورکړې دې هلته ښکارکول ناروادی څوک ښکاری ئې نشی ښکارکولې نو الله تعالی دهغوئ دزړونونه هم ویره تری نه هم ورکه کړې ده دغلته چې راوړسی نوخپل ځان حفاظت کښې ګڼړی اوهیڅ ښکاری بنیادم وغیره نه نه ویریږی،دحضرت ابراهیم علیه السلام ددعاپه نتیجه کښې دبیت الله شریف د محفوظ اومامون کیدوکوم احکام چې راروان وو،قرآن کریم هغه نورهم صفاکړل اومضبوتیائې راوسته،حجاج بن یوسف اوبیاد قرامطوډزوروظلم په نتیجه کښې دقتل وقتال اوبدکارئ په وجه کومه بې عزتی چې دحرم شریف اوکړې شوه دادکافرودلاسه نه،بلکه پخپله

[1] ) تفسیر ابن کثیر، تفسیر سورۂ ابراهیم آیت:۳۷، ۴/ ۵۱۳

دمسلمانانو دلاسه اوشو، چه داددې دامن خلاف نشي ګڼړلي، بله داچه دادنيشت برابر ډېر کم واقعات دی چې دحضرت ابراهيم عليه السلام دزمانې نه ترننه پورې په ډېرکم شمير کښې شوی دی خو ددغه فسادیانو انجام هم خلقونه پټ پاتې نشو په شرمونو او شرميدل او بيخ بنيادئې اووتو،

خلاصه داده چې دحضرت ابراهيم عليه السلام ددعا په نتيجه کښې حرم شريف الله لره تعالى قدرتی طور هم دامن ځائ ترديې حده جوړ کړې دې چې دجال به هم دغلته دراتلو توفيق بيا پيدا نه کړی اوشرعاهم داسې احکام جاري کړي شوچه دهغې له مخې په حرم شريف کښې قتل وقتال خولاڅه کوې دځناورو او مرغانو ښکار هم پکښې حرام او ګرځولې شو،

دريمه دعائې دااوفرمائيله چې ددې ښاراستوګنوته دميوو روزي ورکړې، دمکې مکرمې خواؤشا زمکه کښې دباغ ياچمن جوړيدو هيڅ صلاحيت نه ؤ ځکه چې ترلرې لرې هلته اوبه نه ملاؤيدې بياهم الله تعالى دغه دعاپه داشان قبوله کړه چې مکې مکرمې سره طائف نومې داسې يوټوټه دزمکې ئې جوړه کړه چې ډېرې ميوې پکښې پيداکيږي اوپه مکه مکرمه کښې خرڅيږي ځنې اسرائيلي رواياتو کښې راغلي دي چې طائف په اصل کښې دشام ملک دزمکې يوټکړه وه چې دالله تعالى په حکم جبرائيل عليه السلام هلته نه دلته راؤړله،

**ابراهيمي حکمت:** حضرت ابراهيم عليه السلام په خپله دعاکښې داسې اونه فرمائيل چې دمکې مکرمې او خواؤشازمکه دېڼره او ګل ګلزار، خيرازه او شنه زرغونه اوپخپله دميوؤ پيدا کولو قابله شي بلکه ددعامطلب ئې داووچه ميوې دې پيداپه نورو ځايونو کښې وی اومکې ته دې راورسی، دې کښې دارازکيدې شي چې حضرت خليل الله عليه السلام دانه غوښتل چې اولادئې زميندارانې کروندګر، اومالیان جوړشی اواصل مقصد ترې شاته پاتې شی، ځکه چې هغوئ عليه السلام پخپله ددې ځائ دآباديدو خپله دامنشاښکاره کړې وه چې ﴿رَبَّنَا لِيُقِيْمُوا الصَّلٰوةَ﴾ يعنى زمااولاد اصلی شغل ددبيت الله شريف حفاظت اودلته مونځ قائمول وی، ورنه داڅه ګرانه نه وه چې الله تعالى دمکې مکرمې زمکه داسې زرخيزه جوړه کړې وې چې دمشق اوبيروت به ورته پڅخيدلو،

**دميوؤدرزق نه مطلب دلته دټول ژوندضروريات دی:** ثمرات دثمرة جمع ده اصل معنى ئې ميوه دانه ده چې په ظاهره ترې مراددانوميوه ده ليکن دسورة قصص په [۵۷] آيت کښې ددې دعا د قبليدو اظهار په دې الفاظو شوې دې ﴿يُّجْبٰٓى اِلَيْهِ ثَمَرٰتُ كُلِّ شَيْءٍ﴾ يوخوترې داپه ښکاره ډول ثابتيږی چې دمکې مکرمې په زمکه کښې ددې ميوؤدپيداکيدو وعده نه ده بلکه دنورو مقاماتو او ځايونونه ئې دلته درارسولو وعده ده لکه لفظ د ﴿يُّجْبٰٓى﴾ چې مفهوم دې، بله داچه ﴿ثَمَرٰتُ كُلِّ شَجَرٍ﴾ ئې اونه فرمائيل او ﴿ثَمَرٰتُ كُلِّ شَيْءٍ﴾ ئې اوفرمائيل چنانچه دې نه ذهن دې خبرې ته منتقل کيږي چې دلته ثمرات په عامه معنى کښې اغستل مراددی، چه مطلب ئې حاصلات دې د هر څيزچه وی خواه داونوی، دمشينونو حاصل شوې سامان وی، دلاس، دخپو دکاروبار حاصلات وی، مطلب داچه دلته تردژوندټول ضروريات مراددی، چنانچه دخپلو ليدلو کتلو خبره ده چې دغلته ميوې دانې خولاڅه ګوې بلکه قسماقسم سامانونه هم هلته په آسانه ملاويږی چې ددنيابل يولوئ نه لوئ ښار کښې به هم په آسانه نه ملاويږی اويابه بيخی نه ملاويږی،

**دحضرت خليل الله عليه السلام احتياط:** دمکې داستوګنودپاره دعيش دفراخئ په دعاکښې حضرت ابراهيم عليه السلام په خاصه توګه مؤمنان صرف په دې وجه يادکړل چې دې نه وړاندې ئې دامامت اوپيشوائي سوال کښې خپل ټول اولادياد کړې وواودمسلمان اوکافرفرق ئې نه ووکړې نوالله

تعالى ورته ارشاداوکړو چې دادعا صرف دمؤمن اولادپه باره کښې قبوله ده دظالمانو او مشرکانو په باره کښې قبوله نه ده، هر کله چې حضرت ابراهيم عليه السلام ته الله تعالى دخپلې دوستۍ مقام ورکړې وواوداالله تعالى دويرې نه پوره اوبرجت او ډک وونودلته ورته هم هغه خبره ياده راغله نوخپله دعائې خاص دمؤمنانودپاره اوګرځوله، بياهم الله تعالى دهغوئ عليه السلام ددې احتياط اوويرې قدراوکړووړته ئې واضحه کړه چې داسوال دړومبې سوال نه مختلف دې ځکه ددې په قبليدوکښې ټول اهلِ مکه شريکوم اګرچه هغه ظالمان اومشرکان دی البته دا خوشحالى به مؤمنانوته په دې دنياکښې هم ورکولې شي اوپه آخرت کښې هم ورکولې شي اوکافرانولره به په آخرت کښې دعذاب نه سوابل هيڅ نه وی،

**په خپل نيک عمل دتکيې اوقناعت نه کولوتعليم:** قوله تعالى: ﴿رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا﴾ حضرت خليل الله عليه السلام داالله تعالى دحکم پوره کولوپه غرض دشام ملک شنه زرغنه اوښکلې زمکه پرېښوده اودمکې مکرمې داوچو غرونوترمينځه ئې خپل آل اولاد ډيره کړل اودبيت الله شريف په آبادولوکښې ئې خپل پوره قوت صرف کړو، په داسې موقعوخلق خپل عمل ته زړه ښه کړی اوداډير دقدرورګنړی خودلته حضرت خليل الله دې، داالله تعالى دربارنه پوره خبرداردې چې دهغه دشان لائيق عبادت هيڅوک نشی ترسره کولې، هر څوک دخپل وس په جوړکارکولې شی، په دې وجه ضرورت ددې خبرې دې چې هيڅوک دپه خپل لوئ نه لوئ عمل نازنه کوی بلکه په زارئ اوعاجزئ سره ددغه عمل دقبليدوسوال کوی لکه چې خليل الله عليه السلام چې دبيت الله شريف دآبادولوپه باره کښې دادعااوکړله چه، اې زمونږه پروردګاره، ته زمونږداعمل قبول اوګرځوې ځکه چې ته آوريدونکې، پيژندونکې ئې، زمونږدعاګانې آورې اوزمونږپه نيتونوپوهيږې،

قوله تعالى: ﴿رَبَّنَا وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ﴾ دادعاهم دهغې پيژندګلۍ اوويرې نتيجه ده چې حضرت خليل الله عليه السلام ته حاصله وه چې د تابعدارئ اوفرمانبردارئ بې مثاله کارناموترسره کولونه پس هم دادعاکوی چه، مونږه دواړه خپل فرمانبرداره جوړکړه، وجه ئې داده چې په معرفتِ الهی کښې څومره چې دچا ترقی کيږی هغه هومره دده دااحساس ورسره هم وده کوی چې مونږدوفادارئ اوفرمانبردارئ حق پوره نشواداکولې،

**خپل ځان سره دخپل اولاد دقبلوليت فکر هم د انبياء کرامو او بزرګانو طريقه ده:** قوله تعالى: ﴿وَمِنْ ذُرِّيَّتِنَآ﴾ په دې دعاکښې ئې هم خپل اولادشريک کړو، دې نه معلوميږی چې هغه خدائې خلق چې داالله په لارکښې په خپل ځان اواولادقربانولوسرفه نه کوی، خپل اولادسره څومره محبت لری خو ددې محبت صحيح تقاضې پوره کوی ترکومې چې دعوامورسائی نشته، عوام خويواځې داولاد جسمانی صحت اوراحت پيژنی دهغه ټول شفقت اومهربانی هم ددې چاپيره تاويږی خوداالله تعالى قبول شوی بندګان دجسمانی نه زيات دروحانی، اودنيانه زيات دآخرت دآرام فکرکوی، ځکه ئې دعا اوکړه چې زماداولادځنې يوټولې خپل پوره فرمانبردار جوړ کړې، د خپل اولاد دپاره دعاکولوکښې يو بل حکمت هم دې هغه داچه تجربې نه ثابته ده چې په قوم کښې لوئ منلی شی که اولادئې ددوئ په لارتينګ ولاړوی نودوئ په عواموکښې په فطری دول مقبول وی اودهغوئ د صلاحيت په برکت عوام هم سمې بيامومی او خپله اصلاح کوی

[بحرمحیط] [۱] دحضرت خلیل الله علیه السلام دادعاهم په دې شان قبوله شوه چې په او اولادکښې ئې همیشه دپاره داسې خلق راروان دی چې په حق دین ولاړاودالله تعالی فرمانبردار بندګان دی، دعربودجاهلیت په زمانه کښې هم، کُله چې پوره دنیااوخصوصاعرب خلق دشرک اوبت پرستۍ په دام کښې راګیرؤوهغه وخت هم دحضرت ابراهیم علیه السلام په اولادکښې څه خلق دتوحیدپه عقیده ټینګ وو، دآخرت په رشتیامعتقدوواوفرمانبرداری کول ئې طبیعت ګرځیدلې وو لکه اهل جاهلیت کښې زیدبن عمروبن نفیل اوقس بن ساعده چې وو، درسول الله صلی الله علیه وسلم دنیکه صاحب عبدالمطلب بن هاشم په باره کښې هم داروایت دې چې هغه دشرک اوبت پرستۍ نه ویزاره وو [بحرمحیط] [۲]

قوله تعالی: ﴿وَأَرِنَا مَنَاسِكَنَا﴾ مناسک جمع دمنسک ده، دحج افعالوته هم مناسک وئیلې شی او مقاماتو د حج ته هم مناسک وئیلې شی لکه عرفه، منی، مزدلفه، دلته تردواړه مراداغستې شی، د دعا حاصل دادې چې مونږته دحج افعال اومقامات په پوره شان رااوښائې څکه ئې لفظ د ارنا استعمال کړوچه معنی ئې داده، مونږته رااوښائې، داالیدل دسترګوازړه دواړوکیدې شی، چنانچه دحضرت جبرائیل علیه السلام په ذریعه ورته دمعین کولودپاره دحج مقامات اوښودلې شو او د حج داحکامو واضح تلقین اوتعلیم ورته اوکړې شو

| رَبَّنَا　وَابْعَثْ فِيهِمْ |
|---|
| اې ربه زمونږ \| رااولیږه \| په دوئ کښې |
| \| ائې ربه په دوئ کښې د دوئ د نسب نه یو رسول رااولیږه |
| رَسُولًا　مِّنْهُمْ　يَتْلُوا　عَلَيْهِمْ　آيَاتِكَ　وَيُعَلِّمُهُمُ　الْكِتَابَ |
| یو پیغمبر \| ددوئ نه \| چې اوروی \| هغوئ ته \| ایتونه ستا \| اوښائی هغوئ ته \| کتاب \| |
| چې ستا آیتونه ورته لولی \| او د کتاب [قرآن] تعلیم ورکوی [دخپل احادیثو په ذریعه] |
| وَالْحِكْمَةَ　وَيُزَكِّيهِمْ　إِنَّكَ أَنْتَ　الْعَزِيزُ　الْحَكِيمُ |
| او حکمت \| اوپاکوی هغوئ لره \| بیشکه خاص هم ته \| غالب \| صاحب د حکمت ئې \| |
| اوتعلیم ورکوی] دهوښیارتیا \| اودګناهونونه ئې پاکوی \| بیشکه ته غالب او صاحب د حکمت ئې |

**آسان ترجمه قرآن**

اې څمونږ پروردګاره! په دوی کښې داسې یو رسول هم ولیږه چه ددوی نه وي چه دوی ته ستا د آیتونو تلاوت کوي او دوی ته د کتاب او دحکمت تعلیم ورکوي اودوی لره پاک کړي، بې شکه صرف او صرف ستا ذات داسې دې چه دچا اقتدار کامل دې او حکمت ئې هم کامل دې.

**خلاصه تفسير**

﴿رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيهِمْ رَسُولًا مِّنْهُمْ﴾ ائې زمونږ پروردګاره او [دامې هم دعا ده چه] په دې مسجد کښې [د خپل اولاد نه دکوم دپیداکیدو دپاره چه دعاکوی] هم په دوی کښې یو پغمبر هم مقرر کړې ﴾

[۱] تفسير البحر المحيط تحت هذه الآية: ۲/ ۹
[۲] تفسير البحر المحيط تحت هذه الآية: ۲/ ۹

﴿يَتْلُوا عَلَيْهِمْ آيٰتِكَ﴾ چې دې خلقو ته ستا ايتونه په لوستلو سره اوروى ﴿وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَيُزَكِّيهِمْ﴾ او دوى ته [دآسمانى] كتاب [د مضامينو] او [په دې كښې] دښكلې پوهې او طريقې حاصلولو تعليم وركوى او دوى [ددې تعليم او تلاوت په ذريعه دجهالت د خيالاتو او اعمالو نه] پاكوى ﴿إِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾ بيشكه صرف هم ته يې د غالب قدرت او كامل انتظام خاوند.

**د لغاتو حل** : ﴿يَتْلُوا عَلَيْهِمْ آيٰتِكَ﴾ مصدر تلاوة څخه مشتق دې، د تلاوت اصلى معنى اتباع او پيروى ده. د قرآن وحديث په اصطلاح كښې دا لفظ قرآن عظيم الشان دپاره او نور آسمانى كتابونو دپاره او دكلام الهى وئيلو دپاره استعماليږى. ځكه چې ځوك دا قرآن پاك وائى نو هغه به ددې مكمله اتباع كوى. څنګه چې دالله ﷻ دطرفه نازل شوې دې هغه شان ددې وئيل ضرورى دى. د خپله طرفه په دې كښې د يو لفظ يا حرف د حركاتو كمې بيشى كولو اجازت نشته دې. امام راغب اصفهانى رحمه الله په مفردات قرآن كښې فرمائى چې د الله ﷻ دكلام څخه سوا د بل كتاب يا كلام وئيلو ته په عرف كښې تلاوت نشى وئيلې.

﴿وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ﴾ دې كښې د كتاب څخه مراد كتاب الله دې. د الحكمة لفظ عربى لغاتو كښې ډيرو معنو دپاره استعماليږى. حق خبرې باندې رسيدل يعنى پوهيدل، عدل او انصاف، علم او حلم وغيره [قاموس] ([1]).

امام راغب اصفهانى رحمه الله ليكى چې د ا لفظ كله دالله ﷻ دپاره وئيلې كيږى نو ددې معنى د ټولو ځيزونو پوره معرفت او مستحكم ايجاد وى. او كله چې غير الله دپاره وئيلې كيږى نو د موجوداتو صحيح معرفت او نيك اعمالو دپاره وى. ترجمه شيخ الهند رحمه الله كښې ددې ترجمه ژورې خبرې، يا د بيخ خبرې، ددې څخه هم د امفهوم راوزى. او دحكمت لفظ عربئ ژبه كښې ډيرو معنو دپاره وئيلې كيږى. صحيح علم، نيك عمل، عدل او انصاف، صادق قول وغيره [قاموس و راغب].

په دې وجه دا كتل دى چې دې آيت مبارك كښې لفظ دحكمت څخه مراد څه دې؟ مفسرين صحابه كرام رضي الله عنهم او تابعين چې د قرآن عظيم الشان كوم وضاحت كوى نو هغه ئې د رسول اكرم ﷺ څخه زده كړې وى. دې ځائې كښې د حكمت د معنې بيانولو كښې اګر چې الفاظ مختلف دى خو خلاصه د ټولو يوه ده. يعنى سنت رسول ﷺ امام تفسير ابن كثير رحمه الله او ابن جرير رحمه الله د قتاده رضي الله عنه څخه هم دا تفسير نقل كړې دې. چا ورته تفسير قرآن او چا ورته تفقه فى الدين فرمائيلى دى. او چا ورته علم احكام وشرعيه وئيلى دى. او چا وئيلى دى چې دالله ﷻ دداسې احكامو علم چې د رسول اكرم ﷺ دبيان څخه معلوميدې شى. ظاهره ده چې ددې ټولو حاصل هم هغه دى يعنى حديث او سنت د رسول ﷺ ([2])

لفظ د ﴿يُزَكِّيهِمْ﴾ زكوة څخه مشتق دې. او ددې معنى ده طهارت او پاكى، او دا لفظ ظاهرى او باطنى هرې پاكئ دپاره وئيلې كيږى.

---

[1]) مفردات القرآن للاصفهانى: ١/ ١٢٧

[2]) تفسير الطبرى تحت هذه الآية: ٣/ ٨٦، ٨٧، وتفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ١/ ٤٤٤، ٤٤٥

## معارف او مسائل

**قوله تعالى:** ﴿رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيهِمْ رَسُولًا مِنْهُمْ﴾ ذکرشوی تشریح سره دآیت مفهوم واضح شوچه حضرت ابراهیم ﷺ دخپل راتلونکی نسل ددنیااو آخرت دکامیابۍ دپاره الله تعالی نه دادعااوغوښته چې زماپه اولادکښې یورسول راولیږې، چه هغوئ ته ستاآیتونه په تلاوت کولوسره واوروی، دقرآن اوسنت تعلیم ورکړی اوظاهری، باطنی گندونونه ئې پاک کړی، په دې حضرت خلیل الله ﷺ داسې دعااوکړه چې دغه رسول دهم زماداولادځنې ځکه وی چې اول خوداپوخوش بختی اوشرافت دې، بله داچه دغه خلقوته به دافائده وی چې دغه قوم او برادرئ ته به ئې دکړوورویته وی، خوئ خصلت نه به ئې خلق په ښه شان خبروی، په څه دوهوکه او فریب کښې به راگیرنه وی، په حدیث شریف کښې دی چې حضرت ابراهیم ﷺ ته ددې دعاجواب دالله تعالی له اړخه دا اوشوچه ستادعاقبوله شوه اودارسول به په آخری زمانه کښې رالیږلې شی (ابن جریر ﷺ وابن کثیر ﷺ) [۱]

**د رسول الله ﷺ دمبارك ځانګړتياوو (خصوصيات):** دمسند احمد[۲] په حدیث کښې دی چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې زه دالله تعالی په نزدهغه وخت هم خاتم النبیین ووم چې حضرت آدم ﷺ پیداشوې هم نه وو بلکه دهغه ﷺ خمبیرتیاریدواوزه تاسوته دخپلې معاملې شروع ښایم چې زه دخپل پلارحضرت ابراهیم ﷺ دعا، دحضرت عیسی ﷺ زیرې اودخپلې موربی بی دخوب دظاهریدوځائ یم، دحضرت عیسی ﷺ دزیری نه مراددهغوئ داقول دې ﴿مُبَشِّرًا بِرَسُولٍ يَأْتِي مِنْ بَعْدِي اسْمُهُ أَحْمَدُ﴾ اوموربی بی ئې دبارداری اوحمل په زمانه کښې داخوب لیدلې ووچه زما دخیټې نه یونوراووتوچه په هغې سره دشام محلونه اومانړې، بنګلې اوځلیدې او بریښنا ئې اوکړه، بیاپه قرآن کریم کښې درسول الله ﷺ دپیغمبرکیدوذکرکولوسره، په دؤو ځایونو سورت آل عمران [۱۶۴] اوپه سورت جمعه کښې هم داالفاظ دوباره کړې شوی دی چې دحضرت ابراهیم ﷺ په دعاکښې دلته ذکرشوی دی، په دې کښې ارشادمونډې شی چې حضرت ابراهیم ﷺ دکوم رسول، دراليږلودعاچه کړې ده هغه رسول هم محمد ﷺ دې، دآیت دالفاظوتشریح اوددې دمفهوم واضح کیدونه پس په دې غوراوکړئ،

**درسول ﷺ دلیږلودرې مقصدونه:** دسورت بقره په دې آیت کښې اودسورت آل عمران اوسورت جمعه په آیتونوکښې درسول الله ﷺ متعلق هم یومضمون په یوشان الفاظوکښې راغلې دې چې پکښې درسول الله ﷺ دنیاته تشریف راوړودرې مقصدونه یاپه نوروټکوکښې دهغوئ ﷺ دنبوت اورسالت دعهدې درې منصبی فرض بیان کړې شویدی ① تلاوت دآیتونو، ② دکتاب، اوحکمت تعلیم ورکول، ③ دخلقوداخلاقو صفائی وغیره،

**وړمبی مقصدآیتونوتلاوت:** دلته ړومبۍ خبره دځورنظرکولوړ اوجوګه ده، تلاوت الفاظوسره تړون لری اوتعلیم معانیوسره، دلته تلاوت اوتعلیم بیل بیل بیانولونه داحاصل شوچه دقرآن کریم معانی چې څنګه مقصودوی، ددې الفاظ هم ځان له مقصوددی، ددې تلاوت اوحفاظت کول فرض اوهم عبادت دې دلته داخبره هم دنظرجوګه ده چې درسول الله ﷺ بې واسطې اونیغ په

[۱] تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ۱/ ٤٤٤
[۲] مسند أحمد رقم الحدیث: ۷۷۳

نیغه شاګردان او خاص مخاطب خلق هغه حضرات ووچه په عربی ژبه نه صرف پوهیدل بلکه ددې ژبې فصیح،بلیغ خطیبان اوشاعران هم وو،دهغوئ په وړاندې عربی قرآن لوستل هم په ظاهره دهغوئ دتعلیم دپاره کافی وو،دبیلې ترجمې اوتفسیرورته ضرورت نه وو، نوبیا دآیتونوتلاوت یوبیل مقصداودکتاب الله تعلیم ځان له بل مقصددپیغمبرئ ګرځولوڅه ضرورت وو،ځکه چې دعمل په اعتبارسره دادواړه مقصدونه هم یوجوړیږی،چه پکښې ژورنظراوکړې شی دوه اهمې نتیجې به مخې ته راشی،① قرآن کریم دنورو کتابونوپشان داسې یوکتاب نه دې چې صرف معانی ئې مقصودوی اوالفاظ ئې په دویمه درجه کښې راځی په دې کښې که څه معمولی ادلون بدلون راوستې شی نوهیڅ باک نشی ګڼړلې اوددې په معنی باندې دپوهیدونه بغیرصرف دالفاظولوستل ئې بیخی بیکاره اوعبث وی بلکه دقرآن کریم الفاظ هم هغسې مقصوددی څنګه چې معانی ئې مقصوددی اوالفاظوسره ئې خاص خاص احکامِ شرعیه هم تړلی دی،هم داوجه ده چې اصولِ فقه کښې دقرآن کریم داتعریف کړې شوې دې،هوالنظم والمعنی جمعاً،[قرآن ددې دالفاظواومعانیؤدمجموعې نوم دې] دې نه معلومه شوه که دقرآن کریم الفاظ دقرآن مخصوصو الفاظونه علاوه په نوروالفاظویاپه بله ژبه کښې اولیکلې شی نوقرآن ورته نشی وئیلې،اګرچه مضامین بیخی صحیح اوټیک ټاک وی که په دغه بدل کړوالفاظوسره څوک مونځ اداکړی نوروا به نه وی داشان هغه ټول احکام به ددغې الفاظوپه باره کښې نافذنه وی چې دقرآن اصلی الفاظوپه باره کښې دی دغه شان ددې بدلوشوؤ الفاظودتلاوت ثوابونه به هیچرې نه وی چې کوم چې په صحیح احادیثو کښې راغلی دی اوهم دغه وجه ده چې دامت فقهاؤکرامود.قرآن کریم صرف ترجمه [بې دمتن نه] لیکل اوچاپ کول منع کړی دی چې په عرف کښې ورته داردو قرآن پاك یاانګریزئ قرآن وئیلې شی ځکه چې په حقیقت کښې داردویاانګریزی قرآن،قرآن نه دې،

خلاصه داده چې په دې آیت کښې درسول الله ﷺ یوفرض منصبی ځانله دآیتونوتلاوت اوګرځولې شواودې کښې اشاره دې ته اوکړې شوه چې څنګه دقرآن کریم معانی مقصوددی دغه شان الفاظ ئې هم مقصوددی ځکه چې تلاوت دالفاظوکیږی دمعانیؤنه کیږی،په دې وجه څنګه چې درسول الله ﷺ په فرائضوکښې دمعانیؤتعلیم داخل دې دغه شان دالفاظوتلاوت اوحفاظت هم یومستقل فرض دی،په دې کښې شبه نشته چې دقرآن کریم دنازلیدواصلی مقصددژوندپه هغه نظام باندې عمل کول دی کوم چې قرآن ښودلی دی اوددې په تعلیماتوپخپله پوهیدل اوبل پرپوهول هم ددې اصل مقصددې،صرف ددې الفاظوګرځول دقرآن کریم دحقیقت نه بې خبری اوددې بې قدری ده.

**دقرآن کریم الفاظ که بې پوهې هم اولوستې شی نوبیکاره نه دی بلکه دلوئ ثواب موجب دی**: لیکن داوئیل هم په هیڅ شان صحیح نه دی چې ترڅودقرآن کریم په معنی پوه نشی ددې الفاظ لکه دطوطی پشان لوستل بې فائدې دی،ددې خبرې وضاحت ځکه کوم چې نن صبا، ډیر حضرات قرآن کریم لره په نوروکتابونوقیاس کوی اوداګڼړی چې ترڅودیوکتاب په معنی نه پوهیږی نودهغې صرف الفاظ لوستل یالولول [با چاته خودل] وخت ضائع کول دی،خودقرآن کریم په باره کښې ددوئ داخیال صحیح نه دې،ولې چې قرآن، د الفاظو او معانیؤدو اړودمجموعې نوم دې څنګه چې ددې په معانیؤپوهیدل اوددې په ورکړو حکمونوعمل کول فرض اواعلی عبادت دې

دغه شان ددې دالفاظو تلاوت کول هم يوځان له عبادت اولوئ ثواب دې،

**دويم مقصد دکتاب الله تعليم** ② هم دغه وجه ده چې رسول کريم ﷺ پخپله اوصحابه کرام رضی اللہ عنہم چې دټولونه زيات دقرآن کريم په معانيؤپوهيدونکي ووهغوئ يواځې ددې په معنی پوهيدل اوپرعمل کول کافي اونه ګڼړل،ولې چې پرې باندې دپوهيدلواودعمل کولودپاره خويوځل لوستل کافي ووبلکه ټول عمر ئې دقرآن کريم تلاوت دغاړې تعويذجوړکړې وو،ځنې صحابه کراموبه امروزه او روزانه يوځل قرآن کريم ختمولو،ځنوبه دؤوورځوکښې او اکثر حضراتو په درې ورځوکښې دقرآن کريم دختمولوعادت وواوپه هره هفته کښې خودقرآن کريم دختم کولو دپوره امت معمول پاتې شوې دی،چنانچه دقرآن کريم اووه منزلونه ددې هفته وارئ نخښې دی،درسول کريم ﷺ اودصحابه کرامو رضی اللہ عنہم داعمل ښائي چې څنګه دقرآن کريم په معانيؤځان پوهول اوعمل پرکول اصلي عبادت دې،دغه شان ددې دالفاظوتلاوت هم په خپل ځائ يواعلی عبادت،دانواراوبرکاتوموجب،دخوش بختئ اونجات سرمايه ده،په دې وجه د رسول الله ﷺ په منصبي فرائضوکښې آيتونولوستلوته يومستقل حيثيت ورکړې شو،مقصد داد ې چې کوم مسلمانان سمدستي او في الحال دقرآن کريم په معانيؤنه پوهيږي، هغه ته دابدنصيبي په برخه نشي چې الفاظودقرآن لره فضول اوعبث ګڼړلوسره ددې نه محرومه پاتې شي،داکوشش جاري ساتل پکاردي چې دقرآن کريم په معانيؤځان پوه کړي چې دقرآن کريم حقيقي انواراوبرکات اوګوري اودقرآن دنازليدواصلي مقصدپوره شي [معاذالله] قرآن کريم لره صرف دچف دم په غرض دجنترمنترپشان يو څيزاونه ګڼړي اوداقبال مرحوم په قول،سورت يسين لره صرف دې کاردپاره اونه ګڼړي چې ددې په لوستلوسره دمړکيدونکي ساه په آسانه خيژي،

**دقرآن پاك د پوهې دپاره صرف عربي ژبه زده کول کافي نه دي:** خلاصه دخبرې داشوه چې دې آيت کښې تلاوت دآيتونوهم درسول ﷺ يومستقل فرض بيان کړې شويدی په دې سره داخبرداري ورکول دی چې دقرآن کريم دالفاظوتلاوت،حفاظت اوصحيح ادا کول په هغه لب ولهجه کښې ئې لوستل يومستقل فرض دی په کومه کښې چې دانازل شويدی،تلاوت دآيتونوسره ئې تعليم دکتاب يوبل مستقل فرض ګرځول،يوبله اهمه نتيجه داراوباسی چې په قرآن کريم دپوهيدلو دپاره صرف په عربي ژبه پوهيدل کافي نه دی بلکه درسول الله ﷺ دتعليم ضرورت دی،لکه څنګه چې دټولوعلوموفنونوپه باره کښې داخبره معلومه اوليدلې شوې ده چې ديوفن په کتاب دپوهيدلو دپاره صرف دهغې په ژبه پوهيدل کافي نه دی بلکه پکښې ماهرکيدل هم کافي نه دی ترڅوچه داديوماهراستاذ نه حاصل نکړې شي مثلاًنن صبادجرمني اوانګريزئ ډاکټرئ کتابونه عموماپه انګريزي ژبه کښې ليکلي شوی دی خوهرڅوک پوهيږي چې يواځې په انګريزي ژبه پوهيدلواودډاکټرئ دکتابونومطالعه کولوسره هيڅوک ډاکټرنشي جوړيدې، د انجنيرئ صرف کتابونولوستلوسره څوک انجنيرنشي جوړيدې،غټ غټ فنون اولوئ لوئ کاريګرئ خولاخه کوې دژوندتيرولوامروزه او روزانه کارونه، داستاذنه چې ازده نکړې شي محض دکتاب په لوستلوسره نشي حاصليدې،نن خود هر کارکسب باره کښې په سوؤنو کتابونه ليکلې شوی دی،دفوټواوعکس ورکولوپه ذريعه دکارونوازده کولوطريقې ښودلې شوی دی خوددغې کتابونوپه لوستلونه څوک درزي جوړيدې شی،نه اشپزيالوهار،که يوفن حاصلولودپاره ددغې فن په کتاب صرف پوهيدل کافي وې نوددنياټول فنون به هغه چاته

حاصل شوی ووځوک چې ددغې کتابونوپه ژبه پوهیدلې، هرروغ موټ بنده سرسترګې لری که هغه سوچ فکر اوکړی نودابه اوګنړی چې معمولی فنون ازده کولواوپه هغې پوهیدلودپاره صرف دهغې کتابونوپه ژبه پوهیدل کافی نه بلکه داستاذدورازده کولوپکښې ضرورت وی، نودقرآن کریم مضامین، چه علوم الهیه نه واخلې ترطبیعاتواوفلسفې پورې هرقسم ژوراوباریک علوم پکښې شامل دی، صرف دعربی په ژبه پوهیدلوسره څنګه حاصلیدې شی، که داسې وې نوهرعربی دان بنده به دقرآنی علوموماهر ګنړلې شوې وې اودعربوپه زرګونویهودیان اونصرانیان دعربۍ ژبې ماهران اوادیبان به دټولونه لوئ مفسرقرآن منلې شواوداشان درسالت دزمانې ابوجهل اوابولهب به دقرآن کریم ماهران ګنړلې شوې،

غرض داچه تلاوت دآیتونودقرآن، اوتعلیم دکتاب الله هرکله چې ځان ځان له، بیل بیل درسول ﷺ مستقل فرض اوښودلې شونوداخبره په ډاګه شوه چې صرف دآیتونوتلاوت آوریدل په عربۍ ژبه پوهیدونکودپاره هم کافی نه دی بلکه یواځې درسول الله ﷺ دتعلیم په ذریعه، دقرآنی تعلیم صحیح علم حاصلیدې شی، که دادرسول نه جداکړې شي اوپخپله پر د پوهیدلو دعوی ځوک اوکړی نوداسې کسان په سخته دوکه کښې دی، که دقرآنی مضامینو د ورازده کولوضرورت نه وې نوبیا د کتاب رسول رالیږل هم ضروری نه وو، دالله پاک په نورو طریقوسره هم انسانانوته رسولې شو، خوالله تعالی علیم اوحکیم پوهیږی چې دقرآنی مضامینو دورازده کولواوپرې باندې دپوهولودپاره ددنیادنوروعلوموا و فنونوپه نسبت داستاذدزدکړې ورکولو ته زیات ضرورت دې، اودلته عام استاذهم کافی نه دې بلکه ددې مضامینو استاذ صرف هغه ځوک کیدې شی چې الله تعالی سره ئې د وحی په ذریعه دخبروکولوتعلق وی چې په اسلامی اصطلاح کښې ورته نبی یارسول وئیلې شی، په دې وجه په قرآن کریم کښې درسول الله ﷺ دنیاته درالیږلومقصددا اوګرځولې شوچه هغه به دقرآن کریم دمعانیؤاواحکاموواضح بیان کوی لکه دباری تعالی ارشاددې: ﴿لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ﴾ [تاسو ﷺ لره مونږ، دې دپاره لیږلې دې چې دخلقوپه وړاندې دالله تعالی دنازل کړو آیتونو مطالب بیان کړې] دکتاب زدکړې ورکولوسره ددوئ په فرائضو کښې دحکمت زدکړه ورکول هم شامل کړې شوی دی، په دې مامخکښې هم وئیلی دی چې دعربی ژبان له مخه ددې اګرچه ګنړې معنې کیدې شی لیکن په دې آیت کښې اوددې قسم په نوروآیتونوکښې صحابه کرامو ﷺ اوتابعینودراغلی حکمت تفسیردرسول الله ﷺ په سنت سره کړې دې، دې سره داخبره په ډاګه شوه چې درسول الله ﷺ په ذمه، څنګه چې دقرآن معانی ښودل اوورازده کول فرض ګرځولې شوی دی، دغه شان د پیغمبرانه تربیت أصول اوآداب [چه نوم ئې سنت دې]ددوئ ﷺ په فرائض منصبی کښې شامل دی، هم دغه وجه ده چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل: إِنَّمَا بُعِثْتُ مُعَلِّماً(¹) زه دیوزد کړې ورکوونکی په حیث رالیږلې شوې یم] دې سره داخبره واضحه شوه چې هرکله دوئ ﷺ دیومعلم په حیث راولیږلې شونودامت دوجودمقصدطالب علم کیدل لازمی اوګرځیدل ځکه چې هریومسلمان [انرښځه] طالب علم وی چې درسول الله ﷺ تعلیماتوسره ئې پوره تړون وی، که علوم قرآنی اوسنت په مکمل ډول ځوک نشی حاصلولې اوپه دې کښې دمهارت حاصلولوهمت اوفرصت نه لری نوکم ناکم د ضرورت په قدر، دعلم حاصلولوفکرخوئې ملګرې کیدل پکاردی،

¹) سنن ابن ماجة، باب فضل العلماء والحث على طلب العلم: ۱/ ۲۱

**دریم مقصد تزکیه سده**: درسول الله ﷺ دفرائض منصبی څنې یوفرض ئې تزکیه هم ده چې معنی ئې دظاهری اوباطنی پلیتونه پاکول هم دی،ظاهری پلیتونه خوعام مسلمانان واقف دی، او باطنی پلیتئ کفر،شرک،په غیرالله باندې سراسر تړوله تکیه کول، فاسد اعتقادونه، تکبر، حسد،بغض ددنیامحبت وغیره دی،اګرچه په علمی ډول دقرآن اوسنت په تعلیم کښې ددې ټولوڅیزونوبیان راغلې دې خوددې نه علاوه ئې تزکیه یوبل مستقل فرض ګرځول دې ته اشاره کول دی چې څنګه یواځې په الفاظو پوهیدلوسره ئې یوفن حاصلیدې نشی،دغه شان په علمی اونظری شان سره دیوفن په حاصلولوسره ددې استعمال اوکمال نشی حاصلیدې ترڅوچه دیوتربیت کوونکی دنګرانئ لاندې په مشق کولوسره ددې عادت وانخلی چنانچه سلوک اوتصوف کښې دیوکامل شیخ دتربیت هم دامقام دې چې قرآن اوسنت کښې کوم احکام چې په علمی توګه ښودلې شوی دی دهغې په عملی ډول عادت واچولې شی.

**دهدایت اواصلاح دوه سلسلې کتاب الله اورجال الله**: ددې سلسلې دوه نورې خبرې دکتنې وړدی، الله تعالی دشروع نه دانسانانودهدایت اواصلاح دپاره همیشه په هره زمانه کښې خاتم الانبیاء ﷺ پورې دوه سلسلې جاری لرلې دی،① دآسمانی کتابونو،② ددې دتعلیم ورکولورسولانو، څنګه ئې چې یواځې کتاب رالیږل ئې کافی اونه ګڼل،داسې ئې یواځې په رسولانو رالیږلوهم بس والې اونکړوبلکه دواړه سلسلې ئې په مخه جاری اولرلې،دالله جل شانه،دې عادت او دقرآن کریم ګواهئ دقومونودښیګړې اوکامیابئ دپاره دادواړه سلسلې یوشان جاری لرلوسره د یو لوئ علم دروازه پرانسته [خلاصه کړه] هغه داسې چې دانسان دصحیح تعلیم اوتربیت دپاره نه یواځې کتاب کافی دې اونه یواځې تربیت ورکوونکې انسان،بلکه یواړخ ته دآسمانی هدایاتو اوالهی قوانینوضرورت دې چې نوم ئې کتاب یاقرآن دې،بل اړخ ته دیومعلم اوتربیت ورکوونکی انسان ضرورت دې چې په خپل تعلیم اوتربیت سره،عام انسانان دآسمانی هدایاتونه خبرکړی اوددې ئې عادت کړی،ولې چې دانسان اصل معلم یواځې انسان کیدې شی، کتاب، معلم اومربی نشی جوړیدلې البته تعلیم اوتربیت کښې مددګارضرورجوړیږی،

هم دغه وجه ده چې څنګه داسلام ابتداء دیوکتاب اویورسول نه اوشوه اوددې دواړویوتربله ګډون یوصحیح اواعلی مثالی معاشره یې په دنیاکښې پیداکړه،دغه شان راتلونکو نسلونو دپاره یواړخ ته د شریعت مطهره اوبل اړخ ته درجال الله سلسله جاری ده چنانچه قرآن کریم ځائ په ځائې ددې هدایات ورکړی دی یوځائ کښې ارشاددې،

**قوله تعالی**: ﴿ يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَكُونُوا مَعَ الصَّدِقِينَ﴾ اې دایمان خاوندانوالله نه اوویریږئ اوصادقانوسره کیږئ،بل ځائ کښې ئې دصادقانوتعریف اواوصاف داسې بیان کړی دی،

**قوله تعالی**: ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ صَدَقُوا وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُتَّقُونَ﴾ اوهم داخلق رشتینی دی اوهم داخلق پرهیزګار دی.

**دقرآن کریم خلاصه**: دپوره قرآن خلاصه سورة فاتحه ده اودسورت فاتحه خلاصه دصراط مستقیم هدایت دې دغلته هم دصراط مستقیم دنخښې پته ورکولوپه ځائ ئې دخدائی خلقوپته ورکړه چې ددې خلقونه صراط مستقیم حاصل کړئ،یعنی داسې ئې اونه فرمائیل چې صراط مستقیم صراط القرآن صراط الرسول یا صراط السنة دې،بلکه داسې ئې اوفرمائیل چې صراطِ مستقیم دوئ نه حاصل کړئی لکه ارشاد دې چې: ﴿صِرَاطَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ

عَلَيۡهِمۡ وَلَا ٱلضَّآلِّينَ ﴾ صراط مستقيم دهغه خلقولارده چې پرِ الله تعالى انعام شوي دي نه دهغه خلقوچه غضب پرشوي دي اونه دهغوچه گمراه شويدى،

بل ځائ كښې ددې خلقوزيات وضاحت په قرآن كښې راغلي دي اوداشان په گته كړې شوى دى، ﴿فَأُوْلَٰٓئِكَ مَعَ ٱلَّذِينَ أَنۡعَمَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِم مِّنَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ وَٱلصِّدِّيقِينَ وَٱلشُّهَدَآءِ وَٱلصَّٰلِحِينَ﴾(۱)

داشان رسول الله ﷺ دراتلونكي امت دپاره څه نومونه اوټاكل اوپه دينى معاملاتوكښې ئې دهغوئ دتابعدارئ كولوهدايت اوفرمائيلولكه دترمذي شريف په صحيح حديث كښې راغلى دى، يَا أيها الناس انى تركت فيكم ما ان اخذتم به لن تضلوا كتاب الله وعترتى اهل بيتى(۲)، اې خلقو[زمانه پس] درته دوه څيزونه پريږدم داتينگ لرئ نوهيچرې به گمراه نشئ، يوكتاب الله، بل زمااولاداواهل بيت، اودصحيح بخارى په يوحديث كښې داسې راغلى دى: اقتدوابالذين من بعدي ابى بكروعمر(۳) زمانه پس دابوبكر ﷺ اوعمر ﷺ تابعدارى كوئ،

اوپه يوبل حديث شريف كښې راغلى دى: عليكم بسنتي وسنة الخلفآء الراشدين،(۴) زماطريقه اختيار كړئ اود خلفائ راشدينو طريقه اختيار كړئ،

**د قومونو اصلاح دپاره دوه څيزونه:** خلاصه دخبرې داشوه چې دقرآن كريم ددې هداياتواودرسول كريم ﷺ ددې تعليماتونه داخبره ښه په ښكاره ډول واضحه شوه چې دقومونود اصلاح اوتربيت دپاره په هرې صدئ اوهره زمانه كښې دوه څيزونه ضرورى دى، ① قرآنى هدايات ② اوپه دې دپوهيدواوپرې باندې دعمل كولوسليقې او طريقې حاصلولو دپاره دشريعت ماهران او د خدائى خلقوتعليم اوتربيت كه په مختلفوعلوموداودې دزده كړې كولواو وركولوپه طريقو د تنقيد نظرواچولې شى نومعلومه به شى چې دتعليم اوتربيت داذكرشوى اصول يواځې دين اودنياتوپورې اړه نه لرى بلكه دټولوعلومو، فنونوصحيح تحصيل هم په دې بنادې چې يواړخ ته ددې بهترين كتابونه وى اوبل اړخ ته دماهرانوتعليم اوتربيت وى، چنانچه دهرعلم او فن د ترقئ اوتكميل هم دغه دوه اړخونه دى ليكن په دين اودنياتوكښې ددې دواړواړخونونه په فائدو پورته كولوكښې ډير خلق دزياتى كمى غلطه لاراختياروى چې نتيجه ئې فائدې په ځائ زيان اود اصلاح په ځائ فسادوى،

**دخلاف شريعت علماء، پيرانو اتباع مذمومه ده:** ځنې خلق كتاب الله شاته كړى اوصرف علماء او پيران د مقصودقبله جوړوى اودشريعت دتابعدارئ تحقيق ئې دسره نه كوى څنگه چې دا د يهودو اونصارااؤاصلى مرض دې لكه ارشاددې،

﴿ٱتَّخَذُوٓاْ أَحۡبَارَهُمۡ وَرُهۡبَٰنَهُمۡ أَرۡبَابٗا مِّن دُونِ ٱللَّهِ﴾ دوئ دالله تعالى نه سيواخپل علماء اوپيران معبودان اودمقصودقبله جوړكړل،

داپه ښكاره دكفراوشرك لارده، په لكونوخلق دې لاركښې بربادشول اولگيادى بربادېږى، ددې په مقابله كښې ځنې هغه خلق هم دى چې دقرآن اوحديث په علوموحاصلولوكښې

---

۱ ) ترجمه: هغوى به دوى سره وى په كومه چه الله تعالى انعام كړى دى يعنى انبياء كرام، صديقين، شهداء او صالحين.
۲ ) ترمذي، أبواب المناقب، باب مناقب أهل البيت: ۲/ ۲۱۹
۳ ) مشكوٰة، باب مناقب أبي بكر وعمر رضى الله عنهما ۲/ ۵۶۰
۴ ) مشكوٰة، باب الاعتصام بالكتاب والسنة: ۱/ ۳۰

دجامعلم یاتربیت ورکوونکی دسره څه ضرورت نه ګڼړی هغوئ وائی چې مونږلره صرف دالله تعالی کتاب کافی دې، دماهرینوعلماؤاوتربیت موندونکوپیرانوضرورت راته نشته، دایوبله داسې ګمراهی ده چې نتیجه ئې دین اوملت نه وتل اودنفسانی غرضونوښکارکیدل دی ځکه چې دماهرینو د امداداومرستې نه بغیردیوفن په صحیح شان سره حاصلیدل دانسانی فطرت نه خلاف دی، داسې کوونکې یقیناًدغلط فهمیانوښکارکیږی چې هغه ئې ددین اوملت نه بیخی بهرته اوباسی،

نوضرورت ددې خبرې دې چې دادواړه څیزونه په خپلو مقاماتو اوحدودوکښې اوساتلې شی او فائده تروا غستې شی یعنی دااوګڼړلې شی چې اصل حکم یواځې دوحده لاشریک له ذات دې او فرمانبرداری هم په اصل کښې ددې ذات ده، رسول ﷺ هم په دې دعمل کولو اوبل لره په دې لارد روانولو یوذریعه ده، درسول ﷺ فرمانبرداری هم په دې نظرسره کولې شی چې دابعینه دالله تعالی فرمانبرداری ده، البته په قرآن اوحدیث باندې پوهیدواوددې په احکامو باندې د عمل کولوکښې چې کوم علمی یاعملی مشکلات مخې ته راشی نودې دپاره دماهرانودقول اوفعل نه امداداغستل دخوش بختئ او نجات پنګه ګڼړل ضروری دی، په تیرشوی آیت کښې درسول مقبول ﷺ په فرائضومنصبی کښې دکتاب تعلیم داخلولوسره یوبله فائده داهم حاصلیږی چې هرکله په قرآن دپوهیدودپاره درسول تعلیم ورکول ضروری دی چې دې نه سواپه قرآن کریم باندې صحیح عمل کول ناممکن دی، اوځنګه چې قرآن کریم ترقیامته پورې محفوظ دی، هریوزورزیرئې محفوظ دې، نوضروری ده چې درسول الله ﷺ تعلیمات دهم په مجموعی شان کښې ترقیامته باقی اومحفوظ پاتې وی، ورنه یواځې دقرآن دالفاظو دمحفوظ پاتې کیدلوسره دنزول قرآن اصل مقصدنه پوره کیږی، اوداخبره هم واضحه ده چې درسول الله ﷺ تعلیمات هغه دی چې سنت یاحدیث رسول ورته وئیلې شی، دالله جل شانه له اړخه ددې دحفاظت وعده اګرچه په هغه درجه کښې نه ده په کومه درجه کښې چې دقرآن کریم دحفاظت وعده شوې ده لکه فرمائی:

**د قرآن پاک دحفاظت وعده:** **قوله تعالی:** ﴿إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ﴾ هم مونږه قرآن کریم نازل کړې دې اوهم مونږه ددې حفاظت کوونکی یو، اوهم ددې وعدې په نتیجه کښې ددې الفاظوخولاڅه کوې چې زور، زیرپورې ئې محفوظ راروان دی اوترقیامته پورې به هم دغه شان محفوظ پاتې کیږی، په دې بنادسنت رسول ﷺ الفاظ اګرچه دغه شان محفوظ خونه دی مګرددې آیت له مخه په مجموعی حیثیت سره ئې تعلمیات محفوظ پاتې کیدل لازمی دی، اوالحمدالله ترننه پورې محفوظ راروان دی، چرته نه هم چې په دې کښې څه خاشې وغیره راؤغورځولې شو یا غلط روایتونه پکښې ګډ کړې شونودسنت ماهرانولکه مچ دغوړونه بیخی بهرته اوغورځولو او ترقیامته پورې به داسلسله جاری وی، رسول الله ﷺ اوفرمائیل: زماپه امت کښې به داهلِ حق اواهلِ علم داسې یوجماعت قائم پاتې کیږی، چه قرآن کریم اوحدیث به په صحیح شان محفوظ ساتی اوپه دې کښې به دهرې اچولې شوې رخنې او خنډ اصلاح کوی(۱)،

(۱) صحیح مسلم، کتاب الامارة، باب قوله صلی الله علیه وسلم لا تزال طائفة: ۲/ ۱٤۳، ۱٤٤

خلاصه ئې داشوه چې هرکله په قرآن کریم باندې دعمل کولودپاره درسول الله ﷺ تعلیم ضروری دی اوپه قرآن باندې عمل کول ترقیامته پورې فرض دی نولازمه ده چې درسول الله ﷺ تعلیمات دهم تر قیامته پورې باقي اومحفوظ وي، ځکه په آیت کښې درسول الله ﷺ دتعلیماتوترقیامته پورې دباقي محفوظ پاتي کیدوپیشنګوئ هم موجودده، چه الله تعالی تراوسه پورې دصحابه کرام ﷡ او ماهرعلماؤاومستند کتابونوپه ذریعه محفوظ ساتلې دی، دې سره دهغه دجل اوالحادحقیقت رابرسیره کیږي چې نن صباځنې خلقوداسلامی احکامو څخه ځان بچ کولودپاره دابهانه جوړه کړې ده چې داحادیثوموجوده ذخیره غیرمحفوظ او ناتسلي بخش ده، داسې خلقوته دمعلومه وي چې که داحادیثو په ذخیره اعتمادپاتې نشي نوپه قرآن کریم به هم داعتمادڅه ګنجائش پاتې نشي،

په تیرشوی آیت کښې درسول الله ﷺ دریم فرضِ منصبی تزکیه ګرځولې شوې ده، تزکیه داده چې باطنی پلیتواوګندونونه پاکی راوستلې شي یعنی دشرک، کفر، عقائد فاسده، خرابو خویونو، تکبر، حرص، طمع، بغض، حسد، دمال اومرتبې وغیره دمحبت نه پاکی راوستې شي،

**دانسان داصلاح دپاره صرف صحیح تعلیم هم کافي نه دې ورسره اخلاقي تربیت ضروري دی:** د تعلیم نه تزکیه جداراؤړل اودې لره یومستقل مقصددرسالت اود رسول ﷺ یومستقل فرضِ منصبی ګرځولوکښې دې اړخ ته اشاره ده چې تعلیم که هرڅومره صحیح وی خویواځې په دې سره عادتاد اخلاقواصلاح نشي کیدې ترڅوچه دیوتربیت موندونکی مربی په نګرانئ کښې عمی تربیت حاصل نکړې شي، ځکه چې تعلیم په حقیقت کښې نیغه اوصحیح لاربنائی خومنزلِ مقصودته رسیدودپاره یواځې لارپیژندل کافي نه دی څوپورې چې ملاونه تړی، قدمونه وانخلي اوپه لاررروان نشي خودملا تړلو[همت] نسخه داهلِ همت دصحبت اوتابعدارئ نه سِوابله نه ده ورنه په هرڅه دپوهیدواودهرڅه پیژندلوباوجودهم حالت داسې وي،

*جانتاہوں ثوابِ طاعتِ زہد　　پر طبیعت ادہر نہیں آتی*

دعبادت اوزهدثواب اګرچه پیژنم، خوطبیعت مې ورسره سمون نه خوری،

**د نیک صحبت ضرورت او فائده:** په څه کتاب لوستلویاپرې باندې پوهیدلوسره دعمل همت اوتوفیق نه پیداکیږي، ددې یواځې داتدبیر کیدې شي چې دخدائی خلقوصحبت اختیارکړې شي اودهمت تربیت ترحاصل کړې شي اوهم دې ته تزکیه وئیلې شي، هرکله چې تزکیه ئې درسالت یوبیل مستقل مقصداوګرځولونوداسلام دتعلیماتویو ښکاره خصوصیت ئې اوښودلو، ولې چې صرف تعلیم اوظاهری تهذیب، په هرقوم اوهرملت کښې په څه ناڅه شان، په کاملې یا ناقصې طریقې سره ضروری ګنړلې شی، په هرمذهب، ملت اوتولنه کښې، داپه انسانی ضروریاتو کښې داخل ګنړلې شی، په دې کښې داسلام یوسرګندخصوصیت دادې چې دې صحیح مکمل تعلیم پیش کړوچه دانسان انفرادي ژوندنه واخلې دکورنی اجتماعی ژوند، یو تربله دقبیلواوقامونوژونداوبیاهم ددې نه پورته دسیاسی اوملکی ژوندنه راچاپیره دې او بهترین نظام لری چې مثال اونظیرئې په نوروقومونواوملتونوکښې نشي موندلې، دې سره داخلاقوپاکیزګی، او باطنی پاکوالې داسې یوکاردې چې عامو قومونواوتولنوشاته غورځولې دې دانسانی قابلیت او صلاحیت معیاردهغې تعلیمی ډګرئ ګنړلی شی اوهم ددغې ډګریانوپه جوړدانسانانوقدرکمیږی او زیاتیږی خواسلام، تعلیم سره د تزکئې ضمیمه اولګوله اودتعلیم

اصل مقصدئي پوره کړو،
کوم خوش نصیبه خلق چې درسول الله ﷺ په وړاندې دهغوئ په نګرانئ کښې تعلیم حاصل کړونو ورسره ورسره دهغوئ باطنی پاکی هم راوستې شوه دغه جماعت دصحابه کرامو ﷺ د هغوئ ﷺ په تربیت کښې تیارشو، یوطرف ته دهغوئ دعلم وحکمت دژوروالی داحالت ووچه دټولې دنیافلسفې دهغې مخې ته دګرد پشان والوتې اوبل اړخ ته دباطنی پاکیزګئ اوالله تعالی سره دتعلق اوپه الله داعتمادئې دادرجه وه چې پخپله قرآن کریم په داسې الفاظوکښې بیان کړیده:

قوله تعالی: ﴿وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ تَرَاهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا﴾ اوهغه خلق چې دوئ سره دی په کافرانوسخت اوپه خپل منځ کښې رحم کوونکی دی ته به دوئ لره رکوع کوونکی اوسجده کوونکی وینې، دوئ دالله تعالی فضل اودهغه رضامندی لټوی،

هم داوجه ده چې دوئ به کوم خواتلل فتح اونصرت به ئې قدمونه ښکلول، دپروردګارتائیدبه دوئ سره ؤو، دهغوئ حیرانوونکی کارنامې چې نن هم دهریوباطل اوګمراه قوم ذهنونه ئې مرعوب کړی دی، دادهغې تعلیم اوتزکئې اعلی نتیجې دی، نن خوپه دنیاکښې دتعلیم ښه کولودپاره دنصابونوپه تبدیلئ اوترمیم باندې ټول خلق لګیا دی لیکن دتعلیم روح سمولوته دهیچامخه نه ده چې دمدرس اومعلم اخلاقی حالت اومصلحانه تربیت اوکتلې شی اوپه هغې زوروړکړې شی، ددې نتیجه داراووته چې دزرګونوکوششونونه پس هم داسې مکمل انسانان نه پیداکیږی چې دهغوئ ښکلی اخلاق په نورو اثرغورځولې شی اودنوروتربیت اوکړې شی،

دایوښکاره حقیقت دې چې استاذان دکوم علم وعمل، اخلاق اوکردارخاوندان وی دهغوئ نه لوستونکی طالب علمان به زیات نه زیات هم دهغوئ پشان پیداکیدې شی په دې وجه تعلیم لره مفید اوغوره جوړولودپاره، دنصابونودتدوین اوترمیم نه زیات ددې نصاب دلولونکوپه علمی، عملی اخلاقی حالاتو باندې نظراچول ضروری دی،

تردې درسالت اونبوت ددرې مقاصدوبیان وو، په آخره کښې په لنډو، داهم واورئ چې سرداردوعالم ﷺ ته چې کوم درې فرائض منصبی سپارلې شوی وو، هغه دوئ ﷺ ترکومه حده پوره کړل، ددې په پوره کولوکښې دوئ ﷺ ترکومه حده کامیاب شو، دې دپاره دومره پیژندل کافی دی چې رسول الله ﷺ هرکله چې لادنیانه سفرنه ووکړې هغه وخت دتلاوت دآیاتونودادرجه وه چې تقریباپه ټوله جزیرة العرب کښې لوستلې شو، په زرګونودقرآن کریم حافظان موجودوو، په سوونوداسې صاحبان ووچه روزانه یاپه درې ورځوکښې به ئې قرآن کریم ختمولودکتاب اوحکمت دتعلیم دامقام وو:

یتیمے که ناکرده قران درست　　　کتب خانه چند ملت بشست

چه ددنیاټولې فلسفې دقرآن کریم په وړاندې بې اثره او بیکاره پاتې شوې وې، دتورات او انجیل بدلې کړې شوې صحیفې افسانې جوړې کړې شوې وې، قرآنی اصول به دعزت اوشرافت معیارمنلې شودتزکئې داحالت ووچه هرقسم بداخلاقی کوونکی خلق د اخلاقو سمولو او ښائیسته کولواستاذان جوړشو، دبد اخلاقیو مریضان نه یواځې روغ بلکه کامیاب علاج کوونکی اومسیحاجوړشوی وو، لار شکوونکی او ډاکه مار خلق، رهبران جوړشوی وو، بت پرست خلق دایثاراوهمدردئ نمونې جوړې شوې وې، د تیزخوئې اوجنګیالی توب ځائ نرمئ

اوصلح اغستي وو ،غله اوډاکوان دخلقو دمالونو سارندوال او ساتوونکي جوړ شوی وو ،

**دحضرت خليل الله ددعا تكميل:** غرض داچه حضرت خليل الله عليه السلام چي دکومومقصدونودپاره دعافرمائيلي وه اورسول الله ﷺ دهغې دمکمل کولودپاره ليږلي شوې وو هغه درې واړه مقصدونه هم دهغوئ په ژوندمبارک کښې په ښکاره ډول کامياب اوپوره شو ،ددوئ ﷺ نه پس ددوئ ﷺ صحابه کرامو رضي الله عنهم خود مشرقه نه ترمغربه اوشمال نه ترجنوبه پورې په ټوله دنيا کښې عام کړل ، فصلى الله عليه وعلى آله واصحابه اجمعين وسلم تسليما كثيرا بعدد من صلى وصام وقعد وقام ،

وَمَنْ يَّرْغَبُ　عَنْ مِّلَّةِ　اِبْرٰهِيْمَ　اِلَّا　مَنْ　سَفِهَ نَفْسَهٗ ط　وَلَقَدِ

اوڅوک دي چي نفرت اوکړي | دطريقې | دابراهيم نه | مګر | هغه څوک | چي بيوقوف کړي ئې وی خان خپل | اوحقيقت دادې

اوڅوک دې [يعنی نشته] چي مخ واړوی دملت ابراهيمی نه بغير دهغه چانه چي خپل خان ئې کم عقل کړې وی

اصْطَفَيْنٰهُ　فِي الدُّنْيَا ۚ　وَاِنَّهٗ　فِي الْاٰخِرَةِ　لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ۝

چي غوره کړې وو مونږ هغه لره | په دنيا کښې | او بيشکه وی به هغه | په آخرت کښې | داوچتونيکانو نه

اومونږ هغه [ابراهيم] په دنيا کښې هم غوره ګرځولې وو | اوپه آخرت کښې به هم دنيکانو په ډله کښې شمير وی

اِذْ　قَالَ　لَهٗ　رَبُّهٗٓ　اَسْلِمْ ۙ لا　قَالَ　اَسْلَمْتُ

کله چي اووئيل | هغه ته | رب خپل | چي تابعدار شه | نو اووئيل هغه | چي زه تابعدار شوم ۰

[داحال وو] چي الله ورته اوفرمائيل چي [خما حکم ته] غاړه کيږده هغه [زر] اووئيل چي ما غاړه ايښودې ده

لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝　وَوَصّٰى　بِهَآ　اِبْرٰهٖمُ　بَنِيْهِ　وَيَعْقُوْبُ ط

دمالك دکائناتو | او وصيت کړې وو | په دې سره | ابراهيم عليه السلام | اولاد خپل ته | او يعقوب هم

هغه چاته چي د ټول جهان مالک دې | اوبيا ددې خبرې وصيت ابراهيم اود [هغه نمسی] يعقوب خپل اولاد ته هم کړې وو

يٰبَنِيَّ　اِنَّ اللّٰهَ　اصْطَفٰى　لَكُمُ　الدِّيْنَ　فَلَا تَمُوْتُنَّ

چي اے بچو زما | بيشکه چي الله | غوره کړې دې | ستاسودپاره | دادين | نومه مرئ تاسو |

چي اې خما خامنو الله تعالی ستاسو دپاره دين [اسلام] غوره کړې دې نو [خبردار] تاسو مه مرئی

اِلَّا　وَاَنْتُمْ　مُّسْلِمُوْنَ ۝ ط

مګر په داسې حال کښې | چي يئی تاسو | مسلمانان |

مګر هله چي مسلمانان يئ [هروخت مسلمانان اوسيږئی] |

**آسان ترجمه قرآن**

اوڅوك دي چه د ابراهيم عليه السلام د طريقې نه واوړي؟ سوا د هغه كس نه چه هغه پخپله خپل ځان په كم عقل توب كښې مبتلا كړې وي احقيقت خو دادې چه مونږ هغه په دنيا كښې (خپل ځان دپاره) غوره كړې وو او په آخرت كښې به هغه د نيكانو نه وي چه كله د هغه پروردګار هغه ته ووئيلې چه غاړه كيږده! " نو هغه (فورًا) ووئيل چه " ما د رب العٰلمين (هر حكم) ته غاړه ايښودې ده " اوددې خبرې ابراهيم عليه

السلام خپلو ځامنو ته وصیت اوکړو او یعقوب علیه السلام هم (خپلو ځامنو ته) چه اې زما ځامنو الله تعالٰی دا دین تاسو دپاره منتخب کړې دې لهٰذا تاسو ته که مرګ هم راځي نو په داسې حال کښې دې راشي چه تاسو مسلمانان یئ.

## خلاصه تفسیر

﴿وَمَنْ يَّرْغَبُ عَنْ مِّلَّةِ اِبْرٰهٖمَ اِلَّا مَنْ سَفِهَ نَفْسَهٗ﴾ او ملت ابراهیمی نه خو به هغه څوك روګردانی کوی [مخ اړوی] چه دخپل ذات په اعتبار ناپوهه وی او [دداسې ملت پرېښودونکې دې ولې ناپوهه نشی بللې چه شان ئې داوی چه دهغې په برکت] ﴿وَلَقَدِ اصْطَفَيْنٰهُ فِي الدُّنْيَا﴾ مونږ هغه [ابراهیم ﷺ] [درسالت دمرتبې دپاره] په دنیا کښې غوره کړو ﴿وَاِنَّهٗ فِي الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ﴾ او [هم ددې په برکت] دے په آخرت کښې ډیر په خاصو خلقو کښې شمارلې شی [چه دده دپاره ټول هر څه دی او دا غوره کول ئې درسالت د مرتبې دپاره هغه وخت شوی وو] ﴿اِذْ قَالَ لَهٗ رَبُّهٗٓ اَسْلِمْ﴾ کله چه هغوی ته پروردګار [دالهام په ډول] اوفرمائیل چه ته [دالله ﷻ] فرمانبرداری اختیار کړه ﴿قَالَ اَسْلَمْتُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ هغوی عرض اوکړو چه ما فرمانبرداری اختیار کړه د رب العالمین [نوددغې فرمانبردارئ اختیارولو په وجه مو ورته دنبوت او پېغمبرئ شرافت ورکړو خواه هغه وخت وو یا څه وخت پس] ﴿وَوَصّٰى بِهَآ اِبْرٰهٖمُ بَنِيْهِ وَيَعْقُوْبُ﴾ او په دې [ذکر شوی ملت باندې د قائم پاتې کیدو] وصیت او حکم کړې وو ابراهیم ﷺ خپلو ځامنو ته او [داشان] یعقوب ﷺ هم [خپلو ځامنو ته چه مضمون ئې داوو] ﴿يٰبَنِيَّ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰى لَكُمُ الدِّيْنَ﴾ چه ائې زما ځامنو الله ﷻ دا دین [داسلام اوحق د تابعدارئ] ستاسو دپاره منتخب کړې ﴿فَلَا تَمُوْتُنَّ اِلَّا وَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ﴾ دې نو تاسو [ترمرګه پورې دا مه پرېږدئ او] سوا د اسلام نه په بل هیڅ حالت مه مړه کیږئ.

**د لغاتو حل:** ﴿سفه﴾ سفه په معنی د جهل، وانتصاب نفسه علی انه تمیز علی قول الفراء اوشبه بالمفعول علی قول بعض الکوفیین اومفعول به اما لکون سفه متعدیا بنفسه کسفه المضعف اولکونه ضمن معنی ما یتعدی ای جهل وهو قول الزجاج، ترجمه د شیخ الهند رحمه الله هم پدې مبنی ده. په دې وجه د سفه نفسه معنی د ړومبئ توجیهٔ په اعتبار سره هغه ده کومه چې خلاصه تفسیر اخستلې شوې ده چې د خپل ذات څخه به احمق وی. او په دویمه توجیه به معنی دا وی چې د ابراهیم ﷺ دملت څخه به هغه کس مخ اړوی چې هغه دخپل نفس څخه هم نا خبره وی. او هغه ته د خپل ذات هم خبر نه وی چې څه څه یم.

## معارف اومسائل

﴿وَمَنْ يَّرْغَبُ عَنْ مِّلَّةِ اِبْرٰهٖمَ﴾ په تیروشوؤ آیتونو کښې دملت ابراهیمی بنیادی اصول، دهغې د تابعدارئ تاکید اودهغې نه دمخ اړولو دخرابئ بیان وو، په دې کښې دیهودو اونصاراؤ دادعوی غلطه ښودلې شوې وه چې هغوئ دملت ابرهیمی تابعداردی، په دغې کښې داهم ذکرشوی ووچه صرف ملت اسلام دملت ابراهیمی مطابق دې، په دغې کښې ددین اسلام حقیقت اوښودلې شو اوداهم بیان کړې شو چه دادټولو انبیاؤ ﷺ مشترکه دین دې،

په ذکرشوی آیتونو کښې داخبره بیان شویده چې انبیاء ﷺ به دخپل اولاد په دینی اوروحانی تربیت څومره توجه ورکوله، په ړومبی آیت کښې دملت ابراهیمی فضیلت اودهغې په وجه دحضرت ابراهیم علیه السلام ددنیا او آخرت شرافت اوبزرګی اوښودلې شوه اوداهم اوښودلې

شوچه دي نه څوک مخ اړوی نو دادبیوقوفۍ کاردي لکه فرمائی: ﴿وَمَنْ يَّرْغَبُ عَنْ مِّلَّةِ اِبْرٰهٖمَ اِلَّا مَنْ سَفِهَ نَفْسَهٗ﴾ یعنی دملت ابراهیمی نه صرف هغه څوک مخ اړولي شي چې پوهې او ذره عقل هم په کښې نه وی، ځکه چې داملت بعینه فطرت دې،هیڅوک سلیم الفطرت انسان دې نه انکارنشي کولې،وروسي ددې وجه بیانوی چې ددې ملت شرافت اوفضیلت ددې نه هم ښکاره دې چې الله تعالی ددې ملت په وجه حضرت ابراهیم عليه السلام ته ددنیااوآخرت عزت بزرګی ورکړه، ددنیابزرګی اوعزت ئې ټولې دنیاپه خپلوسترګواولیدلوچه نمرودغوندې زوربادشاه سره د خپل ټول قوم ددې یواځې بزرګ خلاف راپورته شواودخپل اقتدارټولې ذریعې ئې ددوئ عليه السلام خلاف استعمال کړې،بالاخرداورپه یولوئ انبارکښې ئې وراوغورځولومګرددنیاټول عنصرونه اوددې طاقتونه چې د کوم قدرت دفرمان لاندې هغه ټولې نمرودی منصوبې تس نس [تت پرك] کړې،دغه اورئې،خپل خلیل عليه السلام دپاره ګلزارجوړکړواوددنیاټول قومونه ددوئ په زورمنلومجبوره شو،ددنیاټول مؤمنان اوکافران، تردې چې بت پرست هم ددې بت شکن عليه السلام په عزت کولومجبوره شو،دعربومشرکان بهرحال،د حضرت ابراهیم عليه السلام اولادوو،سره ددې چې بت پرست ووخوبیابه هم دحضرت ابراهیم عليه السلام څه ورانې شوې نخښې ددغې خلقوپه عمل کښې موجودې وې،حج،عمره اومیلمه پالل هم د دوئ عليه السلام هغه پاتې نخښې وې اګرچه دجهالت په وجه ئې ددې شکلونه وران کړی وو،دادهغه خداوندی انعام نتیجه ده دکوم دمخې چې خلیل الله عليه السلام ته دامام الناس خطاب ورکړې شوې وولکه فرمائی: ﴿اِنِّيْ جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ اِمَامًا﴾ (۱)

دحضرت ابراهیم عليه السلام اوددوئ عليه السلام دملت د قهری غلبې نه علاوه ددنیاپه وړانددې مقبولیت اودفطرت انسانی بلکل مطابق کیدل هم رَاغلی وو،اوچاچه څه قدرې عقل اوپوهَ لرله هغه ددې ملت په وړاندې سرښکته کړو،

داخودحضرتَ ابراهیم عليه السلام ددنیوی شرافت اوبزرګۍ ذکرؤو،اودآخرت معامله چې اوس دخلقود سترګوپه وړاندې خونه وه لیکن دقرآن دې آیت واضحه کړه چې،څنګه الله تعالی ورته په دنیاکښې عزت اوفضیلت ورکړودغه شان په آخرت کښې هم لوئ درجې ددوئ عليه السلام په نصیب دی،

**دملت ابراهیمی عليه السلام بنیادی اصول،اسلام،یعنی دحق تابعداری ده چه هغه صرف داسلام دین پورې اړه لري:**

وروسې په بل آیت کښې دملت ابراهیمی عليه السلام بنیادی اصول اوښودلې شولکه ارشاددې ﴿اِذْ قَالَ لَهٗ رَبُّهٗٓ اَسْلِمْ ۙ قَالَ اَسْلَمْتُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ کله چې اوفرمائیل ابراهیم عليه السلام ته دهغوئ پروردګارتابعداری کوه نوعرض ئې اوکړوچه تابعداری مې اختیارکړه درب العلمین،په دې طرزبیان کښې داخبره هم دغورقابله ده چې د اسلم جواب هم په دغه اندازه داسې پکارووچه ﴿اسلمت لك﴾ ستا تابعداری مې اختیارکړه خوحضرت خلیل الله عليه السلام ددغه اندازپه ځائ دا انداز اختیار کړو ﴿اَسْلَمْتُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ [یعنی دپروردګارعالم تابعداری مې اختیارکړه] چنانچه یو خو په دې کښې دادب خیال اوساتلې شو،بل پکښې دالله تعالی حمدوثناء شامله شوه چې مقام ئې هم وو، داهم ترښکاره شوه چې خپله تابعداری ئې په چااحسان اونه ګرځوله بلکه دائې په خپل

---

۱) ترجمه: څه تاسو ته د ټولو انسانو پیشوا جوړونکي یم،

ځان په دې وجه ضروري کړه چې هغه دټول جهان پروردګار دې، جهان اوټول اهل جهان په دې مجبوره دی چې دده تابعداری به کوی، چاچه تابعداری اختیارکړه هغه خپل فرض اداکړل اوفائده ئې بیاموندده، دې نه دا معلومات هم حاصل شوچه دملت ابراهیمی بنیادی اصول اوپوره حقیقت په یولفظ داسلام کښې ځائ کړې شوې دې چې دحق دتابعدارئ معنی ورکوی، اوهم دادحضرت ابراهیم علیه السلام دمذهب اومسلک خلاصه ده، اودهغه امتحاناتوحاصل دې چې دهغې دترسره کولو په برکت حضرت خلیل الله علیه السلام دې خپل لوړمقام ته رسیدلې دې، اواسلام، [یعنی دحق تابعداری] هغه څیزدې چې او دې دپاره داټول جهان جوړشوې دې او ددې دپاره حضرات انبیاء علیهم السلام راؤلیږلې شواوآسمانی کتابونه او دې دپاره نازل کړې شو،

دې نه داخبره هم معلومه شوه چې یواځې اسلام دټولوانبیاء علیهم السلام مشترکه دین اودیووالی ټکې دې، دحضرت آدم علیه السلام نه چې واخلې ترخاتم النبیین ﷺ پورې هرراتلونکي رسول اونبی هم ددې اړخ ته بلنه ورکړې ده، خپل خپل امت ئې هم په دې روان کړولکه قرآن کریم چې په صفاټکوکښې ددې اعلان هم کړې دې فرمائی: ﴿إِنَّ الدِّينَ عِندَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ﴾ دین خود الله تعالی په نزدیواځې اسلام دې

قوله تعالی: ﴿وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ﴾ اوڅوک چې داسلام نه سواځه بل دین یامذهب اختیارکړی نوهغه مقبول نه دې،

**نور دینونه هم د دین اسلام برخه او حصه وو:** اوښکاره خبره ده چې څومره دینونه اومذهبونه چې مختلفوانبیاء علیهم السلام راوړی دی هغه ټول په خپله خپله زمانه کښې دالله تعالی په نزدمقبول وو په دې وجه ضروری ده چې دغه ټول دهم داسلام دین وی اګرچه نومونه ئې بدل وولکه چې دیهودیت، نصرانیت یاپه دین دموسی علیه السلام به بللې شو، خوپه حقیقت کښې دغه ټول هم داسلام دینونه ووچه حاصل ئې دحق تابعداری کول دی البته په دې کښې یوخصوصیت ملت ابراهیمی ته حاصل دې چې هغوئ علیه السلام دخپل ملت نوم هم اسلام اوټاکلوخپل امت ئې دامة مسلمة په نوم اوبللولکه عرض کوی،

﴿رَبَّنَا وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ﴾ اې زمونږپروردګاره: مونږدواړه [حضرت ابراهیم علیه السلام اوحضرت اسماعیل علیه السلام] ستامسلمانان [تابعداران] جوړکړې اوزمونږداولادځنې هم یوه ډله خپله فرمانبرداره جوړه کړې،

اوخپل اولادته هم داسې وصیت کوی: قوله تعالی: ﴿فَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنتُم مُّسْلِمُونَ﴾ تاسوساه مه ورکوئ مګرپه داسې حالت کښې چې تاسو مسلمانان [تابعداران] ئې،

دحضرت ابراهیم علیه السلام نه پس داخصوصی امتیاز، دحضرت ابراهیم علیه السلام دتجویزمطابق امت محدیه ﷺ ته حاصل شو، چې نوم ئې امتِ مسلمه اوټاکلې شواوملت ئې هم په ملت اسلامیهٔ مشهورشو لکه قرآن کریم فرمائی:

قوله تعالی: ﴿مِّلَّةَ أَبِيكُمْ إِبْرَاهِيمَ ۚ هُوَ سَمَّاكُمُ الْمُسْلِمِينَ مِن قَبْلُ وَفِي هَٰذَا﴾ تاسودخپل پلار حضرت ابراهیم علیه السلام په دین ټینګ پاتې کیږئ چې هغه علیه السلام ستاسولقب مسلمان ایښې دې رومبې هم اوپه دې قرآن کښې هم، هسې خویهود، نصارا، اودعربومشرکانوهم دادعوی لرله چې مونږپه ملتِ ابراهیمی یوخودوئ غلط پوه شوی دی اوپه دروغه دعوې لری څکه چې په حقیقت کښې یواځې ملت محمدیه په آخری دورکښې ملتِ ابراهیمی اودین فطرت سره سمون خوری،

دخبرې خلاصه داشوه چې دالله تعالى له اړخه څومره پيغمبران چې راغلل، څومره كتابونه اوشريعتونه چې نازل شوي دهغې ټولوروح اسلام [تابعداری دحق] دې په نورو ټكوكښې ئې مطلب داراخيژي چې دنفساني خواهشاتوپه مقابله كښې دحكم الهي تابعداري كول اودخپل زړه منلوپه ځائ دهدايت پابندي كول.

**ددين اسلام نه ډېر مسلمانان جدا اولاړې دی:** افسوس دې چې نن داسلام نوم اغستونكي په لكونو مسلمانان هم ددې حقيقت نه نا آشنا شو او ددين اومذهب په نوم د خپلو خواهشاتو تابعداري كول غواړي، دوئ دقرآن او حديث، يواځې هغه تفسيراو تشريح خوښوي چې خپل خواهش سره ئې سمون خوري، يائې داكوشش وي چې دشريعت جامه په راښكلو راښكلو اوړده، پلنه كړي، بلكه څيرې ئې كړي اود خپلو غرضونواوخواهشات نفساني دبتانو جامې ترجوړې كړي چې په ښكاره خوددين اومذهب تابعداري په نظرراځي اوپه حقيقت كښې خالص دنفساني خواهشاتوتابعداري وي،

سوده شدازسجده راهِ بتان پيشانيم　　　چندبرخودتهمت دين مسلماني نهم،

[تندی ئې دبتانو په سجده تور شو يدی، بياهم وايم چې څه مسلمان يم]

غافل انسان خبرنه دې چې دابهانې اوتاويلونه خودمخلوق په وړاندې چليدې شي مگردخالق په وړاندې سوادخالص اطاعت نه بل هيڅ څيزپكارنه راځي، دچادعلم لاندې چه ذره ذره راځي اودزړونوپټ رازونه ويني اوپيژني،

كار هاباخلق آری جمله راست　　　باخداتزويروحيله كے رواست

[د مخلقو سره دې ټول كارونه درست چليږي نو بيا دالله ﷻ سره دروغ او حيله كول څنگه روا كيديشي]

**حقيقي اسلام:** حقيقي اسلام دادې چې خپل غرضونه اوخواهشات بيخي دزړه نه اويستلې شي اوپه دې لټون كښې وی چې دالله تعالى رضاپه كوم كاركښې ده، دهغه حكم زمادپاره څه دې، اوديوغلام پشان دې آوازته ئې غوږوی چې چرته دتلواودڅه كارحكم به راته كيږی، هغه كارپه څه شان كول دی چې مقبول شی او مالک رانه راضي شی، چنانچه ددې نوم عبادت اوبندگی ده.

درراهِ عشق وسوسه اهرمن بسے است　　　هشداروگوش رابه پيامِ سروش دار

[د عشق په لاره كښې دا هرمن وسوسه كافي ده هوښيار شه او دالله ﷻ پيغام ته غوږ كيږده

**عبديت څوم مقام ته وئيلې شي:** دتابعدارئ اومحبت داجذبه چې كمال ته اورسی نودادانسان دترقئ آخری مقام دې چې ورته دعبديت [بندگئ] مقام وئيلې شی، داهغه مقام دې چې ورته په رسيدوحضرت ابراهيم عليه السلام دخليل الله خطاب بيامونډو [پيدا كړو]، سيدالرسل خاتم الانبياء ﷺ دعبدنا خطاب بيامونډودعبديت اواطاعت دادرجې هركله چې دې نه ښكته شي نودادې امت اولياؤ، غوثانو، قطبانو او ابدالو ته حاصليږی، داهغه حقيقي توحيددې چې كله چاته حاصل شي نواميداوويره ئې يواځې دالله تعالى نه وی،

اميدوهراسش نباشدزكس　　　همين است بنيادِ توحيدوبس

[طمع او ويره ئې دهيچا نه نه وی او بس هم دا د توحيد بنياد دې]

غرض داچه داسلام معنی اوحقیقت، دالله تعالی فرمانبرداری ده اوددي لاريواخي داده چې درسول الله ﷺ دسنتوتابعداری اوکړې شی څنګه چې قرآن کریم په ښکاره ټکوکښې داسې بیان کړیده، ﴿فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتّٰى يُحَكِّمُوْكَ فِيْمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا﴾ ستا د پروردګار قسم مې دوی دوئ به هیچرې مؤمنان نه وی ترڅوچه تاسو ﷺ لره په ټولو اخلاقی معاملاتوکښې حکم [منصف] اونه منی اوبیاستاسو ﷺ په فیصله باندې په خپلوزړونوکښې څه تنګی نه محسوسوی اوپه خلاص زړه ئې اونه منی،

**مسئله**: په تیرشوی آیت کښې حضرت ابراهیم علیه السلام خپل اولادته وصیت اوکړواودوئ نه ئې داسې وعده اُغستې وه چې د اسلام نه سِوابه په بل هیڅ حالت اوملت نه مرئ، مطلب ئې دادې چې په خپل ژوند کښې په اسلام اواسلامی تعلیماتوښه په ټینګه عمل کوئ چې الله تعالی مو خاتمه په اسلام کړی، لکه چې څنې روایتونوکښې راغلی دی چې په خپل ژوندکښې چې تاسودکوم حالت پابندپاتې کیږئ، په هغه حالت به ستاسومرګ هم وی اوپه دې حالت کښې به په محشرکښې هم ئې، چنانچه دالله تعالی عادت دادې چې څوک دنیکئ قصدکوی اودخپل وس په جوړ او مطابق ورلره کوشش هم کوی نوالله تعالی ورته ددغې نیکئ توفیق ورکوی او دا کارورلره آسانوی،

په دې باره کښې دهغه حدیث نه شبه راتلل نه دی پکارپه کوم کښې چې وئیلې شوی دی چې څنې خلق دجنت کارونه اوداهل جنت عملونه همیشه کوی، تردې چې ددغه کس اوجنت ترمنځه صرف دیولاس په مقدارفاصله پاتې شی لیکن بیاهم دده تقدیرغالب راشی، او د دوزخیانو پشان کارونه کول شروع کړی، اوبالاخردوزخ ته لاړشی، دغه شان څنې کسان ددوزخ په کارونو کښې لګیاوی تردې چې دده اودوزخ ترمنځه صرف دیولاس په اندازه فاصله پاتې شی بیا تقدیرغالب شی اوآخرعمرکښې دجنتیانوپشان عمل کول شروع کړی اوپه چې بناجنت ته لاړ شی[1]، وجه داده چې ددې حدیث په څنوالفاظوکښې داقیدهم لګولې شوې دې چه[فيما يبدو للناس][2] [خلقوته به داسې ښکاری] یعنی چې کوم بنده ټول عمردجنتیانوپشان عمل کوی اوپه آخر کښې به ددوزخیانوپشان عمل شروع کړی دهغه مطلب دادې چه هغه ړومبی کارونه ئې هم په حقیقت کښې د دوزخیانوکارونه وو اګرچه خلقوته به دجنتیانوعمل ښکاریدو اودغه شان د هغه بل اړخ مطلب ئې هم واخله چې په ظاهره به اولنې عمل یې ددوزخیانوښکاری خوپه حقیقت کښې به هغه دجنتیانو په کارکښې وو مګرپه ظاهری نظر کښې خلقو هغه ګناه ګڼړله [ابن کثیر][3]

خلاصه داده چې څوک په نیکوکارونوکښې مشغوله وی نوهغه دِدالله تعالی دوعدې اوعادت په بناءداامیدلری چې دده خاتمه به هم په نیکئ وی.

---

[1]) صحيح البخاری، كتاب القدر: ۲/ ۹۷۵، ۹۷۶، صحيح مسلم، كتاب القدر، باب كيفية الخلق الآدمی: ۲/ ۳۳۲
[2]) صحيح البخاری، كتاب المغازی، باب غزوة خيبر: ۲/ ۶۰۴
[3]) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ۱/ ۴۴۶، ۴۴۷

اَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ اِذْ

| آیا وئ تاسو | حاضر | په هغه وخت کښې

| ایا تاسو حاضروئ څه وخت چې

حَضَرَ يَعْقُوْبَ الْمَوْتُ اِذْ قَالَ لِبَنِيْهِ مَا تَعْبُدُوْنَ

چې راغې | یعقوب ته | مرګ | کله چې اووئیل هغهٔ | خامنو خپلو ته | دچا عبادت به کوئ تاسو

یعقوب ﷺ ته [د] مرګ [نښې] ښکاره شوې | او هغه خپلو خامنو ته اووئیل | چې د څه عبادت به کوئ

مِنْ بَعْدِيْ قَالُوْا نَعْبُدُ اِلٰهَكَ وَاِلٰهَ اٰبَآئِكَ اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ

روستو زمانه | نو اووئیل هغوئ | مونږ به عبادت کوؤ | د معبود ستا | او د معبود د پلارونو ستا | چې ابراهیم او اسماعیل

خما [د مرګ] نه پس | هغوئ ورته اووئیل چې مونږ به عبادت کوؤ ستا د معبود او ستا د پلار نیکه د معبود د ابراهیم، اسماعیل

وَاِسْحٰقَ اِلٰهًا وَّاحِدًا وَّنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ ﴿۱۳۳﴾ تِلْكَ اُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ

او اسحاق دي | چې معبود یو دې | او مونږ د هغه حکم منونکی یو | هغه څه خلق وو | چې تیر شو

او د اسحاق چه د ټولو معبود دې یو | او مونږ د هغه احکامو ته غاړه ایخودې ده | دغه یوه ډله وه په چې لاړه تیره شوه

لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُمْ مَّا كَسَبْتُمْ

دهغوئ د پاره دی | هغه څه | چې کړې وو هغوئ | او ستاسو د پاره دی | هغه څه | چې کړې دی تاسو

هغوئ ته به د خپل عمل بدله ورکولې شی | او تاسو ته به ستاسو د کارونو بدله درکولې شی

وَلَا تُسْئَلُوْنَ عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۳۴﴾

او نهٔ به کیږی تپوس ستاسو نه | د هغه څه | چې کول به هغوئ

او تاسو نه به د هغوئ د عملونو په حقله هیڅ تپوس نه کیږی۔

## آسان ترجمه قرآن

**آیا هغه وخت تاسو پخپله موجود وئ چه کله یعقوب علیه السلام ته د مرګ وخت راغې چه کله هغه خپلو خامنو ته وئیل وو چه ځما نه وروستو به تاسو دچا عبادت کوئ؟ هغوی ټولو وئیل ووچه مونږ به صرف د هغه یو الله تعالیٰ عبادت کوو چه ستا هم معبود دې او ستا د پلار انو او نیکونو، د ابراهیم علیه السلام، اسماعیل علیه السلام او اسحاق علیه السلام هم معبود دې او مونږ صرف هم د هغه تابعدار یو هغه یو امت وو چه تیر شو چه څه هغوی وکړل هغه د هغوی د پاره دی او چه څه تاسو وکړل نو هغه تاسو د پاره دی او ستاسو نه به دا تپوس او نه شی چه هغوی څه عمل کولو.**

## خلاصه تفسیر

﴿اَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ﴾ آیا [تاسو خلق په څه معتبره او صحیح نقل سره دغه ذکر شوې دعوی کوئ یا] تاسو پخپله [دغه وخت] موجود وې ﴿اِذْ حَضَرَ يَعْقُوْبَ الْمَوْتُ﴾ کله چه د یعقوب ﷺ آخری وخت راغلو [او] ﴿اِذْ قَالَ لِبَنِيْهِ مَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ بَعْدِيْ﴾ کله چه هغوی خپلو خامنو نه [د خپل لوظ قول نوی کولو د پاره] تپوس اوکړو چه تاسو خلق به زما [د مرګ] نه پس دچا عبادت کوئی ﴿قَالُوْا نَعْبُدُ

﴿اِلٰهَكَ وَاِلٰهَ اٰبَآىِٕكَ﴾ هغوی [په یو خلے سره] جواب ورکړو چه مونږ به دهغه [پاك ذات] عبادت کوو دچا چه تاسو او ستاسو بزرګانو [حضراتو] ﴿اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ اِلٰهًا وَّاحِدًا﴾ ابراهیم ﷺ، اسماعیل ﷺ او اسحاق ﷺ [په مخه] عبادت کړې دے یعنی هغه معبود چه وحده لاشریك له دے ﴿وَّنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ﴾ او مونږ به [په احکامو کښې] هم دهغه په تابعدارئ [کلك ولاړ] اوسیږو ﴿تِلْكَ اُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ﴾ دا [ده بزرګانو] یوتولې وو چه [په خپله زمانه کښې] تیر شو ﴿لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُمْ مَّا كَسَبْتُمْ﴾ د دوی پکار به د دوی کړه راځی او ستاسو پکار به ستاسو کړه راځی ﴿وَلَا تُسْـَٔلُوْنَ عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ﴾ او تاسو نه به دهغوی د کړو تپوس هم نه وی [او تشه یاد ګیرنه کیدل خو یئ لاځه کوے چه فائدې ئے رسیدل درته هم ډیره لرے خبره ده].

## معارف اومسائل

**قوله تعالٰی:** ﴿اَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ اِذْ حَضَرَ يَعْقُوْبَ الْمَوْتُ﴾ په تیروشوو آیتونو کښې دملت ابراهیمی اوداسلام د حقیقت بیان وواوس په دې آیتونوکښې یوبله اصولی خبره قابل نظر ده چې که ملت ابراهیم ورته وائې اوکه اسلام، نودادپوره قوم بلکه دټولې دنیادپاره هدایت نامه ده بیاپه دې کښې دابراهیم ﷺ اویعقوب ﷺ خصوصیت څه دې چې په دې آیتونوکښې دوئ ته خاص خطاب شوې دې اودالله تعالی دې دواړو غوریزو پیغمبرانو خپل اولادته دیوخاص وصیت په توګه ددې هدایت اوکړو،

**د اولاد مینه د نبوت سره منافي نه ده:** ددې نه یوه داخبره معلوه شو چې اولادسره مینه لرل اودهغوئ دښیګړې خیال لرل درسالت، نبوت بلکه دخلت [دوستئ] دمقام سره هم بې سمونه نه دی، دالله تعالی هغه خلیل چې په یووخت دخپل رب داړخه اشارې موندلوسره دخپل نیازبین خوی ذبح کولوته هم تیار ښکاری هم هغه په بل وخت کښې دخپل اولاد، دینی، دنیوی، آرام اوښیګړې دپاره دخپل رب نه دعاګانې هم کوی، دنیانه درخصتیدوپه وخت خپل اولاد ته هغه څیزورکول غواړی چې ددوئ په نظرکښې دټولونه لوئ نعمت دې [یعنی اسلام] دآیت ﴿وَوَصّٰى بِهَآ اِبْرٰهٖمُ بَنِيْهِ وَيَعْقُوْبُ﴾ هم دغه مطلب دې اودآیت، ﴿اِذْ حَضَرَ يَعْقُوْبَ الْمَوْتُ اِذْ قَالَ لِبَنِيْهِ مَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ بَعْدِيْ﴾ هم دغه حاصل دې، فرق دومره دې چې د عاموخلقوپه نظرکښې ددنیا، فانی اوذلیل څیزونه نعمتونه دی، خود دوئ ﷺ نظراوحوصله په داشان ډیرلوړوالې لری چې ددوئ ﷺ په نزداصلی دولت ایمان اوعملِ صالح یااسلام دې،

**ددنیادارو خلقو د مرګ په وخت کښې خواهش:** څنګه چې عام انسانان دمرګیدوپه وخت کښې داغواړی چې ورسره موجودخپل لوئ نه لوئ دولت خپل اولادته ورکړی لکه دغتې پنګې دخاوندسوداګرچه نن صباداخواهش وی چې زمااولاد دې دمیلونو اوفیکټریانو[کارخانو] مالکان وی، د درآمداود برآمدلوئ لوئ لائسنسونه دورکړې شی دلکونواو کروړونوپه شمیر کښې ددهغوئ دبینکونوپنګه وی، یایونوکرانسان داغواړی چې زمااولادته دلوړې عهدې او اوچتې تنخواګانې ملاویږی یادیوکاریګرقسم انسان داخواهش وی چې دهغه اولاد دهغه په کاریګرئ کښې ښه کمال حاصل کړی اوورته دِدخپل ټول عمرګرونه او طریقې اوانکلونه اوښائی،

دغه شان دانبیاؤ ؑ اود دوئ دتابعدارو اولیاؤ ؒ دټولونه لوئ خواهش داوی چې څه ځیز دوئ ته اصل اونه ختمیدونکې دهمیشه دولت ښکاری هغه د ددوئ اولادته پوره ملاؤ شی ځکه دعا ګانې کوی اوکوششونه هم کوی چې په آخری وخت کښې ددې وصیت اوکړی لکه چې دذکرشوی آیت نه واضح دی،

**اولاددپاره هیڅ یودولت دوئ ته ددین اواخلاقوورازده کولوسره نشی برابریدې:** دانبیاؤ ؑ په دې خاص طرزکښې دعامو انسانانو دپاره هم داهدایت دې چې هغوئ څنګه چې ددوئ دنیوی پالنه کوی اود دوئ ددنیوی راحت اوآرام انتظام کوی دغه شان بلکه ددې نه زیات په دوئ لازم دی چې داولاد نظری،عملی اواخلاقی تربیت هم اوکړی، دبدو لارو، بدو چارو اوبدواخلاقونه په ساتلوکښې ډیرزیات کوشش کوی ځکه چې اولادسره رشتونې محبت اواصل خیرخواهی ئې هم دغه ده،داخوهیڅ دعقل خبره نه ده چې یوانسان دخپل بچې دې دنمردګرمئ نه په داشان ساتی چې خپل ټول وس ډیرې باندې ختم کړی اود همیشه اوراوهمیشه عذاب نه دئې دبچ کولوهیڅ قسم فکرنه وی،دده دبدن نه دپه ازغی اوښکو[کښکو]خپل ټول طاقت اوذریعې وسیلې استعمالوی اودټوپک دګولئ لګیدونه دئې نه بچ کوی،

دانبیاؤ ؑ ددې طرزعمل نه یواصولی خبره داهم معلومه شوه چې د مور پلار دا فرض او داولاددا حق دې چې دټولونه رومبې ددوئ دخیرښیګړې اوکامیابئ خلاصئ فکر اوکړې شی دې نه پس بیانو روته مخه اوکړی چې دده حکمتونه پکښې دی،

اول داچه دطبعی اوجسمانی تعلق په بنابه دې دنصیحت اثر،ډیرزراوپه آسانئ سره قبول کړې شی اوبیابه هغوئ ددوئ په تحریک اواصلاحی کوشش کښې ددوئ متې جوړې شی او مضبوطیا جوړې دې شی اوپه حق کښې به ددوئ امدادکوی،

**ددین د خورولو آسانه او مفیده لاره:** بله داچه دحق په خورولوکښې ددې نه زیاته آسانه اومفیده لاره بله نشته چې دهرکورذمه وارانسان دخپل آل وعیال ته دحق خبرې ورازده کولواوپه دې باندې ئې عمل ته دبرابرولودزړه داخلاصه کوشش کوی چې په داشان به دتبلیغ،تعلیم،اصلاح اوتربیت دائره راغونډه شی اوصرف دکورونوذمه دارانو پورې به راورسی،دوئ ته به ازده کړه ورکول پوره قوم ته ازده کړه ورکول ګنړلې شی چنانچه قرآن کریم په دې بنا ارشادفرمائی:

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قُوْٓا اَنْفُسَكُمْ وَاَهْلِيْكُمْ نَارًا﴾ اې دایمان خاوندانو:بچ کړئ خپل ځانونه اوخپل بال بچ دلوئ اورنه،

اودټولې دنیارسول محمد ﷺ چې هدایات ئې ترقیامته پورې راتلونکی نسلونودپاره عام دې دوئ ﷺ ته هم دټولونه وړاندې داحکم ورکړې شو:

﴿وَاَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْاَقْرَبِيْنَ﴾ خپل نزدې خپلوان دالله تعالی دعذاب نه ویروه،

اودا ارشادهم ورته اوشو:

﴿وَاْمُرْ اَهْلَكَ بِالصَّلٰوةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا﴾ خپل بال بچ ته دمونځ حکم کوه اوپخپله هم ددې پابند اوسیږه،

درسول الله ﷺ همیشه دپاره په دې عمل وو،

یودریم حکمت داهم دې چې ترڅودبال بچ اونزدې خپلوان په نظریاتواوعملی پروګرام کښې دده ملګری اوهمخیال نه وی نودده تعلیم اوتبلیغ په نوروډومره اثرنه کوی،هم دغه وجه ده چې داسلام په شروع کښې رسول الله ﷺ دتبلیغ په جواب کښې به دعاموخلقوداجواب ووچه اول

خودخپل قریش خاندان خلق سم کړه بیاهله مونږته وایه اوکله چې په خاندان کښې ئې اسلام خورشواودمکې دفتح په وخت داکارمکمل شونوددې نتیجه دقرآن کریم د ارشادمطابق دا راووته چه ﴿يَدْخُلُونَ فِي دِينِ اللهِ أَفْوَاجًا﴾ خلق به دالله په دین کښې ډلې ډلې داخلیږی،

**دینی تعلیماتو کښې د نن صبا د خلقو بې پرواهی:** نن صباپه مسلمانانوکښې دبې علمئ اوبې دینئ خوریدولویه وجه داده چې والدین که چرې پخپله دین نه واقف اودیندارهم دی خوددې فکرنه کوی چې ددوئ اولاد دهم دیندارہ اودهمیشه راحت مستحق وی،په عام طور زمونږ نظرونه، صرف داولادپه دنیوی،ځو ورځنې آرام باندې وی،هم دغې دپاره انتظامونه کوؤ،لازوال دولت ته موهډومخه نه وی،الله تعالی د مونږ ټولوته توفیق راکړی چې دآخرت په فکرکښې بوخت شو[لگيا شو]،خپلوځانونواوخپل اولاددپاره دټولونه لویه پنګه ایمان اونیک عمل اوګنړواو هم په دې کښې کوشش کوو،

**دنیکه نه دمیراث موندو او اختلو ځنې مثلې:** په دې آیت کښې دحضرت یعقوب علیه السلام داولادله اړخه چې کوم جواب نقل شوپه دې کښې ﴿إِلَٰهَكَ وَإِلَٰهَ آبَائِكَ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ﴾ فرمائیلوسره دې خبرې ته اشاره موندلې شی چې نیکه ته هم پلاروئیلې شی اودې دپلارپه حکم کښې وی په دې وجه حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه ددې نه دا استدلال کړې دې چې میراث کښې دنیکه هم هغه حکم دې چې دپلارحکم دې،

**دپلارانونیکونوداعمالوجزا اوسزا اولاد دپاره نشی کیدې:** ﴿لَهَا مَا كَسَبَتْ﴾ نه معلومه شوه چې دپلارنیکه نیک اعمال د دوئ داولاددپاره کافی نه دی ترڅوچه هغوئ خپل اعمال سم نه کړی دغه شان دپلرونو نیکونودبدوعملونوسزااوعذاب د دوئ داولاددپاره نشی کیدې که دوئ پخپله دنیکوعملونوپابند وی،دې نه داخبره هم ثابته شوه چې دمشرکانونابالغه مړشوی اولاددپاره به دمورپلاردشرک له وجې هیڅ عذاب نه وی،اودې نه دیهودوددې عقیدې هم تردیداوشوچه وائی:مونږکه هرڅنګه عمل کوؤ نو زمونږبخښنه به دپلرونونیکونودنیک عمل په وجه سره کیږی څنګه چې نن صباآلِ رسول او سیدان او آغاګان هم داسې وائی چې مونږکه هرڅنګه او هر څومره ګناه کوؤآلِ رسول یوپه دې وجه به مونږ بخښلې شو،

چنانچه قرآن کریم،دامضمون بیابیاپه مختلفوعنواناتوسره بیان کړې دې،

﴿وَلَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ إِلَّا عَلَيْهَا ۚ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ﴾ [دهرچاد عمل ذمه داری به هم دهغه په سر وی، دهیچاپیټې به دقیامت په ورځ به هیڅوک نشی پورته کولې] اوداشان رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی: اې بنی هاشمو:داسې دنه وی چې دقیامت په ورځ خونورخلق خپل خپل نیک عملونه ځان سره راوړی اوتاسو دنیکوعملونونه بې پرواکیدوسره یواځې زمادنسب اورشتې په تکیه راشئ اوپه دغه ورځ درته زه اووائیم چې زه،تاسولره دعذاب الهی نه نشم بچ کولې،

اوبل حدیث کښې دی [من بطأ به عمله لم يسرع به نسبه](۱) [دخپل [بد] عمل په وجه روستوپاتې کیدونکې دخپل نسب په برکت نشی وړاندې کیدې]

۱) صحیح مسلم، کتاب الذکر، باب فضل الاجتماع علی تلاوة القرآن وعلی الذکر: ۲/ ۳۴۵

| |
|---|
| وَقَالُوْا كُوْنُوْا |
| اووائی[عیسایان] | چې شئ |
| اویهودیان اوعیسایان وائی چې شئ یهودیان یانصاری نوسمه لار به بیامومئ |
| هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰی تَهْتَدُوْا ؕ قُلْ بَلْ مِلَّةَ اِبْرٰهٖمَ حَنِيْفًا ؕ |
| یهودیان \| یاعیسایان \|نو صحیح لار به بیا مومئ\| ورته اووایه \|نا بلکه \| طریقه \| دابرهیم \| یو مخیزی |
| ورته اووایه چې[نه]بلکه مونږ دابراهیم په ملت قائم یو چې [ټول عمر]دباطل نه روګردان اودحق پیروکار وو |
| وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝ قُوْلُوْٓا اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَآ |
| اونه ووهغه \| دمشرکانونه \| اووایئ اے مسلمانانو \| چې ایمان راوړې دې مونږ\| په الله \| او په هغه هدایت باندې |
| اودمشرکانو ملګرې نه وو\| تاسوورته ښه په ډاګه اووائې \| چې مونږ په الله ایمان راوړئی دې اوپه هغه کتاب |
| اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَمَآ اُنْزِلَ اِلٰٓى اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ |
| چې نازل شوې دې \| مونږ ته \| او په هغه \| چې نازل شوې وو\| ابراهیم ته \| او اسماعیل \| او اسحاق |
| کوم چې مونږ ته رالیږلې شوې دې\| اوپه هغه کتابونو چې ابراهیم اسماعیل او اسحاق |
| وَيَعْقُوْبَ وَالْاَسْبَاطِ وَمَآ اُوْتِیَ مُوْسٰی وَعِيْسٰى وَمَآ |
| او یعقوب \|او اولاد [دیعقوب] ته \| اوپه هغه \| چې ورکړې شوې وو \| موسی \|او عیسی ته\| او په هغه |
| اویعقوب ته اوددوئ نمسوته رالیږلې شوی دی\| اوپه هغه کتابونو چې په موسی او عیسی نازل شوی وو اوپه هغه |
| اُوْتِیَ النَّبِيُّوْنَ مِنْ رَّبِّهِمْ ۚ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْهُمْ ۖ |
| چې ورکړې شوې وو\| پیغمبرانوته\| دطرفه درب خپل نه \| نه کوومونږ فرق په مینځ\| دیودهغوئ کښې |
| کتابونو چې نورپیغمبرانو ته دخپل رب دطرفه ورکړې شوې وو\| مونږ ددوئ ترمینځ[په منلواونه منلو کښې]اهیڅ فرق نه کوو |
| وَنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ ۝ |
| اومونږ هغه لره \| تابعداران یو \| |
| اودالله حکمونوته موغاړه ایخودې ده\| |

## آسان ترجمه قرآن

اودا (یهود او عیسایان مسلمانانو ته) وائی چه تاسو یهودیان یا عیسایان شئ نو په صحیح لاره به شئ ته ووایه چه نه بلکه (مونږ خو) د ابراهیم علیه السلام تابعداری کوو چه بالکل صحیح په نیغه لاره وو او هغه د هغه خلقو نه نه وو چه د الله تعالی سره څوك شريك کوی (مسلمانانو) ووایئ چه مونږ ایمان راوړې دې په الله او په هغه کلام چه مونږ ته رالیږلې شوې دې اوپه هغه باندې هم چه په ابراهیم، اسماعیل، اسحاق او یعقوب علیهم السلام اودهغوی په اولاد، رالیږلې شوی دی اوپه هغه څه باندې هم چه کوم موسی او عیسی علیه السلام ته ورکړې شوې وو اوپه هغه څه باندې هم کوم چه نورو پیغمبرانو ته ورکړې شوې وو دخپل پروردګار د طرف نه مونږ ددې پیغمبرانو په مینځ کښې څه فرق نه کوؤ. او

مولنږ دغه (یو خدائې) تابع یو.

## خلاصه تفسیر

﴿وَقَالُوا كُونُوا هُودًا أَوْ نَصَارَىٰ تَهْتَدُوا﴾ اودا [یهود اونصاری] خلق [مسلمانانو ته] وائی چه تاسو خلق یهود شئ [داسې یهودو وئیل] یا نصرانیان شئ [داسې نصاراو وئیل] تاسو به هم په [حقه] لاره شئ ﴿قُلْ بَلْ مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا﴾ [ائې محمد ﷺ] تاسو [ورته په جواب کښې] اووائې چه مونږ خو به [کله هم یهودیان یا نصرانیان نشو بلکه] په ملت ابراهیم [یعنی په اسلام] به پاتې کیږو چه په کښې د کوږوالی نوم نشته [په خلاف د یهودیت اونصرانیت نه چه یو خو بدل شوې دې او بل د منسوخ کیدو په وجه په کښې کوږوالې راغلې دې] ﴿وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ﴾ او حضرت ابراهیم ﷺ مشرک هم نه وو ﴿قُولُوا آمَنَّا بِاللَّهِ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْنَا وَمَا أُنْزِلَ إِلَىٰ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطِ﴾ [ائې مسلمانانو د یهودو اونصاراو په جواب کښې مو چه اجمالا وئیلی وو چه مونږ به په ملت ابراهیمی پاتې کیږو نو ددې تفصیل ورته داسې وائی مونږ ایمان لرو په الله ﷻ باندې او په هغه [حکم] باندې چه [درسول الله ﷺ په ذریعه] راولیږلے شو او په هغه [حکم] هم چه حضرت ابراهیم، اسماعیل، اسحاق او یعقوب او اولاد دیعقوب [کښې چه کوم پغمبران تیر شویدی هغوی] ته [دوحی په ذریعه چه] اولیږلے شو ﴿وَمَا أُوتِيَ مُوسَىٰ وَعِيسَىٰ وَمَا أُوتِيَ النَّبِيُّونَ مِنْ رَبِّهِمْ﴾ او په هغه [حکم او معجزه] هم چه موسی عیسی ﷺ ته ورکړې شوې وو اوپه هغې هم څه چه نورو نبیانو ته ورکړې شو ددوی دپروردګار د طرفه [نو مونږ په دې ټولو ایمان لرو او ایمان هم] دا شان ﴿لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِنْهُمْ﴾ چه مونږ ددې [حضراتو] نه په یو کښې هم [دبل نه په ایمان راوړلو کښې] بیلتون نه کوو [چه ایمان په چا راوړو اوپه چا نه راوړو] ﴿وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ﴾ او مونږ د الله ﷻ فرمانبردار یو [هغوی مونږ ته دا دین اوښودلو چه مونږ اخیتار کړو پس دا حاصل دې چې ددې ملت چه مونږ پرې کلك یو په کښې بیخی د چا انکار او د سراوچتولو ګنجائش نشته دې].

## معارف اومسائل

قوله تعالی ﴿وَقَالُوا كُونُوا هُودًا أَوْ نَصَارَىٰ تَهْتَدُوا ... الی ... وَالْأَسْبَاطِ﴾ قرآن کریم داولاد دحضرت یعقوب ﷺ نه په لفظ داسباط سره تعبیر کړې دې، اسباط جمع دسبط ده، معنی ئې قبیله اوډله ده دوئ ته دسبط وئیلو وجه داده چې دحضرت یعقوب ﷺ سکه ځامن دولس وو بیادهریوځوئ اولادئې مستقلې قبیلې جوړې شوې اوالله تعالی ددوئ په نسل کښې دابرکت واچولو چې هرکله د حضرت یوسف ﷺ خواته مصرته ورغلل نودادولس رونړه وواودفرعون دمقابلې نه پس هرکله چې حضرت موسی ﷺ سره داخلق [بنی اسرائیل] اووتل نوهرورواولاددزرګونوپه شمیرکښې خان خان له دولس قبیلې جوړې شوې وې، اوبل برکت دحضرت یعقوب ﷺ په اولادکښې الله تعالی دا اچولې ووچه دلسوانبیاؤ ﷺ نه علاوه نورټول انبیاءاورسولان ددوئ ﷺ په اولادکښې پیدا شوی وو، دبنی اسرائیلونه علاوه پاتې نورانبیاء ﷺ حضرت آدم ﷺ نه پس

① نوح ﷺ، ② شعیب ﷺ ③ هود ﷺ ④ صالح ﷺ ⑤ لوط ﷺ ⑥ ابراهیم ﷺ ⑦ اسحاق ﷺ ⑧ یعقوب ﷺ ⑨ اسماعیل ﷺ او ⑩ حضرت محمد ﷺ دی.

| |
|---|
| فَإِنْ آمَنُوا بِمِثْلِ مَا آمَنتُم |
| نوکه چرې ایمان راوړو هغوئ په شان دهغې چې ایمان راوړې دې تاسو |
| که دوئ هم ستاسو په شان په نورو کتابونو ایمان راوړو |
| بِهِ فَقَدِ اهْتَدَوا ۚ وَإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا هُمْ فِي شِقَاقٍ ۚ |
| په هغې نو په هدايت دي هغوئ اوکه چرې مخ ني واړوو نو بي شکه هغوئ په ضد کښې پراته دي |
| نو سمه لار ئې بیامونده اوکه دې ته نې شاکړه نو دوئ پخپلو اختلافونو کښې [ابوخت] پراته دي |
| فَسَيَكْفِيكَهُمُ اللَّهُ ۚ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ |
| نو زر ده چې کافي به شي تا لره په مقابله دهغوئ کښې الله او هغه هر څه اوریدونکې او په هر څه پوهه دي |
| ائې پیغمبره د دوئ د شرنه د بچ کیدو د پاره تا لره الله کافی دې او هغه ښه اوريدونکې او ډیر پوهه دې په [مونږ] |
| صِبْغَةَ اللَّهِ ۖ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ صِبْغَةً ۖ وَنَحْنُ لَهُ |
| اووايه چې اونیسئ رنګ د الله او بل څوک زیات ښه دې د الله نه په لحاظ د رنګ سره او مونږ اهغه لره |
| د الله رنګ دې او د الله پاک نه د بل چا رنګ ښائسته کیدې شي او مونږ یوازې دهغه |
| عَابِدُونَ |
| عبادت کونکی یو |
| عبادت کوونکی یو |

## آسان ترجمه قرآن

ددې نه وروستو که دا خلق هم داسې ایمان راوړی لکه څنګه چه تاسو راوړې دې نو دوی به په سمه لاره شی او که دوی مخ واړولو نو په حقيقت کښې دوی په دښمنۍ کښې پراته دی اوس به الله تعالی ډیر زر ستاد طرف نه دوی ته کافي شی او هغه هره خبره اوريدونکې دې او په هره خبره پوهيدونکې دې (اې مسلمانانو اووايئ چه) مونږ باندې خو الله تعالی خپل رنګ خيژولي دې او څوک دې چه د الله نه بهتر رنګ وخيژوی؟ او مونږ صرف د هغه عبادت کوو.

## خلاصه تفسير

[هر کله چه دا ثابت شو چه دين صرف د اسلام طريقه کيديشی] ﴿فَإِنْ آمَنُوا بِمِثْلِ مَا آمَنتُم بِهِ﴾ نو که دوی [يهود او نصرانيان] هم په دې طريقه ايمان راوړی په کومه طريقه چه تاسو مسلمانانو ايمان راوړې دے ﴿فَقَدِ اهْتَدَوا ۚ﴾ نو بيا خو به دوی هم په [حقه] لاره روان شی ﴿وَإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا هُمْ فِي شِقَاقٍ ۚ﴾ او که دوی [ددې نه] روګردانی اوکړی نو [تاسو د ددوی په روګردانئ کولو څه حيرانتيا مه کوئی ځکه] چه دا خلق خو [هميشه نه] په مخالفت کښې [پاتې شوی] دی [او که د دوی د مخالفت نه څه ويره کوئی] نو [پوهه شئ چه] ﴿فَسَيَكْفِيكَهُمُ اللَّهُ ۚ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ﴾ ستاسو له طرفه به زر ترزره خبره خلاصه کړی دوی سره الله ﷻ او الله ﷻ [ستاسو او د دوی خبرې] اوری [او ستاسو او د دوی معاملې] پيژنی [تاسو هيڅ غم مه کوئی. ائې مسلمانانو اووائې چه مونږ ستاسو جواب کښې چې کومې خبرې کړيدی چه مونږ په ملت د ابراهيم ﷺ باندې پاتې

کیږو نو ددې خبرې حقیقت دادې چه] ﴿صِبْغَةَ اللّٰهِ ۚ﴾ مونږ به [ددین] په هغه حالت پاتې کیږو په کوم کښې [چه مونږ] الله ﷻ رنګ کړی یو [او دا د رنګ پشان زمونږ په خمبیر کښې اغږلے شوي دې] ﴿وَمَنْ اَحْسَنُ مِنَ اللّٰهِ صِبْغَةً ۫﴾ او [بل] څوک دې چه دهغه درنګ ورکولو حالت به الله ﷻ [درنګ ورکولو د حالت] نه زیات ښه وی [هرکله چه بل څوک داسې نه دې نو مونږ دبل چا دین هم اختیار نکړو] ﴿وَّنَحْنُ لَهٗ عٰبِدُوْنَ۝﴾ او [په دې خاطر] مونږ دده غلامی اختیار کړې ده.

**د لغاتو حل** : ﴿ شِقَاقٍ﴾ قال البيضاوي هو المناواة والمخالفة فان كل واحد من المتخالفين فى شق غير شق الآخر، ﴿الصِّبْغَةَ﴾ بالكسر فعلة من صبغ وهى الحالة التى يقع عليها الصبغ

## معارف او مسائل

**دایمان لنډاوجامع تفسیر**: ﴿فَاِنْ اٰمَنُوْا بِمِثْلِ مَآ اٰمَنْتُمْ بِهٖ﴾ دسورت بقرة دشروع نه تردې ځائ پورې دایمان حقیقت چرته مجمل اوچرته مفصل بیان شویدې، دلته په دې آیت کښې داسې یواجمال دې چې په ټولو تفصیلاتو اوتشریحاتو باندې مشتمل دې، ځکه چې د﴿اٰمَنْتُمْ﴾ مخاطب رسول الله ﷺ اوصحابه کرام دی، په دې آیت کښې ئې ددوئ ایمان یومثالی نمونه اوګرځوله اوحکم ورکړې شوچه دالله تعالی په نزد، مقبول اومعتبرصرف داشان ایمان دې چې رسول الله ﷺ اوصحابه کرامو ﷺ اختیارکړې دې، کوم اعتقادچه دې نه دوینبته دسربرابرهم مختلف وی هغه دالله تعالی په نزدمقبول نه دې،

زیات وضاحت ئې دادې چې په کوموځیزونودغې حضراتوایمان راوړې دې په هغې کښې دهیڅ کمې یازیاتې نه وی اوځنګه چې اخلاص سره ایمان راوړی په هغې کښې دهیڅ فرق رانشی ځکه چې داپه نفاق کښې داخل دی، دالله تعالی ذات، صفات، فرښتو، انبیاؤ، رسولانو، آسمانی کتابونو اود دوئ دتعلیماتو په باره کښې، کوم اعتقاداوایمان چې رسول الله ﷺ اختیار کړو هغه دالله تعالی په نزدمقبول دې، د هغې خلاف پکښې څه تاویل کول یابل څه معنی تړ مراد اغستل دالله تعالی په نزد ردکړې شوی دی، فرښتو، انبیاء اورسولانو ﷺ دپاره چې کوم مقام دهغوئ په قول اوعمل سره چې واضح شوی دی، دهغې نه کمول یازیاتول دایمان خلاف کاردې،

په دې وضاحت سره دهغه ټولوباطل فرقودایمان خلل واضح شوچه دایمان دعوی لری مګردایمان دحقیقت نه بې برخې دی ولې چې دایمان زبانی دعوی خوبه مشرکانوهم لرله، یهود اونصاراؤهم اود هرې زمانې زندیقانواوملحدانوهم لرلې ده خوهرکله چې ددغې خلقوایمان، په الله په رسولانوئې، په فرښتواوقیامت باندې هغه شان نه دې څنګه چې درسول الله ﷺ ووځکه دالله تعالی په نزدمردوداو نامقبول شو،

**دفرښتواورسول ﷺ په عظمت اومحبت کښې میانه روی مقصودده حدنه زیاتې کول پکښې ګمراهي ده**: څنې مشرکان خوبیخې دفرښتودوجودنه منکردی اوځنې ئې دخدائ لونړه ګنړی دادواړه خبرې په ﴿ بِمِثْلِ مَآ اٰمَنْتُمْ بِهٖ﴾ سره ردشوې، دیهودو اونصاراؤ ځنو ډلو د خپلو پیغمبرانو مخالفت اونافرمانی اوکړه تردې چې ځنې ئې قتل هم کړل اوځنوډلودومره زیات عزت اوعظمت ورکړوچه خدایان، دخدائ ځامن یادخدائ پشان ئې جوړ کړل، داسې قسم کمې، بیشې هم ګمراهی اوګرځولې شوه،

په اسلامی شریعت کښې درسول عظمت، اومحبت فرض دی چې دې نه بغیر بالکل ایمان نشی کیدې خوپه څه صفت یاعلم اوقدرت وغیره کښې ئې دالله تعالی برابرګنړل ګمراهی

اوشرک دي چنانچه قرآن کریم دشرک حقیقت داسې بیان کړې دې چې غیرالله لره په څه صفت کښې دالله تعالی برابرکړې شی.د ﴿اِذْ نُسَوِّيْكُمْ بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ هم دغه مفهوم دې،نن هم چې څوک،رسول الله ﷺ لره عالم الغیب،دالله تعالی پشان په هرځائ کښې موجود او حاضر ناظر بولی اوداګنړی چې درسول الله ﷺ دمحبت اوعظمت حق اداکوی، حالانکه دې پخپله درسول الله ﷺ دحکم اوټول عمردخوارئ،کوششونو په ښکاره مخالفت کوی، په دې آیت کښې هغوئ لره هم سبق دې څکه چې الله تعالی ته درسول الله ﷺ عظمت اومحبت هغسې مطلوب دې څنګه چې دصحابه کرامو رضی الله عنهم په زړونو کښې درسول الله ﷺ سره وو،په دې کښې کمی کول هم جرم دې،اونافرمانی پکښې کول هم دحدنه اوړیدل اوګمراهی ده.

**دنبی اورسول څان له قسمونه.ظلی بروزی اولغوی جوړول ټوله ګمراهی ده:** داشان هغه فرقې چې په محمد ﷺ باندې دنبوت دختمیدونه منکردی اونوی نبی ته دروازه خلاصول غواړی اودقرآن کریم واضح تصریح دخاتم النبیین ئې هم چې په خپل مقصد کښې خنډ بیا موندلو نو د رسول اونبی ډیر قسمونه ئې دخپله ځانه راپیدا کړل او نبی ظلی اوبردزی وغیره نبی نومونه ئې ورلره کیښودل اودې دپاره ئې دګنجائش راؤښکلوکوشش اوکړو،دې تیرشوی آیت دغه دجل اوګمراهی هم واضحه کړه څکه چې درسول الله ﷺ اوصحابه کرامو رضی الله عنهم په رسولانو باندې ایمان راؤړلو کښې چرته دظلی او بردزی نوم نشان هم نشته،اوداښکاره زندیقت اوالحاددې،

**دایمان بالاخرة.باطل تاویلات رد دی:** داشان هغه خلق چې زړونه اودماغونه ئې په مادو او مادیاتو کښې ورډوب دی دعالم غیب اوعالم آخرت څیزونه،هرکله چې ورته دخپل عقل نه لرې په نظرراغلل نوقسماقسم تاویلونه ئې په دې کښې اوکړل اوپخپل خام خیال کښې،داد دین خدمت ګنړی اووائی چې مونږداڅیزونه پوهیدوته نزدې کړل،خوهرکله چې دغه تاویلونه د﴿بِمِثْلِ مَآ اٰمَنْتُمْ بِهٖ﴾ سره سمون نه خوری څکه دغه ټول باطل اوردکړې شوی دی،دآخرت ټول حالات اوواقعات څنګه چې قرآن اوسنت کښې واردشوی دی بغیردڅه شک وشبهې، او بغیر دڅه تاویل نه په هغې ایمان راؤړل،په حقیقت کښې ایمان دې،دجسمونودحشرپه ځائ روحانی حشر اودعذاب اوثواب جسمانی په ځائ روحانی عذاب اوثواب ګنړل یاداعمالوپه تللو کښې، تاویلونه کول داټول دالله تعالی په نزدردشوی باطل اوګمراهی ده،

**درسول الله ﷺ دحفاظت ذمه واری الله تعالی اغستې ده:** قوله تعالی:﴿فَسَيَكْفِيْكَهُمُ اللّٰهُ﴾ کښې ئې واضح کړل چې دوئ ﷺ دِدخپلو مخالفینوزیات فکرنه کوی مونږبه پخپله داخبره هغوئ سره خلاصه کړواوددې مثال داسې دې لکه چې یوبل آیت ﴿وَاللّٰهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ﴾ کښې ددې زیات وضاحت شوې دې هغه داسې چې ستادحفاظت ذمه الله پخپله اغستې ده،

**دین اوایمان یو بوخ رنګ دې چه دانسان دمخ بغری نه ئې ښکاریدل ښکاردی:** قوله تعالی: ﴿صِبْغَةَ اللّٰهِ﴾ دې نه وړاندې آیت کښې داسلام دین،حضرت ابراهیم علیه السلام ته منسوب کړې شوې ؤو،﴿مِلَّةَ اَبِيْكُمْ اِبْرٰهِيْمَ﴾ اودلته ئې الله تعالی ته براه راست منسوب کولوسره دا اوښودل چې دین په حقیقت کښې دالله تعالی دې،چاپیغمبرته ددې نسبت په مجازی توګه کولې شی دلته دملت نه په. صبغة [رنګ] سره تعبیرکولوکښې دؤوخبروته اشاره ده، ① یوداچه دنصاراؤدرسم تردیدپه دې شان اوشوچه دبچی پیداکیدلوپه وخت دوئ به دایوعادت کولوچه په اوومه ورځ به ئې په

رنګدار او بو کښې لامبولو او د سنتولو په ځائ به ئې دغه لامبول د ماشوم پاکيزګي او د نصرانيت
د دين پوخ رنګ ګڼرلو، دې آيت اوښودل چې دا وبودا رنګ په وينځلو سره بيخي ختميږي چې
هيڅ اثرئې هم نه پاتې کيږي اود نه سنتولو په وجه چې کومه ګندګي اوناپاکي په جسم کښې
پاتې کيږي دهغې نه هم دغه رنګ خلاصې نشي ورکولې اصل رنګ د دين او ايمان رنګ دې
چې دظاهري او باطني پاکئ ضمانت هم دې او په ځائ پوخ پاتې کيدونکې هم دې،
بله داچه ايمان اودين ته رنګ فرمائيلو کښې دې خبرې ته اشاره ده چې څنګه رنګ په
سترګو ليدلې شي دمؤمن د ايمان نخښې نښانې دهغه په څهره يعنې مخ، بشره بدن اوشکل ټولو
حرکاتو، سکناتو، کړو وړو معاملاتو او عاداتو کښې ښکاره کيدل پکاردي [والله اعلم]

| قُلْ أَتُحَاجُّونَنَا فِي اللهِ |
|---|
| اووايه [دوئ ته] \| چې ايا جګړې کوئ تاسو زمونږ سره \| په باره د الله کښې |
| ورته اووايه چې ايا تاسو مونږ سره د الله په حق کښې جګړې کوی |
| وَهُوَ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ وَلَنَا أَعْمَالُنَا وَلَكُمْ |
| حال داچې هغه \| رب زمونږ دې \| اورب ستاسوهم دې \| اومونږ لره دی \| عملونه زمونږ \| اوتاسولره دی |
| حال دا چې هغه ستاسو او زمونږ [په شريکه] پالونکې دې \| اوزمونږ خپل عملونه دی اوستاسو |
| أَعْمَالُكُمْ وَنَحْنُ لَهُ مُخْلِصُونَ أَمْ تَقُولُونَ إِنَّ |
| عملونه ستاسو \| اومونږ \| هغه لره \| خاص بندګی کونکی يو \| اياوايئ تاسو \| چې بيشکه |
| خپل عملونه دی \| اومونږ خالص دهغه عبادت کوو \| اياتاسو دا وائې چې ګنې |
| إِبْرٰهٖمَ وَإِسْمٰعِيلَ وَإِسْحٰقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطَ كَانُوا هُودًا أَوْ نَصٰرٰى |
| ابراهيم \| اواسماعيل \| اوسحاق او يعقوب او ديعقوب اولاد \| وو \| يهوديان \| ياعيسايان \| |
| ابراهيم ﷺ، اسماعيل ﷺ اواسحاق ﷺ اويعقوب ﷺ اودهغوئ نمسی ټول يهوديان يا عيسايان وو |
| قُلْ ءَأَنْتُمْ أَعْلَمُ أَمِ اللهُ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ كَتَمَ |
| ورته اووايه \| ايا تاسو \| ښه پوهيږئ \| که الله \| اوڅوک دې \| زيات ظالم \| دهغه چانه \| چې پټه کړې ئې وی |
| ورته اووايه چې تاسو ښه پوهيږئ اوکه الله \| اودهغه چانه لوئې ظالم څوک کيدې شي چې پټوی |
| شَهَادَةً عِنْدَهُ مِنَ اللهِ وَمَا اللهُ بِغَافِلٍ عَمَّا |
| ګواهی \| چې وه په ذمه دهغه \| دطرفه دالله نه \| او نه دې \| الله \| نا خبره \| دهغه کارونونه |
| کړې ئې وی شهادت دالله چې ورسره وی \| اوالله ستاسو د عملونو نه ناخبره نه دې |
| تَعْمَلُونَ تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ لَهَا مَا كَسَبَتْ |
| چې تاسو ئې کوئ \| هغه څه خلق وو \| چې تيرشو \| دهغوئ دپاره وو \| هغه څه \| چې هغوئ کړی وو \| |
| [دکومو پيغمبرانو نومونه چه ذکرشول] دغه يوه ډله وه چې لاړه تيره شوه دهغوئ خپل عمل وو |
| وَلَكُمْ مَا كَسَبْتُمْ وَلَا تُسْأَلُونَ عَمَّا |
| او ستاسو دپاره دی \| هغه څه \| چې تاسو ئې کوئ \| اونه به کيږی ستاسو نه تپوس \| دهغه عملونو |
| اوستاسو خپل عملونه دی \| اوستاسو نه به د هغوی د عملونو په باره کښې هيڅ تپوس نشی کولې |

| | كَانُوْا | يَعْمَلُوْنَ ۝ |
|---|---|---|
| | چې وو هغوی | چې كول به ئې |

## آسان ترجمه قرآن

ووايه چه آيا تاسو مونږ سره د الله تعالى په باره کښې جګړه کوئ؟ حالانکه هغه څمونږ هم پروردګار دې اوستاسو هم (دا) جدا (خبره ده چه) څمونږ عملونه څمونږ دپاره دی او ستاسو عملونه ستاسو دپاره دی او مونږ خوخپل عبادت هغه د پاره خالص کړې دې آيا تاسو دا وايئ چه ابراهيم، اسماعيل، اسحاق، يعقوب عليهم السلام او د دوی اولاد يهوديان يا عيسايان وو؟ (دوی ته) ووايه چه تاسو ښه پوهيږئ که الله تعالى؟ اودهغه کس نه لوئ ظالم به څوک وی چه داسې ګواهي پټه کړی چه هغه ته د الله تعالى د طرف نه راغلې وی؟ او کوم څه چه تاسو کوئ نوالله دهغې نه ناخبره نه دې (بهرحال!) هغه يو امت ووچه تير شو چه څه هغوی وکړل هغه دهغوی د پاره دي اوچه څه تاسو وکړل نوهغه تاسو دپاره دي اوتاسونه به دا تپوس اونه شي چه هغوی به څه عمل کولو؟.

## خلاصه تفسير

﴿قُلْ﴾ تاسو [دے يهودو او نصرانيانو ته] اووائی ﴿اَتُحَآجُّوْنَنَا﴾ چه آيا تاسو خلق [اوس هم] مونږ سره په مخه دليلونه بيانوئ ﴿فِي اللّٰهِ﴾ د الله ﷻ په باره کښې [چه هغه به مونږ په قيامت کښې نه بخښي] ﴿وَهُوَ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ﴾حالانکه هغه زمونږ او ستاسو پروردګار [او مالك] دے [نو په پروردګار والی کښې خو تاسو سره هيڅ خصوصيت نشته ځنګه ئې چه ستاسو دبعضو دعوو نه اختصاص معلوميږ. لکه تاسو وائې چه [نحن ابناء الله]﴿وَلَنَآ اَعْمَالُنَا وَلَكُمْ اَعْمَالُكُمْ﴾او مونږ ته به زمونږ کړی ملاېږی او تاسو ته به ستاسو کړی ملاويږی [تر دې حده پورې خو تاسو هم منئ]او [دالله ﷻ شکر دې چې] ﴿وَنَحْنُ لَهٗ﴾مونږ صرف د الله [دخوشحالئ] دپاره خپل [دين]لره [دشرك وغيره نه] ﴿مُخْلِصُوْنَ ۝﴾ خالص ساتلې دې [په خلاف ستاسو د طريقې اوسنئ نه چه منسوخ کيدو نه علاوه شرك سره هم ګډ شوې ده ځنګه چه د دوی ددې وينا [عزيرابن الله او مسيح ابن الله] نه سرګند ده او په دې کښې الله ﷻ مونږ غوره ګرزولی يو نو بيا به مونږ ته نجات ولې نه وی؟] ﴿اَمْ تَقُوْلُوْنَ اِنَّ اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ وَالْاَسْبَاطَ﴾ يا [اوس هم خپلو ځانونو دپاره په حق باندې دثابتولو په غرض] په مخه وائې چه ابراهيم او اسماعيل او اسحاق اويعقوب او اولاد د يعقوب [کښې کوم انبياء تير شوی دی دا ټول حضرات] ﴿كَانُوْا هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰى﴾يهود يا نصاری وو [او په دې سره چه د دوی او زمونږ طريقه يوه ده خپل ځانونه په حق ثابتوی ﴿قُلْ﴾ نو ددې په جواب کښې ائې محمد ﷺ يو دومره ورو کے شان خبره دوی ته] اووائې چه [ښه داراته اوښائی چه] ﴿ءَاَنْتُمْ اَعْلَمُ اَمِ اللّٰهُ﴾ تاسو زيات خبر ئې يا الله ﷻ [او ښکاره خبره ده چه صرف الله ﷻ زيات خبردار دې او هم ده ددې نبيانو په ملت اسلام باندې کيدل ثابت کړی دی ځنګه چه اوس مخکښې تير شو] او [پوهه دی دا کافران خو پټوی ئې نو] ﴿وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ كَتَمَ شَهَادَةً عِنْدَهٗ مِنَ اللّٰهِ﴾ددې سې کس نه به زيات ظالم څوک وی چه داسې شهادت پټوی چه ورته دالله ﷻ له طرفه رارسيدلې وی [او ائې اهل کتابو]﴿وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ۝﴾ الله ﷻ ستاسو دکړو نه بې خبره نه دې [پس هر کله چه دغه

حضرات یهود یا نصرانیان وونو د دین په طریقه کښې تاسو دوی سره یوشان څنګه شوئ چه هغې نه ستاسو په حق کیدل ثابت شی] ﴿تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ﴾ دا [ددغه بزرګانو] یو تولې وو چه [په خپله زمانه کښې] تیر شو ﴿لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُم مَّا كَسَبْتُمْ﴾ د دوی په کار به ددوی کړه راځی او ستاسو په کار به ستاسو کړه راځی ﴿وَلَا تُسْأَلُونَ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ او تاسو نه به د دوی دکړو تپوس هم نه وی [اوهر کله چه تشه یاد ګیرنه هم نه وی نونفع به یئ ورته څنګه وی].

### معارف اومسائل

**داخلاص حقیقت**:قوله تعالی- ﴿وَنَحْنُ لَهُ مُخْلِصُونَ﴾ په دې کښې دمسلمان امت یو،داخصوصیت ښودلې شوې دې چې دوئ الله دپاره مخلصان دی،حضرت سعیدبن جبیر ﷺ داخلاص دامعنی ښودلې ده چې انسان په خپل دین کښې داسې سوچه وی چې الله سره بل هیڅوک په هیڅ شان سره شریک نه ګرځوی اوخپل عمل خالص الله تعالی دپاره کوی،خلقوته ئې ښودنه،یاد دوئ دتعریف او شاباسی طمع نه لری،

ځنې بزرګانوویلی دی چې اخلاص داسې یوعمل دې چې نه خوئ فرښتې پیژندې شی،نه شیطان، اوداصرف دبنده اودالله ترمنځه یورازدې.

| سَيَقُولُ | السُّفَهَاءُ | مِنَ النَّاسِ | مَا وَلَّاهُمْ | عَنْ قِبْلَتِهِمُ | الَّتِي | كَانُوا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوبه وائی | ناپوهان | دخلقو نه | چې څه څیز اوګرزول دوئ | دقبلې خپلې نه | هغه قبله | چې وو دوئ |
| ناپوهه خلق به ضرور وائی چې په دوئ څه اوشو چې دهغې خپلې هغې قبلې نه اوګرزیدل چې تراوسه | | | | | | |

| عَلَيْهَا | قُلْ | لِلَّهِ | الْمَشْرِقُ | وَالْمَغْرِبُ | يَهْدِي | مَن | يَشَاءُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هغې طرفته | ورته اووایه | چې الله لره دې | مشرق | اومغرب | هدایت کوی | هغه چاته | چې خوښه ئې شی |
| پورې به ئې ورته مونځونه کول | ته ورته اووایه چې مشرق اومغرب ټول دالله دی | چې دچا په باره کښې ئې | | | | | |

| إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ |
|---|
| د لارې نیغې |
| خوښه شی نوهغه په سمه لار روان کړی |

### آسان ترجمه قرآن

اوس به دا بې وقوف خلق وائی چه آخر هغه کوم یو څیز دې چه هغې دوی(مسلمانان) دهغه قبلې نه مخ اړولو باندې مجبوره کړل چه هغې طرف ته به دوی مخ کولو؟ته ورته ووایه چه مشرق او مغرب ټول د الله تعالی دی هغه چه چاته وغواړې نو دسمې لارې هدایت ورته کوی.

### خلاصه تفسیر

[کله چه کعبه مونږ قبله مقررکړه اود یهودو قبله پریښوده نود ناخوالئ او ناخوښوئ په وجه به] ﴿سَيَقُولُ السُّفَهَاءُ مِنَ النَّاسِ﴾ اوس خو [دا]بې وقوف خلق ضروربه هم دا وائی ﴿مَا وَلَّاهُمْ عَنْ قِبْلَتِهِمُ الَّتِي كَانُوا عَلَيْهَا﴾ چه دا [مسلمانان] ددوی د [مخکښې طرف د] قبلې نه [چه بیت المقدس وو] کوم طرف ته به یئ چه مخکښې مخ کولو کومې خبرې [بل طرف ته] واړول ﴿قُل لِّلَّهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ﴾ تاسو [جواب کښې ورته] اووائې چه ټول [طرفونه که] مشرق [دې] او [که] مغرب [دې] صرف

دالله ﷻ ملك دی [الله ﷻ ددې مالکانه اختیار لری کوم طرف ته چه غواړی هغه مقرر کوی چالره دا طاقت نشته دې چه ددې د وجې پوښتنه اوکړی اود احکام شرعیو په باره کښې سمه لار هم اعتقاد دې خو بعضې خلق ددې لاړې اختیارولو توفیق نه لرې خامخا په مخه تېوسونه کوی البته] ﴿يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ﴾ الله ﷻ چه چاته[په خپل فضل سره] اوغواړی [دا] سمه لار ښائی.

## معارف اومسائل

په دې آیت کښې دقبلې دبدلیدوپه باره کښې دمخالفینواعتراض نقل کوی اودهغې جواب وَرکوی،ددغې اعتراض اوجواب نه وړاندې دقبلې حقیقت اودهغې مختصرتاریخ واؤورئ چه په سوال،جواب پوهیدل به درته آسان شی.دقبلې لفظی معنی دمخ کولو طرف دې،داښکاره خبره ده چه دمؤمن رُخ په هرعبادت کښې صرف دالله وحده لاشریک لـه اړخ تـه وی،اودهغه پاک ذات دمشرق،مغرب اوشمال،جنوب دقیدونونه زیات پورته دې هغه یوخاص طرف کښې نه دې ددې طبعی اثرپه خاص طورداکیدل ووچه څوک عبادت کونکې دې دیوخاص طرف پابندنه وې هرچاچه په خپله خوښه دمانځه اړخ اختیارولې اوهم یوبنده یووخت یواړخ ته اوبل وخت بل اړخ ته مخ کولې نوبې خایه به نه وو.

خو یوبل حکمت الهیه ددې مقتضی شوچه دټولوعبادت کونکورُخ دیو طرف ته وی،هغه دادې چه دَعبادت مختلف قسمونه دې څنې ځان ځان لـه دې اوځنې پـه جمعَ دی،دَ الله ﷻ ذکراوروژه ساتل ځان ځان له عبادتونه دی چه یواځې اوپه پټه اداکیدې شی.اومونځ اوحج دجمع عبادتونه دی چه په جماعت،جمع اواعلان سره اداکولې شی پـه دې کښې دَعبادت نـه علاوه،مسلمانانوته داجتماعی ژوندآداب ښودل اوورازده کول هم دَنظریه وړاندې دی اوداهم ښـه ښکاره خبره ده چه دَاجتماعی نظام،دَټولونـه لـوئې بنیادی اصول دکثروخلقویـووالی اویومخیزتوب دې دایـووالې څومره چه زیات نه زیات قوی وی هغه هومره بـه اجتماعی نظام کلک اومضبوط وی،یوځانله والې اوګډوډی دَاجتماعی نظام دپاره زهرقاتل دی،بیا دَیووالی ټکی ټاکلوکښې دهرې صدئ اوهرې زمانې خلق په مختلفو لاروپاتې شوی دی،مثلاً یوقوم دَیووالی ټکې نسل اونسب ټاکلې دې،بل یوقوم،وطن اوجغرافیائی خصوصیات ټاکلی دی اوچارنګ اوژبان ټاکلې دې.

خودین الهی اودَانبیاء ﷺ شریعتونو،داغیراختیاری څیزونه دَیووالې دټکې جوړولو قابل اونه کنټرل اونه خوپه حقیقت کښې داڅیزونه داسې دی چه پوره انسانی افرادولره په یومرکزراجمع کړې شی بلکه څومره چه په ژورنظراوکتې شی دغه قسم یووالی په حقیقت کښې انسانی افرادولره په ډیروکثرتونوکښې تقسیموی اویوتربله دَټکراؤاواختلافاتواسباب دی.

**د ټول امت دپاره د يوې قبلې مقرر کولو حکمت:** دین اسلام چه په حقیقت کښې دټولوانبیاؤ ﷺ دین دی دَوحدت اویـووالی اصلـی نقطـه [ټکـی]ئـې دَفکر،خیـال اوعقیـدې یـووالی ټـاکلې دې اودکروړونوخدایانوپـه عبادت کښې تقسیم شوې دنیاتـه ئې دیوذات حق،وحده لاشریک لـه دَعبـادت اوفرمـانبردارئی دعـوت ورکـړو چه پرې دَمشرق او د مغرب،مَاضـی اومستقبل ټـول انسـانی افرادراجمـع کیـدې شی،بیا دَدې حقیقی،فکری اونظری یـووالی تـه دعملی صورت اوقوت ورکولودَپاره څه ظاهری یـووالی هم ورسره یوځائې کړې شوخوپه دې کښې هم دااصول مقررکړې شوچه عملی اواختیاری دِوی چه ټول انسانی افرادددې پـه اختیارَولوسره دَوروالئی پـه

یو مزی اوتار کښې اوپیللې شی، نسب وطن اورنګ وغیره اختیاری څیزونه نه وی څوک چه یو خاندان کښې پیدا شوي دي هغه په بل خاندان کښې نشی پیدا کیدې، په پاکستان کښې پیدا کیدونکي انسان په انګلستان اوافریقه کښې نشو پیدا کیدې، توراوسپین انسان دیو بل بدل رنګ پخپله نشی اختیارولې، اوس که داسې څیزونه دیووالی یو مرکزی ټکې جوړ کړې شی نوانسان به خامخا په زرګونوټولواوډلو کښې تقسیم شی. په دې وجه دین اسلام دهغه څیزونوپوره احترام اوکړوچه د انسانانوتمدنی فائدې ورسره تړلی دی اودائې دانسانی یووالی مرکز جوړ نکړو، ولې چه داسې قسم یووالی انسانانو لره په ګڼروکثرتونو کښې تقسیموی، خواختیاری څیزونو کښې ددې پوره خیال ساتلې شوې دې چه دفکری یو والی سره عملی اوصوری یووالې هم قائم شی اوبیاهم په دې کښې په تینګه دالحاظ ساتلې شوې دې چه هر قسم انسانان، نر، ښځه، پوهه، ناپوهه، خوار، مالدار، ښارې اوکلې وال ئې یو شان په آسانه اختیارولې شی، چنانچه اسلامی شریعت، دټولې دنیاخلق ددې پابندجوړ نکړل چه، اغوستن، استوګنه، خوراک، څکاک [چښاك] ددوئی دې په یو طریقه وی ولی چه دهرځائې موسمونه اوددې دخلقوضروریات اوطبیعتونه مختلف دی، که ټول خلق دیو قسم جامواودریشی پابند کړې شی نو انسان به ډیرومشکلاتو کښې راګیرشی ددې په کم ناکم تجویزکولوسره به په انسانی اعتدال ظلم وی اود الله ﷻ دورکړی عمده اوښکلی اغوستنواوجامویې عزتی به وی اودزیات لباس پابند ګرځولوسره به خوارغریب خلق په ډیرومشکلاتو کښې ګیرشی.

په دې وجه اسلامی شریعت دټولوانسانانودپاره یو قسم جامه اودریشی اونه ټاکله بلکه په دې کښې ئې خپلې خپلې خوښې ته پریښودل البته دې کښې ئې دومره شرط اولګولوچه په دې کښې دبیخایه اسراف، فخزوغیره او د کافرو خلقونقل کول نه وی چنانچه داقسم څیزونه ئې ممنوع اوحرام اوګرځول اوصرف خلق ئې دهغه څیزونوپابند اوګرځول چه اختیاری کیدوسره سره ارزان هم دی لکه دامامتې په مانځه کښې صفونه تړل، د په یوامام پسې دکړوورپابندی کول اوپه حج کښې دلباس اوځائې یووالې شو.

همدغه شان یو ضروری څیزدقبلې دلوری یووالې هم دې، اګرچه د الله ﷻ پاک ذات، د هر لوری اوارخ نه برې دې نوشپږواړه اړخونه یوشان شو خو په مانځه کښې داجتماعی صورت اویووالی پیداکولودپاره دټولوانسانانویو اړخ ته مخ کول یو بهترینه آسانه اوبې بیعې دیووالی ذریعه ده چه دځلورګنجه دنیا خلق پرې باندې په آسانۍ سره رایو ځائې کیدې شی، اوس که دااړخ ټاکل انسانانوته پریښودې شو نودې نه به لوئې اختلافات اوجګړې رابرسیره [راپورته] شی نوضروری شوه چه الله ﷻ دپخپله دااوټاکی.

**د کعبې بنیاد د آدم ؑ نه هم وړاندې ایښودې شوې وو:** حضرت آدم ؑ چه دنیاته راکوز [راکښته] کړې شونودهغې نه وړاندې دفرښتوپه ذریعه دبیت الله [کعبې] بنیادړومبې نه ایښودې شوې وو، اودحضرت آدم ؑ داولاد دپاره دټولونه ړومبۍ قبله هم دااوټاکلې شوه لکه فرمائی: ﴿إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِي بِبَكَّةَ مُبَارَكًا وَهُدًى لِّلْعَالَمِينَ﴾ دټولونه اول جوړ کړې شوې کورهغه دې چه مکه مکرمه کښې دې برکت اوهدایت دې پکښې ددُنیا د خلقو دپاره.

دحضرت نوح ؑ ترزمانې پورې همدغه قبله راروانه وه طوفان نوح ؑ سره ټوله دنیاغرقه شوه هغه وخت دبیت الله شریف عمارت هم ړنګ شو [ونړیدل]، د الله ﷻ په حکم حضرت ابراهیم

اوحضرت اسماعیل ی دادوباره آباده کړه اوهم دا، ددوئ او ددوئ داولاد قبله پاتې شوه، وروستو راتلونکوپیغمبرانو ﷺ دبنی اسرائیلودپاره بیت المقدس قبله اوټاکلې شوه، او دابو العالیه رحمه الله په قول په دغه ټوله زمانه کښې به چه دغه انبیاؤ ﷺ په بیت المقدس کښې مونځ اداکولو نو صخره د بیت المقدس اوبیت الله شریف دواړه به ئې مخې ته راوستل [قرطبی] (۱)

په خاتم الانبیاء ﷺ چه کله مونځ فرض شونوهم دا [بیت الله شریف] ئې قبله اوګرځولې شوه دهجرت نه پس اودبعضې روایاتوپه بنادهجرت نه لږ شان وړاندې د الله ﷻ په حکم بیت المقدس قبله جوړه کړې شوه، چنانچه دصحیح بخاری شریف دروایت مطابق رسول الله ﷺ شپاړس، اولس میاشتې دبیت المقدس اړخ ته مونځ کولو، څنګه چه اوس هم په مسجدنبوی کښې ددې علامات موجوددی چرته چه بیت المقدس طرف ته هغوئ مونځونه اداکړی وو [قرطبی] (۲)

رسول الله ﷺ اګرچه د الله ﷻ حکم منلوته هر وخت غاړه بسته وواوددې په بنائې بیت المقدس اړخ ته مونځونه کول خود طبیعت میلان اودزړه خواهش ئې داؤ چه د نبی کریم ﷺ قبله دې هم هغه دحضرت آدم ﷺ اوحضرت ابراهیم ﷺ قبله وی او الله ﷻ هم دخپلوخالصو او مخلصو بندګانو خواهش اومرادونه پوره کوی.

توچنان خواهی خداخواهدچنین  می دهدیز دان مُرادِمتقین

[ته چه څنګه غواړې الله هم هغسې غواړی. الله ﷻ دمتقیانومرادونه ترسره کوی]

رسول الله ﷺ هم دخپل دې امید پوره کیدویقین لرلوځکه به ئې دوحی دراتلوپه انتظار کښې بیابیا آسمان ته کتل لکه قرآن کریم فرمائی:

قوله تعالی: ﴿قَدْ نَرَىٰ تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَاءِ ۖ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضَاهَا ۚ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۚ﴾ مونږ ګورو ستاسو بیا بیا آسمان ته کتل نومونږ به د قبله بدله کړو هغه چه ستاسو خوښه ده نوآئنده په مونځ کښې خپل مخ مسجدحرام اړخ ته کوه.

چنانچه دې کښې درسول الله ﷺ دآرزواودهغې دپوره کولوذکر الله ﷻ فرمائیلې دې.

**په مونځ کښې خاص دبیت الله شریف ذات ته مخ کول ضروری نه دی چنانچه بهرخلقودپاره ددې اړخ ته مخ کول هم کافی دی**: دلته دایوفقهی مسئله بیانول ضروری دی چه الله ﷻ په دې آیت کښې، دمخ کولودپاره دبیت الله شریف په ځائې مسجد حرام اوفرمائیلو، دې کښې اشاره ده چه بهرنی اودلرې هیوادونوخلقودپاره داضروری نه ده چه خالص، ذات دبیت الله شریف ته دمخ کوی بلکه داکافی ده چه دبیت الله شریف اړخ ته دمخ کوی، البته څوک چه د بیت الله په حدودوکښې دننه وی یابهر نه په څه لوړځائې ولاړبیت الله شریف ورته ښکارې نوخاص ذات دبیت الله شریف ته مخ کولونه بغیرئې مونځ نه کیږی اوچاته چه بیت الله شریف په نظر نه راځی نو هغوئ لره صرف دبیت الله شریف اړخ ته مخ کول هم کافی دی.

بهرحال شپاړس اوولس میاشتې پس هرکله چه قبله په دغه شان بدله کړې شوه، نو یهودو، خنې مشرکانواومنافقانو داعتراضونوخُلې وازې کړې، چه دمسلمانانو ددین چرته تیکاویدل او څه قرار هم نشته اوقبله ئې وخت تروخته بدلیږی.

---

۱) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ۲/ ۱۵۱
۲) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ۲/ ۱٤۸، وصحیح البخاری، کتاب الإیمان، باب الصلاة من الإیمان: ۱/ ۱۱

قرآن كريم ددوئ دا اعتراض په دې ذكر شوى آيت كښې نقل كړو خووې فرمائيل چه: بيوقوف خلق دا اعتراض كوى، چنانچه ددوئ بيوقوفى ددوئى د اعتراض د جواب نه په ډاګه كيږى لكه فرمائي:

﴿قُل لِّلَّهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ ۚ يَهْدِي مَن يَشَاءُ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ﴾ ته اووايه چه خاص الله لره دى مشرق او مغرب هغه چه څوك اوغواړى نو په نيغه [سيدها] لاره ئې روان كړى.

په دې كښې ئې قبلې ته دمخ كولو حقيقت داسې واضح كړو چه د كعبې او بيت المقدس، هيڅ خصوصيت سوا د دې نه بل نشته چه د حكم ربانى په ذريعه ديو امتيازى شان وركولو په وجه ئې قبله جوړه كړه، كه هغه او غواړى نو د دې دواړو نه علاوه يو دريم ځلورم څيز [شئ] هم قبله جوړولې شى بيا د جوړې شوې قبلې اړخ ته په مخ كولو كښې د څه فضيلت او ثواب روح د الله ﷻ د حكم پوره كولو نه سوا بل نشته، چه د كعبې د بانى حضرت ابراهيم عليه السلام د ملت بنيادى أصول دى او دا شان بل آيت كښې ئې د دې نه په زيات وضاحت سره بيان اوكړو:

قوله تعالى: ﴿لَّيْسَ الْبِرَّ أَن تُوَلُّوا وُجُوهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلَٰكِنَّ الْبِرَّ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ﴾ په دې كښې څه ذاتى هيڅ نيكى او ثواب نشته چه تاسو مشرق يا مغرب ته مخ كوئ ليكن نيكى په الله باندې د ايمان راوړو او د هغه په فرمانبردارئ كولو كښې ده. او په بل يو آيت كښې فرماى: ﴿فَثَمَّ وَجْهُ اللَّهِ﴾ [نو د الله د فرمان مطابق] كوم اړخ ته چه تاسو مخ كوئ نو د الله ﷻ مخه به هم هغه اړخ ته بيا مومئ [پيدا كړئ].

د دې آيتونو د قبلې او د دې ته دمخ كولو حقيقت هم دا شان واضح كړو چه په دې كښې د ځايونو څه ذاتى خصوصيت نشته بلكه د دې كښې د فضيلت پيدا كيدو سبب يواځې هم دا دې چه الله ﷻ د دې لره د قبلې جوړولو په حيثيت اختيار كړه او د دې ته دمخ كولو د ثواب وجه هم يواځې دا ده چه د حُكم ربانى ترسره كول دى، او رسول الله ﷺ د پاره د بدلولو دا حكمت هم كيدې شى چه په عملى شان په خلقو دا واضح شى چه قبله، څه بُت نه دې چه عبادت ئې كولې شى بلكه اصل څيز حُكم خداوندى دې چه بيت المقدس ته دمخ كولو په باره كښې اوشو نو هغه ئې ترسره كړو بيا چه كعبې اړخ ته دمخ كولو حكم راغې نو د هغې ترسره كول عبادت او ګرځيدو، چنانچه وريسې آيت كښې الله ﷻ هم په قرآن كريم كښې د دې حكمت ته اشاره كړيده، فرمائي: ﴿وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِي كُنتَ عَلَيْهَا إِلَّا لِنَعْلَمَ مَن يَتَّبِعُ الرَّسُولَ مِمَّن يَنقَلِبُ عَلَىٰ عَقِبَيْهِ﴾ په كومه قبله چه تاسو وراندې پاتې شوى يئ د هغې قبله جوړول، محض د دې خبرې ظاهرولو د پاره وه چه څوك د رسول الله ﷺ تابعدارى كوى او څوك ترپه روستو كيږى.

د دې سره د هغه بيوقوفو مخالفينو پوره جواب هم اوشو چه د قبلې په باره كښې د قبلې بدلول ئې د اسلام د اصولونه خلاف ګنړل او مسلمانانو ته به ئې پيغورونه وركول، په آخر كښې ارشاد فرمائي: ﴿يَهْدِي مَن يَشَاءُ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ﴾ روانوى هغه څوك چه خوښه ئې شى په لاره سمه.

چنانچه اوښودې شو چه سمه لار هغه ده چه انسان د الله ﷻ حكم ته ملا تړلې ولاړوى چه څه حكم الهى راشى بې د څه انو بهانو نه په هغې عمل كوى چه د الله ﷻ په فضل سره دا مسلمانانو ته حاصله شوې ده.

په مسند احمد كښې د حضرت عائشه رضي الله عنها نه منقول دى چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه: اهل كتاب، مسلمانانو سره په درې څيزونو د تولو نه زيات حسد كوى. ① په هفته كښې يوه ورځ

،دعبادت دپاره دمخصوص کولو حکم ټولو امتونو ته شوي وو، يهودو، دخالي [هفتي] ورځ اوټاکله ،نصارا اودآتوار [يکشنبې] اوپه حقيقت کښې دادجمعې ورځ وه چه مسلمانانو يکښې غوره کړه ② هغه قبله چه دبدلولونه پس مسلمانانو دپاره اوټاکلې شوه اوبل هيڅ يوامت ته ددې توفيق اونشو. ③ امام پسې دمقتديانو آمين وئيل، دادرې واړه ښه والي يواځې دمسلمانانو په برخه شو، اهل کتاب تر بې برخې دی(۱).

| لِّتَكُونُوا | أُمَّةً وَسَطًا | جَعَلْنَٰكُمْ | وَكَذَٰلِكَ |
|---|---|---|---|
| دپاره ددې چې شئ | امت درميانه | تاسو | اودارنګې جوړکړئ مونږ |
| او په دې خبره موتاسو غوره ټولې اوګرځولې اچې تاسوبه [دقيامت | | | |

| شَهِيدًا | الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ | وَيَكُونَ | عَلَى النَّاسِ | شُهَدَاءَ |
|---|---|---|---|---|
| ګواه | رسول په تاسو | اوچې شي | په خلقو | تاسو ګواهان |
| په ورځ] په نوروخلقو باندې ګواهان شئ [او پيغمبر په تاسوباندې ګواه شي | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

**او(مسلمانانو !) دغه شان خو مونږ تاسو يو درميانه امت جوړ کړی يئ ددې دپاره چه تاسو په نورو خلقو باندې ګواهان شئ او رسول ﷺ په تاسو باندې ګواه شي.**

## خلاصه تفسير

﴿وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَٰكُمْ أُمَّةً وَسَطًا﴾ [او ائې د رسول ﷺ تابعدارو خلقو] داشان مونږ تاسو داسې يوه ډله جوړه کړئ چه [دهر طرف نه] ډير زيات په اعتدال يئ؛ ﴿لِّتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ﴾ دپاره ددې چه [په دنيا کښې د بزرګئ او امتياز حاصلولو نه علاوه په آخرت کښې هم ستاسو لويه بزرګي ښکاره شي] تاسو به [په يوه لويه مقدمه کښې چه يوفريق به په کښې حضرات نبيان ﷺ وی اوبل فريق به ددوی مخالف قومونه وی] ددغې [خلقو په مقابله کښې به ګواهان [تجويز] شئ او [دټولونه لويه بزرګي به مو داوی چه] ﴿وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا﴾ ستاسو [دګواهئ جوګه کيدو اواعتبار کيدو دپاره به] رسول الله ﷺ ګواه وی [او ددې شهادت او ګواهئ سره به دګواهئ دمعتبر کيدو تصديق اوشي اوبيا به هم ستاسو په ګواهئ سره دمقدمې فيصله دحضرات انبياء کرامو په حق کښې اوشي. مخالفين به مجرمان ثابت شي سزا به بيا مومی [پيدا کړی] چه دا د عزت يواعلی درجه کيدل ظاهر دی].

## معارف اومسائل

**دامت محمديه خاص اعتدال:** قوله تعالى: ﴿وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَٰكُمْ أُمَّةً وَسَطًا﴾ لفظ دوسط په فتح دسين سره په معنی داوسط دې، بهترين څيز اوبهترين کارته وسط وئيلې شي.په ترمذی(۲) شريف کښې په روايت دابی سعيد خدری ﷺ سره رسول الله ﷺ د وسط لفظ تفسير په عدل سره کړې دې چه دبهترين په معنی راځي [قرطبی] په دې آيت کښې دامت محمديه علی صاحبها الصلوة والسلام

(۱) مسند أحمد رقم الحديث: ۲۳۸۸۰
(۲) ۲/ ۱۲۵، أبواب التفسير ومن سورة البقرة.

دَابو امتیازی فضیلت اوخصوصیت ذکر کړې دي چه دا یو معتدل اُمت جوړ کړې شو، په دې کښې دابنودلې شوی دی چه څنګه مونږه مسلمانانو ته دټولونه زیاته غوره اوبزرګه قبله ورکړه، دغه شان مونږ اُمت اسلامیه ته یوخاص امتیازی فضیلت داورکړې دې چه دا مو یو معتدل اُمت جوړ کړې دې چه په نتیجه کښې به په میدان حشر کښې ورته دا امتیاز حاصل وی چه دټولو انبیاؤ ﷺ اُمتونه، هر کله چه دَخپلو خپلو انبیاؤ دَهَدایت اوتبلیغ نه انکار اوکړی اودا اووائی چه مونږ ته خونه څه کتاب راغلې وواونه کوم یو نبی علیه السلام مونږ ته هدایت کړې دې، په دغه وخت به، اُمت محمدیه دَانبیاؤ ﷺ له اړخه په ګواهۍ کښې پیش شی اووائی به چه انبیاء ﷺ په هرِه زمانهَ کښې دَ الله ﷺ له اړخه راوړلې هدایت خپلو خپلو امتونوته رسولې وو اوسمې لارې ته ئې دَدوئی دَ راوستو تروسه وسه کوشش کړې وو، دغه اُمتونه به دَاُمت محمدیه په ګواهۍ جرحه اواعتراض اوکړی چه دا امت محمدیه خوزمونږ په زمانه کښې موجود هم نه ؤ وزمونږ دمعاملونه دوئی څنګه خبر شو ددې [امت] ګواهی زمونږ په خلاف څنګه قبلولې شی؟

اُمت محمدیه ددې جرحې داجواب ورکړی چه بیشکه مونږ هغه وخت موجود نه وو، مګر د دوئی دواقعاتو اوحالاتو خبر، مونږ ته یو صادق اومصدوق رسول اود الله ﷺ کتاب راکړې ؤ، چه په هغې مونږ ایمان راوړ و اودد وئی خبر دخپلو ستر ګو دَلیدلو نه زیات مضبوط اورشتونې ګڼړو نو څکه په خپله ګواهۍ کښې مونږ حق بجانب اورشتونی یو، دغه وخت به رسول الله ﷺ پیش شې او دَدغه ګواهانو صفائی اومضبوطتیا به اوکړی چه بیشکه دَدوئی دغه ټوله وینا صحیح ده، دَالله دکتاب اوزما دَ تعلیم په ذریعه دوئی ته دا صحیح حالات معلوم شو.

دَمیدان حشر دَدې واقعې ذکر په صحیح بخاری، ترمذی، نسائی اودَمسند امام احمد په ګڼړو احادیثو کښې په اجمال اوتفصیل سره شوید ې[1]. غرض دا چه په دې ذکرشوی آیت کښې دَاُمت محمدیه دَاعلی فضیلت اوشرف دارازبنودلې شوې دې چه دا معتدل اُمت جوړ کړې شوې دې په دې وجه دلته خوخبرې دغور کولو جوګه دی.

**دامت داعتدال حقیقت، اهمیت اوددې څه تفصیل** ① اعتدال څه معنی لری اوحقیقت ئې څه دې؟ ② اعتدال ولې دومره اهم دې چه دَفضیلت اوبهترئی بنیاد دا اوګرځولې شو ③ ددې اُمت محمدیه دمعتدل کیدو ثبوت دَواقعاتو له مخه څه دې؟ په تفصیل سره ددې سوالونو جوابونه دادی:

① دَاعتدال لفظی معنی برابریدل دی، چه دعدل نه مشتق دې دا هم دَبرابرولو معنی لری.

② دَاعتدال وصف دومره اهم ولې دې چه اُنسانی شرف اوفضیلت معیار اوګرځولې شو؟ دې کښې تفصیل زیات دې، دې کښې اول یو محسوس مثال اوګورئی. دجسمانی صحت اوعلاج دپاره چه څومره نوې اوزړې طریقې، لکه یونانی طب، ویدک، ایلوپیتهک، هومیوپیتهک وغیره ټولې په دې متفق دی چې د انسانی بدن صحت په اعتدال باندې دې. او چې کله دې اعتدال کښې د یو اړخ څخه خلل راشی نو دا دانسانی بدن مرض دې. خصوصا یونانی طب خوبنیادی اصول، دَمزاج په پیژندلو موقوف دی، دَانسانی بدن دَ څلورو اجزاؤ وینه، بلغم، سودا، صفراء نه مرکب دې هم ددې څلورو اخلاطو څخه څلور کیفیات راپیدا کیدل ضروری دی چه ګرمی، یخنی، خشکی او نمی ده. ترڅو چه دا څلور کیفیات دَمزاج انسانی په مناسبو حدودو کښې دننه پاتې کیږی نو دا

---

[1] ) صحیح البخاری، کتاب التفسیر، باب قوله کذلک جعلنکم الآیة: ۲/ ٦٤٥، وجامع الترمذی، أبواب التفسیر، ومن سورة البقرة: ۲/ ۱۲٥، ومسند أحمد رقم الحدیث: ۱۱۱۳۲

صحت اوروغوالي دي اوکله چه يو کيفيت هم دَانساني مزاج دَ حدنه کم يازيات شي نو هغه بيا مرض بللې شي که اصلاح ياعلاج ئې اونکړې شي نو يو حدته چه اورسي دَمرګ پيغام جوړشي. اوس دې مثال نه روحانياتو او اخلاقياتو ته چه راشئ نو هلته به هم دغه جاري طريقه اوګورئ چه اعتدال کښې وي نو روحاني صحت دې او چه بې توله شي نو روحاني او اخلاقي مرض دې، ددې مرض علاج نه کولو سره که اعتدال ته رانه وستې شي نو نتيجه ئې روحاني مرګ دې او دا هم دَ بصيرت په خاوندپټه خبره نهٔ ده چه دانساني جوهرلـه برکته، انسان دَټول مخلوقاتو حاکم او مخدوم ګرځول شوې دې، داخونهٔ دَبدن اجزاء اونهٔ ئې کيفيات دی ځکه چه داخو په ټولو حيواناتو کښې دانسان پشان موجوددی بلکه ددې نه زياته برخه لري .دکوم جوهر انسانيت په وجه چه انسان اشرف المخلوقات او دکائناتو مالک منلې شوې دې هغه ددې غوښې، څرمنې، يخنئ او ګرمئ نه اوچت [پورته] څه بل څيزدې چه په انسان کښې ښه په کامله توګه موجوددې او بل هيڅ مخلوق کښې په دغه توګه موجودنهٔ دې، چنانچه په ګته کول ئې څه باريک او ګران کارندې، چه دادَانسان روحاني او اخلاقي کمال دې کوم چه هغه لره مخدوم کائنات جوړ کړې دې لکه مولانائې روم رحمة الله عليه څه ښه فرمائيلی دی.

آدميت لحم وشحم وپوست نيست　　آدميت جُزرضائے دوست نيست

[انسانيت، غوښه، وازګه او پوستکې نه دې انسانيت سوا درضا دَدوست [الله ﷻ] نه بل څه شې نه دې] اوځوک چه ددې جوهربې قدرئ کولو سره ئې بربادوی دَهغوئ په باره کښې ئ فرمائيلی دی

اينکه مي بيني خلافِ آدم اند　　نيستندآدم　غلاف آدم اند

[داچه ته وينې دَانسانانو خلاف دی انسان نهٔ دی بلکه په کسوره [پوښ] دَانسانانو کښې دی]

**د روحاني مرضونو طبيبانو انبياء کرام دي:** هرکله چه دا معلومه شو چه دَانساني جوهرشرافت او بهتري په روحاني او اخلاقي کمالاتو بناده ،اودَانساني بدن پشان داهم، کله په توله او کله بې تولې کيږی اوځنګه چه دَانسان بدن دَصحت دَپاره دَمزاج او اجزاؤ دَبدن په توله او د اعتدال کيدل دی دغه شان د روحاني او اخلاقي اعتدال [توله او معتدل کيدل] دَروح په صحت اوروغوالي دې. په دې وجه کامل انسان به يواځې هغه انسان ته وئيلې شي چه جسماني تولې لرلو سره روحاني او اخلاقي توله هم قائمه لری. چنانچه داکمال په خصوصيت سره ټولو انبياؤ ﷺ ته ورکولې شی، اوزمونږ رسول الله ﷺ ته داکمال دَټولو پيغمبرانو ﷺ نه زيات حاصل ووځکه اولين کامل انسان به هم دوئ ته وئيلې شي، اوځنګه چه دَجسماني علاج دَپاره، په هره زمانه، په هرځائې او په هره آبادئ کښې دَطبيب، ډاکټر، داروګانو [روايانو] اوآلاتو محکم نظام الله ﷻ قائم کړې دې دغه شان روحاني علاج او په قومونو کښې دَاخلاقي تولې پيدا کولو دَپاره الله ﷻ انبياء ﷺ رالیږلی دی، ورسره آسماني هدايات هم رالیږلې شوی دی اودضرورت مطابق ورته مادی طاقتونه هم ورکړې شو ،چه دَهغې په ذريعه دَتولې قائم لرلو دغه قانون جاري کړې شي چنانچه دابيان الله ﷻ په سورة حديد کښې داسې فرمائيلې دی: ﴿لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنٰتِ وَأَنْزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتٰبَ وَالْمِيزَانَ لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ ۚ وَأَنْزَلْنَا الْحَدِيدَ فِيهِ بَأْسٌ شَدِيدٌ وَمَنٰفِعُ لِلنَّاسِ﴾ مونږ اوليږل خپل رسولان سره دَ ښکاره نښانونه اونازل موکړو ورسره کتاب او تله ،چه خلق په عدل او انصاف قائم شي او مونږه نازله کړه اوسپنه چه په کښې سخت جنګ دې او دَخلقو کارونه پرروان دی.

دلته دانبیاؤ ﷺ اوپه دوئ د کتابونو نازلولو د احکمت ښودلی شوی دی چه ددی په ذریعه په خلقو کښې اخلاقی او عملی توله پیدا کړی، یعنی کتاب، داخلاقو او روح دتولی قائمولو دپاره نازل کړې شوې دي او تله په معاملاتو کښې دلین دین دعملی تولې او اعتدال پیدا کولو دپاره ده او دا هم ممکنه ده چه دتلې نه مراد دهرپیغمبر شریعت وی، چه ددې په ذریعه حقیقی تول معلومیدې شی او عدل او انصاف قائمولې شی.

ددې تفصیل نه به درته معلومه شوی وی چه دانبیاؤ ﷺ دراليږلو اوپه دوئ باندې دکتابونو نازلولو اصلی غرض او حکمت دا دې چه قومونه په اخلاقی او عملی توله باندې قائم کړې شی چه هم د ادقومونو صحت او روغتیا ده.

**په امت محمد یه کښې هر قسم اعتدال [توله]** ده امت محمدیه علی صاحبها الصلوة والسلام دبیان کړی فضیلت قوله تعالٰی: ﴿وَكَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً وَّسَطًا﴾ لفظ خوپه لیکلو او وئیلو کښې یو دې مګر دحقیقت په اعتبار، په یو قوم یا یو کس کښې څومره کمالات په دې دنیا کښې کیدې شی دغې لفظ هغه ټول راجمع کړی دی.

دې ته ئې چه امت وسط یعنی امت معتدله اووئیلو نو دائې اوښودل چه دانسانیت د شرافت جوهر په دې امت کښې په کامل شان موجود دې، کوم غرض دپاره چه دآسمان او زمکې نظام جوړ کړې شو او کوم غرض دپاره چه انبیاء ﷺ او آسمانی کتابونه راؤلیږلې شو دا امت په دې کښې دټولو امتونو نه ممتاز او ډیر غوره دې، چنانچه قرآن کریم ددې امت ددې خاص فضیلت بیان، په مختلفو آیتونو کښې په مختلفو عنوانونو سره کړې دې لکه دسورت اعراف په آخر کښې چه ارشاد دې:

﴿وَمِمَّنْ خَلَقْنَآ اُمَّةٌ يَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ يَعْدِلُوْنَ﴾ [په هغه خلقو کښې چه مونږ پیدا کړی دی داسې یو امت دې چه رشتونې لاره ښائ او دهغې موافق انصاف کوی].

په دې آیت کښې دامت محمدیه روحانی او اخلاقی اعتدال واضحه کړې شوې دې چه دوئ خپل ذاتی مفادات او خواهشات پرې ښې دی او دآسمانی هدایت مطابق پخپله هم دروان وی او نورو خلقو پرې هم دروانولو کوشش کوی او چرته چه ئې څه معامله کښې نزاع او اختلاف راشی نو دهغې فیصله هم په دې ښکاره او آزاد آسمانی قانون کوی چه په کښې دهیڅ قوم یا کس دناجائز مفاد و هیڅ خطره نشته.

او سورت آل عمران کښې دامت محمدیه دمزاج او روحانی اعتدال نخښې نښانې ئې داشان بیان کړې دی: ﴿كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ اُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَتُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ﴾ یعنی تاسو په ټولو امتونو کښې بهترینې چه په دنیا کښې رالیږلې شوی یئې حکم کوئې دښو کارونو او منع کوئې دبدو کارونو نه او په الله ﷻ ایمان راوړئ.

یعنی څنګه چه دې امت ته رسول ﷺ دټولو نه زیات غوره نصیب شو، په ټولو کتابونو کښې ورته دټولو نه زیات جامع او کامل کتاب نصیب شو داشان په ټولو قومونو کښې دوئ ته صحیح او روغ جوړ مزاج او اعتدال هم په داسې اعلی پیمانه نصیب شو چه دا په ټولو امتونو کښې ډیر غوره امت او ګرځولې شو دعلومو او معارفو دروازې په دوئ پرانستې [خلاصې] شوې، د ایمان، عمل او تقوی ټولې څانګې به ددوئ په قربانو باندې شنې زرغنې او خیرازه شوې وی، څه مخصوص ملک یا براعظم پورې به حصر نۀ لری بلکه ددې دعمل دائره به دټول عالم نه چاپیره

وی او د انساني ژوند ټولې څانګې به ئې راګیرې کړې وي، بلکه دَدې اُمت وجود دې دپاره دې چه دَخلقو خیرخواهي اوکړي او تر څومره چه ترکیدې شي خلق دَ جنت دروازې ته راوسوي چنانچه ﴿أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ﴾ کښې دې ته اشاره ده چه دا اُمت دَنورو خلقو دَخیرخواهۍ او فائدې دپاره جوړ کړې شوې دې. دَدې اُمت فرض منصبي او قومي نښان دادې چه خلقو ته دَنیکو کارونو هدایت کوي او بدو کارونو نه ئې منع کوي چنانچه دَیو حدیث مبارک دَ [الدين النصيحة] ([1]) مطلب هم دادې چه دین دا دې چه دَټولو مسلمانانو خیرخواهۍ کوي، بیا په بدو کارونو کښې، کفر، شرک، بدعات، ناکاره رسمونه، فسق او فجور، هر قسم بد اخلاقي او نامعقول خبرې شاملې دی چه تر نه خلق منع کول په څو طریقو سره وي. کله به په ژبه وي، کله به په لاس سره وي او کله به په قلم سره وي او کله به په توره او وسلې سره وي، غرض داچه هر قسم جهاد پکښې راغلو، دا صفت څومره چه په عامه او ضروري توګه په امت محمدیه کښې او موندې شو په تیرو شوؤ ټولو اُمتونو کښې دَدې نظیر نشي موندلې [پیدا] کیدې.

③ اوس په دې خبره غور کول دی چه واقعاتو سره دَدې اُمت دَغوروالي او اعتدال ثبوت څنګه کیدې شي؟ دَدې اورد ټولو اُمتونو دَاعتقاداتو، اعمالو، اخلاقو او کارنامو سره په موازنه کولو او مقابله کولو پورې اړه لري، یَو څو څیزونه دَمثال په توګه ترې ذکر کوم

**اعتقادي اعتدال**: پخوانو اُمتونو کښې چا خو پیغمبرانو ﷺ لره د الله ﷻ خامن جوړ کړل او دَهغوئ عبادت کول ئې شروع کړل لکه قرآن کریم فرمائ: ﴿وَقَالَتِ الْيَهُودُ عُزَيْرٌ ابْنُ اللَّهِ وَقَالَتِ النَّصَارَى الْمَسِيحُ ابْنُ اللَّهِ﴾ او هم په دوئ کښې داسې نور قومونه هم تیر شویدي چه د رسول معجزې لیدلو کتلو باوجود به کله هغوئ ته خپل رسول ﷺ دَجنګ او جهاد کولو دعوت ورکړو نو هغوئ ورته ونیلي وو ﴿فَاذْهَبْ أَنْتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَا إِنَّا هَاهُنَا قَاعِدُونَ﴾ [تاسو او ستاسو پروردګار دجنګ کولو دپاره لاړشي مونږ خو به دلته ناست یو] دغه تیرشوؤ اُمتونو کښې دَخلقو دا رویه هَم لیدلې شوې ده چه دَخپلو پیغمبرانو منونکو به ورته قسما قسم ضررونه رسول، خو امت محمدیه هغه امت دې چه په هره زمانه او هرې صدئ کښې یو اړخ ته د رسول الله ﷺ په عشق او محبت کښې دَسر و مال نه ورتیر دي اولاد او خپل عزت پرِ قربانوي.

*سلام اس پر کہ جس کے نام لیوا ہر زمانے میں — بڑھا دیتے ہیں ٹکڑا سرفروشی کے فسانے میں*

**ترجمه**: سلام په هغه چا چې دهغه نوم وړاندې کوي تکړې د سرفروشۍ په افسانو کښې.

او بل اړخ ته دا اعتدال هم برابره ساتي چه رسول، رسول او خدای، خدائې ګڼړي او رسول الله ﷺ لره دَټولو کمالاتو او فضائلو باوجود، دَالله بنده او رسول مني او وائ، دَهغوئ په مناقبو او صفتونو بیانولو کښې هم داتوله برابره او قائمه لري لکه په قصیده برده کښې وائ.

*دع ما ادعته النصارى في نبيهم — واحكم بما شئت مدحا فيه واحتكم*

[د کفر هغه خبره پریږده چه نصارا اوْ دَخپل نبی په باره کښې اوکړه .ددې نه سِواهر څومره تعریف ئې چه اوکړې هغه به حق او صحیح وي.]

او دَدې خلاصه په یو مصرعه کښې چا داسې بیان کړیده :بعد از خدا بزرګ توئ قصه مختصر

**په عمل او عباداتو کښې اعتدال** اعتقاداتو نه پس دَعمل او عبادت نمبر راځي، په دې باره کښې رُومبنو

---

[1]) صحيح مسلم، كتاب الإيمان، باب بيان أن الدين النصيحة: ١/ ٥٤

[مخکښینو] اُمتونو کښې داسې هم شوی دی چه دَخپل شریعت احکام دَ یوڅوټکو [پیسو] په بدله کښې ئې خرڅول، رشوتونه به ئې اغستل او په آسمانی کتاب کښې به ئې بدلون راوستو یا به ئې غلطې فتوې ورکولې او په نورو قسما قسم بهانو او چلونو سره به ئې شرعی احکام بدلول، دَ عبادتونو نه دَ ځانونو او خلقو خلاصولو عجیبه عجیبه چلونه ئې جوړول او ځنې داسې خلق په کښې هم شته چه دنیا سره بائیکاټ کوی او په عبادتخانو کښې یواځې کښېنی، دالله ورکړی حلال نعمتونه په ځانونو حرام کړی او داشان نور قسم ځان پازابولو ته عبادت وائې او ثواب پکښې ګنړی، خو اُمت محمدیه، ددې په عکس یو خوا رهبانیت [دنیا سره بائیکاټ کولو] الره په انسانیت ظلم ګنړی او بل خوا دَالله او رسول ﷺ په احکامو دَځان قربانولو جذبه ئې پیدا کړه او دَ قیصر او کسری دَ تخت او تاج مالکان جوړېدلو باوجود ئې دنیاته دا اوښودل چه دَدیانت او سیاست، یا دَدین دنیا تر منځه هیڅ قسم مقابله نشته، مذهب یواځې دَجُماعتونو، خانقاګانو او دَپیر خانو دَکټونو [کونجونو] دپاره نهٔ دې راغلې بلکه دَدې حکمرانی په بازارونو او دفترونو هم ده، په وزارتونو او امارتونو باندې هم، دې په بادشاهۍ کښې فقیری او په فقیری کښې دَبادشاهۍ طریقه اوښودله.

چوفقراندرلباس شاهی آمد    زته بیرعبیداللهی آمد

چې فقر په لباس کښې دننه وی بادشاهی رازی

په تدبیر کولو سره دالله ﷻ بندګی رازی

**معاشرتی او تمدنی [ګوزنی] اعتدال** دَمعاشرت او تمدن په باره کښې په پخوانو اُمتونو چه نظر واچولې شی نو دا به اولیدې شی چې دَانسانی حقوقو هیڅ پرواه نشته، دَحق او ناحق هیڅ بحث نشته، دَخپل غرض خلاف ئې چې څوک اولیدل هغه ئې دل پَل او تر پښو لاندې کړل، وې وژل، لوټ ئې کړل چې دَ تولونه لوئې کمال ګنړلې شو، دَیو رئیس [سردار] په ورشو کښې دَچا اوښ ورتلو هلته ئې څه نقصان، زیان، تاوان او کړونو دَعربو مشهور جنګ حرب بسوس تر جوړ شو په مسلسل سل کاله جاری وو، په زرګونو انسانان پکښې دتورې تیر شو زناناوته انسانی حقونه ورکول خولا څه کوې دَژوندې پاتې کېدو اجازت هم نشو ورکولې، چرته خوئې په ماشومتوب کښې دَژوندې ښخولو رسم وو، چرته مړشوی خاوند سره دَستهی کولو [ژوندې سوځولو] رواج وو خو بل اړخ ته دې بیوقوفانه رحمدلئی ته ګوری چه چینجو مینجوته څه نقصان ورکول یائې وژل حرام ګنړلې شو څاروی حلالول حرام ګنړلې شو دَ الله ﷻ دَ حلال کړو څاروو غوښو او څرمنونه فائده پورته کول ظلم ګنړلې شو. اُمت محمدیه داټولې بې تولګئ [ظلم او زیاتې] ختمې کړې یو خوائې انسان ته دَانسان حقوق اوښودل او نهٔ یواځې په صلح او دوستۍ کښې بلکه خاص په میدان جنګ کښې ئې هم دَمخالفینو دَحقوقو حفاظت اوښودلو، زناؤ ته ئې دنارینؤ په شان حقوق ورکړل او بل طرف ته ئې دَهر څیز حد مقرر کړو چه وړاندې روستو کېدل ترجُرم اوګرځولې شو او دخپل ځان په معاملو کښې ئې دَستر ګوپټولو او معافۍ ورکولو سبق اوښودلو او دَ نورو دَ حقوقو پوره خیال ساتلو طریقې ئې اوښودلې.

**اقتصادی او مالی اعتدال**:: دې نه پس دَدُنیا په هر قوم او ملت کښې دَټولو نه اهمه مسئله دَمعاشیاتو او اقتصادیاتو ده، په دې باره کښې په نورو اُمتونو او قومونو باندې نظر اچولو سره به دا وګورئ چه یو اړخ ته سرمایه داری نظام دې چه پکښې دَحرام، حلال سوال نشته، دَ چا دَ خوشحالۍ او بدحالۍ لحاظ او فرق پکښې نشته، خو دولت خپلې خواته راغونډول دټولونه لوئې

انساني فضيلت ګڼرلې شي، اوبل اړخ ته ځاني اوذاتي ملکيت دَسره جُرم ګرځولې شي، په دې دواړو اړخونو چه ژورنظر واچولې شي نو حاصل ئې داراوځي چه دَمال ، دولت پرستش کول هم داه ژوند مقصد ګڼرل او هم دې دپاره منډې تړرې وهل دي.

اُمت محمديه اودَدې شريعت په دې کښې هم دَتولې برابرولو يو عجيبه صورت پيدا کړو يو طرف ته ئې داسې هدايات ورکول چه دولت دَدَژوند مقصد نشي جوړيدلې، دَانساني عزت، شرافت ياد يو منصب او عُهدې بنيادئې په دې کې نهٔ بنودوا [نه کښښنو وی] ، اوبل اړخ ته ئې دَدولت دَ تقسيم داسې پاکيزه اصول اوټاکل چه هيڅ يوانسان دَهغې په نتيجه کښې دَژوند دَضروریاتونه بې برخې پاتې نشي اويو کَس دټول دولت ځان ته راغونډ اونهٔ ساتي. دَشريک پاتې کيدوځيزونه ئې مشترک، شاملات اوعام وقفَ اوګرځول، په خاص اوځان له ځيزونوکښې ئې دَځان له ملکيت مکمل احترام اوکړو، دَحلال مال فضيلت اوبهتروالې ئې بيان کړو، دَدې دَ ساتلو او استعمالولو صحيح طريقې ئې اوښودلې . دَ دې دومره لوئې تفصيل دې چه هغه دَپاره دَمستقل بيان ضرورت دې، په دې وخت دَمثال په توګه دَاعتدال اوبې اعتدالئ ځونمونې پيش کول ووچه ورله دومره هم کافې اوګڼرلې شو، ورسره دَآيت دَامضمون واضح شو چه اُمت محمديه يو معتدل او بهترين اُمت جوړ کړې شوې دې.

**ګواهئ ورکولودپاره عدل اواعتباری کيدل شرط دي:** قوله تعالیٰ: ﴿لِّتَكُونُوا شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ﴾ يعنى اُمت محمديه دې دَپاره وَسط عدل اوثقه جوړ کړې شو چه داد ګواهئ ورکولوجوګه [قابل] شي. ددې نه معلومه شوه چه څوک عدل نه کوی هغه دَګواهئ ورکولوجرګه نهٔ وی، دَعدل ترجمه ثقه يعنی اعتباری کولې شی چه پوره شرائط ئې دَفقهې په کتابونو کښې ذکرشويدی.

**دَاجماع حُجت ګرځيدل:** امام قرطبي رحمه الله فرمائيلي دی چه داآيت دَدې خبری دليل دې چه اجماع حُجت ده ځکه چې هر کله الله جل جلاله دې امت لره ګواهان وګرځول اود نورو امتونو په مقابله کښې ئې د دوئ خبره حجت اوګرځول نوثابته شوه چې دَدې امت اجماع حُجت دې چه عمل کول پرې باندې واجب دی يعنی دَصحابه کرامو رضي الله عنهم اجماعو په تابعينواو دَتابعينو رحمهم الله اجماع په تبع تابعينو حجت دې(۱). اوتفسير مظهری کښې دی چه دَدې آيت نه دَاثابتيږي چه ددې اُمت ،اتفاقي افعال او اعمال، ټول دَستائينې وړاوقبول شوی ځکه دی چه دااُمت په قرآن کريم کښې په عدل اووسط بللې شوې دې که دَدې ټول اُمت په خطا باندې راجمع کيدل اومتفق کيدل اومنلې شی نودَقرآن دا ارشاد اوفيصله به بې معنی پاتې شی(۲).

اوامام جصاص رحمه الله فرمائيلي دی چه په دې آيت کښې دَدې خبرې دليل دې چه دَهرې زمانې دَ مسلمانانو اجماع معتبره ده يواځې دَرومبئ [اولې] صدئ يادبلې خاصې زمانې اجماع ځکه حجت نهٔ دی منل پکار چه په آيت کښې پوره اُمت ته خطاب دې اواُمت يواځې دَځه زمانې خلقو پورې خاص نهٔ دې بلکه هغه ټول اُمت محمديه دې چه دَهغوی دَزمانې نه ترقيامته پورې راتلونکی نسلونه دی، بناپه دې دَهرې زمانې مسلمانان دَ الله ﷻ ګواهان شوچه خبره ئې حُجت دې اوداټول دَسيرمې [ديوه مخه] په څه غلطئ ياخطاباندې راجمع کيدې اومتفق کيدې نشي(۳).

---

۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ۲/ ۱۵۶

۲) تفسير المظهری تحت هذه الآية: ۱/ ۱۳۹

۳) أحكام القرآن للجصاص، باب القول فی صحة الاجماع: ۱/ ۸۸، ۸۹

وَمَا جَعَلْنَا

[اونه ده گرزولی مونږ

| اومونږ هغه

الْقِبْلَةَ الَّتِيْ كُنْتَ عَلَيْهَآ اِلَّا لِنَعْلَمَ مَنْ يَّتَّبِعُ

قبله | هغه | چې وې ته | هغې ته | مګر | دپاره ددې چې معلوم کړومونږ | چې څوک | تابعداري کوی

قبله چې تابه ورته | په مکه کښې امونځ کولو په دې غرض بيا مقرر کړه | چې ښکاره کړو چې څوک د پيغمبر تابعداري

الرَّسُوْلَ مِمَّنْ يَّنْقَلِبُ عَلٰى عَقِبَيْهِ ؕ وَاِنْ كَانَتْ لَكَبِيْرَةً اِلَّا

د رسول | دهغه چانه | چې واپس څي | په پوندو خپلو | او بیشکه | ده دا قبله | ډيره ګرانه | مګر

کوی او څوک په ارولو پوند بيرته [کفرته] ګرځي | اودا خبره [د قبلي بدليدو] اګرچې ډيره ګرانه ده مګر

عَلَى الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ ؕ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيْعَ اِيْمَانَكُمْ ؕ اِنَّ

په هغه چاباندې | چې هدايت کړې وی هغه ته الله | او نه دې الله | چې ضائع کړی | ايمان ستاسو | بيشکه

چې الله چاته هدايت اوکړی هغوئ ته ګرانه نه ده | اوالله ستاسو ايمان اوعمل هيچرې نه ضائع کوی

اللّٰهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ۝

چې الله | په خلقو باندې | ډير مهربان | رحم کونکې دې |

هغه په خلقو باندې ډير مهربان رحم کونکې دې |

## آسان ترجمه قرآن

او په کومه قبله چه تاسو دمخکښ نه وئ، هغه مونږ دبلې وجې نه نۀ صرف ددې وجې نه مقرر کړې وه چه دا معلومه کړو چه څوک د رسول ﷺ حکم منی او څوک ددې نه آوړی؟ او په دې کښ څه شك نشته چه دا خبره ډيره ګرانه ده مګر دهغه خلقو دپاره (لږه ګرانه هم نه ده) چه الله تعالیٰ ورته هدايت کړې وو او الله تعالیٰ داسې نه دې چه ستاسو ايمانونه ضائع کړی په حقيقت کښ الله په خلقو باندې ډير شفقت کوونکې، ډير مهربان دې.

## خلاصه تفسير

[په اصل کښې خومونږ دمحمد ﷺ دشريعت دپاره صرف قبله مقرر کړې وه] ﴿وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِيْ كُنْتَ عَلَيْهَآ﴾ او په کوم طرف د قبلې چه تاسو [څو ورځې قائم] پاتې شوی يئ [يعنی بيت المقدس] ﴿اِلَّا لِنَعْلَمَ مَنْ يَّتَّبِعُ الرَّسُوْلَ﴾ هغه خو محض ددې [مصلحت] دپاره وه چه مونږ ته [په ظاهری شان هم] معلوم شی چه [ددې په ټاکلو يابد ليدو سره ديهودو اوغير يهودو نه] څوك د رسول ﷺ تابعداری کوی ﴿مِمَّنْ يَّنْقَلِبُ عَلٰى عَقِبَيْهِ ؕ﴾ دهغه چا نه چې مخ اړوی په شا روانيږی [اونفرت اومخالفت کوی چنانچه ددې امتحان دپاره مودغه عارضی قبله مقرر کړې وه بيا مو په اصل کعبې مقررولو سره منسوخ کړه] ﴿وَاِنْ كَانَتْ لَكَبِيْرَةً اِلَّا عَلَى الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ ؕ﴾ اودا [دقبلې بدليدل په منحرف اوونبتل شوؤخلقو] شو ته ډيرګران وی مګر کوموخلقو ته چه الله ﷻ [دسمې لارې]

هدایت کړې دي [چه بیان یې مخکښې داسې تیرشوې دے چه احکام دالله ﷻ بغیرد اخوادیخوا او چون چرا کولو نه قبلوی هغوی ته هیڅ ګران شوی نه وو څنګه چه یې مخکښې هغه دالله ﷻ حکم ګڼړلواوس هم دا د الله ﷻ حکم ګڼړی] ﴿وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمْ﴾ او [مونږ چه دا اووئیل چه بیت المقدس اصلی قبله نه وه هغې نه دي چاته دا وسوسه نه پیداکیږی چه دغې طرف ته دمونځونوکولو ثواب به ئې کم شوې وی ځکه چه اصلی قبلې ته نه دی شوی نووسوسه په زړه کښې مه راولئ ځکه چه] الله ﷻ داسې نه دي چه ستاسو ایمان [سره دتړلی عملونو لکه دمونځ ثواب] به ضائع [اوناقص] کړی [او] ﴿إِنَّ اللَّهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ﴾واقعی الله ﷻ خوپه داسې خلقو ډیر زیات شفقت کوونکې [او] مهربان دې [نو په داسې شفقت کوونکی باندې داګمان کله او څنګه کیدلې شی ځکه چه یوقبله اصلی کیدل یا غیراصلی کیدل خومونږ پیژنو نوتاسو خودواړه زمونږ حکمونه اوګڼړل اوقبول موکړل ځکه به یې ثواب هم دچا څه کم نه وی].

## معارف اومسائل

**کعبه دمونځ دپاره د کله نه [څه وخت څخه] قبله جوړېدل شروع شوه:** ﴿وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِي كُنتَ عَلَيْهَا﴾ په دې کښې دصحابه کرامو ﷡ او د تابعینو ﷭ خپل منځ کښې اختلاف دې چه دهجرت نه وړاندې کله چه په مکه مکرمه کښې مونځ فرض شونودغه وخت قبله بیت الله وواوکه بیت المقدس ؟ د حضرت عبدالله بن عباس ﷠ دقول مطابق د اوله سره قبله بیت المقدس وه چه هجرت نه روستوهم شپاړس اولس میاشتې قبله پاتې شوه هله پسته دبیت الله شریف دقبلې جوړولوحکم نازل شوالبته درسول الله ﷺ عمل په مکه مکرمه کښې داجاری ووچه مونځ به ئې دحجر اسوداورکن یمانی ترمنځه اداکولوچه بیت المقدس ئې هم مخې ته راشی اوبیت الله شریف ته ئې هم مخ وی، دهجرت نه پس مدینه منوره کښې دغسې نشوکیدې ځکه قبلې بدلیدوته بې تابه او بې قراره شو[ابن کثیر](۱)

نوروحضراتووئیلی دی چه دمونځ فرض کیدوپه موقع په مکه مکرمه کښې دمسلمانانوقبله داول نه بیت الله شریف ووځکه چه دحضرت ابراهیم اوحضرت اسماعیل ﷦ قبله هم بیت الله شریف پاتې شوې وواورسول الله ﷺ ترڅوچه په مکه مکرمه کښې ووهم بیت الله شریف اړخ ته ئې په مخه مونځ کولو، هجرت نه پس قبله بیت المقدس اوګرځولې شو چه ورته شپاړس اولس میاشتې مونځ اوکړې شوهغې نه پس بیا کعبې ته په مانځه کښې د مخ کولوحکم نازل شو، تفسیر قرطبی کښې په حواله دابوعمروهم داقول صحیح ګرځولې شوې دې، اوحکمت ئې دابیان کړې شویدې چه مدینې منورې ته تشریف راوړلونه پس هرکله چه دیهودوقبائلوسره ئې ګذران اوزیست روزګار[کاروبار] شو نورسول الله ﷺ دوئ خان ته را اړولودپاره هم ددوئ قبله د الله ﷻ په اجازت اختیارکړه، خودتجربې نه ثابته شوه چه داخلق په خپل ضد ټینګ دی، بیا الله ﷻ بیت الله شریف ته دمخ کولوحکم نازل کړوچه ورته طبعاً محبوب ځکه ووچه دادوئ دنیکونوحضرت ابراهیم اوحضرت اسماعیل ﷦ قبله پاتې شوې وه.

اوقرطبی دابوالعالیه ریاحی نه نقل کړیدی چه دحضرت صالح ﷤ دجماعت قبله هم بیت الله شریف اړخ ته وه اوبیاابوالعالیه نقل کړیدی چه دده د یو یهودی سره مناظره شوه، یهودی اووئیل،

---

(۱) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآية: ۱/ ٤۵۳

چه د موسی علیه السلام قبله، صخره د بیت المقدس وه، ابو العالیه رحمه الله اوونیل چه نه، حضرت موسی علیه السلام به د صخرهٔ بیت المقدس خواته مونځ کولو خو مخ به ئې بیت الله شریف ارخ ته وو یهودی انکار اوکړونو ابو العالیه ورته اوونیل ، ښه ده زما او ستاد جګړې فیصله به د حضرت صالح علیه السلام جماعت کوی چه د بیت المقدس لاندې په یو غر باندې وو چه اوکتلې شو نو د هغې قبله د بیت الله شریف ارخ ؤو([1]).

اوکومو حضراتو چه ړومبې قول اختیار کړې دې د هغوی په نزد حکمت دا وو چه په مکه مکرمه کښې د مشرکینو نه بیلیدل او ورسره مخالفت ښکاره کول وو ځکه ئې د دوی قبله پرینښوه او بیت المقدس ئې قبله جوړه کړې شوه ، بیا د هجرت نه پس په مدینه طیبه کښې یهودو او نصاراؤ نه بیلیدل او ورسره د مخالفت کولو اظهار مقصود وو نو د هغوی قبله ئې بدله کړه او بیت الله شریف ئې قبله اوګرځولې شوه ،هر کله چه دا اقوال مختلف شو د دې آیت په تفسیر کښې دا اختلاف راسر ګند [راښکاره] شو چه ﴿الْقِبْلَةَ الَّتِي كُنتَ عَلَيْهَا﴾ نه کومه یوه قبله مراد وه او د دویم قول په بناء دې نه مراد کعبه هم کیدې شي ځکه چه هم دا د دوی ړومبۍ قبله ده .

خو د آیت مفهوم په دواړو صورتونو کښې دا دې چه څنګه چه فرمائي: مونږ د قبلې بدلول، ستاسو د تابعداری کوونکو مسلمانانو د پاره یو امتحان ګرځولې دې چه په ښکاره ډول هم درته معلوم شي چه څوک صحیح فرمانبردار او څوک په خپله رائې چلیدونکې دې ،چنانچه د قبلې بدلیدو نه پس ځنې ضعیف الایمان خلق چه زړونو کښې ئې منافقت وو د اسلام نه واوړیدل او په رسول الله صلی الله علیه وسلم ئې دا الزام اولګولو چه دوی خود خپل قوم دین ته واوړیدل.

## دې سره تړلې ځنې احکام

**کله سنت هم په قرآن سره منسوخ کیدلی شي:** جصاص په احکام القرآن([2]) کښې فرمائیلی دی چې قرآن کریم کښې چرته هم دا تصریح نشته چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د هجرت نه وړاندې ، یا روستو بیت المقدس ته د مخ کولو حکم کړې شوې وی بلکه دا صرف په احادیثو او سنت نبویه سره ثابت شوی دی نو کوم څیز چې د سنت په ذریعه ثابت شوې وو ، دې آیت د قرآن هغه منسوخ کړو او د دوی قبله ئې بیت الله شریف جوړه کړه.

دې نه ثابته شوه چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم حدیث هم په یو ډول قرآن دې او دا هم تر ثابته شوه چه ځنې احکام هغه دی چه په قرآن کښې نهٔ دی راغلی صرف د احادیثو نه ثابت دی او قرآن کریم د هغې شرعي حیثیت مني، ځکه چه د دې آیت په آخر کښې دا هم ذکر شویدی چه کوم مونځونه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حکم بیت المقدس ارخ ته شوی دی نو هغه هم د الله جل جلاله په نزد معتبر او مقبول دی.

**هغه خبر واحد چه د هغې په ثبوت کښې قوي قرائن موجود وی نو په هغې سره قرآني حکم منسوخ ګڼړلي شي:** بخاری، مسلم او د احادیث په ټولو معتبرو کتابونو کښې د ګنړو صحابه کرامو په روایت منقول دی چه هر کله په رسول الله صلی الله علیه وسلم د قبلې د بدلیدو حکم نازل شو او هغوی د ما زیګر مونځ، د بیت الله شریف ارخ ته اوکړو([3]) او خنو خایونو کښې د مازیګر په خائې د ماسپخین ذکر شویدې [ابن

---

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ۲/ ۱۵۱

[2]) أحكام القرآن للجصاص: ۱/ ۸٦

[3]) صحيح البخاري، كتاب الصلٰوة، باب التوجه نحو القبلة: ۱/ ۵۷، وصحيح مسلم، كتاب الصلٰوة ، باب تحويل القبلة: ۱/ ۲۰۰

کثیر] (۱). نوځيني صحابه كرامو ﷺ چه دلته مونځ اوکړو چه بهرته لاړل اووې ليدل چه دبنوسلمه قبيلې خلق دوراندې پشان بيت المقدس طرف ته مونځ کوی نوهغوئ ورته داآواز اوکړو چه اوس قبله بيت الله اړخ ته شوې ده اومونږ رسول الله ﷺ سره بيت الله شريف اړخ ته مونځ اوکړو او راغلوتړ، دغه خلقو په مانځه کښې بيت المقدس نه بيت الله ته مخ راؤګرځولو، د نويله بنت مسلم په روايت کښې دی چه دغه وخت زنانه چه په روستو صفونو کښې دې رومبی [مخکښې] صفونو کښې راغلې اونارينه چه وړاندې صفونو کښې وو روستو راغلل يعنی کله چه مخه بيت الله شريف ته راواوړيده نودزنانو صفونه وړاندې اودنارينو روستو راغلل. [ابن کثير] (۲)

دبنوسلمه خلقو خودماسپخين يامازيګر دوخت نه دقبلې دبدليدو په حکم عمل اوکړو خوپه قباکښې دغه خبربله ورځ دصبا په مانځه کښې اورسيدو لکه چه بخاری اومسلم کښې دابن عمر ﷺ په روايت ذکرشويدی (۳)، اواهل قباهم په مانځه کښې خپل مخ دبيت المقدس اړخ نه بيت الله طرف ته راؤګرځولو [ابن کثيروجصاص] (۴)

امام جصاص ﷫ چه دغه ګڼ روايات دحديث نقل کړل نووې فرمائيل :

[هذا خبر صحيح مستفيض في ايدي اهل العلم قد تلقوه بالقبول فصار في حيز التواتر الموجب للعلم] (۵) داحديث اګر چه په اصل کښې خبرواحد دې مګر دقوی قرينوپه وجه دې دتواتر درجه بيامونده دې [پيدا کړې] ده چه علم يقين واجبوی.

ليکن داحنافو اودوئ دهمخيالو فقهاؤ ضابطه داده چه خبرواحدسره څه قطعی حکم نشی منسوخ کيدې څکه پر اوس هم داسوال کيدې شی چه داحديث خوروستو مشهور شو اوعلماؤ قبول کړو، بنوسلمه او اهل قباته خويوسړی ناڅاپه خبرورکړې وو چه دغه وخت ورته دشهرت او تواتر درجه حاصله نه وه، هغوئ پر څنګه عمل اوکړو؟ جصاص ﷫ اوفرمائيل :اصل خبره داده چه دغه حضراتو اوټولو صحابو کرامو ته رومبې نه [اوله څخه] دامعلومه وه چه رسول الله ﷺ داشوق لری چه قبله ئې بيت الله شی چه دې دپاره به ئې دعا هم کوله نوپه دې وجه دوئ په نظر کښې دااحتمال ضرور وو چه بيت المقدس به جاری قبله پاتې نشی اوهم په دې وجه داظنی شوچه دمنسوخ کيدو دپاره ئې داخبرواحد کافی شوو ګڼی صرف خبرواحدسره يوقرآنی قطعی فيصله منسوخ کيدل معقول نه دی.

**دلاؤډ سپيکر په آواز په مانځه کښې حرکت اوانتقال کول سره دمونځ په نه ماتيدو دليل نيول** صحيح بخاری، باب ماجاء فی القبلة کښې دحضرت عبدالله بن عمر ﷺ په حديث کښې اهل قباته دقبلې دبدليدو دحکم دړسيدو اودغه خلقو دمونځ په حالت کښې بيت الله شريف ته دمخ ګرځولو واقعه چه ذکرشويده په دې علامه عينی ليکلی دی:

[فيه جواز تعليم من ليس في الصلوة من هو فيها] [عمدة القاری ص۱۴۸ جلد ۴] ددې حديث نه ثابته شوه چه څوک په مونځ کښې شريک نه وی هغه مونځ ګذارته دهغه په مانځه کښې تعليم اوتلقين کولې شی،،.

---

۱) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ۱/ ٤٥٣، وسنن النسائى الكبرىٰ رقم الحديث: ۱۱۰۰٤

۲) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ۱/ ٤٦٠

۳) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ۱/ ٤٦٠

٤) أحكام القرآن للجصاص: ۱/ ۸۷

٥) أحكام القرآن للجصاص: ۱/ ۸۷

داشان علامه عینی رحمه الله په بل ځائې کښې دَدې حدیث په ذیل کښې لیکي [وفیه استماع المصلی لکلام من لیس فی الصلوة فلا یضر صلوته [الی] هکذا استنبطه الطحاوي] [عمدة القاری ص۴۴۲ ج۱].

[په دې کښې دا دلیل دې چه یو مونځ گذار دَ غیر مونځ گذار خبره په خپل مانځه کښې آؤریدې شي مانځه ته ئې ضرر هم نۀ ورکوی].

**په یو فقهي مسئلې کښې اشکال او دهغې جواب:** او عام فقهائې احناف چه په خپل مانځه کښې دَبل چا غیر مونځ گذار په خبره عمل کولو ته مونځ ماتوونکې وئیلي دي چه دَ احنافو دکتابونو په عامو مُتونو او شروحو کښې منقول دی، دَهغې منشا داده چه په مونځ کښې دَغیر الله دَ امر تابعداری کولو سره مونځ فاسد یږی لیکن دَبل چا غیر مونځ گذار په وینا او تلقین دَ امر الهی په تابعدارئ کولو سره مونځ نۀ ماتیږی،.

فقهاؤ چه چرته دا مسئله لیکلې ده چه څوک دَجمع په مانځه کښې شریکیدو دَپاره په داسې وخت کښې راؤرسی چه وړاندې صف تړک شوې دې او اوس دې په وریسې صف کښې یواځې پاتې کیږی نو دۀ لره پکار دی چه دَهغه وړاندې صف نه یو سړې ځان ته راکاږی [راکش کړی] چه وریسې بل صف جوړ شي، نو دغلته هم دا سوال پورته کیږی چه ددۀ په وینا یا عمل روستو راتلونکې سړې په مانځه کښې دَغیر الله دَ امر تابعداری کوی چه مونځ ئې ماتیدل پکاردې لیکن دُرمختار باب الامامة کښې دَدې مسئلې په باره کښې فرمائی: ثم نقل تصحیح عدم الفساد فی مسئلة من جذب من الصف فتأخر فهل ثم فرق فلیحرر.

په دې باندې علامه طحطاوی رحمه الله لیکلی دی: [لانه امتثل امر الله]، یعنی په دې صورت کښې دَمونځ نۀ ماتیدو وجه داده چه په حقیقت کښې دې سړی دَبل چا راتلونکی سړی دَحکم تابعداری نۀبلکه د الله ﷻ دَحکم تابعداری ئې کړې ده چه دَرسول الله ﷺ په ذریعه دۀ ته رسیدلې دې چه دَداسې صورت په راپیښیدو دَوړاندې صف نه روستی ته [شاته] راتلل پکاردی.

داشان شرنبلالی په شرح وهبانیه کښې دَدې مسئلې په ذکر کولو کښې رومبې یَې دَمونځ د ماتیدو قول ذکر کړی بیا ئې دهغې تردید کړې دې الفاظ ئې څه داسې دی: [اذا قیل لمصل فتقدم [الی] فسدت صلوته لانه امتثل امر غیر الله فی الصلوة - لان امتثاله انما هو لامر رسول الله ﷺ فلا یضراه] (۱)

دې ټولو روایاتو نه ثابته شوه چه که څوک مونځ گذار دَ داسې کس په آواز عمل او کړی چه ورسره په دغه مونځ کښې شریک نۀ دې نو دَهغې دوه صورتونه دی ① چه ددغه سړی زړۀ ساتل [خاطر کول] او تابعداری ئې مقصود وی نو دې سره مونځ ماتیږی لیکن که دۀ څه شرعی حکم ورته او ښودو او مونځ گذار دَهغې تابعداری اوکړه نو داپه حقیقت کښې دَ الله ﷻ دَحکم تابعداری ده خکه به په دې مونځ ماتوونکې نۀ وی او خکه طحطاوی هم دا فیصله کړې ده [اقول لو قیل بالتفصیل بین کونه امتثل امر الشارع فلا تفسد وبین کونه امتثل امر الداخل مراعاة لخاطره من غیر نظر لامر الشارع فتفسد لکان حسنا] [طحطاوی علی الدرص ۲۴۶ ج ۲].

**اصل مسئله:** اوس دَزیر بحث مسئلې دَلاؤډسپیکر فیصله آسانه شوه خکه چه هلته دَدې آلې دَ تابعدارئ ترلرې لرې پورې هم وهم نشي کیدې. دا ښکاره خبره ده چه تابعداری دَرسول الله ﷺ دَدې حکم کیږې چه امام رکوع کوی نو تاسو هم رکوع کوئ چه سجده کوی نو تاسو هم سجده کوئ

(۱) الشامیة، باب الامامة: ۱/ ۵۷۰، ۵۷۱

دې آلې سره صرف دا معلومیږي چه اوس امام رکوع ته لاړو، یا سجدې ته ځي دډې علم راتلو نه پس دَامام تابعداري کوي نهٔ دډې آلې دَحکم، اودَامام تابعداري کول یو حکم الهی دې، اوداکلام په دې بنیاددې چه دَ لاؤډسپیکر آوازته بعینه دَامام آوازاونه وئیلې شي بلکه دَهغه نقل اوحکایت او وئیلې شي اواهل فن دَلاؤډسپیکر آوازته بعینه دَامام آوازوائي نودَدې تحقیق په بناخودَمونږ په رواکیدوکښې هیڅ اشکال نشته .دَدې مسئلې په تحقیق دَاحقر یو مستقله رساله هم شائع شوې ده هغه اوګورئ[والله سبحانه وتعالی اعلم]

قوله تعالی -﴿وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيعَ اِيْمَانَكُمْ﴾] دلته که دَایمان نه معنی معروفه مُرادواخستې شي نودَآیت مطلب داشوچه دَقبلې په بدلیدوچه بیوقوفوخلقوته داخیال پیداشوچه داخلق دین نه واوړیدل اودَدوئ ایمان ضائع شونوجواب ئې داورکړې شوچه الله ﷻ ستاسوایمان لره ضائع کوونکې نهٔ دې دَبیوقوفوخلقوخبروته غوږمهٔ اږدئ

اوداحادیثو په څنوروایاتوکښې دَایمان تفسیر په مونځ سرکړې شوې دې چه معنی به ئې داوي:هغه مونځونه چه تاسو د بیت المقدس اړخ ته کړي دي الله ﷻ دهغې ضائع کوونکې نهٔ دې هغه صحیح اوقبول کړې شوي دې ،دَقبلې دَبدلیدوهیڅ اثر به په دغه مونځونونهٔ وي.

صحیح بخاری کښې په روایت دَابن عازب اوترمذی کښې په روایت دَابن عباس منقول دی چه هر کله قبله دَرسول الله ﷺ بیت الله جوړه کړې شوه نوخلقوسوال اوکړو،هغه مسلمانان چه په زمانه دَقبلې دَبیت المقدس کښې وفات شوي دي اوبیت الله شریف اړخ ته ئې مونځ کول په برخه [په قسمت] نهٔ شو دَهغه به څه حال وي په دې داآیت نازل شوچه پکښې دمونځ نه په لفظ دَ ایمان سره تعبیراوکړې شواودائې واضحه کړه چه دَدوئ ټول مونځونه صحیح اوقبول شوي دي دَدوئ په معامله باندې دَقبلې دَبدلیدوهیڅ اثرنهٔ پریووځي(۱).

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَدْ | نَرٰى | تَقَلُّبَ وَجْهِكَ | | |
| په تحقیق سره | وینوموږ | بار بار ګرزول د مخ ستا | | |
| موږ وینوچې ته [د وحی د راتلو په انتظار] بیا بیا آسمان | | | | |
| فِي السَّمَآءِ | فَلَنُوَلِّيَنَّكَ | قِبْلَةً | تَرْضٰهَا | فَوَلِّ |
| طرف دَآسمان ته | نو خامخا به موږ اوګرز وو تا | هغې قبلې ته | چې تهٔ خوښوې هغه | نواوګرزوه |
| طرف ته ګورې | [موږ ستاخواهش پوره کوو]هغې قبلې ته دې ګرزو چې کومه ستاخوښه ده | نو خپل مخ | | |
| وَجْهَكَ | شَطْرَ | الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ | وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ | فَوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ |
| مخ خپل | طرف | د مسجد حرام ته | اوس چې په کوم ځائې کښې يئ تاسو | نوګرزوئ مخونه خپل |
| مسجد حرام[کعبې]طرفته اوګرخوه | او [ددې نه پس] هرځائې کښې چې يئ نومسجدحرام ته مخ کوئ | | | |
| شَطْرَهٗ | وَاِنَّ الَّذِيْنَ | اُوْتُوا الْكِتٰبَ | لَيَعْلَمُوْنَ | اَنَّهُ |
| طرف دهغې ته | او بیشکه هغه کسان | چې ورکړې شوې دې ورته کتاب | خامخا پوهیږي | چې داحکم |
| اودا خلق چې دوئ ته کتاب ورکړې شوې دې | په دې ډیر پوهیږي چې [دقبلې بدلولو] دا حکم | | | |

(۱) صحیح البخاری، کتاب الإیمان، باب الصلوٰة من الإیمان: ۱/ ۱۰، ۱۱

| الْحَقُّ | مِنْ رَّبِّهِمْ ۗ | وَمَا | اللّٰهُ | بِغَافِلٍ | عَمَّا | يَعْمَلُوْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| حق دي | دطرفه درب دهغوئ نه | اونهٔ دي | الله | ناخبره | دهغه کارونونه | چې هغوئ ئې کوي |

دالله دطرفنه بالکل حق دي | اوکوم | دفساد | کارونه چې دوئ کوي الله دهغې نه غافل نه دي |

## آسان ترجمه قرآن

(اې پيغمبره!) مونږ ستا مخ بار بار آسمان طرف ته اړولکې وينو. نو مونږ به ستا مخ ضرور هغه قبلې طرف ته واړوو چه هغه تاته خوښه ده نو اوس خپل مخ مسجدِ حرام طرف ته کړه، او (بيا) چه کوم ځائې هم تاسو يئ خپل مخونه (دمونځ کولو په وخت) هغې طرف ته ساتئ. او کومو خلقوته چه کتاب ورکړې شوې دې هغوی ښه پوهيږی چه هم داخبره حقه ده، کومه چه ددوی د پروردگار دطرفه راغلې ده او کوم څه چه دوی کوی الله تعالیٰ دهغې نه غافله نه دې.

## خلاصه تفسير

[تاسو چه دزړه نه دکعبې شريفې قبله مقرر کيدل غواړی اودوحی په اميد آسمان طرف ته بيا بيا پورته ګورئی چه شايد فرښته حکم راوړی نو] ﴿قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَآءِ ۚ﴾ستا دمخ بيا بيا آسمان طرف ته پورته کيدل مونږ ګورو [اوهرکله چه مونږ ته ستاسو خوشحالی پوره کول منظور دی] ﴿فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضٰهَا ۠﴾ ځکه [مونږ وعده کووه چه ستاسو به هم دغې قبلې ته مونږ مخ واړووکومه چه ستاسو خوښه ده [بيا مونږدرته هم ددې حکم کوو چه] ﴿فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۭ﴾ اوس خپل مخ واړوه په مونځ کښې مسجد حرام طرف ته [اودا حکم يواځې تاسو دپاره نه دي بلکه ټول خلق پيغمبر هم اوامتيان هم] ﴿وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ شَطْرَهٗ ۭ﴾ چرته چه موجود وی [که په مدينه کښې وی اوکه په بل ځائې کښې تر دې چه که بيت المقدس کښې يئ] خپل مخونه هم دهغې مسجد حرام] طرف ته کوئی ﴿وَاِنَّ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ لَيَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ ۭ﴾ [او ددې قبلې مقررکيدلو په باره کښې] اهل کتاب هم [عامو طور باندې د کتابونو د پيشنګوئی پهوجې سره چه دنبی اسرائيلو آخرالزمان قبله به دغه وی]يقينی طور پوهيږی چه دا حکم بيخی درست دے [او] هم ددوی دپروردګار د طرفه دے [خو دضد له وجې يئ نه منی] ﴿وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعْمَلُوْنَ ۝﴾ اوالله ﷻ ددوی کردار نه څه بې خبره نه دي.

## معارف او مسائل

**وجوهات د تمنا د نبی کريم ﷺ دپاره د بدليدو د قبلې:** قوله تعالیٰ: ﴿قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَآءِ ۚ﴾ددې آيت په رومبئ جمله کښې داذکردې چه رسول الله ﷺ دکعبې مشتاق دې چه ددې مختلفې وجهې بيان شوې دی اوټولې يوتربله [يو بل سره] بې ربطه نهٔ دی ځکه داټولې وجهې درستې هم کيدې شی، مثلاً داچه رسول الله ﷺ به دوحی نازليدواونبوت ورته د ملاويدونه وراندې دخپل طبيعت اوفطرت په جوړ دملت ابراهيمی تابع کارونه کول اوبيا دوحی دنازليدونه پس قرآن کريم هم ددوئی شريعت دملت ابراهيمی مطابق اوګرځولو اودحضرت ابراهيم اوحضرت اسماعيل ؑ قبله بيت الله ووځکه دوئ دزړهٔ نه داخواهش لرلوچه ددوئ او د مسلمانانو قبله هم دغه بيت الله شريف اوګرځولې شی۔

دَدې بله داوجه هم وه چه عرب قبائلو به هم ملت ابراهیمی کم ناکم په ژبه خومنلو او دَهغې دَ تابعدارئ کولو دعویدارو نو که کعبه دَ مسلمانانو قبله اوګاکلې شي دَ هغې نه داامید کیدې شو چه مشرکان دَعرب به اسلام ته راواوړی شي او بیت المقدس لره دَقبلې جوړلو په وجه دَاهلِ کتابو دَراؤاوړیدو کوم امید چه کیدې شو، شپاړس اولس میاشتې هغې لره دَقبلې جوړولو دَتجربې به هغه امید ختم شوولې چه په دې ټوله زمانه کښې هغوئ دَنزدیکت په ځائې اسلام او مسلمانانو نه نور زیات لرې والې اختیار کړې وو.

بهرحال رسول الله ﷺ بیت الله شریف لره دَقبلې جوړولو مشتاق وواو دَالله دَدربار نزدیکان خلق چه انبیاء علیهم السلام دی، هغوئ خپل خواست اوخواهش ترهغه پورې په دغه بارګاه الهی کښې نه پیش کوی چه دَدغې خواست دَپیش کولو دَاجازت علم ورته اونشی په دې بناه اوئیلې شی چه رسول الله ﷺ ته دَدې دعااجازت وراندې نه [مخکښې ځخه] ورکړې شوې ووځکه هغوئ دغه دعاکول شروع کړی وواودَ قبلیدو امیدئې لرلواو په دې غرض به ئې بیابیا آسمان ته کتل چه څوک فرښته به دغه حکم راوړی. په دې آیت کښې ئې چه داکیفیت بیان کړونو دَدُعادَقبلیدووعده ئې اوفرمائیله قوله تعالٰی: ﴿فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضٰىهَا﴾ [مونږ به هم دغه اړخ ته ستاسو دَمخ اړولواجازت درکړو چه ستاسوخوښ دې]او وروستو سمدستی ئې دَمخ اړولوحکم نازل کړو﴿فَوَلِّ وَجْهَكَ﴾په دې طرز کښې یوخاص خوند وو هغه داسې چه رومبی دوعدې کولوخوشحالئ حاصله شی اوبیا دَوعدې پوره کولوبل خوندپرورزیات کړې شی [داټول مضمون دَقرطبی جصاص اومظهری نه اغستې شوې دی(۱)].

**قبلې ته دَمخ کولومسئله** داتحقیق رومبې شوې دې چه دَ الله ﷻ په نسبت ټول اړخونه اوطرفونه برابر دی قوله تعالٰی: ﴿قُلْ لِّلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ﴾ لیکن دَاُمت دَمصلحتونو په خاطر، دَحکمت په تقاضا یواړخ لره، دَځلورګنجه دنیا دَمسلمانانو دَپاره قبلې جوړولوسره، دَیودینی وحدت عملی مظاهره کول مقصودوو، دغه اړخ اګرچه بیت المقدس هم کیدې شومګر دَرسول الله ﷺ دَ آرزو مطابق کعبه، قبله جوړه کړې شوه چه حکم ئې هم په دې آیت کښې ورکړې شو دَدې مقتضاداوه چه دلته ئې ﴿فَوَلِّ وَجْهَكَ الى الكعبة اوالى بيت الله﴾ئې فرمائیلې وې خوقرآن کریم دَدې په ځائې دَ﴿شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾الفاظ ځکه اختیار کړل چه قبلې ته دَمخ کولوپه باره کښې ترګنړې مسئلې واضح شوې.

① اصل قبله اګرچه بیت الله شریف دې چه کعبه هم ورته وئیلې شی خوښکاره خبره ده چه بیت الله ته مخ کول صرف ترهغې ځایه کیدې شی کوم ځائې نه چه بیت الله شریف په نظر راتللې شی، هغه لرې خلق چه بیت الله شریف ورته په سترګونشی ښکاریدې اوپه هغوی داپابندي اولګولې شی چه خاص بیت الله شریف ته دَمخ کوی نوپه دې به عمل کول ورته ډیر ګران شی، دَخصوصی آلاتواوحساباتوپه ذریعه سره به هم دَ صحیح اړخ ټاکل دَلرې اطرافونه مشکل اوغیریقینی شی حالانکه دَشریعت محمدیه علی صاحبها الصلوة والسلام بنیادپه آسانئ ایښودې شوې دې نو ځکه دَبیت الله یاکعبې په ځائې دَمسجد حرام لفظ استعمال کړې شو، چه دَبیت الله شریف په نسبت په ډیر لویه رقبه مشتمل دې اودې ته مخ کول دَلرې نه لرې خلقودَپاره هم آسان دی.

(۱) تفسير المظهری تحت هذه الآية: ۱/ ۱۴۲، ۱۴۳، والقرطبی تحت هذه الآية: ۱/ ۱۵۸

**د الي په ځائې د شطر د لفظ حکمت:** ② بیا د ﴿إِلَى الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ په ځائې ، ، ﴿شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ ، ، فرمائیلو سره دا آساني ورکړې شوه چه خاص مسجدحرام ته دَمخ کولو په ځائې دَ مسجدحرام طرف ته مخ کول دَلرې لرې خلقو دپاره هم آسانه دي چنانچه شطر لفظ دوه معنی لري نیمه برخه دَیو څیز ، دیو څیز اړخ اوپه اتفاق دَمفسرینو دلته دوئیمه معني مرادده نوپه دې لحاظ داضروري نهٔ ده چه دَلرې هیوادونوخلق هریو کَس دخاص مسجدحرام ته مخ کوي نوهله به ئې مونځ صحیح وي بلکه دَمسجدحرام اړخ ورلره کافي دی [بحر محیط] لکه مشرقي مملکتونه هندوستان ، پاکستان وغیره دپاره د مسجد حرام مغربی طرف ته قبله ده نو د مغرب له طرفه په رخ کولو سره د استقبال قبله فرض ادا کیږي او چونکه د ګرمۍ او یخنۍ په موسمونو کښې د نمر پریوتلو طرف هم بدلیږي رابدلیږي ځکه فقهائې کرامو دَنمرپریواتۀ هغه ټول طرف دَقبلې طرف ګرځولې دې چه دیخنۍ اوګرمۍ دَ موسمونو منځ کښې راځي چه دَریاضي دَقواعدوپه حساب به ئې صورت داوي چه داوړي ژمي دَدواړو مغربونو ترمنځه تر ۴۸ درجو پورې دَقبلې اړخ اوګرځولې شي یعنی که ترڅلوریشتو درجوپورې هم بنې اوګس اړخ ته کوږ راشي نودا به دقبلې طرف وی او مونځ به دغې طرف ته کول صحیح وی. چنانچه دَریاضۍ یوقدیم اومشهورکتاب شرح چغیني باب ۴ ص ۲۲ کښې دَدواړومغربونوترمنځه فاصله هم دغه ۴۸ درجو ګرځولې شوې ده. [۱]

**دقبلې اړخ معلومولودپاره دشریعت له مخه رصدي آلاتواوریاضي حساباتوته ضروره باندې نهٔ ده:** دې نه دَهغه خلقوجهالت هم په ډاګه شو چه دَهندوستان اوپاکستان دَډیر وځو ماتونو د قبلې فرق په دوه څلورو ډګرومونډلوسره ئې دافیصله کړیده چه په دې کښې مونځونه نهٔ کیږي ، داسواسوی جهالت اوبې دَځه وجې دَمسلمانانوترمنځه بیلتون اوګډوډي راپیداکول دی.

اسلامي شریعت ترقیامته راتلونکوټولوخلقواودټولې دُنیادَملکونودپاره دې ، ځکه دَدې هره ځانګه دومره آسانه جوړه کړې شوې ده چه دَهرکلي ، ځنګل ، غراوجزیرې اوسیدونکي مسلمانان په دې باندې په خپلولیدوکتلوسره عمل اوکړې شي ، په هیڅ مرحله کښې دَحساباتو ، ریاضي یا اصطرلاب وغیره آلاتوضرورت پاتې نشي ، ۴۸ درجو پورې فراخ اوپلن طرف دَاهل مشرق قبله ده په دې کښې که دَپنځو ، لسوډګروفرق هم راشي نودې سره په مونځونوباندې هیڅ اثرنهٔ پریوځي چنانچه دَرسول الله ﷺ دَیوحدیث نه دَدې نوروضاحت هم کیږي لکه فرماي: [مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ قِبْلَةٌ [رواه الترمذي عن ابي هريرة ﷺ] (۱) [دَمشرق اومغرب ترمنځه قبله ده] [ترمذی دابی هریره ﷺ] دَدوی داارشاددَمدینې طیبې دَخلقودپاره ووځکه چه دَهغوی قبله مشرق اومغرب ترمنځه جنوب [سوئیل] اړخ ته ده. ګویادې حدیث شریف دَ﴿شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ تشریح داسې اوکړه چه دمسجدحرام اړخ قبلې ګرځولودپاره کافي دې. البته دَجُماعت جوړولوپه وخت داکوشش پکاردې چه رسا مخ کوي دَبیت الله شریف اړخ ته چه څومره نزدې کیدې شي هغسې داوکړې شي، دَصحابه کرامو ، تابعینو اودَپخوانوبزرګانوساده طریقه خودې معلومولودپاره داوه چه چرته به دَ صحابه کرامو جوړکړې جماعت ووډهغې مطابق به ئې دَنوروجماعتونونوطرف مقررولواوهم په دې طریقه دَټولې دُنیادَځوماتونواړخ تجویزکړې شوې دې دَلرې لرې هیوادونو مسلمانانوله پکار

[۱] حضرت والد ﷫ په جواهر الفقه کښې د فقهاء کرامو دویم قول ذکر کړې دې چې ۴۵ درجې ښي یا ګس طرته مائل کیدو سره د قبلې سمت نهٔ فوت کیږي ، محمد تقی حفظه الله.

(۱) جامع الترمذي، أبواب الصلوٰة، باب ما جاء أن بين المشرق والمغرب قبلة: ۱/ ۷۹

دی چه دَدغې علاقې دَيوېخوانی جُومات په رخ دَنورو جماعتونو رخ اوړاکی ځکه چه دغسې جماعتونه عموماً صحابه کرامو او تابعينو جوړ کړی دی چه بيا هم دَدې په طرز، نورو مسلمانانو خپلو خپلو علاقو کښې جوماتونه جوړ ل.

په دې وجه دغه دَمسلمانانو ټول جماعتونو دَ قبلې معلومولو دَپاره ښه پوره او کافی دی په دې کښې بلاوجه فلسفی شبهات رابرسيره کول دَشريعت له مخه ښه خبره نۀ ده بلکه بده او دَپريشانۍ خبره ده ولې چه په داسې خبرو سره عموماً په صحابه کرامو تابعينو او عامو مسلمانانو باندې دَاعتراضونو او بدګمانۍ کولو قسما قسم وسلې په ګُتو راځی مثلاً داوئيلې شی چه دَدوئ مونځونه او قبله صحيح نۀ وه او هم دَدې کبله دَاتمې صدۍ هجرۍ مشهور او معروف عالم ابن رجب حنبلی دَقبلې اړخ معلومولو دَپاره رصدی آلات استعمالول او دَرياضۍ باريکۍ راويستل منع کړی دی، چنانچه دَهغوئ الفاظ دادی:

[واما علم التيسير فاذا تعلم منه ما يحتاج اليه للاستهداء ومعرفة القبلة والطرق كان جائزا عند الجمهور وما زاد عليه فلا حاجة اليه وهو يشغل عما هو اهم منه وربما ادي التدقيق فيه الى اساءة الظن بمحاريب المسلمين في امصارهم كما وقع في ذالك كثير من اهل هذا العلم قديما وحديثا وذلك يفضي الى اعتقاد خطاء الصحابة والتابعين في صلواتهم في كثير من الامصار وهو باطل وقد انكر الامام احمد الاستدلال بالجدي وقال انما وما بين المشرق والمغرب قبلة] هر چې علم تسيير دَجمهورو علماؤ په نزد دومره قدرې ازده کول روادی چه دَلارې موندل، قبله او لارو پيژندل پرې او شی دَدې نه زيات ته هيڅ ضرورت نشته ځکه چه داانسان لره دَهغه څيزونونه بې فکره کوی چه دَدې نه زيات ضروری دی او ډير کرته دَدې په باريکو کښې ورتلل بدګمانی پيدا کوی دَمسلمانانو په هغه محرابونو کښې چه دَدوئ په ښارونو کښې دی لکه څنګه چه انښتې دی په دې کښې دَدې علم ډير خاوندان چه دا اعتقاد هم تر پيدا کيږی چه ډيرو ښارونو کښې دَصحابه کرامو او تابعينو مونځونه په غلطه طريقه ؤ او دا بيخی لغو او باطل دی، امام احمد دَجدی نوې ستوری نه [چه دَقطب په ستوری هم نومولې شی] په قبلې دليل نيول منع کړی دی او فرمائيلی ئې دی چه په حديث شريف کښې صرف دومره راغلی دی چه دَمشرق او مغرب تر منځه قبله ده.

**د قبلې معلومولو شرعی طريقه**: او په کومو ځنګلونو او آبادوو غيره کښې چرته چه زاړه جُوماتونه موجود نۀ وی هلته دَسُنت دَصحابه کرامو او تابعينو نه ثابته شرعی طريقه داده چه دَنمر، سپوږمۍ او قطب وغيره په مشهورو او معروفو ذريعو سره اندازه اولګوی او دَقبلې اړخ اوټاکی که په دې کښې څه معمولی کوږوالی بدلون راشی نو دَهغې پرواه نشی کولې ځکه چه صاحب دَبدائع دا خبره په ډاګه کړيده چه دغه لرې هيوادونو کښې په فکر او اندازې سره قائم کړې اړخ دکعبې قائمقام ګرځی او په دې ټول احکام مرتب کيږی لکه شريعت چه خوب لره دَبادووتو قائمقام جوړولو سره په دې ئې دَاودس ماتيدو حکم کړې دې، يا سفر ئې قائمقام دَمشقت ګرځولو سره پرِدَ سفر رخصتونه مرتب کړيدی په حقيقت کښې مشقت وی او که نۀ وی، دغه شان په لرې هيوادونو او اطرافو کښې دَ مشهورو او معروفو نخښو نښانو په ذريعه چه دَقبلې اړخ په فکر او اندازې سره قائم کړې شی هغه به دَشريعت له مخه دکعبې قائمقام وی، علامه بحر العلوم په رسائل الارکان کښې دا مضمون په دې الفاظو کښې بيان کړيدې:

[والشرط وقوع المسامتة على حسب ما يري المصلي ونحن غير مامورين بالمسامتة على ما يحكم به الالات الرصدية ولهذا افتوا ان الانحراف المفسد ان يتجاوز المشارق والمغارب] [رسائل الارکان ص/۵۳] او قبلې ته په مخ کولو کښې شرط او ضروري خبره صرف داده چه د مونځ ګذار درائې او اندازې په مطابق کعبې سره برابري او سمون راغلې وی او مونږ د دې خبرې مکلف نهٔ یؤچه د برابرئ هغه درجه پیدا کړو چه د رصدی آلاتو په ذریعه حاصلیدې شی په دې وجه د عامو علماء فتوی داده چه کړلیچ او کږیدل د مانځه ماتوونکې دادې چه د مشرقونو او مغربونو د مینځ نه ووځی.

د دې مسئلې مکمله تشریح او د حساباتو په ذریعه د قبلې معلومولو مختلفې طریقې او د دې په شرعی حیثیت باندې تفصیلی بحث زما په رساله ،سمت قبله نومې کښې کتلې شئ.

وَلَئِنْ أَتَيْتَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَٰبَ بِكُلِّ آيَةٍ مَّا تَبِعُوا

اوکه چرې راوړې ته | هغه کسانوته | چه ورکړې شوې دې ورته کتاب | هر قسم نښه | اوبه نهٔ کړی تابعداری

اوکه دې اهل کتابو ته هرڅومره دليلونه پیش کړې | خودوئ | د دې هرڅه باوجود | ستا د قبلې تابعداری

قِبْلَتَكَ وَمَا أَنْتَ بِتَابِعٍ قِبْلَتَهُمْ وَمَا بَعْضُهُمْ بِتَابِعٍ قِبْلَةَ

دقبلې ستا | او نهٔ | ته | تابعداری کونکې ئې | دقبلې دهغوئ | او نهٔ | بعضې دهغوئ | تابعداری کونکی دی | دقبلې

نه کوی | او نه ته ددوی قبله قبلولې شې | او په دوئ کښې هم یوه ډله دبلې ډلې قبلې ته نه مخ کوی

بَعْضٍ وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَاءَهُمْ مِّنْ بَعْدِ مَا جَاءَكَ مِنَ الْعِلْمِ

دبعضو | اوکه چرې | تابعداری اوکړه تا | دخواهشاتو دهغوئ | اروستو دهغې نه | اچې راغلې دې تاته | دعلم نه

اوکه چرې ته ددې واضح علم (وحی) راتلونه پس هم ددوئ په خواهشاتو پسې لاړې | او د دوی قبلې ته دې مخ کړو |

إِنَّكَ إِذًا لَّمِنَ الظَّٰلِمِينَ ﴿۱۴۵﴾

نو بیشکه چې ته به | په دغه وخت کښې | شې دظالمانو نه |

نو په دغه وخت کښې به ته په ظالمانو کښې شمیر شې |

**آسان ترجمه قرآن**

**او کوم خلقو ته چه کتاب ورکړې شوې وو که ته هغوی ته هر قسمه نښې راوړې بیا به هم دوی ستا د قبلې تابعداری نه کوی او نه ته دهغوی په قبله باندې عمل کونکې یې، نه دوی دیو بل په قبله باندې عمل کونکی دی او کوم علم چه تاته راغلې دې ددې نه پس که چرته تا ددوی د خواهشاتو پیروی اوکړه نو په دې صورت کښې به یقیناً ستا شمیر په ظالمانو کښې وی.**

**خلاصه تفسیر**

﴿وَلَئِنْ أَتَيْتَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَٰبَ بِكُلِّ آيَةٍ﴾ او [سره ددې چه داخلق په هر څه پوهیږی ددوی دضد داحالت دې چې] که تاسو د [دې] اهل کتابو په مخکښې ټول [ددنیا] دليلونه [راجمع کولوسره [پیش کړې ﴿مَّا تَبِعُوا قِبْلَتَكَ﴾ بیا به هم دوی [هیچرې] ستا قبله قبوله نکړی [او ددوی د سمون امید څکه نه دی لرل پکار چه ستا قبله هم منسوخ کیدونکې نه ده] ﴿وَمَا أَنْتَ بِتَابِعٍ قِبْلَتَهُمْ﴾ ته هم ددوی قبله نشې قبلولې [نو هیڅ صورت دسمیدو نشه دې] او [څنګه چه ددغه اهل کتابو تاسو سره

مخالفت دے دغه شان خپل مینځ کښې يې اتفاق نشته دې ځکه چه] ﴿وَمَا بَعْضُهُمْ بِتَابِعٍ قِبْلَةَ بَعْضٍ﴾ ددوی هیڅوك [ډله] هم دبلې ډلې قبله نه منی [مثلا یهودو دبیت المقدس اونصرانیانو دمشرق طرف قبله جوړ کړې وو] او [الله ﷻ دې نکړی تاسو خو په هیڅ شان د دوی منسوخه غیرشرعی قبله نشئ اخستلې چه] ﴿وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَاءَهُمْ مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَكَ مِنَ الْعِلْمِ﴾ که تاسو ددوی [دغه نفسانی خیالات [اګر چه په اصل حقیقت کښې څه وخت آسمانی حکم پاتې شوې وی لیکن د منسوخ کیدو پهوجې سره یې عمل کول صرف نفسانی تعصب دې نوکه تاسو داسې خیالات] اختیار کړئ [هغه هم] تاسوته دعلم [قطعی یعنی وحی] راتلو نه بعد ﴿إِنَّكَ إِذًا لَمِنَ الظَّالِمِينَ﴾ نویقنی طور تاسو به [نعوذ بالله] په ظالمانو کښې شئ [چه دالله ﷻ دحکم پرېنبودونکی دی او ستاسو ظالم کیدل په دې وجه ممکن نه دی چه معصوم يئ ځکه چه داهم نشی کیدلې چه تاسو ددوی خیالات چه په هغه کښې قبله ددوی هم وه قبول کړئ].

## معارف اومسائل

قوله تعالى: ﴿وَمَا أَنْتَ بِتَابِعٍ قِبْلَتَهُمْ﴾ کښې دا اعلان اوکړې شو چه اوس به ترقیامته پورې ستاسو قبله صرف بیت الله وی په دې سره نه زیاتیږی دیهودو اونصاراؤ دا خیالات بندول مقصود وو چه دمسلمانانو قبله خوپه یو ځائې نه ټیکاویږی اول بیت الله ؤو، بیابیت المقدس شو، بیابیت الله شو اوس بیاهم کیدې شي چې بیت المقدس شی [بحر محیط]

قوله تعالى: ﴿وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَاءَهُمْ﴾ دا خطاب رسول الله ﷺ ته دفرض محال په ډول دې چې دواقع کیدوئې هیڅ احتمال نشته اوپه اصل کښې اُمت محمدیه ته آورول دی په دې شان چې ددې خلاف کول داسې یوه خبره ده که پیغمبر ؑ پخپله هم بفرض محال داسې اوکړی نوهغه به هم ظالم اوګرځولې شی.

الَّذِينَ آتَيْنَهُمُ الْكِتٰبَ

| هغه کسان | چې ورکړې دې مونږ هغوئ ته کتاب

| چاته چې مونږ کتاب ورکړې دې

يَعْرِفُونَهُ كَمَا يَعْرِفُونَ أَبْنَاءَهُمْ ۖ وَإِنَّ فَرِيقًا مِّنْهُمْ

هغوئ پیژنی قبله | لکه څنګه چې | پیژنی هغوئ | خامن خپل | او بیشکه | یوه ډله] دهغوئ نه|

هغوئ دا [قبله] داسې پیژنی لکه څنګه چې خپل خامن په ښه شان پیژنی اخو په دوئ کښې یو ډله ده

لَيَكْتُمُونَ الْحَقَّ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ۝ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُونَنَّ

خامخا پټوی حق | حالانکه هغوئ | پوهیږی | دا حق امردې | دطرف درب ستانه | نومه کیږه ته

چې سره دپوهې حق پټوی | [دادقبلې بدلیدل] دالله دطرفنه حق حکم دې نو [اې مخاطبه] ته په دې باره

مِنَ الْمُمْتَرِينَ ۝

د شك كونكونه |

د شک کونکو ختی مه کیږه|

## آسان ترجمه قرآن

کومو خلقوته چه مونږ کتاب ورکړې دې هغوی دې لره داسې پیژنی لکه څرنګه چه خپل ځامن پیژنی او یقین اوکړئ چه په دوی کښې څه خلق سره د پوهې حق پټوی. اوحق هم هغه دې کوم چه ستا د پروردګار د طرفه راغلې دې لهٰذا په شك کونکو کښې بالکل شامل نه شې.

## خلاصه تفسیر

[په دې مخکښې آیت کښې داهل کتابو داکار ذکر وو چه د مسلمانانو قبله یې په زړه کښې حق ګڼړله اوپه ژبه یې نه منله اوس په دې آیت کښې هم دغه شان دصاحب قبلې رسول ﷺ په باره کښې داذکردې چې اهل کتاب یې په زړه کښې حق ګڼړی اوپه ژبه یې نه منی] ﴿الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ﴾ کومو خلقو ته چه مونږ ورکړې دې کتاب [تورات اوانجیل] مو ورکړې ﴿يَعْرِفُونَهُ كَمَا يَعْرِفُونَ أَبْنَاءَهُمْ﴾ دغه خلق رسول ﷺ لره [په تورات اوانجیل کښې دا راتلونکی زیری په بنا درسول الله ﷺ په حیث] داسې [بیشك اوشبهې] پیژنی څنګه چه خپلو ځامنو لره [دهغوی دشکل نه پیژنی [چه دخپل ځوئې په شکل لیدو سره هیچرې شبه نشی کیدلې چه دا ځوك دے خوسره دپیژندو نه هم تول نه مسلمانان کیږی بلکه بعضو خوایمان راوړو] ﴿وَإِنَّ فَرِيقًا مِّنْهُمْ لَيَكْتُمُونَ الْحَقَّ وَهُمْ يَعْلَمُونَ﴾ اوبعضې له دوی نه [داسې دی چه دې] امر یقنی لره خامخا پټوی سره ددې چه ښه یې پیژنی [حالانکه] ﴿الْحَقُّ مِن رَّبِّكَ﴾ داامر یقینی دالله ﷻ د طرفه نه [ثابت شوے] دے نو [په داسې امر یقینی کښې چه ثابت وی دالله ﷻ له طرفه هریو کس ته دا وئیلې شی چه په کښې] ﴿فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِينَ﴾ هیچرې دشك کوونکو نه مه شمیرلې کیږه.

## معارف اومسائل

﴿الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ﴾ په دې آیت کښې دَرسول الله ﷺ تشبیه دَرسول پیژندلو په حیث دَ خپلو ځامنو پیژندلو سره ورکړې شوې ده چه دا خلق څنګه چه خپل ځامن په پوره شان پیژنی په دې کښې ورته هیڅ شبه اواشتباه نۀ کیږی دغه شان په تورآت اوانجیل کښې دَرسول الله ﷺ زیرې اودښه ښکاره نخښوښبانوذکرچه راغلې دې دَدغې په ذریعه داخلق دوئ لره هم په یقین سره پیژنی خوانکارئې صرف دَضداوناړامئ او عناد په وجه دې.

دلته دې خبره کښې غور کول دی چه په ښه شان پیژندلودَپاره دَخپلو ځامنودَپیژندلومثال ورکړې شو، دَمورپلارمثال ورنکړې شوحالانکه دوئ هم عادتًا په ډیرښه شان پیژندلې کیږی دَدې وجه داده چه خپل ځامن دَپیدا کیدو دَشروع نه څکه ښۀ پیژندلې شی چه دَهغوئ خصمانه اوتربیت ئې په خپلولاسونوکړې وی دَدوئ دَبدن داسې هیڅ یوبرخه پاتې نۀ وی چه دَمورپلار د نظر نه پټه نۀ وی وتلې په خلاف دَمورپلارنه چه هغوئ په دې شان هیڅ کله نشی پیژندلې اونۀ ئې ټول اندامونه دَدۀ په نظرکښې راغلی وی.

دلته دَځامنوپیژندل دَځامنوپه حیثیت سره څکه نۀ دی مرادچه کیدې شی بی بی ئې خیانت کړې وی اوځامن ئې دَبل چانه راوړی وی بلکه په شکل سره ئې پیژندل دی چه دې کښې ورته هیڅ کله چرته شك شبه نشی راولاړیدې

وَلِكُلٍّ وِّجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيهَا

| او دپاره دهرچا | یو طرف دي | چې هغه | مخ گرزونکي دې هغې ته

| دهر چا [امت د عبادت کولو] یو طرف وی چې مخ کونکي وی هغې ته

فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ ۭ اَيْنَ مَا تَكُوْنُوْا يَاْتِ بِكُمُ اللّٰهُ جَمِيْعًا ۭ

نو وړاندي شئ دیو بل نه | نیکو ته | هرچرته چي يئ تاسو | رابه ولي | تاسو الله | تول |

نو تاسو دنیکوپه کارونو کښي د یوبل نه وړاندي والي کوئ | هرځائي کښي چي تاسویئ الله پاک به مویوځائي کړي

اِنَّ اللّٰهَ عَلٰي كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝ وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ

بیشکه الله | په هر | څیز باندي | قادردي | اودکوم ځائي نه | چي اوځی ته | نوهم دهغه ځائي نه | اوگرزوه

بیشکه الله پاک په هرکار باندي قدرت لري | اوکوم ځائي نه چي ته په سفر وتلی يئ دهغه ځائي نه

وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۭ وَاِنَّهٗ لَلْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ ۭ

مخ خپل | طرف | د مسجدحرام ته | ځکه چي دا | حقه فيصله ده | دطرفه درب ستا نه |

مسجد حرام طرفته [په مونځ کښي] مخ کوه | ځکه چي داستاسو د پاک رب دطرفه حقه فیصله ده

وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ۝ وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ

اونه دي الله | ناخبره | دهغه کارونو نه | چي تاسو ئي کوئ | اودهرځائي نه | . چي اووتلې ته

اوالله پاک ستاسودعملونو نه بي خبره نه دي | اوهر ځائي نه چي ته ووتلې دهغه ځائي نه [مونځ کښي]

فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۭ وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ

نوگرزوه | مخ | خپل | طرف | دمسجد حرام ته | او هر چرته چي يئ تاسو | نو گرزوئ | مخونه خپل

مسجد حرام ته مخ کوه | او [اي مسلمانانو] هرځائي کښي چي تاسويئ نو دغې اړخ ته برابر مخونه گرځوئ

شَطْرَهٗ ۙ لِئَلَّا يَكُوْنَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ ۤ اِلَّا الَّذِيْنَ

طرفه دهغه ته | دپاره ددې چي نه وی | خلقو ته | په تاسو باندي | څه اعتراض | سوا | دهغه کسانو نه

چي [عامو] خلقو ته ستاسو خلاف هیڅ حجت [اودلیل] په گوتو ورنشي | اخو څوک چي ظالمان دی

ظَلَمُوْا مِنْهُمْ ۤ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِيْ ۤ وَلِاُتِمَّ

چي ظلم ئي کړي دي | دهغوئ نه | نو مه یریږئ دهغوئ نه | اواويريږئ زمانه | او دپاره ددې چي پوره کړم زه

[نودهغوئ خولي څوک بندولي نشي] | نوتاسو دهغوئ نه مه ویریږئ او زمانه اوویریږئ | اودې دپاره چه زه په تاسو

نِعْمَتِيْ عَلَيْكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ۝

نعمت خپل | په تاسو باند | اوپه دي امید چي تاسو | لاربیا مومئ |

باندي خپل نعمتونه پوره کړم | اوشاید چي تاسودکامیابئ لار بیامومئ |

## آسان ترجمه قرآن

او د هر يوې ډلې خپل طرف دې چه هغې طرف ته هغوى مخ كوى لهٰذا تاسو په نيكو كارونو كښې د يو بل نه د مخكښې كيدو كوشش كوئ تاسو چه چرته هم يئ الله تعالىٰ به تاسو ټول (خپل ځانته) راولى. يقيناً الله په هر څيز باندې قادر دې. او تا ته چه چرته هم (سفر دپاره) اوځې، خپل مخ (د مونځ په وخت) مسجدِ حرام طرف ته كړه او يقيناً هم دا خبره حقه ده كومه چه ستا د پروردگار د طرفه راغلې ده او كوم څه چه تاسو كوئ الله تعالىٰ د هغې نه ناخبره نه دې او د كوم ځائې نه هم چه ته اوځې خپل مخ مسجدِ حرام طرف ته كړه، او تاسو چه چرته يئ خپل مخونه هم دې طرف ته اړوئ چه خلقو ته ستاسو په خلاف د حُجت قائمولو موقع ملاؤ نه شى البته په دوى كښې چه كوم خلق ظلم خوښونكى دى (هغوى به كله هم چپ نه شى) نو د هغوى نه مه ويريږئ او زما نه ويريږئ او دې دپاره چه زه په تاسو باندې خپل انعام پوره كړم او دې دپاره چه تاسو هدايت حاصل كړئ.

### خلاصه تفسير

﴿وَلِكُلٍّ وِّجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيهَا﴾ او [دقبلې په بدليدو كښې دويم حكمت دادې چه د الله ﷻ دا جارى عادت دې چې] د هر چا [مذهب والا] دپاره جدا جدا قبله پاتې شوې ده چه د هغې طرف ته هغه [په عبادت كښې] مخ كوى [هركله چه شريعت محمدى هم يو مستقل دين دے نو ددې قبله هم يو خاص قبله شوه او چه حكمت يئ په ټولو ښكاره شو] ﴿فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ﴾ نو [مسلمانانو] تاسو [اوس دا بحث پرېږدئ دخپل دين] په نيكوكارونو كښې د مخكښې كيدو كوشش كوئى [ځكه چه يو ورځ مود خپل مالك سره پيښه راتلونكې ده نو] ﴿اَيْنَ مَا تَكُوْنُوْا يَاْتِ بِكُمُ اللّٰهُ جَمِيْعًا﴾ تاسو كه هر ځائې كښې يئ [خو] الله ﷻ به تاسو ټول [خپل دربار ته] حاضر كړى [په دغه وخت به په نيكو عملونو ثواب او په بدو عملونو سزا وى او] ﴿اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ﴾ يقيناً الله ﷻ په هر څه قدرت لرى او [ددې حكمت مقتضا هم دغه ده چه څنګه په حالت د اقامت كښې كعبې طرف ته مخ كول وى نو داشان كه مدينې نه يا څه دبل ځائې نه] ﴿وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ﴾ د هر ځائې نه هم [چرته په سفر كښې چه] تاسو به اوزئى نو [هم] ﴿فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ خپل مخ [په مونځ كښې] مسجد حرام طرف ته كوئى [غرض داچه د اقامت او سفر په ټولو حالتونو كښې هم دا قبله ده] ﴿وَاِنَّهٗ لَلْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ﴾ او دا [عام حكم دقبلې] بالكل حق [او صحيح] د الله ﷻ له [طرفه دې] ﴿وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ﴾ او الله ﷻ ستاسو دكړو كارونو نه لږ هم بې خبره نه دې.

**د تحول كعبه دريم حكمت**: ﴿وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ﴾ او [دوباره بيا وئيلې شى چه] تاسو دكوم ځائې نه هم چه [په سفر] بهر ته لاړشئ [او په اقامت كښې په اولى درجه] ﴿فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ خپل مخ [په مونځ كښې] مسجد حرام طرف ته لرئ او [داشان ټول مسلمانان دے هم واورى چه] ﴿وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ شَطْرَهٗ﴾ تاسو خلق چرته چه [موجود] يئ خپل مخ [په مونځ كښې] دغه [مسجد حرام] طرف ته لرئى [او دا حكم ځكه مقرر ولے شى] ﴿لِئَلَّا يَكُوْنَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ﴾ چه [د مخالفو] خلقو ته ستاسو په مقابله كښې [ددې] وينا [څه ځائے] پاتې نشى [چه كه چرې محمد ﷺ هم هغه وعده كړې شوې نبى آخرالزمان وے نو د هغه په نخښو كښې خو دا هم ده چه اصل قبله د هغوى به كعبه وى او دوى خو بيت المقدس ته مونځ كوى. دا دقبلې د بدليدو دريم

حکمت دے] ﴿إِلَّا الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْهُمْ﴾ مګرپه دوی کښې چه څوك [بيخې] بےانصافه دی [هغوی به اوس هم اخواديخوا کوی چه دا څنګه نبی دې چې د دومره نبيانو خلاف کعبې طرف ته مونځ کوی خوهرکله چه داسې بے فائدې اعتراضونو سره حق ته هيڅ نقصان نشته دې] ﴿فَلَا تَخْشَوْهُمْ﴾ نو دداسې خلقو نه [الږ] ويره [هم] مه کوئی [او داعتراضونو دجوابونو په فکرکښې مه پريوځئ] ﴿وَاخْشَوْنِي﴾ او مانه ويريږئی [چه زما د احکامو مخالفت اونشی ځکه چه دا مخالفت البته تاسودپاره نقصانی] دے او [مونږ ددې تپولو ذکر شوؤ احکامو توفيق هم درکړو] ﴿وَلِأُتِمَّ نِعْمَتِي عَلَيْكُمْ﴾ ځکه چه په تاسو زما [څه] انعام [او اکرام درباندې] دے [آخرت کښې به موجنت ته داخل کړم] ددې پوره والئ به اوکړم ﴿وَلَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ﴾ او ددې دپاره چه [دنيا کښې]تاسو په لاره [حقه] باندې [يعنی په اسلام باندې اوسيدونکی] پاتې شئ [چه دنعمت پوره والئ پرې بنا کيږی].

### معارف اومسائل

**د حکم د تکرار وجه.** **قوله تعالىٰ:** ﴿وَلِكُلٍّ وِجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيهَا﴾ په تيروشوؤآيتونوکښې دقبلې بدليدودپاره ،يکې **قوله تعالىٰ:** د ﴿فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ درې ځل راغلی دی او **قوله تعالىٰ:** ﴿وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ﴾ دوه ځله راغلی دی،ددې تکرار او دوباره کولويوعام وجه خوداده چې دقبلې بدليدوحکم ،دمخالفينودپاره دشورغوغاذريعه وه، پخپله د مسلمانانودپاره هم دعبادتونو يو عظيم انقلاب ؤو،که داحکم دباربارتاکيدونوسره نه ؤوبيان شوې نودزړونوتسلی اوآرام به آسان نئوو،ځکه داحکم بيابيادوباره کړې شوچه په ذې کښې دې خبرې ته هم اشاره ده چې دابدليدل آخری اوقطعی دی بياپکښې دبدليدوهيڅ امکان نشته.

دبيان القرآن په خلاصۀ تفسيرکښې دتطبيق چې څه صورت ليکلې شوې دې قرطبی هم ددغې پشان يوتقريرنقل کړې دې چې دامحض دوباره کيدل نۀ دی مثلاً وې فرمائيل چې رومبی ځل [اول وار] حکم راغلو ﴿فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ﴾ دا د حضر [نۀ سفر] حکم دې چې هرکله تاسوډيره په ځائې يئ نومسجدحرام طرف ته مخ کوئ اوبياپوره اُمت ته ددې حکم ورکړې شواود **قوله تعالىٰ:** ﴿وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ﴾مفهوم به ددغې تقريرپه بنااوی چې په خپل وطن اوځائې اوښارکښې [ډيره په ځائې]هرچرته چې يئ بيت الله شريف ته مخ کول دی داحکم به يواځې مسجدنبوی پورې مخصوص نۀ وې.

بيا ځل وار هم په دې الفاظوسره حکم کول،وطن نه دوتلواودسفرکولودحالت دپاره دی لکه ددې نه وړاندې د **قوله تعالىٰ:** ﴿وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ﴾دالفاظونه چې واضح شوی دی،اوهرکله چې دسفرحالات مختلف وی کله څوورځودپاره په يوآبادئ کښې پاتې کيدل راځی،کله په سفرکښې همداشان روان پاتی کيدل وی،ددې دواړوحالتونوعام کولودپاره ئې بيا داالفاظ ﴿وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ﴾زيات کړل په دې غرض چې دسفر په هرحالت کښې يواځې مسجدحرام تـه مخ کول دی اودې دريم کرت ذکر کولوسره ئې دقبلې دبدلولوداحکمت هم ورسره بيان کړوچه مخالفينوته ددې وئيلوموقع په لاس رانشی چې دتورات اوانجيل دښکاره پيشنګويئ په جوړ [په مناسبت] ،دنبې آخرزمان قبله ،خانه کعبه کيدل پکاردی اودوئ خودهغې په ځائې بيت المقدس لره قبله جوړه کړيده.

قوله تعالى: ﴿وَلِكُلٍّ وِجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيهَا﴾ چه د وا ؤ زيرشي نو لغوي معنى ئې داده چې كوم خيزته مخ كولې شي، حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما او فرمائيل چې دې نه مراد قبله ده او د حضرت أبى بن كعب رضي الله عنه په قرآت كښې، دلته د ﴿وِجْهَةٌ﴾ په ځائې ﴿قِبْلَةٌ﴾ هم منقول دې د جمهورو مفسرينو په نزد د دې آيت مراد دادې چې د هر قوم قبله چې ورته د عبادت په موقع هغه قوم مخ كوي مختلفه وي خواه، ورته د الله ﷻ د اسې حكم وي يائې پخپله د اسې څه اړخ مقرر كړې وي، بهر حال دا يو واقعي امر دې چې د مختلفو قومونو مختلفې قبلې هم د اسې راروانې دي نو په د اسې حالت كښې، كه د امي نبي ﷺ د پاره يو خاص قبله مقرر كړې شوه نو د دې بد ګڼل او تعجب كول بې ځايه دي

**په مذهبي مسئلو كښې د فضول بحثونو نه د ځان ساتلو هدايت:** قوله تعالى: ﴿فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ﴾ د دې نه وړاندې جمله كښې دا فرمائيلې شوې ؤ چه د مختلفو قومونو مختلفې قبلې پاتې شوې دي چه هيڅوك د بل قبله نه مني ځكه هغوئ سره په خپله قبله كښې بحث كول عبث دي، د دې جملې خلاصه داده چه هر كله دا معلومه خبره ده چه د دې بحث نه به د غه خلقوته هيڅ فائده نه رسي نو بيا دا عبث بحث كول پرېږدئ او په خپل اصلي كار كښې لګيا شئ چه دا په نيكو كارونو كښې مندې ترړې وهل او مخ په وړاندې د تلو كوشش كول دي، او هر كله چه په فضول بحثونو كښې وخت برباد ول او په نيكو كښې د وړاندې تګ كولو سستي كول، عموماً د آخرت نه د بې پرواكيدو سبب جوړيږي، ځوك چه د خپل آخرت او خپل انجام فكر لري هغه كله هم په فضول بحثونو كښې ځان نه ښكيل كوي د خپل مزل وهلو او لندولو په فكر كښې وي ځكه په راتلونكې جمله كښې د آخرت وريادولو ارشاد ئې او فرمائيلو: قوله تعالى: ﴿أَيْنَ مَا تَكُونُوا يَأْتِ بِكُمُ اللَّهُ جَمِيعًا﴾ د دې مطلب دادې چه په بحثونو كښې ګټات بيلات او ناكامي او كاميابي او د خلقو د اعتراضاتونه د بچ كيدو فكر، ټول د دې څو ورځو د دنيا د پاره دي او هغه ورځ به زر ترزره راشي چه پكښې به الله ﷻ د دنيا ټول قومونه يو ځائې ته راجمع كړي او حساب به تراخلي، عقلمند له پكار دي چه خپل اوقات په دې كښې او لګوي او تير كړي.

**په عبادتونو او نيكو عملونو كښې بې وجې ډيل او سستي كول مناسب نه دي جلدي پكښې كول پكار دي:** د ﴿فَاسْتَبِقُوا﴾ لفظ نه دا معلومه شوه چه كله هم د نيک عمل موقع پيدا شي د هغې په كولو كښې تاخير نه دې پكار، ځكه چه په ځنې وختونو كښې تاخير او سستي كولو سره د هغې توفيق، بنده نه لرې شي چه بيا د غه نيک عمل د سره كولې نه شي، خواه د غه عبادت او نيک عمل، مونځ، روژه وي، او كه حج، صدقه وغيره وي د قرآن كريم بل ځائې كښې دا مضمون په وضاحت سره د اسې راغلې دې ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اسْتَجِيبُوا لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمْ لِمَا يُحْيِيكُمْ ۖ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ يَحُولُ بَيْنَ الْمَرْءِ وَقَلْبِهِ﴾ اې مؤمنانو: د الله او رسول فرمان په ځائې راوړئ كله چه رسول تاسو له، ژوند بخښونكې څيز ته رابلې او پوه شئ چه الله ﷻ د بنده او د هغه د زړه تر منځه آړ جوړيږي.

**آيا په اول وخت كښې مونځ ادا كول بهتر دي:** په نيكو خبرو كښې د جلتئ كولو نه ځنې فقهاؤ په دې خبره استدلال كړې دې چه هر مونځ په اول وخت كښې ادا كول افضل دي. او هغه روايات حديث ئې د دې په تائيد كښې پيش كړي دي چې په اول وخت كښې د مونځ ادا كولو بيان په كښې راغلې دې چنانچه دا مذهب د امام شافعي دې مګر امام مالک رحمه الله د نورو احاديثو د رواياتو په بنا، د دې كښې څه تفصيل بيان كړې دې هغه د اسې چه په كومو مونځونو كښې رسول الله ﷺ په خپل قول او عمل مبارک سره د څه قدرې ډيل او تاخير كولو تعليم وركړې دې هغې د پاره بهتر وخت هم هغه دې چه

په دغه احاديثو کښې بيان شوي دي اونورېه اول وخت کښې اداکول بهتر دي مثلاً په صحيح بخاري کښې دحضرت انس ؓ په روايت دماسپخين مونځ په څه قدرې ډيل ا وتاخير سره اداکول غوره بيان کړې شويدی(۱) ،اوحضرت ابوهريره ؓ اوفرمائيل رسول الله ﷺ په دماسختن [ماخستن] په مانځه کښې څه قدرې تاخير کول خوښول .[قرطبی](۲)

داشان صحيح بخاري اوترمذي شريف کښې دحضرت ابوذر ؓ په روايت منقول دی چه په يوسفر کښې حضرت بلال ؓ دماسپخين مونځ دپاره په اول وخت کښې دکولواراده اوکړله نورسول الله ﷺ دې نه منع کړواووې فرمائيل،چه وخت لږ څه سوړشي هله اذان اوکړه ولې چه دګرمۍ زياتوالی دجهنم داورخنې دی(۳) ،مطلب داچه په اوړی کښې ئې دماسپخين مونځ څه قدرې ډيل سره اداکول خوښ کړل.

ددې رواياتو په بناء امام مالک رحمه الله اوامام ابوحنيفه رحمه الله فرمائيلي دی چه په دې مونځونوکښې په اول وخت دعمل کولوصورت دادې چه کله مستحب وخت شي نوبيا ډيل مه کوئ اوچرته چه ډيل څه حکم نشته،هلته بيخي په اول وخت کښې مونځ اداکول غوره دی لکه مونځ دماښام .

بهرحال،دتيرشوي آيت نه داخبره په اتفاق سره ثابته شوه چه کله دمونځ وخت راشي نودشرعي او طبعي ضرورت نه بغير تاخير کول ښه خبره نه ده ، ضرورت شرعيه هغه دی کوم چې پورته اوليکلې شو ، چې د بعضو مونځونو نبی کريم ﷺ د تاخير حکم فرمائيلې دې او ضرورت طبعيه خپل ذاتي عوارضو ، بيماري اومحتاجي په وجه تاخير کول. والله اعلم

| | |
|---|---|
| كَمَآ | اَرْسَلْنَا |
| لکه څنګه چې | اوليږومونږ |

لکه څنګه چې مونږ په تاسو کښې

| فِيْكُمْ | رَسُوْلًا | مِّنْكُمْ | يَتْلُوْا | عَلَيْكُمْ | اٰيٰتِنَا | وَيُزَكِّيْكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په تاسوکښې | يورسول | ستاسو نه | چې اوروی | تاسو ته | آيتونه زمونږ | او پاکوی تاسو |

رسول اوليږلوچه ستاسودقوم نه دې | چې تاسو ته زمونږ آيتونه آوروی |او تاسود ګناهونونه پاکوی

| وَيُعَلِّمُكُمُ | الْكِتٰبَ | وَالْحِكْمَةَ | وَيُعَلِّمُكُمْ | مَّا | لَمْ تَكُوْنُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| او تعليم درکوی تاسو ته د | کتاب | اودحکمت | اوښائی تاسو ته | هغه خبری | چې نه وئ تاسو |

اود کتاب اوحکمت ښودنه درته کوی | او په هغه خبرومو پوهوی چې تاسوترې نه پخوا

| تَعْلَمُوْنَ ۞ | فَاذْكُرُوْنِيْٓ | اَذْكُرْكُمْ | وَاشْكُرُوْا لِيْ | وَلَا تَكْفُرُوْنِ ۞ |
|---|---|---|---|---|
| چې پرې پو هيدلئ | نو يادوئ ما | زۀ به يادوم تاسو | او شکراوباسئ زما | اومۀ کوئ ناشکری زما |

خبرهم نه وئ |نو تاسو مايادوئ زۀ به تاسويادوم |اوزما شکراداکوئ اوناشکری مه کوئ

---

(۱) صحيح البخاری، کتاب مواقيت الصلوة، باب وقت العشاء: ۱/ ۸۱

(۲) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ۲/ ۱۶۶

(۳) صحيح البخاری، کتاب مواقيت الصلاة، باب الابراد بالظهرفی شدة الحر: ۱/ ۷۶، وجامع الترمذی، أبواب الصلوة، باب ما جاء فی تاخير الظهر: ۱/ ۴۱

## آسان ترجمه قرآن

(دا انعام داسې دې) لکه چه مونږ په تاسوکښې هم ستاسو نه یو رسول در اولیږلو. چه هغه تاسو ته زمونږ آیاتونه تلاوت کوی او تاسو پاکوی او تاسو ته د کتاب اوحکمت تعلیم درکوی او تاسو ته هغه خبرې ښائی چه په هغې تاسو نه پوهیدلئ لهٰذا ما یاد کړئ، زه به تاسو یاد ساتم. او زما شکر ادا کړئ، او زما ناشکری مه کوئ.

## خلاصه تفسیر

[یعنی مونږ کعبه قبله مقررولو سره دحضرت ابراهیم ﷺ یودعا چه د تعمیر دکعبې په باره کښې یئ داشان قبوله کړه] ﴿كَمَآ أَرْسَلْنَا فِيكُمْ رَسُولًا مِّنكُمْ﴾ څنګه چه [مودهغه بله هغه دعا قبوله چه دوئ دحضرت محمد ﷺ د پیغمبرئی په باره کښې کړې وه چه]تاسو خلقو کښې مونږ یو [عظیم الشان] رسول اولیږلو [چه] هم په تاسو کښې [دې اوهغه] ﴿يَتْلُوا عَلَيْكُمْ آيَاتِنَا﴾ زمونږ آیتونه [اواحکام] په وئیلو سره تاسوته آوروی ﴿وَيُزَكِّيكُمْ وَيُعَلِّمُكُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ﴾ او [د خیالاتو او دجهالت درسمونو نه] ستاسو صفائی مسلسل کوی اوتاسو ته کتاب دالله ﷻ او دپوهې خبرے په مخه کوی ﴿وَيُعَلِّمُكُم مَّا لَمْ تَكُونُوا تَعْلَمُونَ﴾ اوتاسو ته داسې [فائده مند دې] خبرې ښائی چه تاسوته یئ خبر هم نه وو.نه او مخکښنی کتابونه او عقل دهغه دپاره کافی وو او ددې شان درسول ﷺ رالیږل دعادحضرت ابراهیم ﷺ وه چه ښکاره شوه] ﴿فَاذْكُرُونِي أَذْكُرْكُمْ﴾ ددې [ذکر شوی نعمتونو] په وجې سره ماله [دیومنعم په حیث] یادوئی زه به تاسو [په مهربانئی یادکړم] ﴿وَاشْكُرُوا لِي وَلَا تَكْفُرُونِ﴾ اوزما [دنعمت] شکر اداکوئی او[دنعمت په انکار یا نافرنانئ کولوسره] زما ناشکری مه کوئی.

## معارف اومسائل

تردې حده پورې دقبلې بحث راروان ؤ،اوس دابحث په داسې یومضمون ختم کړې شوې دې چې ددې بحث په تمهید کښې دکعبې دبانی حضرت ابراهیم ﷺ په دعاکښې ضمنا راغلې ؤ یعنی داچه رسول الله ﷺ په اولاددحضرت ابرهیم ﷺ کښې په یوخاص شان سره رسول رالیږلې شوې دې اودې خبرې ته پکښې هم اشاره راغلې ده چې درسول الله ﷺ په پیغمبر کیدوکښې دکعبې دبانی [حضرت ابراهیم خلیل الله] دعاهم دخل لری نوکه ددوئ قبله ،کعبه جوړه کړې شوه نوپکښې دتعجب اوبدګنړلوهیڅ خبره نشته.

قوله تعالی: ﴿كَمَآ أَرْسَلْنَا﴾ دلته دکاف حرف تشبیه یوتوجیه خوهغه وه کومه چې په لنډ تفسیر کښې ذکرشوې ده بله توجیه ئې هغه کیدیشی چې امام قرطبی داسې کړې ده چې ددې حرف تشبیه [کاف]تعلق روستنی آیت ﴿فَاذْكُرُونِي﴾ سره دې معنی به ئې داوی چې څنګه مودقبلې نعمت درباندې کړې دې بل نعمت مودرباندې درسول الله ﷺ دپیغمبر کولوهم کړې دې،دغه یونعمت ذکرالله هم دې ددې ټولونعمتونوشکر اداکوئ،دې دپاره چې دانعمتونه،نورهم درباندې زیات شی،قرطبی فرمائ چې د﴿كَمَآ أَرْسَلْنَا﴾ کاف داسې دې لکه په سورة انفال کښې د﴿كَمَآ أَخْرَجَكَ﴾ اودسورت حجرپه آخر کښې د﴿كَمَآ أَنزَلْنَا عَلَى الْمُقْتَسِمِينَ﴾ کاف چې دې[1].

[1]) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ۲/ ۱۷۱

قوله تعالٰی: ﴿فَاذْكُرُونِيْ أَذْكُرْكُمْ﴾ دَذکر اصلي معنی یادول دي چي تعلق ئې زړهٔ سره دې خو په ژبه ذکر کول کله چې دزړهٔ ترجماني کوی نو په دې وجه دې ته هم ذکر وئیلې شي، ددې نه معلومه شوه چې زباني ذکر هغه معتبر دې چې ورسره په زړهٔ کښې هم د الله ﷻ یادوی لکه مولانائې روم چې فرمائي.

برزبان تسبیح، دردل گاؤخر — اینچنین تسبیح کے دارد اثر؟

په ژبه تسبیح او په زړه کښې غوې اوخر، داشان تسبیح به څه اثر اولرى؟

خو دا هم یادلرل پکار دی چې په داسې وخت کښې په ژبه ذکر کول چې دزړهٔ حضور ئې ورسره نهٔوی هم بې فائدې څکه نهٔ دی چې حضرت ابوعثمان رحمه الله نه هر کله چې چا د داسې حالت شکایت اوکړو چه مونږه په ژبه ذکر کوؤ خو په زړهٔ کښې مو ددې خوږوالې نهٔ محسوسیږی،، نو وې فرمائیل په دې هم د الله ﷻ شکر اداکړه چې ستا یواندام خوئې په خپل عبادت کښې لګیا کړو [قرطبی] (۱)

**دَ الله ﷻ دذکر فضیلتونه:** دَ الله ﷻ دَذکر فضیلتونه بې شمیره دی دا یو فضیلت ئې هم څه کم نهٔ دې چه څوک الله لره یادوی الله ﷻ هغه لره یادَوی. ابوعثمان نهدی فرمائیلی دی چه زه هغه وخت پیژنم کوم وخت چه مونږ لره الله ﷻ یادَوی چاورته اوئیل چه داتهٔ څنګه معلومولې شې ؟وې فرمائیل: څکه چې د قرآن د وعدې مطابق کله چې یو مؤمن بنده الله ﷻ یادوی نو الله ﷻ هم هغه بنده یادوی. او په دې خبره تول ښه پوهیدلې شی چې کله مونږ د الله ﷻ په ذکر کښې مشغول شو نو الله ﷻ به هم مونږ یادوی.

اودآیت معنی داشوه چه تاسو مالره دَاحکامو په منلو سره یادَوئ نو زهٔ به مو یخښښې اوثواب سره یادوم. حضرت سعیدبن جبیر رحمه الله دَذکر الله تفسیر یواځې په عبادت اوفرمانبردارئ سره کړې دې، چنانچه فرمائي:

[فمن لم يطعه لم يذكره وان كثر صلاته وتسبيحه] چاچه دَ الله ﷻ دَاحکامو تابعداری اُونکړه هغه د الله ﷻ ذکر اونه کړو اګرچه په ظاهره هغه مونځ اوتسبیحات ډیرډیر کوی.

**دذکرالله اصل حقیقت:** قرطبی رحمه الله دَاحکام القرآن د ابن خویز منداذ په حواله یو حدیث هم دَدې مضمون نقل کړې دې چه ترجمه ئې داده :رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه چا دَ الله ﷻ اطاعت اوکړو، یعنی دَهغه دَاحکامو، حرامواو حلالوتابعداری ئې اوکړه هغه الله لره یادکړو، اګر چه دَهغهٔ [نفل] مونځ، روژه وغیره کم وی. اوچاچه دَاحکامِ خداوندی مخالفت اوکړو هغهٔ الله ﷻ لره هیر کړو اګر چه [په ظاهره] دَهغه مونځ ،تسبیحات وغیره زیات وی.

حضرت ذوالنون مصری رحمه الله فرمائیلی دی چه څوک په حقیقی طور الله لره یادوی، هغه دَالله په مقابله کښې تول څیزونه هیروی اودَهغه په بدله کښې الله ﷻ پخپله هغه دَپاره دَتولو څیزونو حفاظت کوی اودَتولو څیزونو بدل هغه ته ورکوی .

اوحضرت معاذ رضی الله عنه فرمائیلی د ی چه دَ الله ﷻ دَعذاب نه بنده لره زیات خلاصوونکې دَذکر الله سره برابر بل څیز نشته. اودَحضرت ابوهریرة رضی الله عنه په روایت په یو حدیث قدسی کښې الله ﷻ فرمائیلی دی چه زهٔ خپل بنده سره یم ترڅوچه هغه مالره یادَوی اوزما په ذکر کښې دَهغه شونډې

(۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ۲/ ۱۷۱

خوځي[1]، دَذکر الله فضیلتونه بې شمیره دي. دَدې مختصر خلاصه احقر په خپله رساله ذکر الله کښې جمع کړې ده.

| يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوا | اسْتَعِيْنُوْا | بِالصَّبْرِ | وَالصَّلٰوةِ ؕ | اِنَّ اللّٰهَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اے هغه کسانو | چې ایمان موراوړې دې | امداداوغواړئ | په صبرسره | اوپه مانځه سره | بیشکه چې الله |
| اني مؤمنانو | [په هره سخته کښې] | | په صبراومونځ سره | [زما نه] مدد حاصل کړئ | بیشکه الله |
| مَعَ الصّٰبِرِيْنَ ۝ | | | | | |
| دصبرکونکو سره دې | | | | | |
| دصبروکونکو ملګرې دې | | | | | |

### آسان ترجمه قرآن

**اې ایمان والو! په صبر او مونځ سره مدد حاصل کړئ، بې شکه الله د صبر کونکو سره دې.**

**د آیتونو ترون:** د کعبې په بدلون باندې د مخالفینو چې کوم اعتراض وو د هغې دوه اثرات وو. یو په مذهب اسلام باندې، چې اعتراض سره د مذهب حقانیت کښې شبه پیدا کیدلې شي. په پورتنو آیتونو کښې ددې اعتراض جواب ورکړې شوې دې او ددې اثر لرې کول مقصود وو. دویم اثر طبائع اهل اسلام باندې دې، چې اعتراض نه خاص کر د جواب ورکولو څخه روستو هم په دې باندې بې ځایه ضد کولو سره زړۀ کښې خفګان او غم پیدا کیږي، دې راتلونکی آیت مبارك کښې د غم د کمیدو طریقه خودلې شوې ده چې هغه صبر او مونځ دې. دې خودلو سره دویم اثر زائل فرمائی

### خلاصه تفسیر

﴿يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا﴾ اني دایمان خاوندانو [د طبیعتونو نه دغم سپکولو په باره کښې] ﴿اسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ ؕ﴾ په صبر او مونځ سره مرسته [اومدد] غواړئی ﴿اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ ۝﴾ بیشکه الله ﷻ [هرقسم] صبرکوونکو سره وی [اومونځ کوونکوسره خوپه درجه اولی وی ځکه چه مونځ دټولو نه لوئې عبادت دې هرکله چه دصبر بدله دغه زیرې دې نودمونځ بدله په طریقه اولی سره هم دغه زیرې دې.].

### معارف اومسائل

**صبراومونځ دهرمشکل حل اودهر تکلیف علاج دې:** قوله تعالیٰ: ﴿اسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ ؕ﴾ دَدې آیت هدایت دادې چه دټولو انسانی ضروریاتو اوحاجتونوپوره کولو، دټولو آفتونو، مصیبتونو او تکلیفونو لرې کولواکسیره او مجربه نُسخه دَدوو جزونو نه جوړه کړې شوې ده چه یوصبراوبل مونځ دې اوټولومصیبتونواوحاجتونودپاره دَدې نُسخې عام کیدواړخ ته قرآن کریم په داشان اشاره کړې ده چه ﴿اسْتَعِيْنُوْا﴾ یې عام پرېښودې دې څه خاص څیزونی نه دې فرمائیلې چه په دې کښې ترمدد حاصل کړئ. دې نه معلومه شوه چه دې دواړوسره انسان په خپل هر ضرورت کښې مدد

[1]) مشکوٰة، کتاب الدعوات، باب ذکر الله عزّوجلّ: ۱/ ۱۹۹، تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة: ۲/ ۱۷۱

حاصلولې شي، په تفسیر مظهري کښې هم داعموم واضح کړې شوې دې اوس دَدې دوه جزه نسخې دواړو جزونو باندې ځان پوهه کړئ.

**دَصبر اصل حقیقت**:: دَصبر اصلي معنی خپل نفس ایسارول [راګرځول] اوپه هغې قابو کول دي، دَ قرآن اوسنت په اصطلاح کښې دَصبر درې ځانګې [ښاخونه] دي، ① خپل ځان دَ حرامو او ناروا ؤ څیزونونه ایسارول، ② داطاعتونواوعبادتونوځان پابند کول. ③ په مصیبتونو او آفتونو داسې صبر کول چه راپیښ مصیبت دَ الله ﷻ دَطرف نه ګڼړې اودَهغې دَثواب امیدلري که دَدې باوجود تکلیف اوپریشاني په څه الفاظوسره ظاهره کړي هم ورته بې صبري نشي وئیلې[ابن کثیرعن سعید بن جبیر][1]

دادرې واړه ځانګې دَصبر په فرائضوکښې داخلې دي هر مسلمان لره دَدري واړو قسمونو صبر، پابند کیدل لازم دي. عوام صرف دریمې ځانګې ته صبر وائ اونورې دوه اصلې اوبنیادي ځانګې دَصبرنۀ ګڼړې، دَقرآن اوحدیث په اصطلاح کښې دَصابرلقب هغه چاته حاصل وي چه درې واړه قسمه صبرپه ټینګه اوکلکه کوي، څنې روایاتوکښې راغلي دي چه په محشر کښې به آواز اوکړې شي چه صابران خلق چرته دي؟دَدې په جواب کښې به هغه خلق راپاسي چه په کلکه ئې درې واړه قسمه صبر کړې وي اوبیحسابه به جنت ته داخل کړې شي. دَدې روایت نقل کولونه پس ابن کثیر رحمه الله فرمائیلي دي چه دَقرآن کریم په آیت ﴿إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّٰبِرُونَ أَجْرَهُم بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾ کښې هم دې ته اشاره کیدې شي

**مونځ**:: دَدې نسخې بل جزء مونځ دې چه ټول انساني ضروریات پوره کوي اوټولو آفتونو او پریشانیؤنه دَخلاصي ورکولو کامیاب علاج دې، دَصبر دَلیکلي شوي تفسیر نه معلومه شوه چه په حقیقت کښې مونځ اونورټول عبادات، هم دَصبر مکمله نمونه ده ،ځکه چه دَمونځ په حالت کښې نفس لره په عبادت اوفرمانبرداري بندولې هم شي اوټولوګناهونو ،مکروهاتوبلکه دَډیرو مباحاتونه هم نفس لره په حالت دَمونځ کښې ایسارولې شي ،په دې شان مونځ دَصبر یوعملي تمثیل په دې شان دې چه په دې سره هر نفس په قابوکښې ساتلوسره دَټولو احکامو منونکې اوټولوګناهونواونافرمانیؤنه ئې بري اوبیزاره جوړونکې دې.

دَدې نه علاوه ټولوانساني حاجتونوپوره کولودَپاره اودَټولوآفتونواومصیبتونونه خلاصي ورکولوکښې مونځ یوخاص تاثیرلري، چه وجه اوسبب ئې معلوم نۀ دې لکه چه څنې داروګان [دوایاني] هم دَیخوالي اوګرموالي په حساب سره څه خاص اثرلري اووجه ئې هیڅ معلومه نۀ وي اوداشان دَیوخاص مرض دَلرې کولودَپاره څنې داروګان [دوایانو]بالخاصه تاثیرنه لري لکه دَګردې درددَپاره فرنګی دانه چه په لاس یاخُله کښې اونیولې شي اومثلاً دَډیرومرضونودَپاره عودصلیب وغیره په غاړه کښې اچول چه مؤثربالخاصه دي اوهیڅ سبب ئې معلوم نه دې، یالکه مقناطیس چه خاص اوسپنه ځان ته راکاږي اوسبب ئې چه معلوم نۀ دې، چنانچه په دې شان مونځ هم مُوثربالخاصه دې چه ټول ضروریات انساني پر حل کیږي اوټولومصیبتونواوآفتونونه پر نجات اوخلاصي حاصلیږي، خوشرط دادې چه مونځ دَدې دَشان مطابق آدابو، خشوع ،خضوع سره اداکړې شي ،زمونږ کوم مونځونه چه دااثر نۀ لري نوپوهه شه چه دازمونږ نقصان دې. دَدې په

[1]) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ۱/ ۲۵۲

آدابو، شرائطو، خشوع اوخضوع کښې به ئې رانه قصور اوکوتاهي شوې وي کنې دَرسول الله ﷺ عادت شریفه ؤو چه څه مشکل به راپیښ شونو مونځ ته به ئې مخه کړه اودَهغې په برکت به ئې الله ﷻ تولَ مشکلات حل کول چنانچه حدیث شریف کښې راځي. ﴿اذاحزبه امرفزع الی الصلوة﴾(۱)رسول الله ﷺ ته به چه کلِه څه ضرورت پیښ شونو مونځ ته به ئې مخه کوله ،،

**صبراومونځ څکه دتولومشکلاتواومصیبتونونه دخلاصي سبب دې چه صبر سره دَ الله ﷻ نزدیکت حاصلیږي**:: ﴿اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصّٰبِرِیْنَ﴾دې کلمه کښې دارازاوښودلې شو چه صبر سره څنګه مشکلات حل کیږي اودَمصیبتونودفع کولوسبب څنګه جوړیږي ؟دې ارشادمبارک راته اوښودل چه دَصبرپه نتیجه کښې بنده ته دَ الله ﷻ ملګرتیاحاصلیږي اوداظاهره خبره ده چه چاسره دَرب العزت طاقت وي دَهغه کوم یوکاربه بندې شي؟ اوکوم یومصیبت ئې بې وسه کولې شي؟

وَلَا تَقُوْلُوْا　لِمَنْ　یُّقْتَلُ　فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ　اَمْوَاتٌ

| او مۀ وایئ تاسو | هغه چاته | چې قتل کړې شي | په لار دالله کښې | مړه

|اوڅوک چې دهغه الله په لار کښې شهید کړې شو| نوهغوئ ته مړه مه وائې

بَلْ اَحْیَآءٌ　وَّلٰكِنْ لَّا تَشْعُرُوْنَ۝　وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ　بِشَیْءٍ　مِّنَ الْخَوْفِ

بلکه ژوندي دي| لیکن نۀ پو هیږئ تاسو| اوخامخا مونږ آزمایوتاسو| په څه اندازه | دویرې نه

هغوئ [په حقیقت کښې] ژوندي دي| خوتاسو پرې نه پوهیږئ |اومونږبه په هرقسم ویرې سره

وَالْجُوْعِ　وَنَقْصٍ　مِّنَ الْاَمْوَالِ　وَالْاَنْفُسِ　وَالثَّمَرٰتِ　وَبَشِّرِ الصّٰبِرِیْنَ۝

او دلوږې نه|او دکموالي | د مالونونه | اودنفسونو نه | او دمیوونه | او زیرې ورکړه صبر کونکوته

اولوږې سره اومالي اوجاني نقصان سره اودمیوو په کمي سره ستاسو امتحان اخلو| او صبر کونکو ته زیرې ورکړه

اَلَّذِیْنَ　اِذَآ　اَصَابَتْهُمْ مُّصِیْبَةٌ　قَالُوْٓا　اِنَّا　لِلّٰهِ

هغه صبر کونکي | چې کله | اورسیږي هغوئ ته مصیبت| نو وائي |چې بیشکه مونږ| الله لره یو

داهغه کسان دي چې مصیبت پرې راشي نو [د ژړا فریادپه ځاني] وائي چې مونږ دالله ملکیت یو

وَاِنَّآ　اِلَیْهِ　رٰجِعُوْنَ۝　اُولٰٓئِكَ　عَلَیْهِمْ　صَلَوٰتٌ　مِّنْ

اومونږ | هغه ته | واپس ورتلونکي یو| دا کسان چې دي| په دوئ باندې به| مهربانیانې وي | دطرفه د

اومونږ به هغه ته واپس کیږو| په دغې کسانو باندې [چه په دې صفت موصوف وي] د خپل رب د طرفه

رَّبِّهِمْ　وَرَحْمَةٌ　وَاُولٰٓئِكَ　هُمُ الْمُهْتَدُوْنَ۝

رب ددوئ نه | او رحمت به وي | او هم دغسې خلق| دي په نیغه لار |

مهربانیانې اورحمت وریږي| اوهم داکسان دي چه سمه لار ئې بیاموندې ده|

(۱) فتح الباری، کتاب العلم، باب العلم والعظة باللیل: ۱/ ۱۸۴، وسنن ابی داؤد، کتاب الصلاة، باب وقت قیام النبی صلی الله علیه وسلم: ۱/ ۱۸۶

## آسان ترجمه قرآن

او کوم خلق چه دالله په لاره کښې قتل شی هغوی ته مړه مه وایئ، په اصل کښې هغوی ژوندی دی خو تاسوته (دهغوی د ژوند) احساس نه کیږی اوګورئ مونږ به تاسو آزمایو خامخا.(کله) په ویرې سره او (کله) په لوږې سره او(کله) په مال اوځان سره اوپه میوو کښې کمی کولو سره او کوم خلق چه (په داسې حالاتو کښې) د صبرنه کار واخلی هغوی ته خوشخبری واوروه دا هغه خلق دی چه کله دوی ته څه مصیبت اورسیږی نو دوی وائی چه: مونږ ټول د الله یو، او مونږ له الله طرف ته واپس تلل دی داهغه خلق دی چه په دوی باندې ددوی د پروردګار دطرفه خصوصی انعامات دی او رحمتونه دی اوهم داخلق دی چه په هدایت دی.

## خلاصه تفسیر

**د آیتونو ربط:** دې پورته آیت مبارك کښې خاص واقعه کښې د صبر تعلیم او د صبر کوؤنکو فضیلت بیان کړې شوې وو دې راتلونکی آیتونو کښې د نورو ځینې واقعات خلاف طبع تفصیل او په هغې کښې د صبر ترغیب او فضیلت بیان فرمائی. چې په هغې کښې کافرانو سره قتل او قتال مضمون وړاندې کړې شوې دې. د دې دوه وجوهات دی. یو د اعظم کیدو په وجه.چې په دې اعظم باندې صبر کوؤنکی به په اصغر باندې خامخا صبر کوی. دویم خاص طور سره د مناسب مقام په وجه ځکه چې ذکر شوؤ معترضینو سره دا معامله راپیښه شوې ده.

﴿وَلَا تَقُولُوا لِمَن يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتٌ﴾او کوم خلق چه دالله ﷻ په لار کښې [یعنی دین دپاره] قتل شی ددې [داسې بهتروالئ دې چې ددوی] په باره کښې داسې هم مه وائی چه دوی [د معمولی مړوپشان] مړی دی ﴿بَلْ أَحْيَاءٌ وَلَٰكِن لَّا تَشْعُرُونَ﴾بلکه دغه خلق [په یوامتیازی ژوند سره] ژوندی دی خوتاسو په [خپلو موجودو] حواسو سره [ددې ژوند] پوهه نشئ کولئ او [ګورئ] ﴿وَلَنَبْلُوَنَّكُم بِشَيْءٍ مِّنَ الْخَوْفِ﴾ مونږ به [درضا او تسلیم په صفت کښې چه مقتضا د ایمان ده] ضرور ستاسو امتحان اخلو په څه قدرې ویرې سره [چه دمخالفینو د ګڼړوالی یا د پیښو اوسختو راتللو په وجه وی] ﴿وَالْجُوعِ﴾ او [څه قدرې په خوارئی غریبئ او] لوږې سره ﴿وَنَقْصٍ مِّنَ الْأَمْوَالِ وَالْأَنفُسِ وَالثَّمَرَاتِ﴾ او [څه قدرې ]دځان اومال او دمیوؤ په کموالی سره [لکه د څاروؤ یا دانسانانو په مړه کیدو یا رنځوریدو سره یا دمیوؤ اونورو فصلونو په تباه کیدو سره نو تاسو صبرکوئی] او [څوك چه په دې امتحان کښې پور اوخیژی اومستقل پاتې شی نو] ﴿وَبَشِّرِ الصَّابِرِينَ﴾ تاسو داسې صبرکوونکو ته زیرې ورکړئی. [دچا چه دا عادت دې] ﴿الَّذِينَ إِذَا أَصَابَتْهُم مُّصِيبَةٌ﴾ چه په دوی کله څه مصیبت راشی نو دوی [دزړه نه په دې پوهه شی ﴿قَالُوا إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ﴾ او داسې] وائی چه مونږ خو [سره دمال اولاد په حقیقت کښې] صرف دالله ﷻ ملك یو [اوحقیقی مالك ته په خپل ملك کښې دهرشان تصرف کولو اختیار حاصل دے په دې به مملوك ولې تنګیږی] اومونږ ټول [دنیاوالا] دالله ﷻ خواته تلوونکی یو [نو ددې ځائې دنقصان بدله به راته هلته راکړې شی اودوی ته دزیری آورولو مضمون دادې چه] ﴿أُولَٰئِكَ عَلَيْهِمْ صَلَوَاتٌ مِّن رَّبِّهِمْ وَرَحْمَةٌ﴾ په دې خلقو به [بیل بیل] خاص خاص رحمتونه هم ددوی دپروردګار دطرفه وی [او په ټولو به

په شریکه] عام رحمت هم وي ﴿وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُهْتَدُونَ﴾اوهم داخلق دي چه [د حقیقت حال ته] رسیدلي وي [چه الله ﷻ دهرڅیز مالك اود زیات نقصان ورکونکې کنړي].

## معارف اومسائل

**دشهیدانواوانبیاؤبرزخي ژوندانوپه درجوکښي ئې دهوبل نه لوروالي** قوله تعالیٰ: ﴿وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتٌ﴾داخوټولوته معلومه ده چه داسلامي روایاتوله مخه هرمړي ته په برزخ کښي یوخاص قسم ژوندحاصل وي،چه په هغې کښې دقبرعذاب یاثواب محسوسوي په دغه قسم ژوند کښې دمؤمن اوکافراودصالح اودفاسق ترمنځه هیڅ فرق نشته خودرجې ئې مختلفې دي یودرجه خوټولوله عامه اوشامله ده اوځه مخصوص درجې انبیاؤاوصالحانولره مخصوص دي خوبیاهم دبهترۍ اوکموالي فرق شته ،په دې مسئله دعلماؤمقالې اوتحقیقات بې شمیره دي چه په دې کښې دټولونه زیات نږدې قرآن اوسنت ته اودشبهاتونه پاکه خبره هغه ده چه سیدي حکیم الامت تهانوی په بیان القرآن کښې په داکه بیان کړې ده چه دلته هم دهغې رانقل کول راته کافي ښکاري.

**فائده:** د الله ﷻ په لار کښې وژلی شوی ته شهیدوئیلې شي اودهٔ په باره کښې داوئیل اګر چه روادی چه دې مړشوې دې خومرګ ئې دنوروعامومړوپشان ګنړل منع کړې شوی دی،وجه ئې داده چه مړګ نه پس اګرچه برزخي ژوند دهر مړي روح ته حاصل دې چه ورسره سزا او جزا محسوسوي خودشهیددغه ژونددنورومړونه یوبیل حیثیت لري چنانچه دنورومړونه په نخښونښانو کښې ددهٔ دغه برزخي ژوندقوي وي،ددې مثال داسې اوګنړئ لکه دپښو دګوتو مخکښني بندونه اوپوندونه ئې چه دواړوکښې دازیاتې وي،غرض داچه دشهیدبرزخي ژوند دنوروپه نسبت دومره زیات قوي وي چه اثر ئې په ظاهري بدن هم ښکاره وي چنانچه بدن باندئې خاوره اثرنهٔ کوې اودژوندی بدن پشان روغ رمټ وي لکه چه احادیثوکښې راغلي دي اوپه عامه توګه لیدلې شوي هم دي اوهم په دې وجه شهیدان ژوندي اوبللې شواودوئ لره دنوروعامومړوپشان ګنړلونه منع راغلي خوپه ظاهري احکاموکښې شهیدان دعامومړوپشان دی میراث ئې تقسیمیږي ددوئ بیبیانې نوروته په نکاح کیدې شي اوهم په دې قسم ژوند کښې حضرت انبیاء ﷺ دشهیدانونه هم زیات امتیاز او قوت لري تردې چه دبدن دسلامتۍ نه علاوه ددې ځه اثرات ،په ظاهري احکاموهم پریوځي مثلاً میراث ئې نهٔ تقسیمیږي اوددوئ بیبیانې دنوروأمتیانوپه نکاح کښې نشي راتلې.

**دبرزخي ژوند مراتب** نوپه دې ژوند کښې انبیاء ﷺ دټولونه زیات قوي دي،وریسې شهیدان او وریسې نور عام مړي البته دځنو احادیثونه معلومیږي چه بعضې اولیاء اونیکان خلق هم په دې فضیلت کښې شهیدانوسره شریک دي نودنفس په مجاهده کښې مړه کیدونکې به هم معنی شهیدان ګنړلې شي په دې اعتبارداوئیلې شي چه په آیت کښې دشهیدانوتخصیص دعامو خلقو په اعتبارسره کړې شوې دې دشهیدانودهم رتبه د صالحانواوصدیقانوپه نسبت سره نهٔ دې کړې شوې.

که څوک شهید داسې اوموندې شوچه بدن ئې خاوروخوړلې وي نوداګنړئ چه دده نیت به خالص نهٔ ؤوبه کوم چه دشهیدګئ اړه لري یواځې قتل کیدل شهیدګي نهٔ ده ،اوکه بالفرض داسې شهیداوموندې شي چه دالله په لارکښې دهغه وژلې کیدل اودهغه دشهیدګئ ټول شرطونه په دلیل قطعي ،لکه تواترٌوغیره سره ثابت وي [چه صاحب دروح المعاني ته ئې هم شُبه راولاړه شویده]نودې په جواب کښې به داوئیلې شي چه په حدیث شریف کښې داخبره ښکاره بیان کړې شوې ده چه دانبیاء اوشهیدانوجسم لره زمکه [یعنی خاوره ئې]نهٔ خوري خوهرکله چه په زمکه

کښې دَخاوری نه علاوه نورقسم ډیرڅه څیزونه موجوددی کیدې شی چه دَخاورې نه علاوه دَزمکې بله څه جزدَدَهٔ جسم خراب کړې وی نودادَدې آیت سره بې سمونه نهٔ دې.
هرکله چه دَانبیاء ﷺ جُوثې مبارکې په دَنیوی ژوند کښې دَمرکبو جسمونومثلاً وسلې ،داروګانو، طعامونو، اخلاطواواجسام بسیطۇ لکه اوبواوهواتاثیر دَانبیاؤ ﷺ په جوثوکښې هم ثابت دې اودَشهیدانوحیات برزخی دَانبیاؤ ﷺ دَدنیاوی ژوندنه هیچرې قوی کیدې نشی اوکله دَزمکې په اجزاؤکښې څنې نورې بهرنئ برخې شاملې شی چه دَزمکې نه نهٔ وی،لکه په نوروعناصروکښې چه مختلف نورعنصرونه هم شامل شی لهذاکه دَدوئ [دَشهیدانو]دَبدن خرابیدل دَزمکې دَاجزاؤ نه بغیر دَنورواجزاؤپه وجې سره وی نوپه دغې احادیثوکښې دَدې نه څه اشکال نهٔ واردیږی په کوموکښې چه زمکه باندې دَجوثوحرامیدل راغلی دی.
اویوجواب داهُم کیدې شی چه په دې باره کښې داخبره هم کافی کیدې شی چه دَنورو مړو څخه په زیاته موده کښې دَشهیدانوجوثې دَخاورونه متاثره کیږی په خلاف دَعامو مړونه چه هغوئ ترزرمتاثره کیږی په دې بنابه دَحدیث دوه مطلبه راخیژی یوداچه دَشهیدانوجُوثې به بیخی دَزمکې نه نهٔ متاثره کیږی اوبَل داچه ډیره موده پس به متاثره کیږی چنانچه دادواړه خلاف عادت دی اوهرکله چه عالَم برزخ په حواسو، یعنی سترګو، غوږونو، پوزې، لاس وغیره سره نشی محسوس کیدې څکه ﴿لَا تَشۡعُرُوۡنَ﴾ اوفرمائیلې شوچه تاسودَدې په حقیقت نشئ پوهیدلې.

**دَمصیبتونودصبرآسانولوخاص تدبیر:** دَ الله ﷻ له اړخه په بندګانودَامتحان کیدوحقیقت ﴿وَاِذِ ابۡتَلٰۤی اِبۡرٰهٖمَ رَبُّهٗ﴾ په تفسیرکښې بیان کړې شوې دې اودَپیښوددَراتلونه وړاندې دَدې په خبر ورکولو کښې دافائده وی چې صبرآسانه شی ورنه دَناڅاپې مصیبت په راتلوپریشانی زیاته وی او دا خطاب ټول اُمت ته دې نوټول دپوهه شی چې دنیادَمحنتونواومصیبتونو کوردې نوځکه دَدې څائې پیښې عجیبه اولرې نشیَ ګڼرلې نوبې صبری به نهٔ وی اوهرکله چې داخلق دَصبر په نَفس عمل کښې ټول شریک دی نو ځکه دَدې شریک بدل،عام رحمت دې چې نفس په صبر ئې وعده کړې شوې ده اوهرکله چې دَهرصبرکوُنکی دَصبر، اندازه ،شان اوخصوصیت بیل بیل دی نودې خصوصیاتوبدله به بیله بیله په خاصوپیرزونوسره وی چې ددې خاصوخصوصیاتوپه بنائې وعده کړې شوې ده،لکه په دنیاکښې دَانعامونوویشلوپه موقعه خودَخوراک بلنه عامه وی بیا روپئ، وغیره هر چاته دَخپل خپل حیثیت اوخدمت په جوړورکولې شی(۱).

**دَمصیبت په وخت سره دپوهې اِنالله وئیل دزړهٔ دتسلئ بهترین علاج دې:** دَصابرانوددې کارپه ګُته کولونه، چه دوئ دَمصیبت په وخت، ﴿اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّاۤ اِلَیۡهِ رٰجِعُوۡنَ﴾ وائ، دابنودل مقصوددی چې هرمصیبت زپلې دې داسې وائ ځکه چې ثواب ئې هم ډیردې اوکه دَزړهٔ دَپوهې سره داوئیلې شی نودَغم رنځ لرې کولو اوزړهٔ ته دَتسلئ ورکولو معامله کښې هم دَاکسیراوتریاق حُکم لری.

| اِنَّ الصَّفَا وَالۡمَرۡوَةَ مِنۡ |
|---|
| بیشکه صفا \| او \| مروه \| د |
| بیشکه صفا اومروه |

---

(۱) تفسیر بیان القرآن تحت هذه الآیة: ۱/ ۹۸

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شَعَآئِرِ اللّٰهِ ۚ | فَمَنْ | حَجَّ | الْبَيْتَ | اَوِ اعْتَمَرَ | فَلَا جُنَاحَ | عَلَيْهِ |
| نښو د الله نه دی \| | نوڅوک چې \| | حج اوکړی \| | دبيت الله \| | يا عمره اوکړی \| | نونشته ګناه \| | په هغه باندې \| |

دالله[ددين] په نښو کښې شامل دی | نوڅوک چې دبيت الله[کعبې]حج ياعمره کوی | نوپه دې کښې هيڅ حرج نشته

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَنْ يَّطَّوَّفَ | بِهِمَا ؕ | وَمَنْ تَطَوَّعَ | خَيْرًا ۙ | فَاِنَّ اللّٰهَ |
| چې سعی اوکړی \|په مينځ ددواړو کښې \| | | اوهغه څوک چې په خپله رضا اوکړی \| | څه نيکی \| | نو بيشکه الله |

چې ددې دواړو خايونو مينځ کښې سعی [اوځله تګ راتګ] | اوکړی اوهرڅوک چې دفرضو نه زياتی نيکی اوکړی | نوالله

| | |
|---|---|
| شَاكِرٌ | عَلِيْمٌ ۝ |
| قدردان دی \| | او ښه پوهه دی \| |

دهغې قدرکوی [خامخا به د هغې ثواب ورکوی] هغه په هرڅۀ پوهه دې

## آسان ترجمه قرآن

**بيشکه صفا او مروه د الله تعالیٰ د نښوځنې دی لهٰذا چه څوك هم دبيتُ الله حج کوی يا عمره کوی نو هغه دپاره په دې خبره کښې هيڅ ګناه نشته چه هغه ددې په مينځ کښې چکر اولګوی اوڅوك چه په خوشحالئ سره څه نيکی اوکړی نو الله يقيناً قدردان (او) پوهه دې.**

**د آيتونو ترون:** دې مخکښنو آيتونو کښې ﴿وَاِذِ ابْتَلٰٓى اِبْرٰهٖمَ﴾ څخه د خانه کعبې تفصيلی ذکر شوې دې. هغې کښې اول کښې د خانه کعبې د عبادت بيان وو. ددې څخه مخکښې د ابراهيم ﷺ د دعا ذکر وو. ابراهيم ﷺ دا خواست کړې وو چې مونږ ته احکام مناسك اوښايه ، او مناسك په حج او عمره کښې داخل دی. نو د بيت الله شريف معبد کيدل لکه څنګه دا د مونږ دپاره قبله جوړه کړې شوې ده ، دې کښې د حج او عمره کښې بيت الله شريف لره مقصد جوړول او ددې اهميت واضح کړې شوې دې.

اوس دې راتلونکو آيتونو کښې د حج او د عمرې د مقصد يو مضمون بيان کړې شوې دې. هغه دا چې مکه مکرمه کښې صفا او مروه دوه غونډئ دی. حج او عمره کښې چې کله طواف څخه بنده فارغ شی نو ددې مينځ کښې منډې وهی چې هغې ته سعی وئيلې شی. دا سعی به د جهاليت په زمانه کښې هم کيدۀ او په هغه وخت کښې صفا مروه باندې بتان ايخودلې شوی وو. په دې وجه ځينې مسلمانان شك کښې پريوتل چې دا خوکنې دجاهليت د زمانې رسومات دی. او دا ګناه ده. او ځينې خلقو به د جاهليت په زمانه کښې هم دا ګناه ګڼړله. هغوئ په دې شك کښې شو چې کيدېشی اسلام کښې به هم دا ګناه وی. الله ﷻ غوښتل چې دا شبه ختمه کړی. نو دې مخکښنی مضمون کښې د کافرانو دا اعتراض لرې کول مقصود دی چې کعبه ګنی قبلۀ د مونږ وه. او راتلونکی مضمون کښې کعبې لره مقصد حج او عمره ګرزول دی او په صفا او مروه باندې پخپله د مسلمانانو شك لرې کول مقصود دی. او هم په دې وجه د دواړو مضامينو مينځ کښې ربط دې.

## خلاصه تفسير

[د صفا مروه په سعی کښې هيڅ شبه مه کوئی ځکه چه] ﴿اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ﴾ تحقيقًا صفامروه [او

ددې تر مينځه سعی کول ﴿مِنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ ۚ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ﴾ ددين] دالله ﷻ نه يادګارونه دی نوچه ځوك حج دبيت الله شريف ﴿اَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ﴾ يا [ددې] عمره کوی په هغه هيڅ ګناه نشته دې [لکه تاسو ته يې شبه شوې وه] ﴿اَنْ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا ؕ﴾ چه ددې دواړو ترمنيځه ګردش اوکړی [د سعی معلومې طريقې مطابق] په تلو راتلو کښې [چه دسعی په نوم يادېږی اوګناه څه چه ثوابېږ کيږی ځکه چه دا سعی خو دشريعت له مخه دخير کاردې] ﴿وَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا ۙ فَاِنَّ اللّٰهَ شَاكِرٌ عَلِيْمٌ﴾ او [زمونږ په نزد ضابطه ده چه] ځوك په خوشحالئ دخير کارکوی نوالله ﷻ [دهغه لويه] قدرداني کوی [اوددغه نيکو کارونيت اوخلوص] ښه پيژنی [نوددې ضابطې په بناءبه سعی کوونکوته دهغوی د اخلاص په انداز ثواب ورکولې شی].

## معارف اومسائل

**دځنې لغتونوتحقيق:** **قوله تعالىٰ:** ﴿شَعَآئِرِ اللّٰهِ ۚ﴾ شعائرجمع دشعيرة ده چې معنی ئې علامه اونخښه ده دلته شعائرالله نه هغه اعمال مراددی چې الله ﷻ ددين نخښې نښانې ګرځولې دی، دحج لفظی معنی قصد کول دی اودقرآن اوسنت په اصطلاح کښې خاص کردخانه کعبې قصدکولواوهلته افعال مخصوصه اداکولوته حج وئيلې شی. دعمرې لفظی معنی زيارت کول دی اودشريعت په اصطلاح کښې مسجدِحرام کښې حاضری کولو، طواف دخانه کعبې اوسعی [دصفامروه] کولوته وئيلې شی.

**دصفا اومروه ترمنځه سعی واجب ده:** دحج، عمرې اوسعی طريقه دفقهې په کتابونوکښې ذکرشوې ده اوداسعی دامام احمد رحمه الله په نزدسنت مستحبه ده اودامام مالک اوامام شافعی په نزدفرض ده، دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدواجب ده چې په پريښودوئې يوچيلې حلالول راځی.

په دې آيت کښې دصفا اومروه ترمنځه دسعی کولوپه باره کښې صرف دومره مذکوردی چې ددې کول دګناه کارنۀ دې، دې نه زيات دااثابتيدې شی چې سعی کول يومباح کارشونوواجبيدل ئې [دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد] په څه بناشو؟جواب ئې دادې چې هرکله په صفامروه باندې بتان پراته ووددجاهليت خلقوبه دهغوئ دعبادت اوتعظيم په خاطردغلته سعی کوله نوسوال داپيداکيدوچه ددې حراميدل پکارؤو، جواب کښې ئې اوفرمائيل چې ددې په کولوکښې هيڅ ګناه ځکه نشته چې داپه اصل کښې سنت ابراهيمی اداکول دی ځوک چې دغلته دګناه جاهلانه عمل اوکړی دهغې په وجه دغه سنت ابراهيمی دګناه کارنۀ ګرځی نوپه داسې فرمائيلوسره ئې دامطلب نۀ راوځی چې ګنی داواجب پاتې نۀ شو.

| اَنْزَلْنَا | مَآ | يَكْتُمُوْنَ | الَّذِيْنَ | اِنَّ |
|---|---|---|---|---|
| چې نازل کړی دی مونږ | هغه | چې پټوی | هغه کسان | بيشکه |
| ځوک چې زمونږ نازل کړی | هغه په هڅه پوهه دي | | | |

| لِلنَّاسِ | بَيَّنّٰهُ | مَا | مِنْۢ بَعْدِ | وَالْهُدٰى | مِنَ الْبَيِّنٰتِ |
|---|---|---|---|---|---|
| خلقو ته | چې بيان کړی دی مونږ | دهغې نه | روستو | او هدايت نه | دواضحه حکمونو |
| دپاره | اخروی او دنيوی فائدې | د دې نه پس چې مونږ دخلقو د | | | ښکاره آيتونه اوهدايت عمل پټوی |

فِي الْكِتٰبِ ۙ أُولٰٓئِكَ يَلْعَنُهُمُ اللّٰهُ وَيَلْعَنُهُمُ

په کتاب کښې | دغه کسان چې دی | لعنت وائی په هغوئ باندې | الله | او لعنت وائی په هغوئ باندې

پخپل کتاب کښې په ښه شان سره واضح کړې دي انو په هغوئ باندې د الله لعنت وریږی | اولعنت ویونکی

اللّٰعِنُوْنَ ۙ إِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا وَأَصْلَحُوْا وَبَيَّنُوْا

لعنت ویونکی | مګر هغه کسان | چې توبه ئې اوویستله | او د عمل اصلاح ئې اوکړه | اوبیان ئې کړو حق

پرې لعنت وائی | خوځوک چې توبه اوباسی اوخپل عمل صحیح کړی اوکوم تعلیم چې مونږ ورکړې دې هغه بیان کړی

فَأُولٰٓئِكَ أَتُوْبُ عَلَيْهِمْ ۚ وَأَنَا التَّوَّابُ

نو دغه کسان چې دی | زۀ به رجوع اوکړم په رحمت سره | په هغوئ باندې | او زۀ ډیر معاف کونکې

نوزه به د دغه کسانو توبه قبوله کړم | ځکه چه ټول زما بندګان دی زما چا سره ضد نشته | اوزه توبه قبلونکې

الرَّحِيْمُ ۝ إِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَمَاتُوْا وَهُمْ

رحم کونکې یم | بیشکه | هغه کسان | چې د کفرعمل ئې اختیار کړو | اومړه شول | حال دا چې وو هغوئ

مهربان یم | [ولې] چاچې کفر اوکړو اوهم د کفر په حالت کښې مړه شول..........

كُفَّارٌ أُولٰٓئِكَ عَلَيْهِمْ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِيْنَ ۙ ۝

کافران | دغه کسان چې دی | دې په هغوئ باندې | لعنت د الله | اود فرښتو | او د خلقو ټولو

په هغوئ باندې د الله پاک اود فرښتو او ټولو بنی آدمو لعنتونه ونیلی شی [ځکه چه د ایمان د دولت نه محرومه شول]

خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۚ لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ ۝

همیشه به وی | په دې لعنت کښې | سپک به نه کړئ شی | د هغوئ نه | عذاب | اونۀ به هغوئ ته مهلت ورکړې شی

همیشه به په لعنت کښې وی | نه به د دوئ په عذاب کښې څۀ سپکوالې کیږی اونه به ورته مهلت ورکولې شی

## آسان ترجمه قرآن

بیشکه هغه خلق چه هغوی زما نازل کړې شوی روښانه دلیلونه او هدایت پټوی، سره ددې چه مونږ دغه په کتاب کښې خلقو دپاره ښکاره بیان کړی دی نوپه داسې خلقو باندې الله هم لعنت لیږی او نور لعنت کونکی پرې هم لعنت لیږی البته هغه خلق چه هغوی توبه ویستلې وی او خپله اصلاح ئې کړې وی او (پټې کړې خبرې ئې) ښکاره بیان کړې وی نو زه د داسې خلقو توبه قبلوم. او زه توبه قبلونکې یم، ډیر رحمت والا یم بیشکه هغه خلق چه هغوی کفر اختیار کړواو د کافر کیدو په حالت کښې مړه شول، په هغوی باندې د الله او د فرشتو او د ټولو انسانانو لعنت دې. هغوی به همیشه په دې عذاب کښې وی، نه به ددوی نه عذاب سپکولې شي، اونه به دوی ته مهلت ورکولې شي.

## خلاصه تفسیر

**د آیتونو ترون:** پورته د قبلې په بحث کښې د صاحب قبله د نبوت باره کښې د اهل کتابو حق پټولو مضمون ذکر شوې وو. دې آیت مبارك کښې ﴿اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْرِفُوْنَهٗ﴾ تر ﴿لَيَكْتُمُوْنَ الْحَقَّ﴾ پورې ، مخکښې ددې مضمون د پوره کیدو دپاره د حق پټوونکو او د حق په پټولو باندې د

اصرار کوؤنکو دپاره وعید دې او توبې کوؤنکو دپاره د معافئي وعده کړې شوې ده . فرمائي چې ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَآ أَنزَلْنَا﴾ څوك چه پټول كوى دهغه مضامينو چه موږ نازل كړى دى ﴿مِنَ الْبَيِّنَٰتِ﴾ چه [دخپل ذات د مخې] واضحه دى ﴿وَالْهُدَىٰ﴾ او [نورو دپاره]لارخودونكى دى [او پټول هم] ﴿مِنۢ بَعْدِ مَا بَيَّنَّٰهُ لِلنَّاسِ فِي الْكِتَٰبِ﴾ دهغې [حالت] نه بعد چه موږدا [مضامين] په کتاب [د الله ﷻ او تورات اوانجيل] كښې [نازل كړى] عامو خلقو ته مو ښكاره كړى دى ﴿أُولَٰٓئِكَ يَلْعَنُهُمُ اللَّهُ وَيَلْعَنُهُمُ اللَّٰعِنُونَ﴾ په داسې خلقو الله ﷻ لعنت كوى [چه دخپل خاص رحمت نه يئ لرې ساتى] او [نورګنړ] لعنت كوونكى هم [څوك چه ددې كارنه نفرت كوى] په دوى لعنت كوى [چه دوى ته ښيرې كوى او] ﴿إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا وَأَصْلَحُوا وَبَيَّنُوا﴾ مګر كوم خلق چه [ددې پټوونكو نه دخپل دغې حركت نه] توبه [يعنى دالله ﷻ په مخكښې په تيرشوو عذر اِاوكړى [او څه چه ددوى دخپل عمل په‌وجې سره نقصان شوې وى په راتلونكې زمانه كښې دهغې] اصلاح اوكړى [اوددغې اصلاح طريقه داده چه دغه پټ كړى مضامين په عامه توګه] ښكاره كړى [چه ټول پرې خبر شى او په دوى دخلقو دګمراهئى كولو بوج نشى اودشريعت مطابق داسې ښكاره كول معتبر دى چه اسلام قبول كړى ځكه چه داسلام نه راوړلو په‌وجې سره به دنبوت محمديه په باره كښې په عوامو هم حق پټ پاتې شى .هغوى به دا اوګڼړى چه كه نبوت حق وے نوبه كتاب پوهيدونكو دے خلقو به ايمان ولے نه راوړلو.خلاصه دا شوه چه داخلق مسلمانان شى] ﴿فَأُولَٰٓئِكَ أَتُوبُ عَلَيْهِمْ ۚ وَأَنَا التَّوَّابُ الرَّحِيمُ﴾ نوبه داسې خلقو [ددوى په حال] زه [په مهربانئى سره] مخه كوم [اوغلطى يئ معاف كوم]اوزما خوزيات عادت دى توبه قبلول اومهربانى كول [خو توبه كوونكې پكار دې].

﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ﴾البته كوم خلق [چه ددوى نه] اسلام راونړى اوهم په دغه بےاسلامه حالت كښې مړه شى ﴿أُولَٰٓئِكَ عَلَيْهِمْ لَعْنَةُ اللَّهِ وَالْمَلَٰٓئِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ﴾په دې سے خلقو [هغه ذكر شوے] لعنت دالله ﷻ او دفرښتو او دانسانانو دټولو [په داشان وريږى چه] ﴿خَٰلِدِينَ فِيهَا﴾دوى به تل ترتله پدغې [لعنت] كښې پاتې كيږى [حاصل دا چه هغوى به تل دپاره په جهنم كښې اوسيږى. اوداشان خلق به دالله ﷻ درحمت نه هم لرے وى او هميشه لعنتى پاتې كيدل هم دغه دى چه سره دې به دا هم وى چه د داخليدو نه پس به هيڅ وخت] ﴿لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ﴾ د دوى نه به [دجهنم] عذاب سپكيږى [هم نه] ﴿وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ﴾ اونه به [د داخليدو نه مخكښې ] ورته [څه وخته پورې] مهلت وركولې شى [ځكه چه وخت هله وركولې شى چه مقدمه كښې څه ګنجائش وى او د څه ګنجائش نيشتوالى په‌وجې سره په ړومبئ پيشئ كښې دسزا حكم پرې كولې شى].

## معارف اومسائل

**دعلم دين ښكاره كول اوخورول واجب اوپټول ئې سخت حرام دى** قوله تعالىٰ: ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَآ أَنزَلْنَا﴾ په تيرشوى آيت كښې اِرشاددې چې دَ الله ﷻ له اړخه دَنازل شوؤو اضحو هداياتو، دَ خلقو نه پټول دومره لوئې جرم دې چې الله ﷻ پرې هم لعنت كوى،ټول مخلوق پرِ لعنت ليږى، دې نه څواحكام حاصل شو.

① د كوم علم دَښكاره كولواوخورولوچه ضرورت دې د هغې پټول حرام دى لكه رسول الله ﷺ فرمائيلى دى:

﴿من سئل عن علم يعلمه فكتمه الجمه الله يوم القيامة بلجام من النار [رواه ابوهريرة رضي الله عنه وعمرو بن العاص رضي الله عنه اخرجه ابن ماجه از قرطبی]﴾([1]) څوک چې د دین د څه حکم علم لري او د چا په تپوس کولوئې پټ اوساتي نو د قیامت په ورځ به ئې خُله کښې د اور واګې اچولې شي.

فقهاؤ فرمائیلی دی چې دا د رکه [غصه] په هغه صورت کښې ده چې هلته دده نه بغیر بل څوک د مسئلې بیانونکې نهٔ وی او که بل څوک هلته موجود وی نو د دې وینا ګنجائش شته چې اووائې: د بل چا عالم نه تپوس او کړئ [قرطبی، جصاص]

② دوئیمه خبره تر دا معلومه شوه چې څوک پخپله صحیح علم نهٔ لري نو هغوئ لره دا نه دی پکار چه د مسائلو او احکامو بیانولو جرات کوی.

③ درئیمه مسئله ترې دا معلومه شوه چې د علم د پټولو د اسختنه درکه د هغه علومو او مسئلو په باره کښې ده چې قرآن او سُنت کښې په وضاحت سره بیان کړې شوی دی او د هغې د ښکاره کولو او خورولو ضرورت وی، هغه باریکې مسئلې چې عوام پرنه شي پوهیدې بلکه په غلط فهمئ کښې د هغوی د اخته کید و خطره تر کیږی نو د اسې مسئلې او احکام د عوامو خلقو په وړاندې نهٔ بیانول بهتر دی، او د علم د پټولو په حکم کښې نهٔ دی، چنانچه د دغې آیت د الفاظو ﴿مِنَ الْبَيِّنٰتِ وَالْهُدٰى﴾ نه هم دغه اشاره بیا پیدا کیدیشی، او هم د داسې مسئلو په باره کښې حضرت عبدالله بن مسعود فرمائیلی دی: تاسو که عوامو ته څه داسې احادیث آوروئ چې هغوی پرپوره نهٔ پوهیږی نو فتنه کښې به ئې اخته کړئ([2])،، داشان په صحیح بخاری کښې د حضرت علی کرم الله وجهه نه منقول دی فرمائې چه،، د عامو خلقو په وړاندې صرف دومره قدرې علم ښکاره کوئ چې عقل او پوهه کښې راتلې شی، آیا تاسو داغواړئ چې خلق د الله ﷻ او د هغه رسول ته د دروغو نسبت او کړی([3])، ولې چې کومه خبره ئې عقل فکر کښې نه شی راتلې نو په زړه کښې به ئې د دې په نسبت شکونه او شبهې پیدا کیږی چې انکار ترهم او کړی،،.

**عالم لره د مخاطب د ذهن مطابق مسئله بیانول پکار دی:** دې نه دا خبره هم معلومه شوه چې یو عالم د د مخاطب د حالاتو په اندازه هغه سره خبره کوی څوک چې د یوې مسئلې نه په غلط فهمئ کښې اخته کیږی، نو هغوئ ته د د سره دغسې مسئلې نهٔ بیانوی، هم دغه وجه ده چې فقهاؤ حضرات د یرو مسئلو بیانولو نه پس داسې لیکلی: ﴿هٰذَا مِمَّا يُعْرَفُ وَلَا يُعَرَّفُ﴾ [دا یو داسې مسئله ده چې عالمان پرې ځان پوهه کړی خو په عوامو کښې دې نه خوروئ.

په یو حدیث کښې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی:

﴿لاتمنعوا الحکمة اهلها فتظلموهم ولا تضعوها في غير اهلها فتظلموها﴾ د حکمت خبرې داسې خلقو نه مهٔ بندوئ چې د دې اهل وی که داسې مو او کړل نو په دوئ مو ظلم او کړو او د نا اهله خلقو په وړاندې د حکمت خبرې مهٔ اړدئ ولې چې داسې کول به په حکمت ظلم کول وی.

**مخاطب د دین اسلام ته علم کله زده کول پکار دی:** امام قرطبی رحمه الله فرمائیلی دی چې د دې تفصیل نه داهم معلومه شوه چه کوم کافر د مسلمانانو سره بحثونه او مناظرې کوی یا داسې بدعتی ګمراه

---

[1] ) سنن ابن ماجة، المقدمة، باب من سئل عن علم فكتمه: ۱/ ۲۳
[2] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ۲/ ۱۸٤
[3] ) صحيح البخاري، كتاب العلم، باب من خص بالعلم قوما دون قوم: ۱/ ۲٤

چې خلق خپلو خیالاتو اړخ ته رابلي، دوئ ته دیني علم ورازده کول تر هغه وخته پورې جائزنهٔ دي چې دعلم ورازده کولو له کبله دهغه دخیالاتو سمید وغالب ګمان رانشي.
دغه شان یو بادشاه، یادخپل وخت حاکم ته داسې مسئلې ښودل جائزنهٔ دي چې دهغې په ذریعه هغه په خپل رعیت باندې دظلم څه لارابرسیره نکړي، داشان علماؤ له هم پکار دي چې دهغې په وجه په دیني احکامو باندې عمل کولو کښې دحیلوبهانو جوړولو عادت نهٔشي [قرطبي]

**درسول الله احادیث هم دقرآن کریم په حکم کښې دي:** په صحیح بخاري کښې دحضرت ابوهریره نه منقول دي وي فرمائیل چه، که چرې په قرآن کریم کښې داآیت نهٔ وې نو مابه تاسو ته هیڅ حدیث نهٔ ؤوبیان کړې(۱)، داآیت نه ئي مرادهمدغه آیت ؤوچه پکښې دعلم په پټولوسخته ډرکه راغلې ده ،څنې نوروصحابو کرامو ﷺ هم داسې قسم الفاظ هغه وخت فرمائیلي دي چې کله به ئې یو حدیث بیانولونو داالفاظ به ئې فرمائیل چه: دعلم پټولوپه باره کښې که دقرآن کریم دغه آیت نهٔ وې نو داحدیث به مې درته نهٔ ؤوبیان کړې.
ددې رواياتو نه معلومه شوه چې دصحابه کرامو ﷺ په نزد ،د رسول الله ﷺ احادیث هم دقرآن کریم په حکم کښې دي،ولې چې په دې آیت کښې دپټولوباره کښې درکه دهغه چاباره کښې راغلې ده چې نازل شوی هدایات اوواضح کلام پټوی په دې کښې په ښکاره ډول داحادیثو ذکرنشته ،خوصحابه کرامو ﷺ درسول الله ﷺ احادیث هم دقرآن حکیم په حکم کښې اوګڼړل اودهغې پټول ئې هم ددې وعید [درکې]سبب اوګڼړلو.

**دځنې ګناهونووبال داسې وي چه په هغې ټول مخلوق لعنت کوي:** قوله تعالی: ﴿وَيَلۡعَنُهُمُ اللّٰعِنُوۡنَ﴾ دلته قرآن کریم لعنت کوونکی نهٔ دی ټاکلی،دتفسیر امام مجاهد ﷫ اوعکرمه ددې وجه داښائ چې ددنیا هرڅیزاوهرمخلوق پرلعنت کوی تردې چې ټول ساداراوپه زمکه کښې دننه اوسیدونکی حیوانات هم په هغوئ لعنت وائ څکه چې ددوئ دبدعملئ په وجه دې ټولومخلوقاتو ته نقصان رسي، دحضرت براء بن عازب ﷛ دحدیث نه ددې تاکید کیږي چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ﴿اللاعنون﴾ نه مراد په زمکه ګرځیدونکی ټول سادارڅیزونه دي.[قرطبي ﷫ بحواله ابن ماجه باسناد حسن](۲).

**په چا ټاکلی انسان خاص یوکس ترهغې لعنت کول ناروادي ترڅومه چه په کفرباندې دهغه دمرکیدلویقین نه وي:** قوله تعالی: ﴿وَمَاتُوۡا وَهُمۡ كُفَّارٌ﴾ دلفظ نه جصاص اوقرطبي ﷫ وغیره دامسئله راؤښکلې [راایستلې] ده چه دکوم کافرد کفرپه حالت کښې دمرکیدلویقین نهٔ وي په هغه لعنت کول ناروا دي اوهرکله چه مونږسره اوس دچاپه آخري خاتمې دیقیني علم راتلوهیڅ څه ذریعه نشته لهذا دیوکافرنوم اغستل اوپه هغه لعنت کول ناروادي.په کومو کافرانوچه رسول الله ﷺ دهغوئ په نوم اغستلوسره لعنت کړې دي رسول الله ﷺ ته دَ الله ﷻ د طرفه داخبرورکړې شوې ؤو چه هغوی دکفرپه حالت کښې مړه شوی دي.البته په عامو کافرانو، ظالمانو د چا دټاکلو او دنوم اغستلونه ئي بغیر،پر لعنت کول روادي.

۱) صحیح البخاري، کتاب العلم، باب حفظ العلم: ۱/ ۲۲
۲) سنن ابن ماجة، أبواب الفتن، باب العقوبات: ۲/ ۲۹۰

دي نه داخبره هم واضحه شوه چه په يو كافر هم په نامه ترهغه وخته پورې لعنت كول ناروادي ترڅو چه په كفرباندې دهغه دمړ كيدو يقين نه وي نوپه يو مسلمان اوڅاروي وغيره به لعنت كول څنګه رواشي؟ عوام ددې پروانه كوي اوبنځې خوپه نه څه خبره دځپلو متعلقينوپه باره كښې دلعنت الفاظ استعمالوي، اولعنت يواځې دلعنت په لفظ سره نه، بلكه په هرهغه لفظ سره هم كيږي چه معنى ئې دلعنت لفظ سره سمون خوري.

دلعنت لفظي معنى د الله ﷻ درحمت نه لرې كول دي څكه چاته مردود، درګاه نه شړلې شوې خدائې وهلې وغيره وئيل هم دلعنت په حكم كښې دي.

وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ۖ لَّا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمَٰنُ الرَّحِيمُ ﴿١٦٣﴾

اومعبود ستاسو | بس| معبود | يو دې | نشته بل معبود | مګر هم هغه رحمن | او رحيم دې

[يادساتئ] چې ستاسو الله بس يوالله دې | دهغه نه سوا بل څوک دعبادت لائق نشته|هغه رحم كونكې اومهربان دې

إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ

بيشكه | په پيدا كولو | دآسمانونو|او دزمكې كښې| او په اختلاف| دشپې | اودورځې كښې

[ددې خبرې دليل دادې]چې دآسمانونواودزمكې په پيداكولو كښې اودشپې اود ورځې په پرله پسې تګ راتګ كښې

وَالْفُلْكِ الَّتِي تَجْرِي فِي الْبَحْرِ بِمَا يَنفَعُ النَّاسَ

اوپه كشتئ كښې| هغه كشتئ |چې رواني وي | په درياب كښې| سره دهغه څيز| چې فائده رسوي| خلقو ته

اوپه هغه بيړو[كشتو] كښې چې په دريابونو كښې دخلقودفائدې سامانونه اوړي راوړي

وَمَا أَنزَلَ اللَّهُ مِنَ السَّمَاءِ مِن مَّاءٍ فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ

اوپه هغه څه كښې |چې نازلوي ئې الله | د اسمان نه | يعنى اوبه| نو ژوندئ كوي |په هغې اوبو سره| زمكه| روستو

اوبه هغې اوبو كښې چې الله پاک ئې دپورته نه راوروي [اومړه[اوچه] زمكه پرې ژوندئ[آباده]كوي

مَوْتِهَا وَبَثَّ فِيهَا مِن كُلِّ دَابَّةٍ وَتَصْرِيفِ الرِّيَاحِ

دمرګ دهغې نه| اوخوروي |په هغې كښې| هر قسم |دسا مخلوق| او په چلن | دهواګانو كښې|

او[ددې انتظام په وجه] دزمكې په مخ ټول زنده سر خوروي| او دسيلو[بادونو] په چلولو كښې اوپه هغه وريځو كښې

وَالسَّحَابِ الْمُسَخَّرِ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ لَآيَاتٍ

او په وريځ | فرمان منونكې كښې| په مينځ |دآسمان | او دزمكې كښې | خامخا نښې دى

چې دزمكې اوآسمان په مينځ كښې زوړندې ولاړې دى په دې ټولو كښې د هغه خلقو دپاره [د الله تعالى د

لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿١٦٤﴾

دپاره دهغه قوم | چې دعقل نه كار اخلى |

وحدانيت] نښې دى چه عقل لرى|

## آسان ترجمه قرآن

ستاسو خدائي صرف يو دې، دهغه نه سوا هيڅوك خدائي نشته چه هغه په ټولو مهربان ډير مهربان دې. بيشكه د آسمانونو او زمكو په پيدا وښت كښې، د شپې او ورځې په مسلسل تلو راتلو كښې، په هغه كِشتو كښې چه هغه د خلقو د فائدې سامان اوړلو سره په سمندر كښې رواني وي، په هغه اوبو كښې كومې چه الله د آسمان نه را كوزې كړې دي او ددې په ذريعه ئې زمكې ته ددې د مړې كيدو نه پس ژوند وركړو او په دې كښې ئې هر قسمه ځناورخواره كړل او د هواګانو په تلو راتلو كښې، او په هغه ورېځو كښې كومې چه د آسمان او زمكې ترمينځه تابعدار جوړيدو سره كار كښې لګيا دي دهغې خلقو دپاره ټولې نښې نښې دي څوك چه د خپل عقل نه كار اخلي.

## خلاصه تفسير

**د آيتونو ربط** : [كله چه مشركانو دعربو دخپلې عقيدې نه خلاف آيت ﴿وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ﴾ واوريدو نو دحيرانتيا دوجې يئ اووئيل چه آيا دجهان صرف هم يو معبود كيدلې شي او وې وئيل كه دا دعوى صحيح وى نو دليل يئ څه دې؟. الله ﷻ دليل دادې فرمائى].

﴿وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ﴾ او [داسې معبود] چه ستاسو ټولو دمعبود جوړيدو مستحق دې هغه خو هم يو معبود [حقيقى] دې ﴿لَّا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمَٰنُ الرَّحِيمُ﴾ دهغه نه سوا بل هيڅوك دعبادت لائق نشته دې هم هغه رحمان دې رحيم دې [بل هيڅوك په دې صفاتو كښې كامل نشته دې ځكه چه دمعبود جوړيدو حق يئ باطل دې نو سوا د معبود حقيقى نه بل هيڅوك دعبادت حقدار نشو] ﴿ إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَالْفُلْكِ الَّتِي تَجْرِي﴾ بيشكه د آسمان او زمكې په جوړولو كښې او ديو بل پسې د شپې او ورځې په راتلو كښې او په جهازونو [چليدو] كښې ﴿فِي الْبَحْرِ بِمَا يَنفَعُ النَّاسَ﴾ چه سمندر كښې چليږى دبنيادمو دفائدې څيزونو [او اسبابو] ليږلو سره ﴿وَمَا أَنزَلَ اللَّهُ مِنَ السَّمَاءِ مِن مَّاءٍ﴾ او [دباران په] اوبو كښې چه الله ﷻ د آسمان نه راوروليے ﴿فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا﴾ بيا يئ دغے [اوبو] سره زمكه زرغونه كړه ددې د اوچيدو نه بعد [يعنى په دې كښې يئ ونې [درختى] پيدا كړې] ﴿وَبَثَّ فِيهَا مِن كُلِّ دَابَّةٍ﴾ او [ددغے ونو [درختو] بوټو نه يئ] هر قسم حيوانات په دې زمكه [كښې] پيدل كړل [ځكه چه ساه اخستونكى څيزونو او نسلونو اولاد چليدل صرف د بوټو دغذا په وجې سره دى] ﴿وَتَصْرِيفِ الرِّيَاحِ وَالسَّحَابِ الْمُسَخَّرِ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ﴾ او دهواګانو [د طرفونو او حالتونو] په بدليدو كښې چه كله د مخكښې نه كله د شانه كله ګرمه كله يخه او د وريځو په وجود كښې چې دزمكې او آسمان ترمينځه ګيره [اوزوړنده] وى [په دې ټولو څيزونو كښې ] ﴿لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ﴾ دلائل [دتوحيد موجود دى د] هغه خلقو [داستدلال] دپاره چه عقل [سليم] لرى.

## معارف او مسائل

**دتوحيد فراخه مفهوم**: قوله تعالى: ﴿ وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ﴾ دَ الله ﷻ توحيد، په ګڼرو او مختلفو حيثيتونو سره ثابت دې مثلاً هغه يو دې، يعنى په كائناتو كښې دَهغه په مثال يا دَهغه شان هيڅوك نشته، نه دَهغه څوك سيال او برابر شته په دې وجه هغه دَدې خبرې حقدار دې چې واحد ورته أوئيلې شي.

بله داچه ،هغه دعبادت په حقدارئ کښې یودې یعنی دهغه نه سوابل هیڅوک دعبادت حقدار او مستحق نشته .

دریمه دا ،چه هغه یودې ځان له برخې اواندامونه نه لری هغه ددې نه پاک دې هیڅ قسمه بیلیدل اوتقسیمیدل پکښې نشی راتلې.

څلورمه دا ،چه هغه په خپل ازلی اوابدی وجودکښې یودې هغه په هغه وخت کښې هم موجودؤ کله چې یوڅیزهم موجودنهٔ ؤواوهغه وخت به هم موجودوی چې هیڅ څیزبه پاتې نشی،په دې وجه هغه ددې حقداردې چې یوورته اُوئیلې شی،واحدلفظ کښې دتوحیدد غه ټول حیثیتونه ملحوظ دی [جصاص]

دې نه پس په دې خبره تکوینی علامات ښودلې شوی وی چې الله ﷻ واحد حقیقی دې داهغه دلائل اوعلامات دی چې هرعالم اوجاهل ئې پیژنی چې دآسمانونواوزمکې په پیداکولو اودشپې اوورځې په چالوبدلون کښې دهغه دقدرت کامله اودتوحید واضح دلیلونه دی چې ددې څیزونوپه پیدائش اوباقی پاتې کیدوکښې دبلې هستئ هیڅ دخل نشته .

داشان د اوبودپاسه دکشتوچلیدل دقدرت یوه غټه نخښه ده چې الله ﷻ اوبولره داسې یونرم بهیدونکې څیزپیداکړې دی چې دپاسه پرِ په لکونومنه جهازونه درونډباری څیزونه لیږی او مشرق نه ئې مغرب ته اوړی راوړی،اودې ته حرکت ورکولودپاره ،بادونوچلول او بیا په حکمت سره دهغې مخه بدلول،داټول ددې خبرې نخښې دی چې ددې پیدا کؤنکې، روانوونکې ،اودروونکې اوچلونکې یولوئې علیم،خبیراوحکیم ذات دې،که اُوبه نرم بهیدونکې څیزنهٔ وې نودغه کاربه نهٔ وې شوې ،که اوبهٔ نرمې اوبهیدونکې وې خوبادونه نهٔ چلیدلې چې دغې جهازونوله حرکت ورکوی نودې به اوږده اوږده مزلونه چرته کولې شو،لکه قرآن کریم ئې هم داشان بیان کوی:

﴿اِنْ يَّشَاْ يُسْكِنِ الرِّيْحَ فَيَظْلَلْنَ رَوَاكِدَ عَلٰى ظَهْرِهٖ﴾ که الله ﷻ اوغواړی بادونه اودروی نودسمندرپه شا [ملا] به دغه جهازونه ولاړ په ولاړپاتې شی.

**قوله تعالى:** ﴿بِمَا يَنْفَعُ النَّاسَ﴾ کښې دې خبرې ته اشاره ده چې دسمندری جهازونوپه ذریعه دیوملک سامان بل ملک ته په اوړلواوړلوکښې دانسانانوبیشمیره فائدې دی چې شمیرل ئې دچاپه وس کښې نهٔ وی اودغه فائدې په هره زمانه اوپه هر ملک کښې نوی نوی صورتونه پیداکوی.

داشان دآسمان نه څاڅکې څاڅکې اُوبهٔ په داشان رارول کول چې هیڅ څیز ته پرنقصانهٔ رسی،که دسیلاب په شان بهیده راتلې نوانسانان،څاروی،سامانونه وغیره به هیڅ نهٔ ؤوپاتې شوی بیادااوبوراورولونه پس په زمکه ئې محفوظې ساتل دانسانی وس نه بهر کاردې.مثلاًکه داوئیلې شوې وې چې هرڅوک دخپل خپل ځان دپاره دشپږوشپږومیاشتوذخیره کیږدی نوهرڅابه ددې څه انتظام کولې شو ،اوکه چرته بالفرض څه انتظام ئې کړې وې نودابه ئې دسخاکیدو [خرابیدو] اوبدبویه کیدونه څنګه ساتلې ،قدرت دغه ټول انتظامونه پخپله اوکړل چنانچه ارشاددې:

﴿ فَاَسْكَنّٰهُ فِى الْاَرْضِ ۖ وَاِنَّا عَلٰى ذَهَابٍۢ بِهٖ لَقٰدِرُوْنَ ﴾ مونږدغه [اوبه]په زمکه کښې ایساری کړې اګرچه مونږداقدرت هم لروچه دباران اوبه موپه بهیدلوختمې کړې دې.

خو قدرت دزمکې بنیاد مو او څناورو د پاره کله ئې په ښکاره د تالاؤنو په شکل کښې او به راجمع کړې کله ئې دغرونو د ګونو په ذریعه زمکې ته دننه او بۀ بوتلې او بیائې د یو قسم پټو نلکو په ذریعه په زمکه کښې خورې کړې. هرڅوک چې چرته او غواړي نو زمکه او کنی او دغه او بۀ ترراؤباسی. ددغې او بو یوه لویه ذخیره ئې چکه شوې سمندر جوړ کړو او دواؤرو په شکل ئې دغرونو د پاسه ذخیره کړې چې دسخا کیدو او خرابیدو نه هم محفوظ شی او په کرار کرار ویلې کیدو سره دزمکې دننه دقدرتی نلکو په ذریعه پوره دنیا ته رسی. غرض دا چه په دغه آیت کښې دقدرت کامله څو مظاهر بیان کړې شو او توحید ترثابت کړې شو. مفسرینو علماؤ رحمهم الله په دې ټولو څیزونو په تفصیل سره بحث کړې دې، اوګورئ، جصاص، قرطبی وغیره.

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَتَّخِذُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ

| دخلقو نه ځینې | هغه دی | چې نیسی | په مقابله د الله کښې |

| [خوسره ددې] بعضې خلق د الله نه سوا (۱) ..........

أَنْدَادًا يُحِبُّوْنَهُمْ كَحُبِّ اللّٰهِ ۖ وَالَّذِيْنَ

شریکان | چې مینه کوی دهغوئ سره | لکه څنګه چې مینه پکار ده | د الله سره | حالانکه هغه کسان

نورڅیزونه هغه سره په برابرئ نیسی | او دومره مینه ورسره ساتی څنګه چې د الله سره پکار ده | او دچا په

اٰمَنُوْٓا أَشَدُّ حُبًّا لِّلّٰهِ ۖ وَلَوْ يَرَى

چې ایمان ئې راوړې دې | زیات سخت دی | په مینه کولو کښې | د الله سره | او که چرته | اولیدلې

په زړونو کښې چې ایمان وی هغوئ ته الله پاک د هرچا نه زیات خوښ دې (۲) | افسوس چه هغوی اوس لیدلې

۱) **د الله ﷻ پشان محبت نورو سره ؟** :- په دې آیت کښې د مشرکانو د دنیاوی او اُخروی حال بیان دې. دوی الله ﷻ سره شریك جوړوی. او دهغه پاك ذات په شان نورګنړی. او بیا د هغوی محبت په خپلو زړونو کښې داسې کینوی چه څنګه د الله ﷻ پکار دی. حالانکه هغه معبود برحق صرف یو دې، هغه دشریك او ملګری نه پاك دې.
بخاری اومسلم کښې دابن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه ما تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ! د ټولو نه خرابه ګناه کومه یوه ده ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه د الله تعالی سره شریك جوړول حالانکه هغه ذات دې پیدا کړې هم دې. ( صحیح بخاری)

۲) **مومنان د الله په محبت کښې زیات دی:-** بیائې اوفرمائیل چه ایماندار د الله تعالی په محبت کښې ډیر سخت وی، دهغوی زړونه د الله ﷻ دعظمت نه ډک وی، هغوی د الله ﷻ نه سوا نورو سره د الله په شان محبت نه کوی او نه بل چا طرفته د الله پشان التجا کوی اونه دې نورو طرفته مائل کیږی او نه هغه پاك ذات سره بل څوك شریك کوی. بیا هغه مشرکانو ته د عذاب خبر ورکوی چه په خپلوځانونو باندې د شرك په وجه ظلم کوی، اودې خلقو ته د عذابونو خبر ورکوی او که چرې دوئ عذاب لیدلې وې نو دوئ به یقین کړې ووچه قدرتونو والاصرف الله دې، ټول څیزونه دهغه ماتحت اودهغه پاك ذات د حکم لاندې دی، اودهغه پاك ذات عذابونه هم ډیر لوئې لوئې دی. لکه څنګه چه بل ځائې کښې ارشاد فرمائی چه په هغه ورځ به نه دهغه دعذاب په شان څوك عذاب ورکولې شی اونه د هغه د رانیولو په شان څوك رانیول کولې شی، دویم مطلب دا هم دې که چرې دوئ ته ددې منظر علم وې نو دوی به په خپل شرك او کفر کلك نه وې ولاړ.

الَّذِيْنَ ظَلَمُوْٓا اِذْ يَرَوْنَ الْعَذَابَ ۙ اَنَّ الْقُوَّةَ لِلّٰهِ

هغه کسانو | چي ظلم ئې کړې دې | څه وخت | چي به وينې | عذاب | چي بيشکه | طاقت | الله لره دي

[کوم چي به دوئ په ښه شان وينې] څه وخت چي عذاب اووينې [نو دا به اووائې] چي هر قسم ټول طاقت د الله

جَمِيْعًا ۙ وَّاَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعَذَابِ ۝

ټول | او بيشکه چي | الله | ډير سخت دې | په عذاب ورکولو کښې |

دې | او هغه په عذاب ورکولو کښې ډير زيات سخت دې |

## آسان ترجمه قرآن

او (ددې باوجود) په خلقو کښې څه هغه [خلق] دي چه هغه د الله تعالى نه سوا نورو لره دهغه په خدايئ کښې داسې شريك کرځوى چه دهغوى سره داسې محبت ساتي لکه څرنګه چه دالله سره محبت (ساتل پکاردى) اوکوموخلقوچه ايمان راوړې دې هغوى دالله سره زيات محبت ساتي اوکاش چه دا ظالمان هرکله (په دنيا کښې) کوم تکليف وينې دغه وخت په دې پوهه شي چه ټول طاقت خاص الله ته حاصل دې اودا چه دالله عذاب به (په آخرت کښې) هغه وخت ډيرسخت وى.

## خلاصه تفسير

**د آيتونو تړون**: مخکښينى آيتونو مبارکوکښې د توحيد اثبات وو. وروسته د مشرکانو د غلطئ او د وعيد بيان فرمائى. ﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّتَّخِذُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَنْدَادًا﴾ اوبو نيم کس داسې [هم] دې چې دالله ﷻ نه سوا نورهم [دالله ﷻ په حکومت کښې] شريکان جوړوى[او هغوى څانله کارساز ګڼړى او] ﴿يُّحِبُّوْنَهُمْ كَحُبِّ اللّٰهِ ۭ﴾ورسره مينه کوى څنګه چه الله ﷻ سره ساتل ضرور دى [داځو دمشرکانو حالت شو] ﴿وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَشَدُّ حُبًّا لِّلّٰهِ ۭ﴾ او څوك چه مومنان دى دهغوى [صرف] الله ﷻ سره ډيره زياته مضبوطه مينه ده [ځکه چه يومشرك ته دا ثابته شى چه زما دمعبود نه ماته څه ضرر رارسى نو زر به ورسره مينه لرل کول پرېږدى اومومن سره ددې چه يواځې د الله ﷻ دنفعې اونقصان ورکوونکى عقيده لرى خوبياهم ورسره مينه باقي وى اودهغه د رضا طلبګار وى.دا رنګ اکثر مشرکان د سخت مصيبت په وخت کښې خپل شريکان پرېږدى اومومنان به دايمان په حيث مصيبت کښې هم نه پرېښودو چنانچه په محاوروکښې داسې قسم جملې د غالب حالاتوپه اعتبار هم صادقيږى ﴿وَلَوْ يَرَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْٓا اِذْ يَرَوْنَ الْعَذَابَ ۙ﴾ اوڅه به ښه وے که دے ظالمانو په دنياکښې] چه کله څه مصيبت ليدلې نو [دهغې په واقع کيدو کښې به يئ ژور نظرکولې او] ﴿اَنَّ الْقُوَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا ۙ﴾ په دې پوهيدلے چه ټول طاقت يواځې دالله ﷻ دے [اونور ټول دهغه په مخکښې بېوسه دى چنانچه دا مصيبت خونه چا ايسار کړې شو اونه ورله چا مخه واړوله اونه ورته په دا سې وخت کښې څوك ورياد شو او ددې مصيبت په سختوالى کښې ژور نظر کولوسره] ﴿وَّاَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعَذَابِ ۝﴾په دې پوهيدلے چه دالله ﷻ عذاب به [په آخرت کښې چه دارلجزاء دې نورهم]سخت وى.س[نوپه داسې قسم غور کولوسره به پرې د خودساخته معبودانو بېوسى اودالله ﷻ قدرت اوعظمت ورته ښکاره شوې وو او توحيد اوايمان به يئ اختيار کړې وې].

إِذْ تَبَرَّأَ الَّذِينَ

| كله چې| بېزارشي | هغه كسان|

| څه وخت چې دوئ عذاب اووينى | نود چا

اتُّبِعُوا مِنَ الَّذِينَ اتَّبَعُوا وَرَاَوُا الْعَذَابَ وَتَقَطَّعَتْ

چې تابعداري ئې شوې ده| دهغه كسانونه |چې تابعداري ئې كړې ده| اووينى عذاب |او ختم به شي

تابعداري چه شوې وه |هغوئ به دخپلوتابعدارو|مريدانوانه بېزاره شي| او ددوئ[تر مينځ] به د خپلولۍ تولې سلسلې

بِهِمُ الْأَسْبَابُ ۞ وَقَالَ الَّذِينَ اتَّبَعُوا لَوْ أَنَّ لَنَا كَرَّةً

دهغوئ اسباب | او اوبه وائى هغه كسان|چې تابعدارى ئې كړې ده| كاش چې وې مونږ لره|يو خل تلل بيا دنيا ته

ختمې شى |او چا چې [په دنيا كښې] تابعدارى كړې وه |هغوئ به وائى كاش كه مونږ ته دواپس تلويو موقع راكړې شوې

فَنَتَبَرَّأَ مِنْهُمْ كَمَا تَبَرَّءُوا مِنَّا ۗ كَذَٰلِكَ يُرِيهِمُ

نو مونږ به بېزاره شو| ددوئ نه| لكه څنگه چې|بېزاره شودوى |زمونږنه |هم دارنگې به |ښكاره كوى دوئ ته

نومونږ به هم ترينه بېزاره شو| [لن] چې دوئ زمونږنه څنگه بېزاره شو| دغسې به الله تعالى دوى ته د دوى

اللَّهُ أَعْمَالَهُمْ حَسَرَاتٍ عَلَيْهِمْ ۖ وَمَا هُمْ بِخَارِجِينَ مِنَ النَّارِ ۞

| الله | عملونه ددوئ | سبب د افسوسونو| په هغوئ باندې| اونۀ به وى دوئ| وتونكى | داور نه

بد عملونه دحسرت اوپښيمانئ سبب جوړ كړى |، اوپه هيڅ صورت كښې به داور نه وتلې نشى

## آسان ترجمه قرآن

هركله چه هغه (پيشوا) چه هغوى پسې دا خلق روان وو دخپلوتابعدارى كونكونه مكمل د بې تعلقئ اعلان اوكړى اودا ټول خلق عذاب دخپلوستركوو راندې اووينى، اودهغوى خپل مينځ كښې ټولې رشتې به ختمې شى اوچاچه ددې (پيشوايانو) پېروى كړې وه هغوى به وائى چه كاش مونږ ته يو ځلې بيا (دنيا ته) د واپس تلوموقع را كړې شى نو مونږبه هم ددې (پيشوايانو) سره دغسې د بې تعلقئ اعلان اوكړو لكه څرنگه چه دوى مونږسره د بې تعلقئ اعلان كړې دې دغسې به الله دوى ته اوښائى چه ددوى عملونه (لن) ددوى دپاره خفگان جوړشوې دې، او اوس دوى په هيڅ صورت كښې د دوزخ نه وتونكى نه دى.

## خلاصه تفسير

**د آيتونو ترون** : پورته ئې د آخرت عذاب ته سخت اوونيل ، وړاندې ددې سختئ كيفيت بيان فرمائى چې : [د عذاب سختى به ورته په هغه وخت كښې معلومه شى] ﴿إِذْ تَبَرَّأَ الَّذِينَ اتُّبِعُوا﴾ چې كله [ددې مشركانو څخه] هغه [بااثره] خلق چې ددوئ په وينا باندې به نور خلق [عوام] تلل ،﴿ مِنَ الَّذِينَ اتَّبَعُوا﴾ ددې [عامو] خلقو څخه بالكل جدا شى چې كوم به ددوئ په وينا تگ كولو ﴿وَرَأَوُا الْعَذَابَ﴾ او ټول [خواص او عام] به عذاب پخپلو ستركو وينى ﴿وَتَقَطَّعَتْ بِهِمُ الْأَسْبَابُ ۞﴾ او ددوئ چې خپلو كښې كوم تعلقات وو [چې تابع وو او بل متبوع وو وغيره وغيره] هغه وخت كښې به

تول ختم شى الكه څنګه چې په د نيا كښې مشاهده كولې شى چې په جرم كښې تول متفق اوشريك وى او د مقدمې د تنقيح [صفائى] په وخت كښې تول جدا جدا كيدل غواړى تر دې د ير بل د شناخت څخه هم منكر شى] ﴿وَقَالَ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْا﴾ او [چې كله] دا تابع خلق [ددې متبوعينو دا چشم پوشى اوګورى نو ډير په غصه به شى خو هيڅ به نه كيږى مګر د غصې څخه به] داسې اووائى ﴿لَوْ اَنَّ لَنَا كَرَّةً﴾ چې كه چرته مونږ تولو ته [دنيا ته] واپس تګ يو ځل ملاؤ شى ﴿فَنَتَبَرَّاَ مِنْهُمْ﴾ نو مونږ به د دوئ څخه [دومره بدله واخلو چې كه دوئ مونږ ته بيا د تابع كيدو ترغيب راكړى نو مونږ به دوئ څخه] صفا انكار [اوكړو] او ددوئ څخه به جدا شو ﴿كَمَا تَبَرَّءُوْا مِنَّا﴾ لكه څنګه چې زمونږ څخه [په دې وقت] ئې صفا انكار اوكړو [او ورته به اووايو چې تاسو هغه خلق يئ چې په عين موقعه باندې مو راڅخه مخ اړولې وونو اوس زمونږ څخه څه غواړئ ، الله ﷻ فرمائى چې ددې تجويزونو او سوچونو سره به درته څه په لاس راشى] ﴿كَذٰلِكَ يُرِيْهِمُ اللّٰهُ اَعْمَالَهُمْ حَسَرٰتٍ عَلَيْهِمْ﴾ الله ﷻ به صرف ددوئ بد عملونه خالى ارمانونو سره دوئ ته اوښائى ﴿وَمَا هُمْ بِخٰرِجِيْنَ مِنَ النَّارِ﴾ او دا [تابعين او متبعين] به دوزخ څخه هيڅكله نشى راوتلې [ځكه چې دشرك سزا خلود فى النار ده]

| يَاَيُّهَا النَّاسُ | كُلُوْا | مِمَّا | فِي الْاَرْضِ | حَلٰلًا | طَيِّبًا |
|---|---|---|---|---|---|
| اے خلقو! | خورئ | دهغه څيزونو نه | چې په زمكه كښې دى | حلال | پاك |
| اى خلقو! دزمكې په سر چې كوم حلال اوپاكيزه څيزونه موجود دى د هغې نه خوراك ښكاك كوئ | | | | | |

| وَلَا تَتَّبِعُوْا | خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ | اِنَّهٗ لَكُمْ | عَدُوٌّ | مُّبِيْنٌ |
|---|---|---|---|---|
| اوتابعدارى مه كوئ يعنى مه ځئ | په قدمونو دشيطان پسې | بيشكه هغه ستاسو | دشمن | ښكاره دى |
| اوشيطان په جوړه كړې لارې پسې مه ځئ ........ هغه ستاسو ښكاره دشمن دى | | | | |

| اِنَّمَا | يَاْمُرُكُمْ | بِالسُّوْٓءِ | وَالْفَحْشَآءِ | وَاَنْ | تَقُوْلُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| بيشكه | هغه حكم كوئ تاسو ته | په بدئ سره | او دبې حيايئ په كارونو سره | او دا چې | اووايئ تاسو |
| هغه خوبه تاسوته د بدو اوقبيح كارونو حكم كوى او دابه درته وائى چې په الله تعالى پورې داسې دروغ خبرې | | | | | |

| عَلَى اللّٰهِ | مَا | لَا تَعْلَمُوْنَ |
|---|---|---|
| د الله په باره كښې | هغه خبرى | چې نه دى معلومې تاسو ته |
| اوتړئ چې دهغې تاسو نه پخپله هم علم نشته | | |

## آسان ترجمه قرآن

اې خلقو! په زمكه كښې چه كوم حلال پاكيزه څيزونه دى هغه خورئ او د شيطان په نقشِ قدم باندې مه ځئ. يقين اوكړئ چه هغه ستاسو دپاره ښكاره دشمن دې هغه خوبه تاسو ته هم دا حكم دركوى چه تاسو د بدئ او بې حيايئ كارونه اوكړئ او په الله باندې داسې خبرې اوتړئ چه دهغې تاسو ته علم نشته.

## خلاصه تفسير

[بعضې مشركانو به دبتانو په نوم څاروی پرېښودل اودهغې تعظيم دوجې به يې دهغې نه څه قسم فائده حاصلول حرام ګڼړل.خپل دغه عادت به ئې دالله ﷻ د رضا موجب او دډوی دسفارش په وجه به يې الله ﷻ ته دخپل نزديكت وسيله ګڼړله الله ﷻ په دې باره كښې خطاب فرمائى] ﴿يَأَيُّهَا النَّاسُ كُلُوا مِمَّا فِي الْأَرْضِ﴾ ائې خلقو كوم څيزونه چه په زمكه كښې موجود دى ددې نه [دشرعى] ﴿حَلٰلًا طَيِّبًا﴾ حلال پاك څيزونه [اجازت دې چې] خورئى [استعمالوئى ئې] او [ددې نه د څه حلال څيزونونه په دې خيال خان ساتل چه دې عمل سره الله ﷻ راضى كيږى ټول شيطانى خيالات دى ﴿وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ﴾ اوتاسو] دشيطان په قدمونو مه ځئى ﴿إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ﴾په واقع كښې هغه[شيطان]ستاسو ښكاره دښمن دې[چه داسې خيالات او جهالتو نه سره يې تاسوپه هميشه زيان كښې اخته كړى يې او ددښمن كيدو په وجې سره] ﴿إِنَّمَا يَأْمُرُكُمْ بِالسُّوٓءِ وَالْفَحْشَآءِ﴾ تاسو ته هم دهغه خبرو خودنه كوى چه [دشريعت په رڼړا كښې] خرابې او ګنده وى اودا [هم درته ښائى] ﴿وَأَنْ تَقُولُوا عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ﴾ چه په الله ﷻ هغه خبرې وتړئى چه تاسويې سندنه هم لرئى [لكه مونږ ته دالله ﷻ هم داشان حكم دې].

## معارف اومسائل

**دکرانوټکوتشريح** :: قوله تعالى - ﴿يَأَيُّهَا النَّاسُ كُلُوا مِمَّا فِي الْأَرْضِ حَلٰلًا طَيِّبًا﴾ دَحل اصلى معنى غُټه پرانستل او خلاصول دى،چه يوڅيزانسان دَپاره حلال كړې شونوګوياكښې غُټه پرانستې شوه اوپابندى لرې كړې شوه،حضرت سهل بن عبدالله رحمه الله فرمائ چې نجات اوخلاصې پيدا كول په درې خبرو اړه لرى.په حلال خوراك.دَفرضوپه اداكولو.اودَرسول الله ﷺ دَسُنتوپه تابعدارئ كولو.
دَطيب معنى پاكيزه ده .دې كښې هغه څيزونوهم داخل دى چې دَشريعت له مخې حلال وى، اوهغه څيزونه ترهم مراداغستې شى چې زړهٔ پورې وى اوطبيعت ئې خوښوى.
﴿خُطُوٰتِ﴾خطوات جمع دَخُطوة ده،دَدوؤقدمونوأوچتولوترمنځه فاصلې ته وئيلې شى اودلته ترمُرادشيطانى افعال اواعمال دى، ﴿السُّوٓءِ وَالْفَحْشَآءِ﴾سُوء نه مرادهغه څيزونه دى چې دَهغې په ليدلوعقلمنداوشريف بنده ته غم ددد رسى.فحشاء دَبې حيايئ كار،ځنې حضرات وائ چې دلته دَسُوء نه مراد مطلق نافرمانى او فحشاء نه مرادلويه ګناه ده .
**قوله تعالى**: ﴿إِنَّمَا يَأْمُرُكُمْ﴾ دَشيطان دَحكم كولونه مطلب وسوسه اچول دى لكه دَحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې دآدم عليه السلام خوئې،په زړهٔ كښې يوشيطانى الهام اواثروى اوبل دَفرشتې دَاړخ نه وى،دَشيطانى وسوسى اثرداوى چې دخراب اوبدكاركولوفائدې اوښه والى ئې مخې ته راځى،اوحق لره دَدروغژن ګڼړلولارې ورته پرانستې كيږې اودَفرښتې دَالهام اثرداوى چې په ښه كاراونيكئ باندې دَانعام اوكاميابئ وعده ئې مخې ته راځى،اودَحق په تصديق كولوئې زړه مطمئن كيږى[1].
**مسئله**:سنډه او غوئى وغيره هغه څاروې چې دبُتانوپه نوم خوشې پرېښودې شى،يابل څه څاروې،چرګ چرګورې چيلئ [بزهٔ] وغيره دَچابزرګ يادبل مخلوق په نامه كولې شى.دَدې

[1]) جامع الترمذى، أبواب التفسير، ومن سورة البقرة: ٢/ ١٢٨

حرامیدل په ﴿وَمَآ أُهِلَّ بِهِۦ لِغَيْرِ ٱللَّهِ﴾ سره شوی دی چې څلورآیتونونه پس به ئې اُولولئ. په دې آیت ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ﴾ کښې دَداسې ځاروی دَحرامیدونفی کول منظورنهٔ دی څنګه چې ځنې خلقوته ئې شُبه راپورته شوې ده بلکه مقصد ئې دَدې فعل حرامول اودې نه منع کول دی، چه غیرالله ته دَنزدیکت په غرض ځاروې خوشی کول اوداعمل دَبرکت اونزدیکت موجب ګڼړل اودَدغې ځارؤو، په خپل ځان باندې دَحرامولولوظ، قول کول اوبیاداهمیشه دَپاره ګڼړل، ټول ناجائزدی چې کول ئې ګناه ده.

نو دَدې آیت دَحاصل مطلب دادې چې کوم ځاروی الله ﷻ حلال ګرځولی دی هغه دَبُتانوپه نوم کولوسره حرام نهٔ ګرځوئ بلکه په خپل حالات ئې پریږدئ، خورئ اوڅکئ، که دَناپوهئ په وجه داسې حرکتونه تاسونه صادرشی نونیت سم کړئ، ایمان تازه کړئ اوتوبه اوکړئ دغه حراموالې به ختم شی. دغه شان دَتعظیم له کبله دغه څناورحرام ګرځول خوګناه شوه لیکن دَغیرالله په نوم کولوسره دغه ځاروی دَمرداراوپلیت په حکم کښې شو اودَپلیتئ په وجه ئې حراموالې ثابت شو([1]).

**مسئله:** دې نه داهُم معلومه شوه چې که چا دَجهالت یابې پرواهئی په وجه څه ځاروې دَغیرالله په نوم کولوسره خوشې پریښودو نوتوبه ئې داده چې دَحراموالې دَدې خیال نه رجوع اوکړی، دَدغې کارنه توبه اوباسی نوغوښه به ئې حلاله شی. والله اعلم

| |
|---|
| وَإِذَا  قِيلَ  لَهُمُ |
| او کله چې \| اووئیلې شی \| دوئ ته |
| اوکله چې دوئ ته اووئیلې شی.............. \| |
| ٱتَّبِعُوا  مَآ  أَنزَلَ ٱللَّهُ  قَالُوا  بَلْ نَتَّبِعُ |
| چې تابعداری اوکړئ \| دهغه حکمونو\|چې نازل کړی دی الله \| نو وائی دوئ\|بلکه مونږ تابعداری کوؤ |
| چې کوم حکمونه الله پاک نازل کړی دی په هغې روان شئ\|نو وائی نه بلکه مونږ خو د هغه لارو \|اوطریقو\| |
| مَآ  أَلْفَيْنَا  عَلَيْهِ  ءَابَآءَنَآ  أَوَلَوْ كَانَ  ءَابَآؤُهُمْ |
| دهغه طریقو \| چې موندلی دی مونږ \|په هغې باندې \| پلاران خپل\| اګر که وی \| پلاران ددوئ |
| تابعداری کوؤ په کومو چه مونږ خپل پلرونه اونیکونه موندلی دی \| اګر که ددوئ پلار نیکه |
| لَا يَعْقِلُونَ  شَيْـًٔا  وَلَا يَهْتَدُونَ ۝ وَمَثَلُ  ٱلَّذِينَ  كَفَرُوا |
| چې نهٔ پو هیږی \| په هیڅ خیز \|اونهٔ ئې نیغه لاره موندلی وی\| او مثال \| دهغه کسانو\| چې کافران دی |
| په هیڅ خیز نه پوهیدل اوسمه لار ئې موندلې نه وه\|بیابه هم د هغوی تابعداری کوی\|ددې کافرانو مثال |

[1]) شروع کښې د حضرت مولف قدس سرهٗ رائے دا وه، کومه چه دلته مذکور ده، چه دا څناور حرام شو، خو ورستو ئې رائے بدلا شوه چه کومه صفحه نمبر ۴۲۳، ۴۲۴ کښې آیت نمبر ۱۷۲ د لاندے مذکور ده، د دې مطابق حضرت په امداد المفتین صفحه نمبر ۹۴۱ باندے سوال نمبر ۸۳۷ د جواب په آخر کښې قول مختار په عنوان سره فتویٰ ورکړې ده. احقر محمد تقی عثمانی۔

كَمَثَلِ الَّذِيْ يَنْعِقُ بِمَا لَا يَسْمَعُ اِلَّا دُعَاءً وَّنِدَآءً ط

پشان دمثال| دهغه سړي دي|چې آواز كوي | هغه څناورته | چې هيڅ نه اوري | مگر | بلنه | اوآواز

داسې دي لکه شپونکي چې څاوري ته آواز کوي | اوهغه سوا دبلنې اوآواز نه بل هيڅ نه اوري

صُمٌّ بُكْمٌ عُمْيٌ فَهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ⑰

کانړه دي|گونگيان دي|ړانده دي | نودوی|نه پو هيږي په خبره|

[دوی د حق نه]کانړه دي، او[دحق وينانه]گونگيان دي|اودحق ليدلونه] ړانده دي نودوی په هيڅ نه پوهيږي

## آسان ترجمه قرآن

اوکله چه دوی (کافرانو) ته اوويلې شي چه دهغه کلام تابعداري اوکړئ کوم چه الله نازل کړې دې، نوهغوی وائي چه نه امونږ خوبه دهغه خبرو تابعداري کوو په کوموچه مونږخپل پلارنيکونه بيا موندي وو نو آيا په دې صورت کښې هم (هغوی له دا پکاردي چه) کله ددوی پلارنيکونه (ددين) معمولي شان پوهه هم نه لري اوهغوی هيڅ (آسماني) هدايت هم نه وی حاصل کړې؟اوکوموخلقو چه کفرخپل کړې دې هغوی (ته دحق د دعوت ورکولو) مثال څه داسې دې لکه چه يو سړې هغه (څناور) په زورزورسره رابلي چه هغوی د رابللو آواز نه بغيرهيڅ نه آوری دا کانړه،گونگيان،ړانده دي،لهذا په هيڅ نه پوهيږي.

## خلاصه تفسير

﴿وَاِذَا قِيْلَ لَهُمُ اتَّبِعُوْا﴾اوکله چه څوك دې [مشرکانو] خلقو ته وائي چه الله ﷻ کوم حکم [آخپل پيغمبر ﷺ ته] ﴿مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ﴾چه ليږلے دے په هغې چليږئ ﴿قَالُوْا بَلْ نَتَّبِعُ مَآ اَلْفَيْنَا عَلَيْهِ اٰبَآءَنَا ط﴾نو [په جواب کښې] وائي چه نه] بلکه مونږ خوبه په هغه [طريقه] روان يو په کومه چه موخپل پلرونه اونيکونه ليدلی وو [ولے چه هغه خلق دے طريقو اختيارولو کښې دالله ﷻ دطرفه مامور وو الله ﷻ رد کوی اوفرمانی] ﴿اَوَلَوْ كَانَ اٰبَآؤُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ شَيْئًا وَّلَا يَهْتَدُوْنَ ۝﴾ آيا [په هرحالت کښې به دا خلق خانله هم د خپل پلار نيکه په طريقه روان وی] اګر چه پلاران نيکونه يئ [ددين] نه څه پوهه لری اونه [ديوآسمانی کتاب] هدايت ورسره وی.

﴿وَمَثَلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾اوودې کافرو کيفيت [په ناپوهئ کښې] ﴿كَمَثَلِ الَّذِيْ يَنْعِقُ بِمَا لَا يَسْمَعُ﴾ دهغې [څاروی] دحالت پشان دے [چه ذکريئ پدې مثال کښې کيږی] يوکس دے هغه داسې [څاروی] پسې چغے وهی چه ﴿اِلَّا دُعَآءً وَّنِدَآءً ط﴾سوا د بللو اوچغے وهلوبله هيڅ [يوه دمطلب خبره نه آوری [دغه شان] ﴿صُمٌّۢ بُكْمٌ عُمْيٌ فَهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ۝﴾دا کفار [هم ظاهری خبرے اترے خو آوروی ليکن دکار دخبرے نه بالکل کانړه دی [لکه چه بالکل يئ آوری نه] گونگيان دی [چه چرته داسې خبره يئ په خله نه راځی] ړانده دی [څکه چه د نفع و نقصان ورته بالکل هيڅ نه ښکاري] نو [هرکله چه ټول حواس ئے نقصانی دی نو] پوهيدل [پوهول]يئ هيڅ نشته دې.

## معارف اومسائل

قوله تعالٰی: ﴿وَاِذَا قِيْلَ لَهُمُ اتَّبِعُوْا مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ﴾ددې آيت نه څنګه چې دپلارانو، نيکونو دړوند تقليد او تابعدارئ بدی اوخرابی ثابته شوی، دغه شان درواتقليد اوتابعدارئ شرطونه اويوضابطه هم

معلومه شوه، چه هغې ته ئې په دؤ لفظونو کښې اشاره فرمائيلې ده ﴿لَا يَعْقِلُوْنَ﴾ او ﴿لَا يَهْتَدُوْنَ﴾ ځکه چې دَدې نه معلومه شوه چې دَدغې پلارانو اونيکونو تابعداری اوتقليد کول په دې وجه منع کړې شوی دی چې دَهغوئ نۀ عقل وُو اونۀ هدايت. هدايت نه مراد هغه احکام دی چې دَ الله ﷻ له اړخه په پاکيزه طريقې نازل کړې شوی دی اودَعقل نه مراد هغه احکام مراد دی چې دَاجتهاد په ذريعه دَشرعی نصوصونه ئې استنباط کړې شوې وی.

ثبوت د تقليد : لهذا دغه تابعداری اوتقليد په دې وجه ناروا دې چې نۀ خو هغوئ سره دَ الله ﷻ له اړخه نازل کړې شوی احکام شته اونۀ داصلاحيت لری چې دَ الله ﷻ دَفرمان نه څه احکام راوښکلې شی، دې کښې دا اشاره بيامونده شوه چې چانه دکوم عالم باره کښې چې داتسلی اوشی چې ورسره دَقرآن اوسُنت علم شته اودَاجتهاد کولو په درجه کښې هم دې، داسې چې کوم احکامو په ډاګه په قرآن اوسُنت کښې نۀ وی هغه دَقرآن اوحديث دَنصوصو په ذريعه دَقياس نه راايستلې شی نودَاسې مجتهد عالم تقليد اوتابعداری کول روا دی. دا به دَهغه حکم منل اوتابعداری کول نۀ، بلکه په حقيقت کښې دَ الله ﷻ حکم منل او دهغه پيروی کول دی چونکه مونږ پخپله دالله ﷻ د حکمونو څخه پخپله خبريدې نشونو دَمجتهد عالم په ذريعه به پرې خبرشو اودَ الله ﷻ په حُکم به عمل اوکړې شو.

**په جاهلانه تقليداودَمجتهدينو امامانو په تقليد کښې فرق:** ځنې خلق دَمجتهدينو امامانو دَتقليد نه دَمنع کولو په غرض داسې قسم آيتونه په دليل کښې پيش کوی هغوئ پخپله دَدې آيتونو دَصحيح مدلول نه خبره نۀ دی، امام قرطبی رحمه الله ،دَدې آيت په تفسير کښې فرمائيلی دی چې ددې له مخه دَپلارانو نيکونو دَهغه قسم تقليد نه منع راغلې ده چې په باطلو عقائدو او اعمالو کښې وی په صحيح عقائدو اونيکو اعمالو کښې تقليد کول په دې کښې شامل نۀ دې لکه په سُورة يوسف کښې دَحضرت يوسف عليه السلام دکلام نه چې دادواړه واضح کيږی فرمائ:

﴿اِنِّیْ تَرَکْتُ مِلَّةَ قَوْمٍ لَّا یُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ كٰفِرُوْنَ ۝ وَاتَّبَعْتُ مِلَّةَ اٰبَآءِیْۤ اِبْرٰهِیْمَ وَاِسْحٰقَ وَیَعْقُوْبَ﴾ ما دَهغه خلقو ملت اومذهب پريښودو چه په الله ايمان نۀ لری اودآخرت منکردی، ماتابعداری اوکړه دَخپلو پلرونو ابراهيم عليه السلام اسحاق عليه السلام اويعقوب عليه السلام دلته په ډاګه داخبره ثابته شوه چې په باطلو کښې دَپلارنيکه تقليد حرام دې په حق کښې رواڅه چې ښه دې.

امام قرطبی رحمه الله دَدې آيت په تفسير کښې دَمجتهدينو امامانو دَتقليد په باره کښې هم احکام اومسئلې بيان کړيدی چنانچه فرمائ:

﴿تعلق قوم بهذه الاية فی ذم التقليد [الی] وهذا فی الباطل صحيح اما التقليد فی الحق فاصل من اصول الدين وعصمته من عصم المسلمين يلجاء اليها الجاهل المقصر عن درك النظر﴾ [قرطبی ۱۹۴/ ج/۲] ځنې خلقو دآيت دَتقليد دَبدئ ثابتولو دَپاره پيش کړې دی ليکن دادباطل تقليد په باره کښې خوصحيح د ې خودَحق په معامله کښې تقليد سره ددې هيڅ تعلق ځکه شته چې داخودَدين د بنيادونو ځنې يو بنياد دې اودَمسلمانانو دَدين دَحفاظت يولويه ذريعه : ه هغه داسې چې څوک پخپله مجتهد نشی کيدلې هغه دَدين په باره کښې صرف په تقليد عتمـ دکړی

يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

اے هغه کسانو چې ایمان مو راوړی دی

ائې ایماندارو!

كُلُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ وَاشْكُرُوْا لِلّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ

خورئ | پاك هغه څیزونه | چې درکړې دی مونږ تاسو ته | او شکر اوباسئ | د الله | که چرې یئ تاسو

زمونږ درکړې پاکیزه [حلاله] روزي خورئ | او د الله شکر اوباسئ که تاسو په رښتيا صرف د الله تعالی

اِيَّاهُ تَعْبُدُوْنَ ۝ اِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ

چې خاص هغه لره | عبادت کوئ | بیشکه | حرام کړل الله | په تاسو باندې | مرداره | او وینه |

عبادت کوئ | بیشکه الله په تاسو باندې مرداره [چه بغیر د ذبحې نه مره شوې وي] او [بهیدلي] وینه

وَلَحْمَ الْخِنْزِيْرِ وَمَآ اُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰهِ ۚ

او غوښه دخنزیر | او هرهغه څیز | چې نوم اغستلي شوې وي | په هغې باندې | سوا د الله |

دخنزیر غوښه او داسې مذبوحه چې د الله نه بغیر د بل چا نوم پرې [د ذبحې په وخت] ونیلي شوې وي حرام کړې دی

فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ

نو څوک اچې مجبوره کړې شو | په دې حال کښې چې قانون ماتونکي نه وي | او نه د حد نه اوړیدونکې وي

څوڅوک چې دې حرامو څیزونو ته محتاج شو او په خوړلو کښې د خوند طلبګار نه وي | او د حد نه زیات خوراک کونکې نه وي

فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝

نو نشته ګناه | په هغه باندې | بیشکه چې الله | بخښونکې | مهربان دې |

نو بیا [د دې په خوراک کولو کښې] څه ګناه نشته | بیشکه الله پاک بخښونکې مهربان دې |

## آسان ترجمه قرآن

اې ایمان والو! کوم پاکیزه څیزونه چه مونږ تاسو ته د رزق په طور درکړي دي د هغې نه (چه څه غواړئ) خورئ، او د الله شکر ادا کړئ، که واقعي تاسو صرف د هغه بندګي کوئ هغه ستاسو دپاره صرف مردار ځاروي وینه او خنزیر حرام کړي دي او هغه ځاروي هم چه په هغې باندې د الله نه سوا د بل چا نوم اخستلې شوې وي البته که څوک د ډیرې مجبورئ په حالت کښې وي (او دې څیزونو نه څه اوخوري) خو چه د هغه مقصد نه خوند حاصلول وي او نه هغه (د ضرورت) د حد نه زیاتې اوکړي نو په هغه باندې هیڅ ګناه نشته یقیناً الله ډیر بخښونکي ډیر مهربان دې.

## خلاصه تفسیر

پورته ئې د اکل طیبات معامله کښې د مشرکانو غلطئ خودل او ددې اصلاح مقصد وو ، وړاندې اهل ایمان ددې خبرې څخه خبرداروَل دی چې هغوئ دې په دې غلطئ کښې د مشرکانو موافقت نه کوي . هم په دې ضمن کښې اهل ایمان ته د انعاماتو ذکر او د شکر ادا کولو تعليم ورکړې شوې دې .

﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا﴾ اے دایمان خاوندانو [زمونږ دطرف نه تاسو ته اجازت دې چه دشریعت په وجه] ﴿كُلُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ﴾ کوم پاك څيزونه چه مونږ درکړی دی دهغې نه [چه څه غواړئی هغه] خورئی [استعمالوئی ئے] ﴿وَاشْكُرُوا لِلَّهِ﴾ او [دے اجازت سره دا حکم دې چې] دالله ﷻ شکر کوئی [په ژبه هم په لاسونو پښو هم چه خدمت او طاعتيئ په ځائې راوړی اوپه زړه سره هم چه دا نعمتونه دالله ﷻ ورکړه اوګنړئی] ﴿إِنْ كُنْتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ﴾ که تاسو خاص هغه سره دغلامئی تعلق لرئی [اودا تعلق منلے شوې دے اوښکاره دے نودشکر واجبيدل هم ثابت دی]

**د آيتونو تړون:** پورته خو ددې خبرې بيان وو چې حلال مه حراموئ، دې پسې روسته ددې خبرې ذکر کولې شی چې حرامو لره حلال مه ګنړئ، لکه څنګه چې مشرکان دې کښې اخته وو. لکه مردار څناور او داسې څناور چې د غيرالله په نوم باندې ذبح شوې وی، داسې څناور به مشرکانو خوړلو. ددې څخه منع کړې شوې ده . هم ددې مضمون په ضمن کښې ددې خبرې ذکر هم کړې شوې دې چې د الله ﷻ په نزد فلانې فلانې څناور حرام دې ، ددې څخه سوا نور څناورو لره دخپل طرفه حرام ګرځول غلطی ده.ددې څخه دړومبی [مخکښې] مضمون تائيد کيږی.

﴿إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنْزِيرِ﴾ الله ﷻ په تاسو صرف [هغه څيزونه] حرام کړی دی [او هغه څيزونه يئ نه دی حرام کړی چه تاسو دخپله ځانه حراموئی لکه څنګه چه تيرشو] مرداره [هغه ځاروے] چه ذبح کول يئ واجب وی [اوبيا هم بے دشرعی ذبح مړ شی] اووينه [چه بهيدونکے وی] اوغوښه دخنزير [دغه شان ددې ټولې برخے هم] ﴿وَمَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللَّهِ﴾ اوداسې ځاروی هم چه [په قصد د نزديکت] دغير الله ﷻ په نامه کړی شوی وی [داټول ئ بيشکه حرام کړی دی] ﴿فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَلَا عَادٍ﴾ بيا هم [په کښې دومره آسانی يې اينبے ده] چه څوك [دلوږے نه ډيرزيات] بےتابه شی په شرط ددې چه نه خو [په خوراك کښې] دخوند طلبګار وی اونه [دضرورت او حاجت داندازے نه] تيريدونکے وی نو [نوپه داسې حالت کښې ددې څيزونو په خوراك کښې هم] ﴿فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ﴾ په دغه کس څه ګناه نشته واقعی الله ﷻ لوئې غفور رحيم دے [چه په دې سے وخت کښې يئ دا رحمت اوکړو چه دګناه په څيزونو کښې يئ هم ګناه له مخې لرې کړه].

## معارف اومسائل

**دحلال خوړلوبرکت اودحراموخوړلوسپرتوب** :: قوله تعالى: ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُلُوا مِنْ طَيِّبَاتِ﴾ په تيرشوی آيت کښې څنګه چې دَحرام خوراک منع راغلې ده دغُه شان د حلالو پاکيزوٓ څيزو نو دَ خوړلو اوپه هغې دَشکرګذار کيدوشوق راپورته کول هم دی ځکه چې څنګه دَحرام خوراک نه کمينه اخلاق پيدا کيږی، دَعبادت خوندلاړشي، دُعانهٔ قبليږی دغه شان دَحلال خوراک نه يو نور پيدا کيږی، کمينه [رذيل] اخلاقونه کرکه اودښوا خلاقومينه پيدا کيږی، په عبادت کښې زړهٔ لګی، ګناه نه زړهٔ بوګنيږی او نفرت کوی، دُعاګانې قبليږی په دې وجه الله ﷻ ټولورسولانوته داهدايت کړې دې: ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ الرُّسُلُ كُلُوا مِنْ طَيِّبَاتِ﴾ اې پيغمبرانوزمونږ؛ تاسو پاکيزه څيزونه خورئ اونيک عمل کوئ. په دې کښې دې خبرې طرفته اشاره ده چې په نيک عمل کولو کښې حلال رزق ډيردخل لرى، دغه شان دَدعاپه قبليدو کښې حلال خوراک مددګارثابتيږی، اوحرام خوراک ئې دَقبليدو نه بندوی، رسول الله ﷺ فرمائيلی دی چې ډير خلق په اوږدوسفرونو کښې پريشان حاله دَالله په

وراندې دُعا دَپاره لاسونه پورته کړي اويارب يارب آوازونه کوي خوخوراک ئې حرام، څکاک ئې حرام، دَهغوئ غذا حرامه، په دې حالاتو کښې به ئې دُعا څنګه قبليدې شي؟ [صحيح مسلم، ترمذی، دابن کثيرنه] (١).

قوله تعالى: ﴿إِنَّمَا حَرَّمَ﴾ کلمه إِنَّمَا دَحصر دَپاره راځی څکه دَآيت مفهوم داکيږي چې،، الله ﷻ صرف هغه څيزونو حرام کړی دی چې ذکرئې راروان دې، دَدې نه سوا بل هيڅ حرام نهٔ دی، په دې آيت کښې خو په ﴿إِنَّمَا﴾ لفظ سره دې اړخ ته اشاره اوشوه او په بل آيت کښې دَدې نه زيات وضاحت سره داهم راغلی دی ﴿قُل لَّآ أَجِدُ فِى مَآ أُوحِىَ إِلَىَّ مُحَرَّمًا عَلَىٰ طَاعِمٍ﴾ په دې آيت کښې رسول الله ﷺ ته په خطاب کولو سره داحکم شوې دې چه،، ته اعلان اوکړه چې زماپه وحی کښې سِوادَدې څو څيزونونه چې ذکرئې وړاندې شوې دې بل هيڅ حرام نهٔ دی.

**يو اشکال او دهغې جواب**: خو په دې دااشکال دې چې په نوروقرآنی آيتونو او احاديثو نبوی کښې دَدغې څوڅيزونونه علاوه دَنوروډيروڅيزونو حراموالې ثابت دې نو داحصر اودَماسوانفی کول به څنګه درسته وی

جواب دادې چې دلته دَمطلق حلالوالی اوحراموالی بيان نهٔ دې بلکه دَهغه مخصوص ځاړؤو دَ حلالوالی اوحراموالی بيان دې چې دَهغې په باره کښې به دَمکې مشرکانو دَمشرکانه عقائدو غلطيانې کولې، په تيرشوی آيت کښې دَدې وضاحت تيرشوی دې چې ډيرحلال ځاروې به مشرکانو حرام ګنړل يابه ئې په خپل ځان حراموول، دَهغې مخالفت کړې شوې ؤو، دَهغې په مقابله کښې دلته دابسودلې شوې دی چې دَالله په نزدفلانی فلانی ځاروی حرام دی چې تاسو ترينه ځان نهٔ ساتئ اوکوم چې دَ الله ﷻ په نزدحلال دی تاسودَهغې نه پرهيزکوئ، په دې وجه دلته حَصرمُطلق نه دې بلکه حصراضافی دې هَغه حصرچه دَمشرکانه عقائدوپه مقابله کښې دې.

① ميتَـة [مُرداره] ② وينـه ③ دَخنزيرغوښه ④ هغـه ځاروې چې پـرې بانـدې دَغيـرالله نـوم اغستې شوې وی بيادَڅلورو واړوڅيزونونورتشريحات دَقرآن کَريم په نوروآيتونوآوپه صحيح احاديثو کښې راغلی دی چې دَهغې دَرايوځائې کولونه پس دَدې څلوروڅيزونواحکام دادی چې څه قدرې تفصيل سره ليکلې شي.

**ميتـه**:: پـه پښتو کښې ورتـه مُرداره وائـی، دې نـه مُراد هغـه ځاروې دې چې دَحلاليدودَپاره ئې شرعی ذبح کول ضروری خوهغه بغير دَذبح کولوپخپله مړشی، يا په مرئ [غاړه] خپه کيدوسره مړ شی، يادَڅه ګُذارخوړلو دَوجې مړشی نودامرداراوحرام دې، ليکن پخپله دَقرآن کريم دَبل آيت، ﴿أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ ٱلْبَحْرِ﴾ [٥: ٩٦] نه معلومه شوه چې دريابی ځناوردَپاره ذبح کول شرط نهٔ دی، هغه بې دَذبح کيدوهم روادې، په دې بناء په صحيح احاديثو کښې کَب [ماهی] اوموکَخ دَمُرداري نه مستثنی کړې شو اوپه دې شان بې دَذبح هم حلال اوګرځولې شو رسول الله ﷺ فرمائيلی دی مونږ لره دوه مرداري حلالې اوګرځولې شوي يوکَب اوبل مَلخ اودوه وينې [مونږدَپاره] حلالې اوګرځولې شوي کليجی [اينه] اوتورې [ابن کثيردَاحمد، ابن ماجه اودارقطنی نه] (٢).

---

١) صحيح مسلم، كتاب الزكاة، باب بيان أن اسم الصدقة: ١/ ٣٢٦، وجامع الترمذی، أبواب التفسير، ومن سورة البقرة: ٢/ ١٢٨

٢) سنن الدار قطنی، باب الصيد والذ بائح رقم الحديث: ٤٧٩٤ ، وابن ماجة، أبواب الصيد، باب صيد الحيتان والجراد:٢/ ٢٣٢، ومسند أحمد رقم الحديث:٥٤٦٥

دي نه معلومه شوه چې كَب او مُولح كه بغير ذبح هم په هرڅه شان مړشي بيا هم حلال دي. البته كه يو كَب دَ پړسيدو، دَ ډيدو او وسخا كيدو په وجه پخپله دَ اوبو سرته راوخيژي هغه حرام دې [جصاص](١)

داشان هغه دَ ښكار ځناورچه ذبح كول دَ پاره په قابو كښې ئې راوستل گران وي، په تيره، څوكې دار ځيزسره اوويشتې شي دغه وخت پرې "بسم الله" هم أوئيلې شي اوزخم پكښې جوړشي وينه تراوبهيږي نوبغيرد ذبح نه هم حلال دي، يواځې زخمي كيدل كافي نهٔ دي بلكه په تيره ځيزسره زخمي كيدل شرط دي.

**مسئله**: دَ توپک په گولئ لگيدلې ځناوركه زخمي شواو دَ زخمي كيدواو دَ ذبح كيدونه بغير مړ شو نو دَ هغې حكم دَ هغې ځناورپشان دې چې په لرگي ياكاڼړي ويشتلې شوې وي چې دَ قرآن كريم په يوبل آيت كښې ورته موقوذه وئيلې شوې دې اوحرام گرځولې شوې دې البته كه دَ مړكيدونه وړاندې ذبح كړې شي نوحلال به شي.

**مسئله**: نن صباد توپک ځنې گولئ څوكه دارې هم جوړې شوي دي، دَ دې په باره كښې ځنې علماء دا خيال لري چې داد غشي حكم كښې ده، مگر دَ جمهورو علماء رحمهم الله په نزد دا دَ غشي پشان ځيرې كوونكې اوپريكوونكې تيره آله نهٔ ده بلكه شلوونكې اوتكوونكې آله ده چې دَ بارودو په زور ورسره غوښه شليږي اوچوي، غوځيږي اوپريكيږي ورسره نهٔ، نو داسې ښكار هم بغير دَ ذبح كولونه روانهٔ دې.

**مسئله**: په تيرشوي آيت كښې مطلقًا مُرداره حرامه گرځولې شوې ده، نوځنگه چې غوښه خوړل ئې حرام دي دَ هغې خرڅول اوآغستل هم حرام دي ځنگه چې دَ نوروپليتواومرداروحكم دې چې خريدفروخت اونفع تړپورته كول هم حرام دي تردې چې مُردارځناورياڅه ناپاک ځيزپه خپل اختيارسره په بل څاروى باندې يامارغه خوړول هم حرام دي البته كه داسې ځائې كښې ئې كښيږدي چې پيشو ياسپې ئې پخپله تړاوخوري نوروادي مگرپه خپل اختيارپرِ خوړول ناروادي [جصاص، قرطبي وغيره](٢)

**مسئله**: په دې آيت كښې دَ مُردارې دَ حراميدو حكم عام معلوميږي چې پكښې دَ دې دَ بدن ټولې برخې شاملې دي ليكن هركله چې په آيت كښې ئې تشريح شوې ده ﴿طَاعِمٍ يَطْعَمُهُ﴾ نو معلومه شوه چې دَ مُردارې دَ بدن هغه برخې حرامې دي چې دَ خوراک جوگه دي، هډوكي، ويښتهٔ، دَ خوراک ځيزونه نهٔ دي، ځكه پاک دي او استعمال ئې روادې.

چنانچه دَ قرآن كريم په دې آيت ﴿وَمِنْ أَصْوَافِهَا وَأَوْبَارِهَا وَأَشْعَارِهَا أَثَاثًا وَمَتَاعًا إِلَىٰ حِينٍ﴾ كښې دَ ځناورو دَ ويښتونه فائده اغستل مطلقًا رواگرځولې شوي دي چې پكښې دَ ذبح كولو شرط نهٔ دې لگولې شوې [جصاص](٣)

---

(١) أحكام القرآن للجصاص: ١/ ١٠٧ نه ١٠٩ پورې.
(٢) أحكام القرآن للجصاص، باب جلود الميتة اذا دبغت : ١/ ١١٧
(٣) أحكام القرآن للجصاص، باب شعر الميتة وصوفها: ١/ ١٢١

هر کله چې په څرمنه دوینې وغیره پلیتی لګیدلی وی څکه درنګولو، پخولونه وړاندې ئې استعمال حرام دې مګردرنګولونه پس حلال او روادې په صحیح احادیثو کښې ددې نوره تشریح موجود ده. [جصاص].

**مسئله**: دمُردار څناوروازګه اودهغې نه جوړشوی څیزونه هم حرام دی چې استعمال ئې په هیڅ شان سره جائزنهٔ دې، خرید او فروخت ئې هم ناروادې.

**مسئله**: دیُورپ نه راغلی هغه څیزونه چې وازګه پکښې استعمالیږی لکه صابون وغیره شو نواحتیاط په دې کښې دې چې دې نه ځان اوساتلې شی مګر په دې وجه پکښې داستعمال درواوالی ګنجائش شته چې کیدې شی دیکښې اچولې شوې واز ګه دمرداری نهٔ وی اوپه دې وجه هم چې ځنې صحابه کرامو رضی الله عنهم لکه ابن عمر رضی الله عنه، ابوسعید خُدری رضی الله عنه، ابوموسی اشعری رضی الله عنه د مرداری دوازګې صرف خوړلودپاره استعمالول حرام ګرځولی دی، دخارجی استعمال اجازت ئې ورکړې دې اوهم دغې وجې ئې ددې خرید وفروخت هم رواګرځولې دې [جصاص][1]

**مسئله**: دپئیو [شیدو] نه پنیر جوړولو کښې یو څیزاستعمالیږی چې په عربی ژبه کښې ورته ،،انفحه،، وئیلې شی دادڅاروی دخیتې نه راوُښکې [راایستلې] شی چې پئیو [شیدو] کښې واچولې شی ورسره پئ چکه [ختیه] شی، اوس که دغه څاروی د الله ﷻ په نوم باند ذبح کړې شوې وی نوددې په استعمالولو کښې هیڅ بدیت او بدوالئ نشته، دذبح شوی څاروی غوښه، وازګه وغیره استعمالول حلال دی لیکن دغیرذبح کړی شوی څاروی دخیتې نه راوُښکلې [راایستلې] څیزکښې دفقهاؤ اختلاف دې، امام ابوحنیفه رحمه الله اوامام مالک رحمه الله داپاک بولی، لیکن صاحبین [امام ابویوسف رحمه الله، امام محمد رحمه الله] اوسفیان ثوری رحمه الله وغیره ئې ناپاک بولی [جصاص، قرطبی][2]

دیورپ اونورغیراسلامی ملکونونه تیارجوړکړې کوم پنیر چې راځی په دې کښې دغیرذبح شوی څاروی ،،انفحه،، اچولوغالب احتمال دې نوجمهورفقهاء وائ چې دې نه ځان ساتل پکاردی، دامام ابوحنیفه رحمه الله اودامام مالک رحمه الله په قول پکښې هم ګنجائش شته، البته دیورپ نه راغلی پنیرونو کښې ځنې پنیرونه داسې هم وی چې پکښې دخنزیر وازده استعمالیږی چې دهغې په ډبی [د وبلې] ئې هم لیکلی وی نودا قطعاً حرام اوپلیت دې.

**وینه**: په دې آیت کښې بل حرام ګرځولې څیزوینه ده. ددم لفظ چې د وینه معنی لری، په دې آیت کښې اګرچه مطلق دې، مګرد سورت انعام په ایت کښې ورسره دمسفوح [بهیدونکی] شرط لګولې شوې دې لکه فرمائ ﴿أَوْدَمًا مَّسْفُوحًا﴾ نو ځکه چکه وینه لکه اینه [کلیجی] ،پښتورګی اوتورې وغیره حلال اوپاک دی.

**مسئله**: هرکله چې یواځې بهیدونکی وینه حرامه ده نوډذبح نه پس په غوښې پورې لګیدلې وینه پاکه ده، چنانچه دصحابه کرامو رضی الله عنهم، تابعینو رحمهم الله دفقهاؤ اودامت ټولو په دې اتفاق د ې، داشان دماشی، مچ اوکتمل وینه هم ناپاکه نهٔ ده خوکه زیات شی نو وینځل ئې پکاردی [جصاص][3]

---

[1] ) أحكام القرآن للجصاص، باب شعر الميتة وصوفها: ١/ ١٢١

[2] ) أحكام القرآن للجصاص، باب منفحة الميتة ولبنها: ١/ ١١٩، ١٢٠

[3] ) أحكام القرآن للجصاص، باب تحريم الديم: ١/ ١٢٣

**مسئله** څنګه چې دوینې خوراک څکاک حرام دې دغه شان خارجي استعمال ئې هم حرام دې .او څنګه چې دټولو پلیتو ،خرید اوفروخت اودې نه نفع پورته کول حرام دی دغه شان دوینې خرید وفروخت اودې نه حاصله شوې ګټه هم حرامه ده چې داستعمال ټول صورتونه پکښې شامل دی.

**پورنقورته دبل چا دوینې څيزولو او لپولو مسئله:** ددې مسئلې تحقیق دادې چې دبنیادم وینه دهغه دبدن برخه ده اوچه بدن نه راوښکلې [ارا اویستلې] شی نوپلیته هم ده .ددې اصل تقاضی خوداده چې دیوانسان وینه دبل انسان په بدن کښې ننویستل ددوؤوجهونه حرامه شی.یوددې وجهې نه چې دانسانی اندامونواحترام واجب د ي اوداهغې نه خلاف دی،بله ددې وجهې نه چې وینه سخته پلیتی ده اودپلیت څیزونو استعمال ناروادې.

لیکن دمجبورۍ په حالاتو اوعاموعلاجونوکښې دشریعت په ورکړې سهولتونوکښې غورکولونه داڅیزونه ثابتیږي:یوداچه وینه اګرچه دانسانی بدن یوه برخه ده لیکن دادبل یوانسان په بدن کښې چې منتقل کولې شی نوپه انسانی اندامونوکښې دپریکولواوپریشن وغیره ضرورت نه راپیښیږي دانجکشن په ذریعه تروینه راوښکلې شی اودبل انسان په بدن کښې وردننه کولې شی نوددې مثال دپیو[شیدو]پشان شوچه دیوانسان دبدن نه بغیردڅه پریکولو اواپریشن نه راوښکلې اودبل انسان بدن کښې داخلیدوسره دهغه دبدن برخه جوړیږي او اسلامی شریعت دماشوم دضرورت په خاطر انسانی پئ دماشوم غذاجوړه کړې ده،په خپلې مورئې ماشوم ته ئې ورکول واجب اوګرځول ترڅوچه دادماشوم دپلار په نکاح کښې وی طلاقیدونه پس ئې مورته په تی ورکولونشی مجبوره کولې ماشومانودپاره دروزئ انتظام کول دپلارذمه واری ده هغه دبلې ښځې په ذریعه ورد پاره دپیوورکولو انتظام کوی یاهم دماشوم مورته عوض او معاوضه ورکولوسره ماشوم دپاره دهغې پئ حاصل کړی،په قرآن کریم کښې ددې په ډاګه داسې بیان شوې دې:

﴿فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ﴾ که ستاسو طلاقه کړې ښځه ستاسوماشومانوته تې ورکول غواړی نوورته دهغې أجرت اوعوضانه ورکوئ.

خُلاصه دخبرې داده چې ماشومانوته دضرورت په خاطر دښځې دپیوورکولواجازت ورکړې شوې دې اودعلاج په ډول لویوته هم دجُزء دانسان ورکولواجازت دې لکه عالمګیری کښې دی: ﴿ولابأس بأن يسعط الرجل بلبن المرأة ويشربه للدواء[عالمګیری ص/۴]﴾(۱)

په دې کښې څه پاک نشته چې ددارو او د وا په ډول دسړی په پوزه کښې دښځې پئ ناشې کړی واچوی یائې ددوایئ په ډول اوڅکی .اوپه مغنی دابن قدامه کښې ددې مسئلې مزید تفصیل ذکرشوې دې [مُغنی،کتاب الصید ص۶۰۲ج۸]

که وینه په پیوقیاس کړې شی نوداخه لرې خبره نهٔ ده څکه چې پئ هم دوینې نه بدل شوې صورت دې اودواړه دانسان دبدن برخه هم دی،صرف دومره قدری خبره ده چې وینه ناپاکه اوپئ پاک دی اودیوانسان دبدن دجُزء کیدوپه وجه دبل انسان بدن ته ئې داخلول منع پاتې نشودپاکئ اوپلیتئ مسئله بیله خبره ده،چنانچه دعلاج اودارو په غرض،څنې فقهاؤدوینې

(۱) عالمګیری، کتاب الکراهیة، باب فی التداوی: ۵/ ۳۵۵

دَاستعمال هم اجازت ورکړې دې.

په دغې بِنا دَانساني وينې دَبل انسان بدن ته ورځيژول [لګول] ، دَشريعت له مخې په عامو حالاتو کښې خوبه روانه وي خو دَعلاج اودارو په ډول دَمجبورئ په حالت کښې [دواء] ددې استعمال بې دَڅه شُبهې نه روادي. دَمجبورئ حالت مثلاً دادې چې دَرنځور دَځان تلو خطره وي او بله څه دوائ دَهغه دَځان بچ کولو دَپاره ياخوبې اثره وي اويا دَسره پيدا کيږي نه خو داده چې وينې ورکولو سره دَهغه ځان بچ کيدو غالب ګمان کيدې شي، په دې شرطونو وينه ورکول دَهغه قرآنی نص له مخه روادی چې پکښې دَيو مجبور انسان دَپاره دَخپل ځان دَمرګ نه دَساتلو اجازت په ډاګه ذکرشوې دې که دَمجبورئ حالت نهٔ وي يانوردارو ګان [دوايانې] هم کارولې شي نو په داسې حالت کښې دې مسئله کښې دَفقهاؤ اختلاف دې، ځنې ئې جائزاوځنې ئې ناجائز بولي چې تفصيل ئې دَفقهې په کتابونو کښې، دَ[تداوي بالمحرم] په بحث کښې ذکر شويدې [والله سبحانه، تعالی أعلم]. دَاحقريوره ساله هم په دې موضوع شائع شويده، نوم ئې دې، ،اعضائې انسانی کی پيوند کاری، ،.

**دَخنزيرحرامول:** درېم ځيزچه په دې آيت کښې حرام کړې شوې دې هغه غوښه دَخنزير ده اګرچه په آيت کښې غوښه دَخنزير حرامه ګرځولې شوې ده، ليکن امام قرطبی رحمه الله فرمائ چې دې نه مقصود دَغوښې تخصيص نهٔ دې بلکه دَدې ټول هرڅه مراددي يعنی هډوکي، څرمن، ويښته، پلي وغيره ټول په اجماع د اُمت سره حرام دی ليکن دې سره دَلحم [غوښې] دَقيد لګولو سره دې ته اشاره شوې ده چې خنزير دَنورو حرامو ځناور پشان نهٔ دې چې هغه په ذبح کولو سره پاکيدې شي اګرچه خوراک ئې حرام پاتې شي چې دَخنزير غوښه په ذبح کولو سره هم نهٔ رواکيږي، ولې چې دانجس العين هم دې اوحرام هم، صرف دَڅرمنې ګنډلو دَپاره ئې دَويښتو استعمال په حديث کښې روابللې دې. [جصاص، قرطبی] (١)

**قوله تعالی: ﴿وَمَآ أُهِلَّ بِهِۦ لِغَيْرِ ٱللَّهِ﴾] ددې صورتونه:** په آيت کښې دَحرام ګرځولې شوؤځيزونو ځنې څلورم ځيز هغه ځاروې دې چې دَغير الله په نوم ګرځولې شوی وی دَدې درې صورتونه خلقو کښې رواج لرلو. يو داچه څه ځاروې، غير الله ته دَنزديکت په غرض ذبح کړې شی اودَذبح کولو په وخت پرهم دَدغه غير الله نوم اغستې شی داصورت دَاُمت په اتفاق او اجماع سره حرام دې، داځاروې يو مرداره ده چې دَبدن هرې برخې نه ئې فائده اغستل بيخې نارواده، ځکه چې داسورت دَ﴿وَمَآ أُهِلَّ بِهِۦ لِغَيْرِ ٱللَّهِ﴾ ښکاره مدلول دې چې هيڅ اختلاف پکښې دَچانشته ،

بل صورت دادې چې څه ځاروې غير الله ته دَنزديکت په غرض ذبح کړې شي، يعنې وينې تويولو نه ئې مقصود دَغير الله نزديکت حاصلول دی خو دَذبح په وخت پرد الله نوم اغستې شوې وی، ځنګه چې ناخبره مسلمانان، دَپيرانو ،بزرګانو په نوم دهغوئ دَخوشحالئ حاصلولو دَپاره، چيلی [بزی] اوچرګې وغيره ذبح کوی ليکن دَذبح کولو په وخت پرهم دَ الله ﷻ نوم اخلی ،داصورت هم په اتفاق دَفقهاؤ سره حرام دې اودغسې ذبح کړې شوې ځاروې مرداره دې.

البته دَدې په دليل راؤښکلو [راايستلو] کښې څه اختلاف شته، ځنو مفسرينو حضراتو او فقهاؤ دا هم دَ ﴿وَمَآ أُهِلَّ بِهِۦ لِغَيْرِ ٱللَّهِ﴾ ښکاره مدلول ګرځولې دې دې لکه دَبيضاوې په حواشی کښې دی:

---

(١) أحکام القرآن للجصاص، باب تحريم الخنزير: ١/ ١٢٤

[فكل ما نودي عليه بغير اسم الله فهو حرام وان ذبح باسم الله تعالى حيث اجمع العلماء لو ان مسلما ذبح ذبيحة و قصد بذبحه التقرب الى غير الله صار مرتد و ذبيحة وذبيحة مرتد] هر هغه ځاروي چې دَغير الله په نوم کړې شي هغه حرام دي اګرچه په وخت دَذبح پرصرف دَ الله ﷻ نوم اغستې شوې وي ځکه چې فقهاؤ علماؤ په دې خبره اتفاق کړيدې که څه ځاروي دَغير الله دنزديکت په خاطر څوک مسلمان ذبح کړي نو هغه مرتد شو او دغه ذبح شوې ځاروې به دَمرتد ذبح شوي ځاروې وي.

هم داشان دَدُر مختار په ،، کتاب الذبائح ،، کښې دی. [ذبح لقدوم الامير ونحوه كواحد من العظماء يحرم لانه اهل به لغير الله لو ذكر اسم الله واقره الشامى ص/۲۰۳ج/۵] ([1]) که دَيو امير يا دَبل يو لوئي سړي په راتلوئي څه ځاروې ذبح کړونو حرام به ځکه وی چې دَغير الله نه بغير دَبل چا په نوم کړې شوې دې اګرچه دَذبح په وخت پرِ دَالله نوم واغستې شی او شامی دَدې تائيد کړې دې. [[2]]

او څنو حضراتو دې صورت لره اګر چې دَ ﴿وَمَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ﴾ ښکاره مدلول خو په دې وجه جوړنه کړو چې دَعربيت په حيثيت سره دادتکلف نه خالي نه دې مګر دَعلت دَاشتراک په وجه چې دې کښې هم غير الله ته دَنزديکت حاصلولو نيت دې اداځې هم د ﴿وَمَآ اُهِلَّ بِهٖ لِغَيۡرِ اللّٰهِ﴾ سره اوتړلو او حرام ئې اوګرځولو. دَاحقر په نزد داوجه ډيره دَاحتياط او سلامتئ ده چنانچه دَدې صورت دَحرام والی دَپاره يو مستقل آيت هم دليل دې يعنی ﴿وَمَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ﴾ نُصب، هغه تولو څيزونو ته وئيلې شی چې په باطله توګه ئې عبادت کولې شی، معنی ئې داده چې هغه ځاروې چې دَباطلو معبودانو دَپاره ذبح کړې شوی وی دَدې نه وړاندې دَ،، [﴿وَمَآ اُهِلَّ بِهٖ لِغَيۡرِ اللّٰهِ﴾ ذکر دې هغې نه دا معلوميږی چې ﴿عَلَى النُّصُبِ﴾ ښکاره مدلول خو هغه ځاروې دې چې دَذبح په وخت دَغير الله نوم پرې باندې واغستې شی ﴿ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ﴾ دَهغې په مقابله کښې راغلی دې چې دَغير الله دَنوم اغستو ذکر پکښې نشته صرف دَبتانو دَخوشحالو په نيت ترِ ذبح کول مراددی، په دې کښې هغه ځاروی هم داخل دی چې دَغير الله دنزديکت دَپاره ذبح کړې شوی وی ليکن په وخت دَذبح پرِ دَالله نوم اغستې شوې وی [زما دَشيخ حکيم الامت افاده].

امام قرطبي په خپل تفسير کښې هم داخبره غوره ګرځولې ده، عبارت ئې دا دې: [وجرت عادة العرب بالصياح باسم المقصود بالذبيحة وغلب ذالك فى استعمالهم حتى عبربه عن النية التى هى علة التحريم]

---

[1] ) الدر المختار: ٦/ ٣٠٩

[2] ] ددې مطلب دادې چې که صرف د ذبح دعمل سره د يو لوئي سړي تعظيم مقصود وی نو دا حرام دی. خو که مقصد يې ملمستيا وی نو دې ملمستيا دپاره ورلره څناور ذبح کوی ، يعنی ددې غوښه په ميلمه باندې خوړول مقصود وی او صرف د ذبح عمل سره تعظيم کول مقصود نه دی نو دا ضيافت سنت دې او جائز دی. او دواړو صورتونو کښې فرق دادې چې دويم صورت کښې د ميلمستيا دپاره غوښه حاصلول مقصود دی او اول صورت کښې د تعظيم د علامت په طور څناور ذبح کول مقصود وی. ددې څخه سوا چې ددې غوښه به خوړلې شی که نه؟ نو درمختار کښې وړاندې ددې وضاحت کړې شوی دې چې [ولو ذبح للضيف لا يحرم لانه سنة الخليل واكرام الضيف اكرام الله تعالى ، والفارق انه ان قدمها لياكل منها كان الذبح لله والمنفعة للضيف او للوليمة او للربح وان لم يقدمها لياكل منها بل يدفعها لغيره كان لتعظيم غير الله فتحرم] علامه شامی رحمه الله ددې شرح کښې نور هم وضاحت کړې دې [رد المحتار ص/۳۰۹، ۳۱۰ ج/۶] محمد تقی عثمانی ۲۷ ذيقعده ۱۴۱۲ هجری.

[تفسیر قرطبي ص/۲۰۷ ج/۲] (۱) دعربو عادت داؤوچه دچاپه خاطر به ئې څه څاروي ذبح کول مقصود ؤونو دذبح په وخت به ئې دهغه نوم په زوره وئیلو اودارواج پکښې عام ؤوتردي چې په دي سره ئې دهغې نیت نه تعبیر اوکړو کوم چې دحرامولو علت دي.

امام قرطبي دخپل دي تحقیق بنیاد دصحابه کرامو ﷺ څنې ددؤو حضراتو، علي المرتضی ﷺ او د حضرت عائشه صدیقه ﷺ په فتاوو ایښي دي.

دحضرت علي کرم الله وجهه په زمانه کښې دفرزدق شاعر پلار غالب یو اوښ ذبح کړې ؤوچه پر دهیځ غیر الله دنوم اغستو ذکر نشته، مګر حضرت علي کرم الله وجهه داهم په ﴿وَمَآ أُهِلَّ بِهِۦ لِغَيۡرِ ٱللَّهِۖ﴾ کښې داخل اوګرځولو او حرام ئې اوبللو، چه ټولو صحابه کرامو ﷺ داخبره قبوله کړه. داشان امام مسلم دشیخ یحیی په سند سره دحضرت عائشې ﷺ یو اوږد حدیث نقل کړیدي چې دهغې په آخر کښې دی چې یوې ښځې دحضرت عائشه صدیقه ﷺ نه سوال اوکړو چه اُم المؤمنین؛ زمونږ څو رضاعی خپلوان عجمی خلق دی ددغه خلقو هره ورځ څه ناڅه د تهوار ورځ وی، هغوئ ددغه ورځوڅه ډالئ زمونږ خواته هم رالیږی هغه مونږ خوروا وکه نه

نو حضرت عائشې صدیقې ﷺ ورته اوفرمائیل: [اما ما ذبح لذالك اليوم فلا تاكلوا ولكن كلوا من اشجارهم] [تفسیر قرطبی ص/۲۰۷ ج/۲] چه کوم څاروي ددغه نمانځلي ورځې په خاطر ذبح کړې شوي وی هغه مه خورئ، لیکن خورئ دهغوئ داونو [درختو] نه.

غرض داچه دادویم صورت، چه پکښې نزدیکت دغیر الله مرادوی مګر دذبح په وخت د الله ﷻ نوم واغستې شی نوداخوپه دي وجه د ﴿وَمَآ أُهِلَّ بِهِۦ لِغَيۡرِ ٱللَّهِۖ﴾ په حکم کښې داخل دي چې پکښې غیر الله ته دنزدیکت نیت شوي دي او علت کښې ورسره شریک دي.

بله داچه د ﴿وَمَا ذُبِحَ عَلَى ٱلنُّصُبِ﴾ مدلول هُم دي، په دي وجه داهم حرامه شو.

دریم صورت دادي چې دیو څاروی غوږ پریکړې شی یا بل څه نخښه پر اولګولي شی او غیر الله ته دنزدیکت په غرض یا دغیر الله دتعظیم په خاطر پریښوول شی، څه کار ترهم نه اخلی او نه ئې دذبح کولو قصد وی بلکه ذبح کول ئې حرام اوګڼړی، دغه څاروي په ﴿وَمَآ أُهِلَّ بِهِۦ لِغَيۡرِ ٱللَّهِۖ﴾ او ﴿وَمَا ذُبِحَ عَلَى ٱلنُّصُبِ﴾ دواړو کښې داخل نه دي، بلکه دي ته بحیره یا سائبه وئیلي شی، حکم ئې دادي چې دا فعل خود قرآن په نص سره حرام دي لکه په آیت ﴿مَا جَعَلَ ٱللَّهُ مِنۢ بَحِيرَةٖ وَلَا سَآئِبَةٖ﴾ کښې به انشاء الله ﷻ راشي.

خوبیا هم ددې حرام عمل، اوددغه څاروی دحرام ګڼړلو دعقیدې لرلوله کبله دغه څاروي حرام نه دي بلکه که دا حرام اوګڼړلې شی نوورسره ددغه باطلې عقیدې تائید او مضبوطیا راځی. څکه دغه څاروي دعامو څارؤو پشان حلال دي. البته دشرعی اصولو مطابق دغه څاروي دخپل مالک دملک نه نه وُځی، اګر چې دده غلطه عقیده داوی چې دا زما دملک نه وتلې دي او غیر الله دپاره وقف شوي دي، داعقیده باطله ده او څاروي هم هغه شان دهغه په ملک کښې دي.

اوس که پخپله دغه کس دغه قسم څاروي خرڅوي یا ئې چاته هبه کوي [بخښي ئې] نو دا څاروي ده دپاره حلال دي لکه چې ډیر هندوان دخپلو معبودانو په نوم، چیلئ غوا وغیره دخپله جانبه وقف کولو سره خوشې کړی، اودد رمسالونو بامبرانو جوګیانو [منجاوارانو] وغیره ته

(۱) ۲/ ۲۲٤

دَهغې اختيار ورکړي او بيا داسې هم اوشي چې دغه خلق ئې بيا په مسلمانانو خرڅوي.
يـا ځنې جاهـل مـسلمانان هم پـه ځنـې زيارتونو بانـدې دغـسې عملونـه کـوي چې چرګـه ، چرګـوړې، ګـډه چيلـئ خوشـې پريـږدي او دغـه زيارتونو منجورانو تـه دَهغـې اختيـار ورکړي او هغوى ئې خرڅ کړي نو ددې اغستل ،ذبح کول، خوړل او خرڅول وغيره هرڅه حلال دى.

**دَغيرالله په نوم دمنتې [نـذر] مسئله:** دلتـه څلورم صورت يو بـل هم دې چې تعلق ئې دَحيواناتونـه عـلاوه نورو څيزونو سره دې مثلاً مِتهـائ خوړل وغيره ،چه دَغيـرالله پـه نوم دَ نـذر پـه توګـه ئې هندوان او جاهل مسلمانان دبزرګانو دَزيارتونو او قبرونو پـه نوم منى ،فقهائې کرامو ﷭ دې لره هم دَعلت دَاشتراک [غيرالله ته دنزديکت] په وجه دَ ﴿وَمَآ اُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰهِ﴾ په حکم کښې راوستې ده او حرام ئې ورته وئيلى دى. دَدې خوړل، څکل په بل باندې ئې خوړول او خرڅول او اغستل ټول ئې حرام ګرځولى دى ،دَفقهې په کتابونو ،البحرالرائق[۱] وغيره کښې دَدې تفصيلات بيان شوى دى دا يو قياسى مسئله ده چې دَحيواناتو متعلق پـه قرآنى نص باندِ قياس کړې شوې ده [والله سبحانه وتعالى اعلم]

**دېې وسې او مجبورئ احکام:** پـه تيرشوى آيت کښې دَځلورقسمه څيزونو دَحرام ګرځولـو نـه پس يو استثنائ حکم ذکر کړې شوې دې: **قوله تعالى:** ﴿فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ په دې حکم کښې دومره آسانى کړې شوې ده چې څوک دَلوږې لـه کبله بې تابه او بې توانه شى نو پـه داسې حالت کښې دَدغـه حرامو څيزونو نـه پـه خوړلو څکلو هم ،دغـه کس تـه ګناه نشته بيشکه الله ﷻ لوئې غفوررحيم دې، خوشرط او دادې چې ددې پـه خوراک څکاک مزې نـهٔ اخلى او نه دَ ضرورت دَاندازې نه به پرې تجاوز نه کوى

**مضطرب څوک دې؟** پـه دې کښې دَمضطردَپاره دَځان بچ کولو پـه غرض ،دوؤشرطونو سره دَدغې حرامو څيزونو دَ خوراک نه هم ګناه پورته کړې شوې ده ،مضطرپه شرعى اصطلاح کښې داسې کَس تـه وئيلې شې چې ځان ئې پـه خطره کښې وى. کـه ضرورت يـا تکليف ئې معمولى وى نو مضطر ورته نشى وئيلې نو څوک چې دَلوږې دَکبلـه داسې حالت تـه اورسى چې کـه څـه اونـهٔ خورى نو ځان به ئې ختم شى نو پـه دوؤشرطونو سره دَدغې حرامو څيزونو دَخوړلو اجازت ورکړې شوې دې. يو دا چه مقصود ئې ضرف ځان بچ کول وى، څه خوندمزه پر اغستل نهٔ وى مقصود ،دويم شرط دادې چه پـه دومره اندازې سره دئې خورى چې دَځان بچ کولو دَپاره کافى وى، پـه مړه ګيډه خوړل، يا دَ ضرورت نه زيات اندازې سَره ئې خوړل دغه وخت هم حرام دى.

**اهمه فائده:** دلته قرآن کريم دَاضطرار پـه حالت کښې هم دَحرامو څيزونو خوړل حلال اونـهٔ ګرځول بلکه داسې ئې اوفرمائيل: ﴿فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ﴾ ددې مطلب دادې چې دا څيزونـه اوس هم پـه خپل ځائې حرام دى خودَاضطرار لـه کبلـه دَحرامو دَاستعمالولو ګناه معاف کړې شوه پـه حلاليدو او معاف کيدو کښې ډيرفرق دې کـه پـه اضطرارى حالت کښې دَدې څيزونو حلالول مقصود وې نو دَحرمت نـه بـه صرف استثنا کول کافى ؤو خو دلته ئې استثنا دَسره اونـهٔ کـړه بلکـه دَهغې پـه ځائې ئې دَ ، ، ﴿فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ﴾ اضافه اوکړه او دې نکتې ته ئې اشاره اوکړه چې حرام خو پـه خپل ځائې حرام پاتې دى چې استعمال ئې ګناه ده خو دَمضطر نه ئې ګناه معاف کړې شوه.

[۱] البحر الرائق، کتاب الذبائح: ٦/ ٤٥٣

**داضطرار په حالت کښې دوايئ په ډول دحرامو څيزونو استعمال:** دتيرشوی آيت نه دا هم ثابته شوه چې دځاځان په خطره کښې وی هغه دځپل ځان بچ کولو دپاره ددارو [دواء] په توګه حرام څيز استعمالولې شی خو ددغې آيت داشارې نه په دې کښې څو شرطونه معلومېږی. يو داچه حالت داضطراروی، دځان د تلو خطره ئې وی، دمعمولی بيمارئ داحکم نهٔ دې بلـه داچه سوادحرام څيزنه بل څه څيزدعلاج اودارو په توګه هيڅ اثرنهٔ لری، يابل علاج يابلـه دوائ دسره موجوده نهٔ وی، لکه دسختې لوږې په حالت کښې استثنا هغه وخت ده چې بل يو حلال څيز دخوړلو ياخودسره موجودنهٔ وی، يادهغې حاصلول دبيمارپه توفيق کښې نهٔ وی، دريمه داچه ددغه حرام څيزپه استعمالولو سره ځان بچ کيدل يقينی وی لکه چې مضطردپاره دحرامې غوښې خوړل عادتاً دهغه دځان بچ کولو يقينی سامان وی اوکه داروپه داسې شان ؤوچه استعمالول ئې مفيدښکاريدل خو پرشفاء حاصلول يقينی نه ؤو، نودغه حرام دارو [دواء] په استثنائ حکم د دغه آيت کښې به داخل نهٔوی، يعنی استعمال به ئې روانهٔ وی بلکه دوه شرطونه په آيت قرآنی کښې په ښکاره ډول لګولې شوی دی چې خوند اغستل پرمقصود نهٔ وی اودضرورت نه په زيات مقدار کښې دنهٔ استعمالوی.

دتيرشوی آيت دتصريح او اشارونه چې کوم قيدونه اوشرطونه حاصل شو، دغې شرطونو سره د هر حرام اوناپاک څيزاستعمالول دامت دفقهاؤپه اتفاق سره روادی خواه دغه دارو دخوراک څکاک وی يادبهرنی [بدن] استعمال دپاره وی چنانچه ددغه شرطونو خلاصه پنځه څيزونه [شيان] دی. ① داضطرار حالت وی يعنی دځان تلو خطره وی ② بل يو حلال دارو [دواء] بې اثره وی يادسره موجودنهٔ وی ③ دمرض لرې کيدل پرعادتاً يقينی وی ④ خوند حاصلول ئې ترمقصود نهٔ وی ⑤ دضرورت نه زيات مقدار کښې دا نشی استعمالولې.

**غيراضطراری حالت کښې عام علاج اودارو دپاره دحرام څيزاستعمال:** داضطرار [مجبورتيا] دحالت مسئله خوپه ذکرشووشرطونو سره دقرآن کريم دنص نه ثابته شوې مسئله او اجماعی حکم دې ليکن په عامو بيمارو کښې هم دڅه ناپاکې اوحرامې دوايئ استعمال روادې اوکه نهٔ؟ په دې مسئله کښې دفقهاؤ اختلاف دې اکثرو فقهاؤ فرمائيلی دی چې بغير داضطرار اودهغې شرطونو نه چې وړاندې ذکرشوی دی، دحرامو داروګانو [دوايانو] استعمال روانهٔ دې ځکه چې په حديث کښې درسول الله ﷺ ارشاد دې چې الله ﷻ دمؤمنانو دپاره په حرامو کښې شفانهٔ ده ايښې [بخاری شريف] (۱).

ځنې فقهاء کرام ﷺ دحديث شريف ديوې خاصې واقعې نه دليل نيسی اوروائې ګنړی چې واقعه دعرنيينو ده، دحديث شريف په ټولو کتابونو کښې ذکرشويدی چې دکلو [صحراء] څه خلق درسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضرشو چه مختلفو رنځونو کښې اخته ؤو، نبی کريم ﷺ ورته داوښانو دپيو اومتيازو څکلو اجازت ورکړوچه په هغې سره روغ شو (۲).

ليکن په دې واقعې کښې ګڼر احتمالونه دی چې دهغې په وجه دحرام څيزاستعمالول مشکوک کيږی، په دې وجه اصل حکم دادې چې په عامو مرضونو کښې ترڅوچه دمجبورتيا

---

۱) صحيح البخاری، کتاب الأشربة، باب شراب الحلو او العسل: ۲/ ۸۴۰

۲) صحيح البخاری، کتاب المحاربين، باب لم يشق المرتدون: ۲/ ۱۰۰۵

ذکرشوی شرطونه موجودنهٔ وی ترهغې پورې دَحرامو داروګانو دَډیروالي دَعامي ابتلاء اودَعوامو دکمزورتیاله کبله په دې شرط اجازت ورکړې دې چې بله حلاله اوپاکه دوائ دَدې مرض دَپاره مؤثره یادَسره موجوده نهٔ وی.

[کمافی الدرالمختار قبیل فصل البیراختلف فی التداوي بالمحرم وظاهر المذهب المنع کمافی رضاع البحر ولکن نقل المصنف ثم وههنا عن الحاوي قیل یرخص اذاعلم فیه الشفاء ولم یعلم دواء اخرکمارخص فی الخمر للعطشان وعلیه الفتوی() ومثله فی العالمگیریه] ([۲]) دُرمختارکښې دَفصل دَبئر نه وړاندې ذکر شویدي چې دَحرامو څیزونو په استعمال کښې په طوردَداروسره اختلاف دې اوپه ظاهر مذهب کښې دَدې نه منع کړې شوې ده لکه چې دَ البحرالرئق په کتاب الرضاع کښې ذکردی لیکن دَتنویرالابصار مصنف په دغه ځائې کښې اوپه رضاع کښې هم دَحاوی قدسی نه نقل کړې دی چې بعضې علماء فرمائی چې دَحرامو څیزونو استعمال دَداروپه توګه هله روادی چې دَدغه دارو[دوایانو] په استعمال سره شفامونَدل یقیني وی،اوبله حلاله دوائ دغه کارنشی کولې لکه څنګه چې تږي دَپاره دشرابودَیو غړپ کولو اجازت دې په دې فتوی ده اوهم دغه شان خبره دَعالمګیری دَجلد ۵ په مخ ۳۵۵ باندې شته

مسئله:په دې تفصیل سره دَهغه داروګانوحکم معلوم شوچه دَیورپ نه راځي اوپکښې دَشرابو وغیره پلیتوڅیزونوګډون معلوم اویقیني وی اودَهغه داروګانوحکم ترمعلوم شوچه پکښې دَحراموونا پاکوڅیزونوګډون شکي وی. والله سبحانه وتعالي اعلم.

| اِنَّ الَّذِيْنَ يَكْتُمُوْنَ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ الْكِتٰبِ وَيَشْتَرُوْنَ بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا |
| --- |
| بیشکه هغه کسان چې پټوی هغه چې نازل کړې دي الله چه کتاب دي اواخلی په هغې باندې بیسې لږې |
| خوک چې دالله رالیږلې شوې کتاب پټوی [د دې مسائل] ([۲])....اوپدې باندې لږ قیمت [ددنیا] اخلی ([۱]) |

---

[۱]) الدر المختار: ۱/ ۲۱۰

[۲]) العالګیریة کتاب الکراهیة، باب فی التداوی: ۵/ ۳۵۵

[۳]) بدترین علماء حق پټونکی :- چه کوم یهود د نبی کریم ﷺ د صفاتو آیتونه پټوی کوم چې په تورات کښې دی اوددې په بدله کښې د عربو خوشامندې کوی او عوامو نه تحفې او هدیې اخلی او ددې فانی دنیا په بدله کښې خپل آخرت خرابوی،دوی ته ویره ده که د نبی کریم ﷺ نبوت رښتوني او د نبی کریم ﷺ د دعوې تصدیق آیتونه چه کوم په تورات کښې دې خلقو ته ښکاره شی نو خلق به د نبی کریم ﷺ ماتحت شي او هغوی به پرېږدی.ددې ویرې په وجه نې مغفرت او هدایت پرېخودو اوضلالت او عذاب باندې خوشحاله شو.نو ددې وجې په هغوی باندې د دنیا او آخرت رسوائی نازله شوه.د آخرت رسوائی خو ښکاره ده او په دنیا کښې هم د هغه خلقو مکر ښکاره شو،وخت په وخت چه کوم څیزونه دې بدترینو عالمانو پټول هغه ښکاره شو.ددې نه علاوه د نبی کریم ﷺ معجزې او د حضرت پاک عادتونو خلق د نبی کریم ﷺ په تصدیق باندې آماده کړل اودهغوی هغه ډله دهغوی دلاس نه لاړه دکوم نه چه دوی دالله ﷻ کلام پټ کړې وو چه دهغوی نه لاس وینځی.دې خلقود نبی کریم ﷺ نه بیعت اوکړو او ایمان نې راوړو او نبی کریم ﷺ سره یو ځائې شو او د هغوی حق پټول ورته معلوم شو او هغوی سره نې باقاعده جهاد اوکړو.په قران پاک کښې دهغوی دداسې رازونو پټولو حرکتونو ځائې په ځائې بیان شوې دې. ..... باقی حاشیه په بل مخ مخ....

| أُولَٰئِكَ | مَا يَأْكُلُونَ | فِي بُطُونِهِمْ | إِلَّا النَّارَ | وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ |
|---|---|---|---|---|
| داكسان | نه اچوي | په خيټوخپلو كښې | مگرا اور | او به نه اوكړي خبرې دهغوئ سره الله |
| نوهغوئ په حقيقت كښې نورڅه نه كوي خپلې خيټې په اور ډكوي ‖ اوالله به ورسره د قيامت په ورځ خبرې | | | | |
| يَوْمَ الْقِيَامَةِ | وَلَا يُزَكِّيهِمْ | وَلَهُمْ عَذَابٌ | أَلِيمٌ | أُولَٰئِكَ الَّذِينَ |
| په ورځ دقيامت | اونه به پاك كړي هغوئ | اودهغوئ دپاره عذاب | دردناك دي | دا هغه كسان دي |
| نه كوي(۲) اونه به دوی دګناه نه پاك كړي ‖ اودوئ ته به دردناك عذاب وركولې شي ‖ داهغه كسان دي | | | | |
| اشْتَرَوُا | الضَّلَالَةَ | بِالْهُدَىٰ | وَالْعَذَابَ | بِالْمَغْفِرَةِ |
| چې وائي اخستله | ګمراهي | په بدل دهدايت كښې | او وائي اخستلوعذاب | په بدله دبخښانې كښې |
| چې دهدايت بدل كښې ئې ګمراهي اخستې ده(۳) ‖ اودبخښنې بدل كښې ئې عذاب په بيعه اخستې دې | | | | |
| فَمَا | أَصْبَرَهُمْ | عَلَى النَّارِ | ذَٰلِكَ | بِأَنَّ اللَّهَ |
| نو عجيبه ده چې څه څيز | اصبرورکړوهغوئ له | په اور باندې | دا | په دې وجه چې بيشكه الله |
| نودوی لره تعجب دې چه په اور باندې صبر كوي(۱) ‖ ځكه چه د دوی داعمل سبب د اوردې ‖ دا ځكه چې الله پاك | | | | |

...باقي د تيرمخ]....(۱) **د كتمان حق په عوض كښې مال خوړل اور د جهنم دي:-** او فرمائي چه دا كوم مال چه تاسو خورئي او تاسو دالله ﷻ خبرو لره پټوئی دا په اصل كښې داور سكروټې دی اودا تاسو په خپلو خيټو كښې اچوئي.

**ديتيمانو مال خوړونكي :-** قران پاك د هغه خلقو باره كښې دا فرمائيلي دی چه كوم خلق د يتيمانو مالونه په ظلم سره خوري چه هغوی هم په خپلو خيټوكښې د جنهم اور اچوی.او د قيامت په ورځ به تيز اور ته داخليږي.

**د سرو سپينو په لوښو كښې خوراك كول:-** صحيح حديث كښې دی چه نبی كريم ﷺ فرمائی چه كوم سرې د سرو او سپينو په لوښوكښې خوراك كوی هغه په خپله خيټه كښې د جهنم اور اچوی. (صحيح بخاری)

(۲) **د قيامت په ورځ د الله خبرې نه كول:-** بيا الله ﷻ فرمائی چه الله ﷻ به دوی سره د قيامت په ورځ خبرې هم نه كوی،او نه به دوی پاك كړي بلكه دردناك عذابونو كښې به اخته وی.ځكه چه ددوی د كړو په وجه په دوی باندې دالله ﷻ عذاب نازل شو.او اوس دوی نه د رحمت نظر لرې كړې شو او دوی د ستائينې او تعريف قابل نه دی.بلكه سزا به وركولې شی او هلته به كړيږی.

**درې قسمه خلق بد نصيبه دی:-** حديث كښې دی چه درې قسمه خلقو سره به الله ﷻ خبرې اترې نه كوی او نه به هغوی طرفته ګوری اونه به هغوی پاكوی او دهغوی دپاره به دردناك عذاب وی.بوډا زناكار ، دروغژن بادشاه،او متكبره فقير.(صحيح بخاری)

(۳) **دهدايت په مقابله كښې ګمراهی اخستل:-**بيافرمايی چه دې خلقودهدايت په بدله كښې ګمراهي اخستې ده.دوی ته پكار وو چه په تورات كښې كوم صفات د حضور نبیٔ كريم ﷺ متعلق وو هغه ئې نبی خبرو خلقو ته رسولی وې.اود دې هدايت) په بدله كښې هغوی ( د نبی كريم ﷺ د صفاتو) پټول كړی وو او په خپله ئې هم د نبی كريم ﷺ نه انكار اوكړو.او د نبی كريم ﷺ تكذيب ئې اوكړو.نو په اظهار كولو سره دوی ته چه كوم نعمتونه او رحمتونه ملاويدو والا وو د هغې په بدله كښې دوی عذابونه اوزحمتونه واخستل. ......باقی حاشيه په بل مخ مخ...

| نَزَّلَ الْكِتٰبَ | بِالْحَقِّ ط | وَاِنَّ الَّذِيْنَ | اخْتَلَفُوْا | فِي الْكِتٰبِ |
|---|---|---|---|---|
| نازل کړو　کتاب | په حق سره | او بیشکه هغه کسان | چې اختلاف ئې کړې دې | په کتاب کښې |
| خپل کتاب په حقه رالیږلې دې (۱) | اوچاچې د [الله پاک] د کتاب په مسئلو کښې اختلاف اوکړو | | | |
| لَفِيْ شِقَاقٍ بَعِيْدٍ | | | | |
| په مخالفت کښې لرې لاړل | | | | |
| هغوی په جګړو کښې ډیر لرې لاړل | | | | |

**آسان ترجمه قرآن**

**حقیقت دادې چه کوم خلق د الله نازل کړې شوې کتاب پټوی او دهغې په بدله کښې معمولي شان قیمت وصولوی، هغوی په خپلو خېټو کښې د اور نه سوا هیڅ نه اچوی د قیامت په ورځ به الله دهغوی سره خبرې هم اونه کړی، او نه به هغوی لره پاک کړی، او دهغوی دپاره دردناک عذاب دې داهغه خلق دی چه هغوی د هدایت په بدله کښې ګمراهي اودبخښنې په بدله کښې عذاب اخستې دې پس (اندازه اوکړئ چه) دوی ددوزخ اور برداشت کولودپاره څومره تیاردی! دا هرڅه به ځکه وی چه الله په حق بانديې مشتمل کتاب نازل کړې دې، او کوموخلقوچه دداسې کتاب په باره کښې د مخالفت رویه اختیار کړې ده هغوی په ضدکولو کښې ډیرلرې وتلی دی.**

**خلاصه تفسیر**

**د آیتونو ربط** : ددې څخه مخکښې آیت مبارك كښې دهغه حرام څیزونو ذکر وو چې دهغې تعلق محسوساتو سره دې. دې پسې آیت مبارك كښې دهغه څیزونو ذکر دې چې دهغې تعلق محسوساتو سره نه دې بلکه هغه باطني او ظاهری د شر اعمال دی. لکه د یهودو عالمانو کښې دا بیماری وه چې هغوئ به د عوامو رشوت اخستو او دهغوئ د مرضئ مطابق به ئې غلطې فتوې ورکولې. او د تورات په آیتونو کښې به ئې تحریف کولو اودهغوئ د خوښې مطابق به ئې دغه آیتونه جوړول. په دې کښې د محمد ﷺ دامت عالمانو ته هم دا خبرداری ورکړې شوې دې چې هغوئ دې دداسې کارونو څخه ځان اوساتی، د یو نفساني غرض په خاطر دې د حق احکامو په اظهار کښې دې کوتاهي نه کوی

...باقی د تیرمخ ( ۱ ) بیا فرمائی چه دوی ته به دردناك او حیران کن عذاب ورکولې شی چه کتونکې به حیران پاتې شی او دا معنی هم ده چه دوی د اور په عذاب باندې کوم یو څیز آماده کړل چه دوی دالله ﷻ په نافرمانئ کښې مشغول شو.

( ۲ ) **د عذاب سبب**:- بیا ارشاد فرمائی چه دوی د دې عذاب ځکه مستحق شو چه دې خلقو د الله ﷻ خبرې په خندا وارولې او هسې توقې ئې اوګڼلې. او دوئ ته چه دالله تعالی کوم کتاب دحق او باطل واضح کولو دپاره نازل شوې دې، هغوئ ددې مخالفت اوکړو. چه کومې خبرې ښکاره کول وو هغه دوئ پټې کړې، دائې دالله ﷻ نبی سره دښمنی اوکړه. د نبی کریم ﷺ صفتونه ئې ښکاره نه کړل او حقیقت دادې چه ددې کتاب باره کښې اختلاف کوونکې په لرې ګمراهئ کښې پریوتل.

﴿إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنزَلَ اللَّهُ مِنَ الْكِتَابِ﴾ په دې کښې هيڅ شك نشته چه کوم خلق دالله ﷻ په راليږلى کتاب [يعنى دهغې په] مضامينو کښې پټول کوى ﴿وَيَشْتَرُونَ بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا﴾ اوددغې [خيانت] په بدله کښې [ددنيا] لږ سامان وصولوى ﴿أُولَٰئِكَ مَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ إِلَّا النَّارَ﴾ داسې خلق بل هيڅ نه په خپلو خيټوکښې اوور [يعنى د اوور سكروټې] ډکوى ﴿وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾ اوالله ﷻ به دوى سره نه خبرے کوى دقيامت په ورځ [په مهربانئى سره] ﴿وَلَا يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ اونه به يې [ګناه معاف کولو سره] صفائى کوى اود دوى دپاره به دردناك عذاب وى.

﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الضَّلَالَةَ بِالْهُدَىٰ﴾ دا داسې خلق دى چه [دنيا کښې خوښې] هدايت پرېښودو ګمراهى يې اختيار کړه ﴿وَالْعَذَابَ بِالْمَغْفِرَةِ﴾ او [آخرت کښې] بخښنه پرېښوده عذاب يې [په سر واخستلو [شاباش دې ددوى په مړانې] ﴿فَمَا أَصْبَرَهُمْ عَلَى النَّارِ﴾ چه دوزخ [ته تللو] دپاره څنګه مړنى دى [او] ﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ نَزَّلَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ﴾ دا [ټول ذکر شوې] سزاګانې [دوى ته] په دې وجې سره دى چه الله ﷻ ورته [دا] کتاب پوره صحيح ليږلې وو ﴿وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِي الْكِتَابِ لَفِي شِقَاقٍ بَعِيدٍ﴾ او څوك چه [په داسې پوره ليږلې شوى] کتاب کښې بےلارې شى نو ښکاره خبره چه هغوى به په ډير لرے خلاف [ورزئى] کښې [اخته] وى [او په دې سے خلاف ورزئى به ضرور هم دغسې دسختو سزاګانو حقدار وى].

## معارف اومسائل

**مسئله:** قوله تعالى - ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنزَلَ اللَّهُ مِنَ الْكِتَابِ﴾ دآيت کريمه نه داخبره په ډاګه شوه چې څوك دَمال په لالچ کښې يوشرعى حکم بدل کړى اودَدې په بدل کښې راغلې حرام مال خورى، نو ګويادې خپله خيټه دجهنم دَاورنه ډکوى ولې چې دَدې عمل انجام هم دغه څيزدې. اوځنې محققين علماء وائى چې حرام مال په حقيقت کښې دَجهنم اوردې اګرچه دَدې اورکيدل په دنيا کښې نه محسوسيږى ليکن دَمرګ نه پس به ددۀ دغه عمل دَاورپه شکل کښې راښکاره شى.

| | | | |
|---|---|---|---|
| لَيْسَ | الْبِرَّ | أَنْ تُوَلُّوا | وُجُوهَكُمْ |
| نه ده | دا نيكى | چې اوګرځوئ تاسو | مخونه خپل |
| نيکى صرف دا نه ده چې تاسو [په مانځه کښې] خپل مخونه | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قِبَلَ الْمَشْرِقِ | وَالْمَغْرِبِ | وَلَٰكِنَّ | الْبِرَّ | مَنْ | آمَنَ | بِاللَّهِ |
| طرف دمشرق | او مغرب ته | ليکن | نيکى داده چې | څوك | ايمان راوړى | په الله |
| مشرق ته يا مغرب ته اوګرزول | بلکه نيکى کونکې هغه کس دې | چې په الله تعالى | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَالْيَوْمِ الْآخِرِ | وَالْمَلَائِكَةِ | وَالْكِتَابِ | وَالنَّبِيِّينَ | وَآتَى الْمَالَ |
| اوپه ورځ دآخرت | او په فرښتو | او په کتابونو | اوپه پيغمبرانو | او ورکړى مال |
| او د آخرت په ورځ او په فرښتو [دالله] اوپه کتابونو اوپه پيغمبرانو باندې پوخ يقين اوساتى [او دالله په | | | | |

| وَابْنَ السَّبِيلِ | وَالْمَسٰكِيْنَ | وَالْيَتٰمٰى | ذَوِي الْقُرْبٰى | عَلٰى حُبِّهٖ |
|---|---|---|---|---|
| اومسافرو ته | او مسكينانانو ته | او يتيمانو ته | رشته دارانو ته | په محبت دالله كښې |

محبت كښې خپل مالونه خپلوانو ته .........يتيمانو ته.........مسكينانو .........اومسافرو ته

| وَاٰتَى الزَّكٰوةَ | وَاَقَامَ الصَّلٰوةَ | وَفِي الرِّقَابِ | وَالسَّآئِلِيْنَ |
|---|---|---|---|
| او وركړي زكاة | او قائم كړي مونځ | اوخرچ كړي مال په آزادولو دغلامانو كښې | او سوالګرو ته |

اوسوالګرو ته اودغلامانو په آزادولو كښې خرچ كوي |او دمونځ پابندي كوي |اوزكاة وركوي

| فِي الْبَاْسَآءِ | وَالصّٰبِرِيْنَ | اِذَا عٰهَدُوْا | بِعَهْدِهِمْ | وَالْمُوْفُوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| په سختوكښې | او صبركونكي وي | كله چې او كړي وعده | وعدې خپلې لره | او پوره كونكي وي |

اوچې وعده اوكړي نو هغه په ښه شان سره پوره كوي | او په سختيو او مرضونو او دجنګ په مشقتونو

| وَاُولٰٓئِكَ | صَدَقُوْا | اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ | وَحِيْنَ الْبَاْسِ | وَالضَّرَّآءِ |
|---|---|---|---|---|
| اوهم دا كسان چې دي | چې رښتيني دي | داهغه كسان دي | اوپه وخت دجنګ كښې | اوپه تكليفونوكښې |

باندې صبر كوي | هم دغه كسان [دايمان په دعوى كښې] رښتيني دي اوهم دغه خلق [په حقيقت كښې]

| هُمُ الْمُتَّقُوْنَ ۝ |
|---|
| دوئ [پرهيزګاران دي] |
| پرهيزګار دي |

## آسان ترجمه قرآن

نيكي خوصرف بس دا نه ده چه خپل مخونه مشرق يا مغرب ته كړئ بلكه نيكي داده چه خلق په الله باندې، دآخرت په ورځ باندې، په فرشتو باندې او دالله په كتابونو باندې او دهغه په نبيانو باندې ايمان راوړي، اودالله په محبت كښې خپل مال رشته دارانو، يتيمانو، مسكينانو، مسافرو او سوالګرو ته وركړي اودغلامانو په آزادولو كښې ئې خرچ كړي او مونځ قائم كړي او زكوٰة ادا كړي، او كله چه څه لوظ اوكړي نو دخپل لوظ پوره كونكي وي، او په تنګسيا اوتكليف كښې اودجنګ په وخت، صبر اواستقلال عادي وي داسې خلق دي چه رښتوني (وڅيلومستحق) دي،او هم دا خلق دي چه متقيان دي.

**دآيتونو ترون**: دسورت د شروع څخه تر دې ځائې پورې تقريبا نيم سورهٔ بقره دې. زيات بحث په منكرانو باندې وو. څكه ټولو څخه اول ئې د قرآن پاك د حقانيت اثبات اوكړو. ددې بحث په دوران كښې ئې د منونكو او نه منونكو فرقو ذكر اوفرمائيلو. بيا ئې توحيد و رسالت ثابت كړو. بيا ئې د ابراهيم ﷺ په اولاد باندې د انعاماتو او احسانونو ذكر اوفرمائيلو او دا ئې ﴿وَاِذِ ابْتَلٰٓى اِبْرٰهٖمَ﴾ پورې اوفرمائيلو. بيا يې بحث قبلې طرفته واړولو. اوبيا ئې ددې بيان دصفا او مروه په بحث باندې ختم كړو.

بيا ئې د توحيد د اثبات څخه روستو دشرك اصول او فروع باطل اوګرځول. او تر دې ځائې پورې ددې بيان اوشو. او ددې ټولو مضامينو څخه صفا واضح دی چې په دې كښې د منكرينو

دپاره تنبیه ده . او ضمنی طور که مسلمانانو ته خه خطاب شوې دې نو دا بله خبره ده .
اوس آئنده آیتونو کښې د سورة بقره نیمه حصه ده.. ددې زیات تر مقصد مسلمانانو ته د ځینې اصولو او فروعو تعلیم ورکول دی .اګر چې غیر مسلمو تـه هم ضمنی شان خطاب شوې دې او دا مضمون د سورت تر آخره پورې بیان شوې دې .او دا د یو مجمل عنوان «بِرّ» سره شروع کړې شوې دې . لفظ د «بِرّ» د باء په کسر سره عربئ ژبـه کښې خیر تـه وائی.او دا د ټولو ظاهری او باطنی طاعـاتو او خیرات جامع لفظ دې. او د آیت پـه شروع کـښې جامع لفظ سره کلی او اصولی تعلیم ورکړې شوې دې . لکه په کتاب باندې ایمان ، د مال ورکول ، د وعدو پوره کول ، پـه مصیبتونو بانـدې صبر کول وغیره ، او پـه دې کښې د قرآن پـاك د ټولو احکامو بنیـادی اصول راغلل. ځکه چې د شریعت د ټولو احکامو حاصل درې څیزونه دی ، عقائد ، اعمال ، اخلاق ، باقی نورجزئیات هم په دې کلیاتو کښې داخل دی اوپـه دې آیت مبارك کښې د درې واړه قسمونو لوئې لوئې شعبې راغلې.
وړاندې ددې بِرّ تفصیل بیانیږی .دې کښې یې ډیر احکام د وخت او مقام مطابق د ضرورت مطابق بیان کړې دی لکه قصاص ، وصیت ، روژه ، جهاد ، حج ، انفاق ، حیض ، ایلاء ، یمّین ، طـلاق ، نکـاح ، عـدت ، مهر ، تکرار د ذکر ، انفـاق فـی سبیل الله د بیـع او شـراء ځینـې معاملات ، شهادت ، او دا بیان یې د رحمت په زیری او د مغفرت په وعده باندې ختم کړې دې . سبحان الله ، څومره بلیغ ترتیب دې ، ځکـه چې ددې مـضامینو حاصـل د ، ، بِرّ» بیان دې ، اجمالی طور سره هم او تفصیلی طور سره هم ، که ددې مجموعې لقب، **ابواب البر** »کیخودې شی نو دا بهٔ ډیر مناسب وی. والله الموفق.

## خلاصه تفسیر

**دنیکئ دروازې:** ﴿لَيْسَ الْبِرَّ أَنْ تُوَلُّوا وُجُوهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ﴾ څه ټول کمال صرف په دې کښې نه دې [راغلې] چه تاسو خپل مخونه مشرق ته کړئی یا مغرب ته [ئې کړئی] ﴿وَلَٰكِنَّ الْبِرَّ﴾ لیکن اصل کمال خودادې ﴿مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالْكِتَابِ وَالنَّبِيِّينَ﴾ چه څوك [د] الله ﷻ [په ذات اوصفاتو] باندې یقین ساتي او [دغه شان] دقیامت په ورځ [راتلو] باندې [هم] اوپه فرښتو باندې [هم چه هغوی دالله ﷻ فرمانبردارے بندګانے دی د نورنه پیداکړې شوی دی دګناه نه پاکې دی خوراك څښاك اوانسانی شهوتونه بالکل نه لری] اوپه [ټولو آسمانی] کتابونو باندې [هم] او په ټولو پیغمبرانو باندې [هم] ﴿وَآتَى الْمَالَ عَلَىٰ حُبِّهِ ذَوِي الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ﴾او [دغه کس] مال ورکوی دالله ﷻ په محبت کښې [خپلو حاجت مندو] خپلوانو او [غریبانانو] یتیمانانو ته [یعنی هغه نابالغه واړه چه دهغوی پلار مړ شوې وی] او[نورو غریبانو]حاجت مندوته[هم]او[بې خرڅه] مسافروته ﴿وَالسَّائِلِينَ وَفِي الرِّقَابِ﴾ او په لاچاریئ کښې سوال کوونکوته [دقیدیانو اوغلامانو]څټونو په راخلاصولو کښې [هم مال خرچ کوی] ﴿وَأَقَامَ الصَّلَاةَ وَآتَى الزَّكَاةَ﴾ او [دغه کس] دمونځ پابندی [هم] کوی او [تاکلې شوے] زکات هم ادا کوی ﴿وَالْمُوفُونَ بِعَهْدِهِمْ إِذَا عَاهَدُوا﴾او څوك چه [ددې عقیدو او عملونو سره سره دا اخلاق هم ساتی چې دخپلو وعدو پوره کوونکی وی کله چه د یو جائز کاراو خبرې وعده اوکړی او [دا صفت به په خاص توګه اووایم

چه] ﴿وَالصّٰبِرِيْنَ فِي الْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ وَحِيْنَ الْبَاْسِ﴾ دغه خلق [په دې موقعو کښې] مستقل [مزاجه] پاتې کېدونکې وی [يوخو] په بې مالئ [مسکينئ] کښې او [بل] په رنځورتيا کښې او [دريم کفارو سره] په جنګ کښې [يعنی پريشانه او بې همته نه وی ﴿أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا ۖ وَأُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ﴾ نوبس هم] دا خلق دی چه ربښتنی دی [غرض دا چه ددين اصلی مقاصد اوکمالات دادی او په مونځ کښې څه طرف ته مخ کول ددغې ذکر شوؤ کمالاتو نه ديوخاص کمال اقامة صلوٰة د توابعو نه دی او ددې دپاره شرط دی ځکه چه ددې ښه والئ دمانځه دښه والی دوجې دے که مونځ کښې نه وې نويو خاص طرف ته مخ کول به هم عبادت نه وو].

## معارف اومسائل

قوله تعالٰی: ﴿لَيْسَ الْبِرَّ اَنْ تُوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ﴾: هر کله چې دَمسلمانانو قبله دَبيت المقدس په ځائې بيت الله اوګرځولې شوه نو يهود، نصارا اومشرکان چې مسلمانانو کښې دَعيب لټولو په کوشش کښې اخته ؤ په شور شغب شو، او قسماقسم اعتراضونه ئې په رسول الله ﷺ او په اسلام باندې شروع کړل چې جوابونه ئې په تيروآيتونو کښې په ښه وضاحت اوتفصيل سره ذکرشوی دی.

په دې آيتونو کښې چې اوس ذکرشو دغه بحث په يوخاص طريقې سره ختم کړې شو، مطلب ئې دادې چې تاسو دين يواځې په يوه خبره کښې رابند کړې دې يعنی يوخاص طرف ته په مانځه کښې مخ کول، او داسې ګنړئ لکه چې دشريعت اودين بل هيڅ حکم نشته.

اوداهم کيدې شی چې دَدې آيت مخاطَب يهود، نصاری اومسلمانان، درې واړه وی اومطلب ئې داوی چې نيکی اصل کښې اطاعت ده. اصل بِرّ اوثواب دَ الله ﷻ په فرمانبرداري کښې دي، هغه چې کوم اړخ ته دَمخ کولو حکم اوفرمائ نوثواب اوحق به يواځې هم هغه وی، دَخپل ذات په اعتبارسره مشرق اومغرب يابل څه جانب اواړخ هيڅ اهميت اوثواب نهٔ لری، بلکه دراصل ثواب يواځې دَ الله ﷻ په فرمانبرداري باندې اړه او تعلق لری، کله چې بيت المقدس ته دَمخ کولو حکم ؤ هغه ثواب ؤ او اوس چې بيت الله شريف ته دَمخ کولو حکم شوې دې نو اوس هم دا ثواب دي.

لکه چې دَآيتونو دَتړون په بيان کښې اوئيلې شو چه دَدې آيت نه دَسورة بقره يونوې باب شروع کيږی چې اصل خبره پکښې مسلمانانو ته تعليمات اوهدايا ت ورکول دي او مخالفينو ته پکښې که څه خطاب وغيره شته نو هغه ضمنی څيزدې او هم دغه وجه ده چې دې آيت ته دَاسلامی حکمونو دَپاره يو جامع آيت وئيلې شی.

په دې آيت کښې په اصولی طورسره دَټولو شرعی حکمونو، عقيدو، عبادتونو، معاملو او دَ اخلاقو اجمالی ذکرراغلې دي، دَرومبې څيز اعتقاداتو ذکر په ﴿مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ﴾ کښې په تفصيل سره راغلې دي، دَعباداتو او معاملاتو ځنې دَعبادت ذکر ﴿وَاٰتَى الزَّكٰوةَ﴾ پورې راغلو، بيا دَ معاملاتو ذکر دَ ﴿وَالْمُوْفُوْنَ بِعَهْدِهِمْ﴾ انه اوکړې شو دَاخلاقو ذکر ﴿وَالصّٰبِرِيْنَ﴾ کښې اوکړې شو، او په آخر کښی اوښودلې شو چه رشتينی مؤمنان هغه خلق دی چې دَدې ټولو احکامو مکمله تابعداری کوی اوهم داسې خلقوته، تقوی شعار، تقوی داروئيلې شی

دَدې احکامو په بيانولو کښې بليغ اشارات شته دي، مثلاً په مال لګولو کښې چې دَ ﴿عَلٰى حُبِّهٖ﴾ قيدئې اولګولونو دې کښې درې احتماله کيدې شی، يو دا چه دَ ﴿حُبِّهٖ﴾ ضمير الله ﷻ ته راجع

وی، نو معنی به ئې داوی چې مال لګولو کښې ئې څه نفساني غرض [د نوم، نمائش] شامل نهٔ وی، بلکه صرف کامل اخلاص ددې باعث وی. سبب ئې صرف الله ﷻ سره محبت لرل وی، بل احتمال دا هم شته چې دغه ضمیر، ، مال، ، ته راجع شی مطلب به ئې دا راوځی چې د الله ﷻ په لارکښې هغه مال لګول د ثواب باعث جوړیږی چې د انسان هغه [مال] خوښ وی، بیکاره د غور ځولو څیزونه خیرات کول اګرچه د صدقې بللو حق نهٔ لری خو بیاهم د غور ځولونه دا غوره دی چې د چا پکار راشی. دریم احتمال ئې دادې چې دا ضمیر په ﴿أتي﴾ کښې ایتاء مصدر ته راجع وی، مطلب به ئې دا راوزی چې دغه ورکړه په مینه محبت او دزړهٔ په خوشحالئ سره کوی نه چې په زړه ماتی سره [په مات خاطر].

امام جصاص رحمه الله[۱] ددې درې واړو څیزونو مراد اغستلو احتمال ممکن بولی، بنه، اوس دلته ئې دزکواة نه ړومبې د مال لګولو دوه صورتونه نور ذکر کړل. ددې وړاندې ذکر کولو وجه دا کیدې شی چې په عامه توګه خلق دا حقوق یا خو ادا کوی نهٔ او یا پکښې غفلت او کوتاهی کوی، صرف زکواة ورکول کافی ګڼړلې شی ځکه ئې زکواة نه وړاندې ذکر کړل.

**مسئله** :: دې نه دا خبره هم ثابته شوه چې مالی فرض یواځې په زکواة ادا کولو نهٔ پوره کیږی، دې نه علاوه نور هم داسې ډیر ځایونه شته چې پکښې مال لګول فرض او واجب دی [جصاص، قرطبی] لکه په هغه خپلوانو ئې لګول چې د کټې وټې کولو او کار کسب نه پاتې راغلی وی نو د هغوئ خرڅه ادا کول واجب دی، څوک غریب مسکین مری، تا زکواة ادا کړې دې بیا هم په تا فرض دی چې د دغه غریب، مسکین، ځان د هلاکیدو نه بچ کړې یعنی پر مال لګولو سره د هغه دارو [دواء] او علاج اوکړې.

داشان د ضرورت په ځائې کښې جُماعت یعنی مسجد جوړول د دینی تعلیم د پاره مدرسې او مکتبُونه جوړول دا ټول په مالی فرائضو کښې داخل دی صرف دومره دې چې زکواة لره یو خاص قانون دې چې د هغې مطابق، په هر حال کښې زکواة ادا کول ضروری دی او دا نور، د ضرورت او حاجت په ځایونو پورې اړه لری، چرته چې ضرورت وی نو فرض به وی او چرته چې ضرورت نهٔ وی نو فرض به نهٔ وی.

**فائده**:: په کومو خلقو باندې چې مال لګول دی لکه مسکینان، مسافر او سوال ګری فقیران د ئې په یو انداز سره بیان کړل، بیا ئې په وفي الرقاب کښې حرف فاء زیاته کړه، اشاره ئې اوکړه دې خبرې ته چې مملوکه غلامانو لره د مال مالکان جوړول مقصود نهٔ دی بلکه هغوئ د مالکانو نه په بیعه اغستل او آزادول ئې مقصود دی. وروسې ﴿اقام الصلوة واتي الزكوة﴾ دا ذکر هم په دې طریقه راغلې دې چې څنګه د نورو څیزونو ذکر وو. بیا د معاملاتو د ذکر کولو طریقه ئې داشان بدله کړه چه د فعل ماضی د صیغې په ځائې ئې ﴿وَالْمُوْفُوْنَ بِعَهْدِهِمْ﴾ صیغه د اسم فاعل استعمال کړه، په دې، کښې اشاره دې خبرې ته ده چې د وعدې پوره کولو عادت دې همیشه او بیا بیاوی کله کله خو کافر هم وعده پوره کوی چې معتبره نهٔ ده.

د معاملاتو په باب کښې یواځې د وعدې پوره کولو ذکر اوکړې شو ځکه چې د غور کولو نه پس دا خبره په ډاګه کیږی چې د ټولو معاملاتو، لکه د خرید و فروخت، اجارې، شرکت وغیره روح، وعده پوره کول دی

---

[۱]) أحكام القرآن للجصاص ۱ / ۱۳۱

دا رنګه مخ ته دَاخلاقوچه باطنی اعمال دی ذکر کول وو ، په دې کښې یواځې صبر بیان کړې شو ځکه چې دصبر معنی داده چې خپل ځان قابو کښې اوساتلې شی او دخرابو کارونو نه په ډډه اوسی، نو دلته هم غور کولو سره معلومیږي چې دټولو باطنی اعمالو اصل روح هم صبر دې، ددې په ذریعه غوره اخلاق حاصلولې شی، او هم ددې په ذریعه دناکاره اخلاقو نه نجات حاصلیدې شی.

دلته په اندازِبیان کښې یو بل بدلون داسې هم راغلې دې چه ﴿وَالْمُوْفُوْنَ بِعَهْدِهِمْ﴾ پسې ﴿وَالصّٰبِرُوْنَ﴾ په ځائې نې ﴿وَالصّٰبِرِيْنَ﴾ او فرمائيل ، مفسرينو حضراتو ددې نکته بيان کړې ده چې دا دَمدح اوتعريف په بِنامنصوب دي ، مطلب دا چه دلته لفظ دَمدحِ مقدر دې صابرين دَهغې مفعول دې يعنی په دغې ټولو نيکو کارو خلقو کښې په خصوصيت سره دمدحِ قابل صابران خلق دی ځکه چې صبر يو داسې ملکه او قوت دې چې دَهغې نه په ټولو ذکرشوو عملونو کښې مدد اغستې شی. دغه شان په ذکر شوی آيت کښې ددين دَټولو څانګو اهم اصول هم راغلې دی او دَ بليغو اشارو له کبله دَهريو دَاهميت درجه هم معلومه شوه.

يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُتِبَ عَلَيْكُمُ

لے هغه کسانو | چې ايمان مو راوړې دې | فرض کړې شوې دې | په تاسو باندې

........ اني مؤمنانو ..................... په ستاسو | د قتل شوو کسانو په باره

الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلٰى ؕ اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْاُنْثٰى بِالْاُنْثٰى ؕ

برابري په مقدمه دقتل کښې | آزاد په آزاد قصاصيږی | او غلام په غلام قصاصيږی | او ښځه په ښځه قصاصيږی

کښې | برابری فرض شوې ده | دآزاد په بدله کښې آزاد او د غلام په بدله کښې غلام او ښځې په بدل کښې ښځه وژلې شی

فَمَنْ عُفِيَ لَهٗ مِنْ اَخِيْهِ شَيْءٌ فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوْفِ

نو هغه څوك | چې معافی اوشوه هغه ته | دطرفه د رورخپل نه | د څه څيز | نو مطالبه د ديت ده | په ښه طريقه

او که يو قاتل ته دخپل رور دطرفه څه قدر معافی وکړې شوه نو د | خو ديت | فيصله په مناسبه طريقه پکار ده

وَاَدَآءٌ اِلَيْهِ بِاِحْسَانٍ ؕ ذٰلِكَ تَخْفِيْفٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ

او ورکول د ديت دی | معاف کونکی ته | په ښه سلوك سره | دا | آسانتيا ده | دطرفه درب ستاسو نه

او په راستئ باندې | رقم | ادا کول پکار دی | اولياؤ د مقتول ته | دا ستاسو دپروردګار دطرفه آسانتيا

وَرَحْمَةٌ ؕ فَمَنِ اعْتَدٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝

او رحمت دې | نو هر چا چې | زياتې اوکړو | روستو ددې فيصلې نه | نو دې هغه دپاره | عذاب | دردناك

او مهربانی ده | نو څوك چې ددې نه پس هم دخپل حد نه وړاندې تير شی | نو هغه دپاره دردناک عذاب دې

وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيٰوةٌ يّٰاُولِي الْاَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ۝

او ستاسو دپاره | په قصاص کښې | ژوند دې | اې خاوندانو دعقلونو | اميد دې چې تاسو | ځان اوساتئ

او اې دعقل خاوندانو ستاسو دپاره قصاص اخستلو کښې ژوند دې | اميد دې چې تاسو به | د قصاص په وجه | دقتل نه ځان ساتئ

## آسان ترجمه قرآن

اې ایمان والو اکوم خلق چه (قصداً په ناحقه) قتل کړې شي دهغوی په باره کښې په تاسو باندې (حکم د) قصاص فرض کړې شوې دې د آزاد په بدله کښې آزاد، د غلام په بدله کښې غلام او د ښځې په بدله کښې ښځه (به قتلولې شي) بیا که قاتل ته دهغه د ورور (یعنی د مقتول د وارث) د طرفه څه معافي وکړې شي نو د معروفې طریقې مطابق (د وینې تاوان) مطالبه کول (د وارث) حق دې، او دې لره په ښه طریقه ادا کول (د قاتل) فرض دی، دا ستاسو د پروردګار د طرفه یوه آساني پیدا کړې شوې ده او یو رحمت دې، ددې نه پس هم که څوك زیاتې اوکړی نو هغه د ددرناك عذاب مستحق دې او اې عقل لرونکو! ستاسو دپاره په قصاص کښې دژوند (سامان) دې اُمید دې چه تاسو به (ددې د خلاف ورزۍ نه) بچ کیږئ.

## خلاصه تفسیر

**د آیتونو ترون:** ددې څخه د مخکښې آیت مبارك په تفسیر کښې تاسو ته واضح شوی دی چې په دې آیتونو مبارکو کښې په اجمالي توګه دنیکۍ او ښه والي اصول ښودلی شوی دی. دې پسې به ددې جزئي تفصیلونه راځي. او دې ته ،،ابواب البر،، وائي. دې پسې هم ددې ،،ابواب البر،، څه احکام جزئیه بیانیږی..او دا د ضرورت ،حالاتو او واقعاتو موافق بیان شوی دی.

**اول حکم دقصاص:** ﴿يَآَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ائې دایمان خاوندانو ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ﴾ په تاسو باندې [قانون د] قصاص فرض کړې شوی دی ﴿فِي الْقَتْلٰى﴾ [د قصدی قتل] دمقتولینو په باره کښې ﴿اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ﴾ [یعنی هر] آزاد سړې [بنیادم دې قتل کړې شی دهر بل] آزاد بنیادم په بدل کښې ﴿وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ﴾ [اوغه رنګ هر] غلام [د بل] غلام په بدل کښې ﴿وَالْاُنْثٰى بِالْاُنْثٰى﴾ او [دغه رنګ هره] ښځه د [بلې] ښځې په بدل کښې [اګر چه دا قتل کوونکی دلوئې درجې خاوندان وی اومقتولین د وړې درجې وی بیا به هم دټولونه برابر قصاص اخستلې شي یعنی وژونکے به دوژولو په سزا کښې وژلے شی] ﴿فَمَنْ عُفِيَ لَهٗ مِنْ اَخِيْهِ شَيْءٌ﴾ اوکه کوم [وژونکی] ته چه هغه [دمقدمے] دفریق دطرفه څه معافی اوشی[خو پوره معاف نه وی]﴿فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوْفِ وَاَدَآءٌ اِلَيْهِ بِاِحْسَانٍ﴾ نو [په دې خو د وژولو دسزا نه بری شو لیکن د دیت یعنی خونبها په ډول] په یوے مقررې اندازې به مال په ذمه د وژونکی واجب شی نودغه وخت دفریقینو په ذمه د دوؤ خبرو رعایت ضروری دې دمدعی یعنی د وژلے شوی دوارث په ذمه خو په معقول ډول ددغے] مطالبه کول [چه دے به زیات نه تنګوی] او [دمدعی علیه یعنی د قاتل په ذمه] په ښه طریقه سره [دغه مال] هغه [مدعی] ته رسول دی [چه په اندازه کښې به کمی نه کوی] او خامخا به یې نه خندوی] ﴿ذٰلِكَ تَخْفِيْفٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَرَحْمَةٌ﴾ دا [د دیت اودمعافۍ قانون] ستاسو د رب د طرفه [په سزا کښې] سپکوالې او [شاهانه] زړه سواندی ده [ګنی د وژولو دسزا نه بغیر بل هیڅ ګنجائش نه وو] ﴿فَمَنِ اعْتَدٰى بَعْدَ ذٰلِكَ﴾ بیا چه څوك ددې [قانون دمقرر کیدو] نه بعد د زیاتئی عمل اوکړی [لکه په چا په دروغه یا په شك شبه دقتل دعویٰ اوکړی یا دمعاف کولونه بعد دقتل دمقدمے پیروی کوی] ﴿فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِيْمٌ﴾ دغه کس ته به [آخرت کښې] لوئې دردناك عذاب وی ﴿وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيٰوةٌ يّٰاُولِي الْاَلْبَابِ﴾او ائې پوهه خلقو په [دے قانون د] قصاص کښې ستاسو دخانونو لوئې

حفاظت دے [ځکه چه ددې قانون د ویرې به خلق د وژلو نه ویریږی نو ګنړ ځانونه به محفوظ شی] ﴿لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ﴾ مونږ امید ساتو چه تاسو خلق به [دامن دداسې قانون دخلاف کولونه] ځان ساتئی.

## معارف او مسائل

قوله تعالی: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلَى﴾ دَقصاص لفظی معنی، برابرې اویوشان والې دې، مطلب دادې چه څومره ظلم، چاپه بل کړې وی، هومره بدله اغستل دَبل دَپاره روادی، زیاتې پرې کول ناروادی چنانچه ددې سورت په یوآیت کښې دَدې زیات وضاحت په داشان راغلې دې[چه رارواندې] ﴿فَاعْتَدُوا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدَىٰ عَلَيْكُمْ﴾ اودَسورت نحل په آخری آیتونو کښې ﴿وَإِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوا بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُمْ بِهِ﴾ هم دې مضمون دَپاره راغلې دې.

په دې وجه دَشریعت په اصطلاح کښې دَوژلواوزخمی کولوهغې سزاته قصاص وئیلې شی چه په کښې دَبرابرئ اویوشان والی لحاظ ساتلې شوې وی.

**مسئله** قتلِ عمددې ته وائی چې دَاوسپنې په څه وسله یادَاوسپنې په داسې څیزسره څوک اوژنی چې غوښه اوځرمن ورسره پرې شی اووینه تراوبهیږی، د قصاص معنی [دَیوځان په بدل کښې بل ځان اغستل] هم دداسې قسم وژلوسره خاص وی.

**مسئله** چرته چې آزاددآزادپه بدله کښې وژلې شی هلته دَغلام بدله کښې هم آزادوژلې شی او ځکه چې ښځه دَښځې په بدله کښې وژلې شی هغسې دَښځې په بدله کښې سړی هم وژلې شی.

دآزادپه بدله کښې دَآزاداودَښځې په بدله کښې دِښځې دَوژلوذکردَهغه خاص واقعې په بناء دې، په کومه کښې چې داآیت نازل شوې دې.

ابن کثیردَابن ابی حاتم په سند سره نقل کړی دی چې دَاسلام دَزمانې نه وړاندې یِ دَ عربو دَدوو قبیلو ترمنځه جنګ اوشو، دَدواړو اړخونونه آزاد، غلامان، ښځې ګډ وډاووژلې شو، خو ددې دَفیصلې کیدونه وړاندې دَاسلام زمانه داخله شوه اودواړه قبیلې مسلمانانې شوی چې دَفیصلې کولوکوشش شروع شونویوې زورآورې قبیلې اووئیل چې زمونږ دَغلام په بدله کښې چې آزاد، اودَښځې په مقابله کښې چې سړې نۀ وی وژلې شوی مونږ به راضی نۀ شو[1]،

چنانچه دَدغې جاهلانه اوظالمانه مطالبې دَردکولودَپاره داآیت نازل شو قوله تعالی: ﴿الْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْأُنْثَىٰ بِالْأُنْثَىٰ﴾ چې مطلب ئې دَدغه پورته ذکرشوې مطالبې رد کول ؤ، اودَاسلام داعادلانه قانون جاری کول ؤوچه دَوژلې په بدل کښې به هم دَهغه وژونکې قتل کولې شی داسې به هیچرې نۀ کیږی چې وژونکې به ښځه وی اوپه بدل کښې به ئې بل بیګناه سړې وژلې شی او داسې به هم نۀ کیږی چې وژونکې به غلام وی اوپه بدل کښې به ئې بیګناه آزادوژلې شی ځکه چې داډیر لوئې ظلم دې چې په اسلام کښې دَدې ګنجائش نشته.

دَآیت دامطلب هیچرې نه دې چې که ښځې لره سړې اووژنی یاغلام لره ازاداووژنی نوسړی اوآزادنه به قصاص نشی اغستې چنانچه دآیت په سر کښې دَ﴿الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلَى﴾راغلې الفاظ ددې د عام والی واضح دلیل دې اوپه نوروځایونو کښې دَدې نه زیات وضاحت هم راغلې دې لکه قرآن کریم کښې فرمائ﴿أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ﴾

[1]) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ۱/ ۴۸۹

**مسئله** هر کله چې قتل عمد [قصدي قتل] کښې قاتل ته پوره معافي ورکړې شي مثلاً دمقتول صرف دوه ځامن وي اودواړو ځامنو معافي کول اختيار کړل نو دوژونکي په ذمه څه مطالبه باتې نشوه او که يوه دغې دواړو ځامنو دوژلي شوي نه خپل حق اوبخښلو اوبل ئې نۀ بخښي نو په وژونکي خو قصاص پاتې نشو البته نۀ معاف کوونکي ځوئې ته به ئې نيم ديت ورکولې شي. پوره ديت په شريعت کښې سل اوښان يازرديناره يالس زره درهمه دي درهم دنن صبادرائج قول په مطابق درې نيمې ماشې چاندي کيږي په داشان پوره ديت دوه زره ، نهه سوه شپاړس تولې،اته ماشې [۸,۲۹۱۶] يعنی ۳۶ سير ۳۶ تولې اواته ماشې کيږي([1]).

**مسئله** دنامکملې معافئ په صورت کښې لکه څنګه چې صرف مال ورکول لازميږي دغه شان په مال باندې دصُلح کولو په صورت کښې هم صرف مال لازميږي اوقصاص دمنځه لاړشي. ليکن په دې کښې څه شرطونه شته چې دفقهې په کتابونو کښې ذکرشويدي.

**مسئله**: د مقتول چې څومره شرعي وارثان دي ، هم هغوئ به په قصاص او ديت کښې د خپلې خپلې حصې د ميراث حقدار وي. او که ديت واخستې شو نو مال به په دې وراثانو کښې د وراثت د تقسيمَ د قاعدې مطابق تقسيميږي. او که دقصاص فيصله اوشوه نو د قصاص په حق کښې به هم ټول يو شان يعنې مشترك وي. او هر کله چې قصاص يو ناقابل تقسيم څيز دې ، په دې وجه که د يو ادنی درجې کس هم خپل د قصاص حق معاف کړی نو د ټولو وارثانو د طرفنه به قصاص معاف شي ، خو هغوئ ته به د ديت رقم کښې د خپلې حصې مطابق حصه ملاويږي.

**مسئله**:قصاص اغستل اګرچه دوژلي شوی دوارثانو حق دې خوپه اجماع دامت سره قصاص دوئ پخپله نشي اغستې ،دمسلمان بادشاه يادهغه دنائب حکم کول پکښې ضروري دی ځکه چې د قصاص دواجبيدو يانۀ واجبيدو جزئيات دومره باريک دی چې هرچاته نشي معلوميدې اوداخبره هم پکښې شته چې وارثانو دمقتول دغُصې نه دمغلوبيدوپه وجه کيدې شي چې حدنه تجاوزاوکړی ځکه پدې کښې حکومت ته رجوع کول ضروري دی[قرطبي جلد ۲ ص ۲۵۶] ([2])

| كُتِبَ | عَلَيْكُمْ | إِذَا حَضَرَ | أَحَدَكُمُ | الْمَوْتُ | إِنْ تَرَكَ خَيْرًا |
|---|---|---|---|---|---|
| فرض کړې شوې دي | په تاسو باندې | کله چې حاضر شي | يو دتاسوته | مرګ | که پريښودونې مال |

په تاسو فرض شوي دی که په تاسو کښې چاته د مرګ وخت راشي نو که مال ترې پاتې کيږي

| الْوَصِيَّةُ | لِلْوَالِدَيْنِ | وَالْأَقْرَبِيْنَ | بِالْمَعْرُوْفِ | حَقًّا |
|---|---|---|---|---|
| وصيت کول | دپاره دمور پلار | او دپاره دنورو رشته دارانو | په ښۀ طريقې سره | داحق دي |

هغه دي د مورپلار اود[نورو] خپلوانو په حق کښې په مناسب طريقه وصيت کوی دا [حکم] ضروري دي

[1]) ديت دا مقدار په دی تحقيق باندے منبی دی چه درهم وزن درے نيمی ماشه چاندی ده مګر درهم صحيح وزن دا دے چه کوم حضرت مؤلف رحمة الله عليه په اوزان شرعيه کښی بيان کړی دی چه درهم درے نيمی ماشه، يو رتی او پنځمه حصه د رتی ده، نو دی اعتبار سره ديت دو زره شپږ سو پنځويش (۲۶۲۵) تولے جوړيږی او دا قول درست او مفتی به دی.

[2]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ۲/ ۲۴۵

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَلَى الْمُتَّقِيْنَ | فَمَنْ بَدَّلَهٗ | | بَعْدَ مَا | سَمِعَهٗ | فَاِنَّمَآ |
| په پر هيزګارانو باندې | نوچاچې بدل کړو داوصيت | روستو دهغې نه | چې واني وريدو هغه | | نوبيشکه چې |
| د پرهيزګارانو دپاره | بيا څوک چې داوصيت د آوريدونه پس بدل کړي | اود خپل طرف نه په کښې کمې زياتې اوکړي | | | |
| اِثْمُهٗ | عَلَى الَّذِيْنَ | يُبَدِّلُوْنَهٗ | اِنَّ اللّٰهَ | سَمِيْعٌ | عَلِيْمٌ |
| ګناه دهغې | په هغه چاباندې ده | چې بدلوى هغه وصيت | بيشکه چې الله | دهرڅه اوريدونکې | اوپه څه پوهه دې |
| نو ګناه به ئې دبدلونکى په ذمه وى | بيشکه الله هرڅه آورى | څوک وصيت پتولې نشى | اوپه هرڅهٔ پوهه دې | | |
| فَمَنْ | خَافَ | مِنْ مُّوْصٍ | جَنَفًا | اَوْ اِثْمًا | |
| البته هغه څوک | چې اويريدو | دوصيت کونکى نه | چې په خطاسره | يانې قصدابې انصافى کړې وى | |
| خوکه چا سره دا ويره وه چې وصيت کونکى | په قصدسره يا په غلطئ کښې | ظلم ياګناه کړې ده | | | |
| فَاَصْلَحَ | بَيْنَهُمْ | فَلَآ | اِثْمَ | عَلَيْهِ | اِنَّ اللّٰهَ | غَفُوْرٌ |
| نوا صلاح ئې اوکړه | په منځ دهغوئ کښې | نونشته | ګناه | په هغه باندې | بې شکه الله | بخښونکې |
| نو دميراث خورو ئې روغه راوسته نو په هغه هيڅ ګناه نشته | بيشکه الله بښونکې | د ګناهونو دې | | | | |
| رَّحِيْمٌ | | | | | |
| مهربان دې | | | | | |
| مهربان دې | | | | | |

### آسان ترجمه قرآن

په تاسو باندې فرض کړې شوى دى چه که په تاسو کښې څوک خپل ځان نه روستو مال پريښودلو سره تلونکې وى نوکله چه دهغه د مرګ وخت رانزدې شى هغه دې د خپل مورپلار او نزدې رشته دارانو په حق کښې د رواج مطابق وصيت اوکړى دا د متقيانوپه ذمه يولازمى حق دې بيا چه کوم سړې ددې وصيت د اوريدو نه پس په دې کښې څه تبديلى کوى، نو ددې ګناه به په هغه خلقو باندې وى څوک چه په دې کښې تبديلى کوى يقين اوکړئ چه الله (هرڅه) اورى پوهيږى البته که چاته دا ويره وى چه څوک وصيت کونکې بې ځايه طرف دارى يا ګناه کوى، اوهغه دمتعلقه سرو په مينځ کښې صلح اوکړى نوپه هغه هيڅ ګناه نشته بيشکه الله تعالى ډير بخښونکې، ډير مهربان دې.

### خلاصه تفسير

**د آيتونو ترون** هر هغه څيز ته وصيت وئيلې کيږى چې دهغې د کولو حکم کړې شوې وى. که هغه په ژوند کښې وى او که دمرګ څخه روستو. خو په عرف کښې هغه کار ته وئيلې شى چې د هغې حکم د مرګ څخه روستو وى.

دخير د لفظ ډيرې معنې دى. يو معنى ئې مال هم ده. لکه څنګه چې قرآن عظيم الشان کښې دى چې ﴿وَاِنَّهٗ لِحُبِّ الْخَيْرِ لَشَدِيْدٌ﴾ دې ځائې کښې مفسرينو بالاتفاق دخير څخه مراد مال اخستې دې.

هرکله چې د اسلام په شروع کښې د ميراث حصې مقررې نه وې نو حکم دا وو چې د ميراث په

ثلث کښې به دخپلو والدينو دپاره او نورو رشته دارو دپاره چې څومره به ئې مناسب ګڼړل نو وصيت به ئې کولو. دومره ددې خلقو حق وو. باقي چې به څه پاتې شو نو هغه به ټول د اولاد حق وو. دې آيت مبارك کښې هم دا حکم مذکور دې.

**دويم حکم د ابواب البر څخه وصيت:** ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ﴾ په تاسو فرض کولې شی چه کله چاته [دنخښنو نه] مرګ نزدې ښکاره شی ﴿إِن تَرَكَ خَيْرًا ۖ الْوَصِيَّةُ﴾ په دې شرط چه څه مال په ميراث کښې پريږدی ﴿لِلْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِينَ بِالْمَعْرُوفِ ۖ﴾ نو [خپل] موريلار او [نورو] خپلوانو دپاره په معقوله طريقې سره [چه مجموعه ئې د دريمې برخې نه زياته نشی] څه نا څه دے اوښائی [ددې نوم وصيت دے] ﴿حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِينَ﴾ چالره چه دالله ﷻ ويره وی دهغوی په ذمه داضروری [کړې شوی] دی.

﴿فَمَن بَدَّلَهُ بَعْدَ مَا سَمِعَهُ﴾ بيا [چه کومو خلقو دا وصيت آوريدلې وی دهغوی نه] چه څوك [هم] داوريدلو نه بعد دا[مضمون ئې] بدلوی [او دويش اوفيصلې په وخت غلطه خبره ښکاره کوی اودهغې په جوړ فيصلې کولو سره دچا حق برباد شی] ﴿فَإِنَّمَا إِثْمُهُ عَلَى الَّذِينَ يُبَدِّلُونَهُ ۚ﴾ نو ددې [حق بربادولو] ګناه به په هغه خلقو وی چه دا [مضمون] بدلوی [د عدالت د حاکم يا دثالث يا مړکيدونکی ګناه به نه وی ځکه چه] ﴿إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ﴾ الله ﷻ خو يقينی طور آوری اوپوهيږی [نو دبدلوونکی ښکاره کول اوری اود حاکم ناخبره کيدل اومعذوره کيدل هم پيژنی] ﴿فَمَنْ خَافَ مِن مُّوصٍ جَنَفًا أَوْ إِثْمًا﴾ البته [ديوډول بدلولو اجازت شته هغه دا چه] چاته دوصيت کوونکی دطرفه [دوصيت په باره کښې] دڅه غلطئی يا [قصدًا دا وصيت دقانون دڅه دفعې دخلاف ورزئی] دڅه جرم کولو تحقيق شوې وی [اودغه بې‌ضابطې وصيت پوجې سره ددغه مړی دحقدار وارثانو اود وصيت دمال په حقدارو کښې دجګړې خطره يا واقع کيدل معلوم وی] ﴿فَأَصْلَحَ بَيْنَهُمْ﴾ بيا دغه کس ددوی په مينځ کښې صلح اوکړی [اګر چه دغه صلح د وصيت دمضمون نه خلاف وی چه په ظاهره کښې دوصيت بدلول دی] ﴿فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ ۚ﴾ نوپه دغه کس باندې څه [بوج د] دګناه نشته [او] ﴿إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ واقعی الله ﷻ خو [ېخپله دګناهونو] معاف کوونکې دے [اوپه دې ګناهګارانو] رحم کوونکې دې [او دې کس خو څه ګناه نه ده کړې ځکه چه په وصيت کښې يې بدلون داصلاح دپاره کړی وو نوپه ده به رحمت ولې نه وی].

## معارف اومسائل

**قوله تعالى:** ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ﴾: هغه مړکيدونکی باندې چه څه مال پريږدی [ترپاتې کيږی] په دې آيت کښې دَوصيت دَفرض شوی حکم درې برخې دی، يو داچه دَدغه مړی په ميراث کښې سوادهغه دَاولادنه دَبل وارث ئې څه تاکلې برخه نشته دَهغوی برخه به دَمړی دَوصيت په بنياد ټاکلې شی.

بله داچه دَاسې قسم خپلوانو دَپاره په مړکيدونکی باندې وصيت کول فرض دی.

دريمه داچه دَدريمې برخې دَمال نه ئې په زيات کښې وصيت کول ناروادی.

په دې درې حکمونو کښې رومبې حکم دَاکثروصحابه کرامو رضي الله عنهم اوتابعينو رحمهم الله په نزد دَ ميراث په آيت سره منسوخ شوې دې، ابن کثير رحمه الله دَحاکم رحمه الله وغيره په صحيح ګرځولو سره دَحضرت

عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه نقل کړېدی چې دې حکم لره آيت دَميراث منسوخ کړځولې دی[1] يعنې ﴿لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ وَلِلنِّسَاءِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ مِمَّا قَلَّ مِنْهُ أَوْ كَثُرَ نَصِيبًا مَّفْرُوضًا﴾

اودَحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه په يو بل روايت کښې دَدې دا تفصيل دې چې دَميراث آيت دَدغې خلقو وصيت لره منسوخ کړو دَچاچه په ميراث کښې برخه مقرر ده او دکوم خپلوانوچه په ميراث کښې څه برخه نۀ لرى هغوى دَپاره دَوصيت حکم اوس هم باقى دې[جصاص قرطبى][2]

ليکن دَاُمت په اجماع سره دا ښکاره خبره ده چې په ميراث کښې بې برخې خپلوانو دَپاره په مړکيدونکى باندې وصيت کول فرض اولازم نۀ دې نو دَهغوئ په حق کښې فرضيت دَوصيت هم منسوخ شو [جصاص، قرطبى][3] مطلب دا چه که دَوصيت کولو ضرورت هم وى بيا به هم صرف مستحب وى.

**بل حکم دوصيت فرض کيدل**:: دا هم دَاُمت په اجماع سره منسوخ دې، دَدې ناسخ هغه متواتر حديث دې چې اعلان ئې رسول الله ﷺ دَحجة الوداع په خطبه کښې تقريباً دَيو نيم لکو صحابو کرامو رضي الله عنهم په موجودګئ کښې کړې دې فرمائ:

﴿ان الله اعطى لکل ذي حق حقه فلاوصية لوارث﴾[اخرجه الترمذي وقال هذا حديث حسن صحيح][4] الله ﷻ دَهر حق خاوندته دَهغه حق ورکړې دې نو اوس هيڅ يو وارث دَپاره وصيت کول جائز نۀ دى.

په دې حديث کښې په روايت دَابن عباس رضي الله عنه سره دا الفاظ هم منقول دى.

﴿لاوصية لوارث الاان تجيزه الورثة﴾ [جصاص][5] هيڅ يو وارث دَپاره وصيت کول ترهغې پورې جائز نۀ دى ترڅو چه نور وارثان ئې اجازت ورنۀ کړى

نو حاصل دَحديث شريف دا شو چه الله ﷻ دَوارثانو برخې پخپله تاکلى دى خکه ورلره دَوصيت کولو ضرورت څه چې اجازت ئې هم نشته دَنورو وارثانو په اجازت ورکولو به دا روا قدرى شى. امام جصاص رحمه الله فرمائيلى دى چې دا حديث دَصحابه کرامو رضي الله عنهم دَيو ټولى نه منقول دې او دَاُمت فقهاؤ په اتفاق سره دا قبول کړې دې لهذا دَمتواتر حديث په حکم کښې شو چه ورسره دَقرآن کريم دَيو حکم منسوخ کول روا دى.

او امام قرطبى رحمه الله فرمائيلى دى چې دَامت دَعلماؤ په دې خبره اتفاق دې چې دَرسول الله ﷺ دَخُلې مبارکې نه په يقينى توګه ثابت شوې حکم لکه خبر متواتر او مشهور واخله نو دا به بالکل دَقرآن کريم په حکم کښې وى چې په حقيقت کښې دَ الله ﷻ فرمان دې نو په داسې حديث مبارک سره دَقرآن کريم دَيو آيت منسوخ کيدل بې شُبهې خبره ده، بيائې او فرمائيل چې دا حديث اګرچه مونږ ته دَخبر واحد په طريقه رسيدلې دې خو بيا هم دَحجة الوداع غونډ دَټولو نه لوئې ډله کښې يعنې دَيو لک نه زيات و صحابه کرامو رضي الله عنهم په موجودګئ کښې دَدې اعلان کول، او په دې

---

[1] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ۱/ ۴۹۲
[2] ) أحكام القرآن للجصاص: ۱/ ۱۶۵، تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ۲/ ۲۶۲، ۲۶۳
[3] ) أحكام القرآن للجصاص: ۱/ ۱۶۵، تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ۲/ ۲۶۲، ۲۶۳
[4] ) جامع الترمذي، أبواب الفرائض، باب ما جاء لا وصية لوارث: ۲/ ۳۲
[5] ) أحكام القرآن للجصاص: ۱/ ۱۶۶، ۱۶۷

دَصحابه کِرامو ﷺ اجماع دا خبره ښکاره کوي چي دا حديث دَدغه حضراتو په نزد قطعي الثبوت دي کچرې په دې کښي دڅه شک شبهې ګنجائش وې نو بيا به ئې په دې سره دَقرآن کريم دَحکم په پريښـ . اجماع نهٔ کوله(۱).

**دريم حکم دادې چه ددريمې برخې مال نه په زيات مال کښې وصيت روانهٔ دې:** دا هم دَاُمت په اتفاق سره اوس هم باقي دې البته که وارثان اجازت اوکړي نو دَدريمې برخې نه زيات څه چي دَټول مال وصيت هم روا او دَقبلولو جوګه دې.

**مسئله** دَذکرشوي تفصيل نه په ډاګه شوه چي دکوم وارثانو برخې چي قرآن کريم ټاکلي دي هغوئ دَپاره اوس وصيت کول واجب نهٔ دي بلکه دَنورو وارثانو دَاجازت نه بغير روا هم نهٔ دي. البته بې برخې خپلوانو دَپاره دَدريمې برخې دَمال پورې دَوصيت کولو اجازت شته.

**مسئله** په دې آيت کښې دَيو خاص وصيت کولو ذکر وُوچه مړ کيدونکي به دَخپل روستو پاتې کيدونکي مال متعلق وصيت کولو هغه اوس منسوخ شو، ليکن دَچا په ذمه چي دَبل چا حقوق واجب وي يا ورسره دَچا امانت پروت وي نو دَدغه حقوقو او امانتونو دَاداکولو وصيت په مړ کيدونکي باندې فرض او لازم دي چنانچه رسول الله ﷺ په يو حديث کښې فرمائ: دچا په ذمه چي دَبل چا حقوق وي په هغه دې داسې درې شپې تيرې نشي چي په هغې کښې دَدغه حقوقو د اداکولو ليکلې وصيت ده سره موجود نهٔ وي(۲).

**مسئله** چا مړ کيدونکي ته چي دَخپل مال په دريمه برخه کښې دَوصيت کولو حق ورکړې شوې دې نو هغه په خپل ژوند کښې تبديلي په دې کښې راوستې شي بيخي ختمولې هم شي. [جصاص]

| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | كُتِبَ | عَلَيْكُمُ | الصِّيَامُ |
|---|---|---|---|---|
| اے هغه کسانو | چي ايمان مو راوړي دي | فرض کړي شوي | په تاسو باندي | روژي |

[اې مومنانو په تاسو روژه فرض کړې شوې ده [اود روژې فرضيت څه نوې خبره نه ده بلکه

| كَمَا | كُتِبَ | عَلَى الَّذِيْنَ | مِنْ قَبْلِكُمْ | لَعَلَّكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| لکه څنګه چي | فرض کړي شوي وي | په هغه کسانو باندې | چي مخکښي ستاسونه وو | اميد دي چي تاسو |

لکه چي ستاسونه مخکښي په نورو امتونو باندې فرض کړې شوې وه] اميد دي چي [په روژه ساتلو به]

| تَتَّقُوْنَ | اَيَّامًا | مَّعْدُوْدٰتٍ | فَمَنْ | كَانَ مِنْكُمْ | مَّرِيْضًا | اَوْ عَلٰى سَفَرٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| تقوى دار شئ | يو څو ورځي | شمارلي شوي | پس هغه څوك | چي وي ستاسو نه | مريض | يا په سفر |

تاسو پرهيزګار شئ | روژې دشمير يو څو ورځي دي | نو که په تاسو کښې څوک ناجوړه وي يا په سفر کښې وي نو هغه دې په نورو

| فَعِدَّةٌ | مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ | وَعَلَى الَّذِيْنَ | يُطِيْقُوْنَهٗ | فِدْيَةٌ | طَعَامُ مِسْكِيْنٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو شمار دي دورځو نورو نه | او په هغه کسانو | چي طاقت لري دروژو نيولو | فديه ده | خوراك ديو مسكين |  |

ورځو کښې دغه شمير پوره کړي | او څوک چي د روژې طاقت نه لري او نه ئې نيسي | نو هغه دې فديه ورکوي | اديوې روژې په بدل کښې

(۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ۲/ ۲۶۳
(۲) سنن النسائي، كتاب الوصايا، باب الكراهية في تاخير الوصية: ۲/ ۱۲۸

| فَمَنْ | تَطَوَّعَ | خَيْرًا | فَهُوَ | خَيْرٌ | لَّهُ ۚ | وَأَنْ تَصُومُوا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوهغه څوك | چې په خپله خوښه اوكړي | څه نيكي | نو دغه | بهتره ده | دهغه دپاره | اوچې روژه اونيسئ |

يومسكين ته ايه مره خيټه خوراك او څوك چې په خپله خيرات ورکوي [نو دا دهغه دپاره ډيره ښه ده] او که تاسو [دفديه په ځائې] روژه اونيسئ

| خَيْرٌ | لَّكُمْ | إِنْ كُنْتُمْ | تَعْلَمُونَ ۝ |
|---|---|---|---|
| دابهتره ده | ستاسو دپاره | كه چرې تاسو | پوهيږئ |

دا ستاسو دپاره ډيره غوره ده | كه تاسو [ددې په مصلحتونو] پوهيږئ:

## آسان ترجمه قرآن

اې ايمان والو! په تاسو باندې روژې فرض كړې شوې دي، لكه څرنګه چه ستاسونه په مخكښې خلقو باندې فرض كړې شوې وې چه په تاسو كښې تقوىٰ پيدا شي د شمير يو څو ورځې روژې نيول دي بيا هم كه په تاسو كښې څوك بيمار شي يا په سفر كښې وي نو هغه دې په نورو ورځو كښې هم دغه هومره شمير پوره كړي. او كوم خلق چه ددې طاقت لرى هغوى دې په يو مسكين خوراك خوړلو سره (د روژې) فديه ادا كړي ددې نه علاوه كه څوك په خپلې مرضۍ سره څه نيكى اوكړى نو دا دهغه په حق كښې بهتره ده، او كه تاسو پوهيږئ نو په روژې نيولو كښې ستاسو دپاره زياته بهترى ده.

## خلاصه تفسير

**دريم حكم د روژې:** ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ﴾ اې د ايمان خاوندانو په تاسو روژه فرض كړې شوه ﴿كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ﴾ څنګه چه تاسونه [د] مخكښې [امتونو په] خلقو باندې فرض كړې شوې وه ﴿لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ﴾ په دې اميد چه تاسو [دروژې په بركت په مزه مزه] متقيان جوړشئ: [ځكه چه د روژې نيولوپه وجې سره به نفس لره دګناهو تقاضو نه د بندولو عادت مونږيدا شي اوددې عقيدې پخيدل د تقوىٰ بنياد دې].

﴿أَيَّامًا مَعْدُودَاتٍ﴾ لږې ورځې روژه نيسئ: [ددې لږو ورځو نه مراد رمضان دے لكه په راتلونكى آيت كښې چه راځى] ﴿فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ﴾ بيا [په دې كښې هم دومره آسانى ده چه] څوك په تاسو كښې [داسې يو] بيمار وي [چه روژه نيول ورله ضرورى يا ګران وي] يا په [شرعي] سفر كښې وي نو [دده دپاره په رمضان كښې دروژې نه نيولواجازت شته دې ﴿فَعِدَّةٌ مِنْ أَيَّامٍ أُخَرَ﴾ [اود رمضان په ځائې] دنورو ورځو [دغه هومره] شمير [اكولو سره په كښې روژه] نيول [په ده واجب] دى ﴿وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ﴾ او [بله آسانى چه بيا منسوخ شوه داده چه] څوك دروژې نيولو طاقت لرى [او روژه نيول يې زړه نه غواړي نو] ﴿فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ﴾ دهغوى په ذمه [صرف دروژې] فديه [يعنى بدله] ده چه هغه يو غريب ته خوراك وركول [خوړول دى يايې وركول دى] ﴿فَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَهُوَ خَيْرٌ لَهُ﴾ اوڅوك چه په خوښه [زيات] خير [خيرات] كوى [چه زياته فديه وركړي] نو دادغه كس دپاره نوره هم غوره ده ﴿وَأَنْ تَصُومُوا خَيْرٌ لَكُمْ﴾ او [اګر چه مونږ د آسانئ په خاطرپه دغه حالاتوكښې د روژې نيولو اجازت وركړې دې ليكن] ستاسو روژه نيول [په دغه حالاتوكښې هم] زيات غوره دى ﴿إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ كه تاسو [دروژې دفضيلت څه] خبرلرئ.

## معارف او مسائل

**دَصوم لفظي معنی:** قوله تعالی: ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ﴾ د صوم لفظي معنی ايساريدل او بچ کيدل دي اودَشريعت په اصطلاح کښې دَخوراک ،څکاک، اوزنانه سره دکوروالی نه منع کيدو ته صوم وئيلي شي.خوشرط دادې چې دَصباصادق دَراختونه ترنمرډوبيدوپورې په مخه دَدغې خبرو او کارونو نه بندا وايسارپاتې شي، اونيت ئې هم دَ د روژې وی . په دې وجه که د نمر ډوبيدو څخه يو منټ هم وړاندې څه اوخوري نو روژه ئې اونۀ شوه. اودا شان که د تمام ځيزونو څخه ئې پرهيز په ډير اهتمام سره ټولو ورځ اوکړو مګر د روژې نيت ئې نه وو کړې نو هم ئې روژه اونه شوه. صوم[روژه]دَهغه عباداتو څنې يوعبادت دې چې دَاسلام په بنيادی ستنو او خاصو نخښو نښانو کښې حسابيږی دَدې فضيلتونه دومره بې شميره دی چې تفصيلی بيان ئې دلته نشی ځائې کيدې.

**په پخوانوامتونوکښې دروژې حکم:** ﴿كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ﴾ دَروژې دَفرضيت حکم، مسلمانانو ته په يوخاص مثال سره ورکړې شوې دې،حکم سره داهم ذکرشوی دی چې دَروژې دافرض کيدل يواځې تاسوسره خاص نۀ دی په پخوانو اُمتونوهم روژې فرض کړې شوې وې،دې نه دَروژې خاص اهميت هم معلوم شو ،اودَمسلمانانودَزړۀ ساتلو[خاطر کولو]اَنتظام هم اوکړې شو ،هغه داشان چې روژه اګرچه دَمشقت ځيزدې خودامشقت پخوانوخلقوهم پرله پسې برداشت کړې دې اوداطبعی خبره ده چې په يومشقت کښې ګنړ خلق اخته وی نوهغه سپک يعنی آسان معلوميږی [روح المعانی].

دَقرآن کريم الفاظ، ﴿الَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ﴾ عام دی دَحضرت آدم عليه السلام نه واخله د حضرت خاتم الانبياء ﷺ پورې ټولوشريعتونو او اُمتونولره شامل دی دې نه معلومه شوه چې څنګه دَمونځ دَعبادت نه کوم يوشريعت يااُمت خالی نۀ دې پاتې شوې دغه شان روژه هم په هر شريعت کښې فرض پاتې شوې ده

کومو حضراتو چه فرمائيلی دی چې دَ ﴿مِن قَبْلِكُمْ﴾ نه دلته نصارای مُراددی نودادی يومثال په ډول دی چې دَنوروأمتونونفی ترنۀکيږی[يعنی ټول تيرشوی اُمتونه پکښې شامل دی[روح المعانی][1]

په آيت کښې صرف دومره اوښودلې شوچه روژې څنګه چې په مسلمانانوفرض کړې شوې په پخوانو[تيروشوُو]امتونوهم فرض کړې شوې وې،دې نه داخبره نه لازميږی چې دَپخوانو امتونوروژې،په ټولو حالاتو اوصفاتو کښې دَهُوبهُودَمسلمانانودَروژې پشان وی، مثلاً دَروژوپه شمير،دَروژوپه وختونو کښې [چه دکوم وخت نه به ترکوم وخته پورې وی]اوپه کومو ورځو کښې به نيولې شی،په دې ټولو خبروکښې اختلاف کيدې شی چنانچه شوې هم دغسې دی چې په شمير کښې ئې هم کمې زياتې راغلې دې اودَروژو په ورځو اووختونو کښې به هم فرق جاری ؤو [روح المعانی][2].

---

[1]) روح المعانی تحت هذه الآية: ۲/ ۱۲۱

[2]) روح المعانی تحت هذه الآية: ۲/ ۱۲۳

په ﴿لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ﴾ کښې دې خبرې ته اشاره ده چې دتقوی په مضبوطولو کښې روژه ډیر دخل لري، ولې چې د روژې نیولو په وجه، خپل نفس په قابو کښې دساتلو ملکه په بنده کښې پیدا کيږي او هم دا دتقوای بنیاد دې.

**د رنځور روژه** ﴿فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا﴾ دلته د رنځور نه مراد هغه رنځور دې چې روژې نیولو سره په ډیر سخت تکلیف کښې اخته کيږي چې د برداشت توفیق ئې نشي لرلې یا د رنځ زیاتیدو او سختیدو کلکه خطره ئې وی چنانچه ورپسې آیت ﴿وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ﴾ کښې ورته اشاره موجوده ده، دامت د جمهور و فقهاؤ هم دا مسلک دې.

**د مسافر روژه** ﴿أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ﴾ دلته د مسافر دلفظ په ځائې د ﴿عَلَىٰ سَفَرٍ﴾ لفظ راوړلو کښې یو څو اهمو مسئلو ته اشاره کړې شوې ده.

اول دا چه مطلقًا لغوی سفر، یعنی د خپل ملک او وطن نه وتل د روژې نه نیولو د پاره کافی نۀ دی ترڅو چه دا سفر څه قدرې اُوږدنۀ وی ځکه چې د ﴿عَلَىٰ سَفَرٍ﴾ دلفظ معنی داده چې دې په سفر سوروی، مطلب ئې دا نۀ دې چې بنده د کورنه صرف د پنځولسو میلو په مزل بهرته وتلې وی، خو په قرآن کریم کښې د سفر حد نۀ دې ټاکلې شوې، د رسول الله ﷺ د بیان او د صحابه کرامو رضی الله عنهم د عمل له مخې امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله او ډیر فقهاؤ د دې اندازه درې پړاوه [یعنی هغه مزل چې پیاده سفر کوونکې ئې په آسانۍ سره په درې ورځو کښې وهلې شي] ښودلې دې او وروستو [متاخرینو] فقهاؤ د دې اندازه اتۀ څلویښت شرعی میله ښودلې ده.

**د سفر شرعی موده:** دوئیمه مسئله دلفظ د ﴿عَلَىٰ سَفَرٍ﴾ نه دا راوځی چې مسافر ته دا اجازت تر هغه وخته پورې دې چې ترڅو چه د سفر سلسله ئې جاري وی او دا ښکاره خبره ده چې د آرام کولو یا د څه یو کار د پاره په یو ځائې کښې ایسارېدل د سفر دغه سلسله نۀ پریکوی ترڅو چه دومره موده پورې ایسارېدل نۀ وی چې سفر ورسره پرې کيږي چنانچه د دغه موده رسول الله ﷺ پنځلس ورځې ښودلې ده. یعنی که څوک د سفر په دوران کښې په یو ځائې کښې د پنځلسو ورځو یا زیاتی د پاتې کیدو په اراده پاتې شي نو دغه کس بیا ﴿عَلَىٰ سَفَرٍ﴾ نه دې او نۀ د دغې اجازت حقدار دې.

**مسئله** دې نه یو مسئله دا هم راوُوته چې څوک د پنځلسو ورځو د تیکاوېدو اراده په یو مقام کښې نه بلکه په بیلو بیلو ځایونو کښې او کړی نو هغه به په مخه مسافر ګڼرلې شي او د سفر د رخصت [رعایت] حقدار به وی ځکه چې دې د ﴿عَلَىٰ سَفَرٍ﴾ په حالت کښې دې.

**د روژې قضا قوله تعالی:** ﴿فَعِدَّةٌ مِنْ أَيَّامٍ أُخَرَ﴾ یعنی مریض او مسافر نه چې څومره شمیر کښې د رمضان روژې پاتې شوی وی هم هغه شمیر روژې په نورو ورځو نیولو میاشتو کښې نیول پر واجب دی دې کښې دا ښودل منظور وُو چه د مرض یا سفر د مجبورۍ نه چې کومې روژې پاتې شوی دی د هغې قضا په دغه خلقو واجبه ده، د دې د پاره د [فعلیه القضاء] اغوندلنډه جمله راوړل کافی وُو مګر د دې په ځائې ﴿فَعِدَّةٌ مِنْ أَيَّامٍ أُخَرَ﴾ راوړلو کښې دې ته اشاره ده چې په مریض او مسافر به د رمضان د روژو قضا راوړل هله واجب وی چې رنځور د رغیدو نه پس او مسافر په خپل وطن کور کلی کیدو نه پس دومره ورځې بیاموندې شي چې د هغې قضا پکښې راوړې شي نو که څوک د دغه هومره ورځو موندلو نه وړاندې مړ شو نو په هغه قضا لازمه نۀ ده او نۀ د فدئې د پاره پر وصیت کول لازم دی.

**مسئله** قوله تعالىٰ: ﴿فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ﴾ کښې هر کله چې د ترتیب یا بې ترتیبه څه قید نشته بلکه عام اختیار ورکړې شوې دې په دې بناء که چا د لسو روژو مبو قضا شوې روژو څنې د نهمې او لسمې روژې قضا اول راؤړه او د نورو اولو روژو قضائې بیا روستو راؤړه نو د دې هیڅ باک نشته، داشان د پرله پسې قضا شوې روژو په وقفې وقفې سره قضا راؤړل هم څه باک نۀ لري ځکه چې ﴿فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ﴾ کښې د دې ګنجائش شته.

**دروژې فديه** قوله تعالىٰ: ﴿وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ﴾ د دې آيت بې تکلفه معنى هم هغه ده چې د تفسير په خلاصه کښې ښودلې شوې ده، يعنى چې کوم خلق، د مريض يا مسافر پشان د روژې نيولو نه پاتې نۀ راځي بلکه د نيولو طاقت ئې لري ليکن په څه وجه ئې روژه نيول، زړۀ نۀ غواړي نو ورد پاره دا ګنجائش شته چې دوئ د روژو په بدل کښې فديه ورکړي چې شکل ئې د صدقې وى خوورسره ئې او فرمائيل ﴿وَأَن تَصُومُوا خَيْرٌ لَّكُمْ﴾ چه تاسو د پاره روژه نيول غوره دى،

**د فديه حکم د عام خلقو نه منسوخ شوې دې**: دا حُکم د اسلام په روميې زمانه کښې ؤ چه خلقو لره په روژو عادت کول مقصود ؤ بيا په وريسې راتلونکى آيت قوله تعالىٰ: ﴿فَمَن شَهِدَ مِنكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ﴾ سره دا حکم د عام خلقو په حق کښې منسوخ کړې شو، صرف د داسې خلقو د پاره د اُمت په اجماع سره په ځائې پريښودل شو چه زيات بوډاګان وى [جصاص] ([1]) يا داسې رنځوروى چې د رغيدو اُميد ئې نۀ وى چنانچه د جمهور صحابه کرامو رضي الله عنهم او د تابعينو رحمهم الله هم دغه قول دې [جصاص، مظهرى].

صحيح بخارى، مُسلم، ابوداؤد، نسائى، ترمذى او طبرانى وغيره، د حديث ټولو امامانو د حضرت سلمه بن اکوع رضي الله عنه نه نقل کړيدى چې کله دا آيت ﴿وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ﴾ نازل شو نو مونږ ته اختيار راکړې شوې ؤ چه د چا زړۀ غواړي روژه د اُونيسى او چه د چا زړۀ غواړي نو د هرې روژې فديه دور کوى بيا چه کله آيت ﴿فَمَن شَهِدَ مِنكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ﴾ نازل شو نو دا اختيار ختم شو او طاقت لرونکو باندې صرف روژه نيول لازم شو ([2]).

په مسند احمد کښې د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه يو اُوږد حديث کښې دى چې د مونځ په معاملاتو کښې هم د اسلام په شروع کښې درې قسمه تبديلئ راغلې او د روژې په معامله کښې هم درې تبديلئ راغلې د روژې درې تبديلئ دا دى چه رسول الله ﷺ هر کله چې مدينې منورې ته تشريف راؤړلو نو هره مياشت کښې به ئې درې روژې نيولې او د عاشورې د ورځې روژه به ئې هم نيوله، بيا د رمضان د روژو فرض کيدل نازل شو ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ﴾ نو حکم دا ؤ چه څوک روژه نيسى او که څوک په بدل کښې ئې فديه ورکوى اختيار دې ورته، خو روژه نيول ورلره بهتر او غوره دى، بيا الله جل شانه بل آيت ﴿فَمَن شَهِدَ مِنكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ﴾ نازل کړو چه ورسره د روغ موټ بنده نه دغه اختيار ختم کړې شو صرف روژه نيول پرلازم کړې شو، خو د ډير بوډا د پاره دا حکم په ځائې پاتې شو چه که هغه غواړي نو فديه ورکولې شي.

---

[1]) أحكام القرآن: ١/ ١٧٨، و تفسير المظهرى تحت هذه الآية ١/ ١٩٥

[2]) صحيح البخارى، كتاب التفسير، باب قوله فمن شهد منكم الآية: ٢/ ٦٤٧، وصحيح مسلم، كتاب الصيام، باب بيان نسخ قول الله تعالى: ١/ ٣٦١، وسنن النسائى، كتاب الصيام، باب تاويل قول الله تعالى: ١/ ٣١٨، وسنن ابى داؤد، كتاب الصيام، باب قوله تعالى وعلى الذين الآية: ١/ ٣١٧، وجامع الترمذى، أبواب الصوم، باب ما جاء على الذين: ١/ ١٦٤

دادوه تبدیلئ شوي، دریمه تبدیلي دااوشوه چې په شروع کښې دروژې ماتولونه پس د خوراک څکاک اوکوروالی اجازت ترهغه وخته پورې وُوچه دغه کَس به لااوده [بیده] شوي نه وُو، چه اوده [بیده] به شونو په راویښیدوبه بله روژه شروع شوه اوخوراک څکاک وغیره به پرې باندمنع شوبیا الله ﷻ، آیت ﴿أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ﴾نازلولوسره داآساني ورکړه چې راتلونکې صباصادق نه وړاندې پورې خوراک څکاک وغیره ټول روادی[۱]، که څوک به دغه شپه کښې اُوده هم شونو په راویښیدوورته پیشمنې[پیشملئ] سنت اوګرځولې شو،صحیح بخاری، مسلم، ابوداؤد ، کښې هم ددې مضمون احادیث راغلی دی[ابن کثیر][۲]

**دفدئې مقدار اوورسره تړلی مسائل:** دَیوې روژې فدیه نیم اوړې یعنی نیمه کاسه غنم یاددې قیمت دې نیم صاع زمونږ دمروجه سیر داتیاتولود تعمیر په حساب تقریبًاپاؤکم دوه سیره جوړیږی، ددې بازاری قیمت معلومولوسره چاغریب مسکین لره ئې مالک ګرځولوسره دَیوې روژې فدیه اداکیږی خوشرط دادې چې دَځه جُماعت،مدرسې وغیره په خدمت کښې ورته مُجرانکړې شی.

**مسئله:** دَیوې روژې فدیه په دوُوکسانوتقسیمول یادَځوروژوفدیه یوکَس ته په یوتاریخ کښې ورکول درست نۀ دی لکه چې شامی[۳] په حواله دَالبحرالرائق سره دَقُنیه نه نقل کړیدی اوبیان القرآن بیاددې نه نقل کړیدی مګرحضرت په امدادالفتاوی کښې فتوای په دې نقل کړې ده چې دادواړه صورتونه روادی،شامی هم فتوی په دې نقل کړې ده البته په امدادالفتاوای کښې دی چې احتیاط په دې کښې دې چې دګنړوروژوفدیه ،په یوتاریخ دیوکَس ته نۀورکوی خوپه ورکولوکښې ئې ګنجائش هم شته دې.دافتوای دَامدادالفتاوای ۱۳۵۳سنه دویم جلدپه ۱۲۴مخ درج ده .

**مسئله:** که څوک دَفدئې ورکولوهم توفیق نۀلری نوهغه دفقط دَ الله ﷻ نه بخښنه غواړی اوپه زړه کښې دنیت اوکړی چې په وَس موندوسره به ئې اداکوم[بیان القرآن][۴]

| | | | |
|---|---|---|---|
| شَهْرُ | رَمَضَانَ | الَّذِيٓ | أُنْزِلَ |
| میاشت د | رمضان | هغه ده | چې نازل کړې شو |
| رمضان هغه میاشت ده چې نازل شوې دې | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فِيهِ | الْقُرْآنُ | هُدًى | لِّلنَّاسِ | وَبَيِّنَٰتٍ | مِّنَ الْهُدَىٰ | |
| په هغې کښې | قرآن | چې هدایت دې | دپاره دخلقو | او روښانه دلیلونه دی | دلارموندلو | |
| په دې کښې قران چې د خلقو دپاره سراسر هدایت دې \| اود نیغې لارې واضح دلیلونه په کښې موجود دی | | | | | | |

[۱]) مسند أحمد رقم الحديث: ۲۱۱۰۷
[۲]) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ۱/ ۵۱۲
[۳]) الشامیة، کتاب الصوم، فصل فی العوارض المبیحة لعدم الصوم: ۲/ ۴۲۷
[۴]) تفسیر بیان القرآن تحت هذه الآیة: ۱/ ۱۱۶

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَالْفُرْقَانِ ۚ | فَمَنْ | شَهِدَ | مِنْكُمُ | الشَّهْرَ | فَلْيَصُمْهُ ۖ |
| اوحق لره دباطل نه جدا کولو | نوهغه چاچې | ابیا مونده | ستاسونه | دامیاشت | نوخامخا دې روژې اونیسي دهغې |

اوحق اوباطل په ښه شان سره جدا کوي | نوڅوک چه په تاسو کښې دا میاشت بیا مومی | نوخواه مخواه دې روژې نیسی

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَنْ كَانَ | مَرِيْضًا | اَوْعَلٰى سَفَرٍ | فَعِدَّةٌ | مِّنْ اَيَّامٍ | اُخَرَ ؕ | يُرِيْدُ اللّٰهُ |
| او هغه څوک چې وی | ناجوړه | یا په سفر | نو شمار | دورځو | نورونه | غواړي الله |

اوڅوک چې ناجوړه وی | یا په سفر کښې وی | نوهغه دې په نورو ورځو کښې [دروژو] شمیر پوره کړی الله غواړی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِكُمُ | الْيُسْرَ | وَلَا يُرِيْدُ | بِكُمُ | الْعُسْرَ | وَلِتُكْمِلُوا |
| په تاسو باندې | آسانتیا | اونهٔ غواړی | په تاسو باندې | سختی | اودپاره ددې چې تاسو پوره کړئ |

چې تاسوسره نرمی اوکړی اوپه تاسو سختی کول نه غواړی [اودا چل درته ځکه ښائی] چې پوره کړئ تاسو

| | | | |
|---|---|---|---|
| الْعِدَّةَ | وَلِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ | عَلٰى مَا هَدٰىكُمْ | وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ۝ |
| شمار | اوچې لوئی بیان کړئ دالله | په دې چې هدایت ئې کړې دې تاسوته | اودپاره ددې چې تاسو شکراو باسئ |

شمیر د روژو | اوچې په دې هدایت باندې دالله لوئی بیانوئ | اود دې دپاره چې دهغه شکر ادا کړئ

## آسان ترجمه قرآن

د رمضان میاشت هغه ده چه په هغې کښې قرآن نازل کړې شو چه دا دخلقو دپاره پوره هدایت اود داسې روښانه نښو والادې چه دا صحیح لاره ښائی اودحق اوباطل په مینځ کښې صحیح فیصله کوی لهٰذا په تاسو کښې چه څوک هم دا میاشت بیامومی، هغه دې په دې کښې ضرور روژې اونیسی، اوکه څوک سړې بیمار وی یا په سفر کښې وی نوهغه دې په نورو ورځو کښې هم دغه هومره شمیر پوره کړی الله تاسوسره د آسانتیا معامله کول غواړی، اوستاسودپاره مشکل پیدا کول نه غواړی چه (تاسو د روژو) شمیرپوره کړئ اوالله چه تاسوته کومه لاره ښودلې ده په دې باندې د الله تکبیر اووایئ اوچه تاسوشکرگذاره جوړشئ.

## خلاصه تفسیر او ربط

**د روژې د ورځو تعین:** [مخکښې ارشاد شوې وو چه لږې روژې نیسئ اوس ورپسې ددغه لږو ورځو بیان دې هغه لږې ورځې چه په کښې دروژې نیولو حکم شوې دې] ﴿شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِيْٓ اُنْزِلَ فِيْهِ الْقُرْاٰنُ﴾ میاشت د رمضان ده چه په کښې [داسې یو برکت دې چې ددې په یوه خاصه برخه یعنی شب قدر کښې]قرآن کریم [دلوح محفوظ نه په نزدې آسمانه] ﴿ رالیږلې شوې دې هُدًى لِّلنَّاسِ﴾ چې دهغې یو خوبی داده چه خلقو دپاره د هدایت [ذریعه] دے ﴿وَبَيِّنٰتٍ مِّنَ الْهُدٰى وَالْفُرْقَانِ﴾ او [بله خوبی یئ داده چه دهدایت په طریقې خودلو کښې ددې هره هره برخه] ښکاره دلالت کوونکې ده [اوپه دې دواړو خوبو کښې]دهغه [آسمانی] کتابونو دقبیلې نه دې [چه دا دواړه خوبئ لرئ یعنی ذریعه د] هدایت [هم] وی او [دښکاره دلالت کولووجې دحق اوباطل په

مینځ کښې] فیصله کوونکی هم وی. ﴿فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ﴾ نو څوك چه په دې میاشت کښې موجود وی هغه ته پکار دی چه په دې کښې روژے اونیسی [او مخکښې ذکر شوې د فدیے اجازت منسوخ شو] ﴿وَمَنْ كَانَ مَرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ﴾ او [بیمار اومسافر دپاره چه کوم مخکښې قانون وو نوهغه اوس هم هغه شان باقی دې] څوك چه [داسې] بیمار وی [چه په کښې روژه نیول ورته گرانه یا ضرری وی] یا په [شرعی] سفر کښې وی نو [هغه ته په رمضان کښې دروژے نه ساتلو اجازت دے اودرمضان د ورځو په ځائې] دنورو ورځو [هومره] شمیر [روژے پوره] کول [پده واجب دی] ﴿يُرِيدُ اللَّهُ بِكُمُ الْيُسْرَ﴾ الله ﷻ ته تاسو لره [په احکامو کښې] آسانی [درکول] منظور دی [له دے وجې داسې احکام یئ مقرر کړل چه تاسویې په آسانه پوره کولې شئ لکه څنگه چه یئ په بیمارئ اوسفرکښې آسان قانون مقرر کړو] ﴿وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ﴾ او تاسو دپاره [په احکامو اوقوانینومقررلو کښې] سختی منظوره نه ده [چه سخت احکام یئ تجویز کړې وے] ﴿وَلِتُكْمِلُوا الْعِدَّةَ وَلِتُكَبِّرُوا اللَّهَ عَلَىٰ مَا هَدَاكُمْ﴾ او [دا ذکر شوی احکام مونږ دخاص خاص مصلحتونو په بنا مقرر کړل لکه اول دروژے نیولو اوبیا په شرعی عذر سره دروژے نه نیولو په صورت کښې په نورو ورځوکښې ددې مقدار دقضا راوړلو حکم یئ له دے وجې اوکړو] چه تاسو خلق دالله ﷻ لوئی بیانوئی په دې چه تاسوته یئ [یوداسې] طریقه اوخودله [چه په هغې سره تاسو دروژے دبرکتونو او ثمراتو نه بےنصیبه پاتې نشئ ځکه چه که چرې قضا راوړل واجب نه وې نو چابه دومره روژے نیولے اوثواب به یئ گټلے] ﴿وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾ او [دعذر په وجې سره خاص په رمضان کښې د روژے نه نیول اجازت یئ په دې وجه درکړو] چه تاسو خلق داسانتی په دې نعمت دالله ﷻ] شکر کوئی [که چرې دا اجازت نه وې نو ډیر تکلیف به درته پیښ شوې وو].

## معارف اومسائل

**قوله تعالی:** ﴿شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِي أُنزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ﴾:: په دې آیت کښې دَتیرشوی مجمل آیت بیان هم دې اودَرمضان دَمیاشتې دَاعلی فضیلت اوبزرگئ ذکرهم، بیان په دې شان دې چې په تیروشوؤ آیتونو کښې د ﴿أَيَّامًا مَّعْدُودَاتٍ﴾ لفظ مجمل دې چې تشریح ئې دې آیت اوکړه چې دادمیاشتې دَرمضان شریف پوره ورځې دی اوبزرگی ئې دابیان کړې شوه چې الله ﷻ دامیاشت دَخپلی وحی اوآسمانی کتابونونازلولو دَپاره غوره کړې ده، چنانچه قرآن کریم هم په دې میاشت کښې نازل شو، مسند احمد کښې دَحضرت واثله بن اسقع رضی الله عنه روایت دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل: دَحضرت ابراهیم علیه السلام صحیفې دَرمضان په رومبئ تاریخ نازلې شوې، تورات ئې په شپږمه نیټه، انجیل ئې په دیارلسمه نیټه اوقرآن کریم ئې په څلیریشتمه نیټه نازل شو. اودَحضرت جابر رضی الله عنه په روایت کښې داهم دی چې زبورپه دولسمه نیټه دَرمضان اوانجیل په اتلسمه نیټه دَرمضان شریف نازل شو [ابن کثیر] ([1])

[1]) مسند أحمد رقم الحديث: ١٦٣٧٠، و تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ١/ ٥٠١

په دې حديث کښې د مخکينو آسماني کتابونو نازليدل چې په کوم تاريخ کښې ذکر کړې شوي دي په هغه تاريخ کښې هغه کتابونه پوره پوره په انبياء کرامو ﷺ باندې نازل کړې شوي دي خو دقرآني کريم خصوصيت دادې چې درمضان شريف په پوره شپه کښې دلوح محفوظ نه پوره کره نزدې آسمان ته نازل کړې شو خو رسول الله ﷺ باندې دغه ځائې نه وارپه وار ديرويشت کاله کښې نازل شو.

**شب قدر کومه شپه ده:** درمضان شريف هغه شپه چې پکښې قرآن کريم نازل شو دقرآن کريم دڅرګندبيان مطابق داشب قدروه فرمائي ﴿إِنَّآ أَنزَلْنَٰهُ فِى لَيْلَةِ ٱلْقَدْرِ﴾ په دې تيرشوي حديث کښې دادڅليريشتم درمضان شپه ښودلې شوې ده اودحضرت حسن ﵁ په نزد څلريشتمه شپه درمضان شب قدروي. داشان داحديث دقرآن کريم دآيت مطابق جوړيږي اوکه داجوړښت اونۀ منلې شي نوپه هرحال ،دقرآن کريم ښکاره خبره په ټولوباندې وړاندې ده چې کومه شپه شب قدروي نوهغه به مرادوي.

**قوله تعالٰى:** ﴿فَمَن شَهِدَ مِنكُمُ ٱلشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ﴾ په دې يوه جمله کښې دروژې متعلق ډيرو احکامو او مسائلو ته اشارې دي، دشهدلفظ شهودنه جوړدې چې معنى ئې حاضريدل اوموجوديدل دي اوالشهر په عربي ژبه کښې دمياشتې معنى ورکوي، مراددې نه درمضان مياشت ده چې ذکرئې پورته راغلې دې نودې جملې دامعنى شوه چه، له تاسوځنې چې څوک درمضان په مياشت کښې حاضرموجودوي په هغه لازم دى چې دپوره مياشتې روژې اونيسي.

دې نه وړاندې آيت کښې دفدئې ورکولوعام اختيارپه دې جملې سره منسوخ شواوصرف روژه نيول لازم کړې شو. درمضان په مياشت کښې دحاضريدواوموجوديدومفهوم هم دادې چې څوک مياشت د روژې په داسې حالت کښې بيامومي چې دروژې نيولو جوګه وي يعنى مسلمان، عاقل، بالغ، مقيم وي اودحيض اونفاس نه پاکه وي.

که په چاپوره رمضان په داسې حالت کښې تيرشوچه دې پکښې قطعًادروژې نيولوجوګه نۀ وي لکه کافر، نابالغ ليونې وى نوداخلق دسره دې حکم مخاطب نۀ دي ځکه پردتيرشوي رمضان روژې دسره فرض شوي نۀ دي مګرڅوک چې ذاتي طوردروژې نيولوجوګه وي مګرپه عارضي ډول دڅه عذردکبله دروژه نيولونه څوورځې پاتې راشي [عاجزه سی] لکه حيض، نفاس والابڅه يامريض اومسافرشونودوئ په يوحيثيت سره درمضان مياشت په داسې حالت کښې بيامونده چې دوئ پکښې دروژې نيولوجوګه ؤ نودآيت حکم ددوئ په حق کښې ثابت شو البته دوختي عذرپه وجه داوخت ورته روژه معاف ده چې روستوپرقضالازمه ده چې تفصيل ئې راروان دې.

**مسئله:** ددې آيت نه معلومه شوه چې درمضان دروژودفرض کيدودپاره دقابل کيدلو په حالت کښې درمضان مياشت بيامومندل شرط دى په دې وجه که چاپوره رمضان بيامونده نودرمضان پوره روژې پرفرض شوې که مياشت څه کمه بيامونده نودهغې په حساب روژې فرض شوې. څومره ورځې چې درمضان ئې بيامونديې په دې وجه که يوکافردرمضان په مياشت کښې

مسلمان شو یا نابالغ پکښې بالغ شو نو په هغه به صرف پاتې روژې لازمې وي دَرمضان شریف دَتیرو شوو روژو قضاء راوړل نه پرې لازم نهٔ وي البته لیوني هر کله چې مسلمان او بالغ دې نو په دې اعتبار سره دَروژو نیولو ذاتي صلاحیت لري هغه دَرمضان شریف په څه برخه کښې چې په خودشي [پرسد سي] او په هوش کښې راشي نو دَ ټول رمضان تیرې شوې روژې نیول [یعنی قضا راوړل به ئې] پرلازم وي، داشان دَحیض او نفاس والا ښځه هر کله چې دَرمضان په منځ کښې پاکه شي یا رنځور پکښې روغ شي یا مسافر دیره [پالتا] په ځائې شي نو دَتیرو شوو روژو قضاء راوړل به پرلازم وي.

**مسئله**:: دَرمضان میاشت موندل په درې طریقو سره ثابتیږي یو دا چه پخپله دَرمضان میاشت اووینې بله دا چه په معتبرې ګواهئ سره میاشت لیدل ثابت شي او کله چې دا دواړه صورتونه موجود نشي نو دَشعبان دَمیاشتې دیرش ورځې پوره کولو نه پس به دَرمضان میاشت شروع شي.

**مسئله**: دَشعبان دَیو کم دیرشمې نیټې په ماښام که دَوریځې په وجه میاشت او نه لیدلې شي او دَمیاشتې دَلید وڅه شرعي ګواهي هم چرته نشي نو ورپسې راتلونکې [ادیرشمه] ورځ به دَشک ورځ بللې شي ځکه چې کیدې شي چې حقیقةً دَرمضان میاشت شروع شوې وي خو هر کله چې آسمان صفا نهٔ وو نو میاشت او نهٔ لیدلې شوه او دا احتمال هم شته چې دَسره هډو میاشت راختلې نهٔ وي، په دغه ورځ هر کله چې دَمیاشتې موندل نشي رشتیا کیدې نو دَدغې ورځې روژه نیول به واجب نهٔ وي بلکه مکروه به وي په حدیث شریف کښې دې نه منع راغلې ده چې فرض اونفل سره داسې ګډوډ نشي چې پیژند ګلي ئې نشي کیدې [جصاص] [۱]

**مسئله**:: چرته چې شپه اوورځ څو څو میاشتې اوږده وي هلته دَرمضان موندل خو په ظاهره صادق نهٔ راځي مقتضائې داده چې په دغه خلقو دَروژې دَسره فرض نشي چنانچه دَحنفي فقهاؤ ځنې حلواني او بقالي وغیره خو دَمونځ باره کښې هم په دې فتاوی ورکړې ده چې په دغه خلقو به هم دَهغوئ دَشپې اوورځې په اعتبار دَمونځ حکم لګولې شي، مثلاً کوم ملک کښې چې دَماښام نه سمدستي پس صبا صادق راخیژي، هلته دَماسختن مونځ دَسره فرض نهٔ دې [شامي] اَدَدې مقتضا داده چې چرته دَشپږو میاشتو ورځ وي هلته به په دغه شپږو میاشتو کښې صرف پنځه مونځونه وي او رمضان به هلته دَسره راځي نهٔ ځکه به روژه هم فرض نهٔ وي. حضرت حکیم الامت تهانوی رحمه الله په امداد الفتاوی کښې دَروژې په باره کښې دا قول غوره کړې دې.

قوله تعالٰی: ﴿فَمَنْ كَانَ مِنكُمْ مَّرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ﴾ په دې کښې رنځور او مسافر ته اجازت ورکړې شوې دې چې دغه وخت دروژه نهٔ نیسي کله چې روغ شي او سفرئې ختم شي نو هغه هومره ورځو قضا دراوړي، دا حکم اګرچه تیر شوي آیت کښې هم راغلې ؤ مګر هر کله چې په دې آیت کښې دَروژې په ځائې دَفدئې حکم منسوخ کړې شوې دې نو شُبه کیدې شوه چې شاید، دَ مریض او مسافر اجازت هم منسوخ شوې وي ځکه دا حکم دوباره راوړې شو.

---

۱) أحكام القرآن للجصاص: ۱/ ۲۰۵، ۲۰۶

| وَإِذَا | سَأَلَكَ | عِبَادِي | عَنِّي | فَإِنِّي | قَرِيبٌ ط | أُجِيبُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او کله چي | تپوس اوکړی ستانه | بندګان زما | په باره زما کښي | انو بيشکه زه | انزدې يم | قبلوم زه |

[اې پيغمبره] هر کله چي زما بندګان زما باره کښي ستانه تپوس اوکړي (١) اور ته او وايه] چي زه [هغوئ] ته ډیر نزدې يم (٢) کله چه

| دَعْوَةَ | الدَّاعِ | إِذَا | دَعَانِ لا | فَلْيَسْتَجِيبُوا | لِي |
|---|---|---|---|---|---|
| دعا | دغوښتونکی | کله چي | اوغواړی زمانه | انو پکار دی چي هغوئ قبوله کړی بلنه | زما |

زمانه څوک دعا اوغواړی نو دهغه دعا قبلوم (٣) انو پکار ده چی دوئ زما حکمونه اومنی [او په هغي عمل اوکړي

---

(١) **د ايت شان نزول**:- يو اعرابی تپوس کړې ووچه يارسول الله ﷺ خمونږ رب نزدې دې ؟ که نزدې وی چه مونږ هغه سره خبرې اوکړو، ياکه لرې وی نو چه مونږ هغه په زوره زوره آوازونوسره راوبلو.نبی کريم ﷺ خاموش شو.په دې باندې دا آيت نازل شو.(ابن ابی حاتم).

يو روايت کښې دی چه د صحابه کرامو ؓ په دې سوال باندې چه خمونږ رب چرته دې ؟ دا آيت نازل شو.(ابن جرير).حضرت عطاء فرمائی چه کله آيت ﴿ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ﴾ نازل شو يعنی ما بلئ؛ زه به ستاسو دعاګانې قبلوم.نو خلقو تپوس اوکړو چه دعا په کوم وخت کښې کول پکار دی.نو په دې باندې دا آيت نازل شو.(ابن جريج).

(٢) **په ذکر او دعا کښې اخفاء کول**:- دحضرت ابو موسی اشعری ؓ بيان دې چه مونږ نبی کريم ﷺ سره يو غزوه کښې وو،په هر اوچت ځای باندې دختلو په وخت،هر خوړ ته دکوزيدو په وخت کښې به مونږ تکبير وئيلو.نبی کريم ﷺ مونږ ته تشريف راوړو او وې فرمائيل چه ائې خلقو په خپلو ځانونو باندې رحم اوکړئی،تاسو څه کم آوريدونکی يا لرې ذات نه رابلئ؛ بلکه چه تاسو کوم ذات رابلئ؛ هغه پاک ذات ستاسو د سورلو څټونو نه هم تاسو ته زيات نزدې دې. ائې عبدالله بن قيس واورئی د جنت خزانه ﴿ لا حول ولا قوة الا بالله ﴾ ده (مسند احمد).

**الله د بنده سره وی**:- حضرت انس ؓ فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائی چه الله ﷻ فرمائی چه زما بنده ماسره څنګه عقيده ساتی،زه هم هغه سره هغه شان کوم،هرکله چه هغه زما نه دعا غواړی نو زه هغه سره يم (مسند احمد).

حضرت ابو هريره ؓ فرمائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه زما بنده چه کله ما يادوی او دده شونډې زما په يادکښې خوزی نو زه ده سره يم (رواه الامام احمد). ددې مضمون آيت قرآن پاک کښې هم دې،فرمان دې چه ﴿إِنَّ اللَّهَ مَعَ الَّذِينَ اتَّقَوْا وَالَّذِينَ هُمْ مُحْسِنُونَ﴾ چه کوم تقوی او احسان او خلوص والا خلق دی هغوی سره الله ﷻ دې.حضرت موسی ؑ اوحضرت هارون ؑ ته ئې اوفرمائيل چه ﴿قَالَ لَا تَخَافَا إِنَّنِي مَعَكُمَا أَسْمَعُ وَأَرَىٰ﴾ زه تاسو دواړو سره يم،ستاسو آورم او تاسو وينم

(٣) **الله دعا قبلوی**:- مقصد دا دې چه الله ﷻ ددعا کونکو دعا نه رد کوی او نه داسې کيږی چه هغه پاک ذات ددې دعا نه غافله پاتې شی،اودا واورئ.دې کښې دعا کولو طرفته رغبت ورکړې شوې دې اوددې نه ضائع کيدو وعده کړې شوې ده.

حضرت سلمان فارسی ؓ فرمائی چه نبی کريم ﷺ فرمائی چه بنده کله دالله ﷻ مخکښې لاس پورته کړی او دعا غواړی نو هغه پاک ذات ارحم الراحمين ددې نه شرميږی چه دده لاسونه خالی اوبې کاره راواپس کړی (مسند احمد).

**دعا عبث نه ځی**:- حضرت ابو سعيد خدری ؓ فرمائی چه نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی چه کوم يو بنده دالله ﷻ نه څه دعا کوی چه په هغې کښې نه څه ګناه وی،نه دې سره څه رشتې وغيره ماتيږی،نو ده ته دالله ﷻ په دريو خبرو کښې يو ضرور ورکوی.① دده دعا په هغه وخت کښې قبوله کړی او هم په هغه وخت کښې د هغه ..... باقی حاشيه په بل مخ مخ..

| يَرْشُدُونَ ﴿١٨٦﴾ | لَعَلَّهُمْ | وَلْيُؤْمِنُوا بِي |
|---|---|---|
| نيغه لار بيامومي | شايد چې هغوئ | او ايمان راوړي په ما |

اوبه مابانديې يقين اوكړي اد دې دپاره چه دوئ په سمه لار روان شي ۱

## آسان ترجمه قرآن

او (اې پيغمبره!) كله چه زما بندګان ستا نه زما په باره كښې تپوس اوكړي نو (ته هغوي ته اووايه چه) زه دومره نزدې يم چه كله څوك ما ته آواز كوي نو زه د آواز كونكي آواز اورم لهٰذا هغوي دې هم زما خبره په زړه سره اومني، او په ما دې ايمان راوړي، چه هغوي په نيغه لار راشي.

---

...باقي د تيرمخ]..... مراد پوره كوي. ② دا (دعا) دده دپاه ذخيره كړي او ده دپاره ئې ساتي او په آخرت كښې ورته د هغې ثواب وركوي. ③ ددې (دعا) په وجه څه راتلونكې مصيبت او بلا ترې لرې كړي. خلقو چه دا واوريدل نو وې وئيل چه مونږ به ډيرې دعاګانې كوؤ. نبي كريم ﷺ اوفرمائيل، چه بيا الله ﷻ سره د څه كمې دي. (مسند احمد).

**ناجائزه دعا نه قبليږي:-** حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه فرمائي چه نبي كريم ﷺ فرمائيلي دي چه په مخ د زمكې كوم مسلمان دالله ﷻ نه دعا اوغواړي نو الله تعالى هغه قبلوي يا دده چه څه مراد وي نو هغه دده ته ملاويږي يا دده نه هغه شان څه مصيبت لرې شي خو په دې شرط چه ده د رشته دارئ د پريښودو دپاره دعا نه وي كړې (مسند احمد).

**په دعا كښې تلوار نه دې كول پكار:-** حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې چه نبي كريم ﷺ فرمائيلي دي چه ترڅو پورې څوك په دعا كښې تيزي اونه كړي نوددده دعا ضرور قبليږي. تيزي كول دادي چه اووائي چه ما خو ډيرې دعاګانې اوغوښتلې خو قبولې نشوې. (موطا امام مالك). ( صحيح بخاري)

په بخاري شريف كښې روايت دې چه په ثواب كښې جنت وركړې كيږي. صحيح مسلم كښې دا هم دي چه هغه دې دنه قبليدو خيال د زړه نه اوباسي او دعا دې اوغواړي، دا تيزي كول نه دي. ( صحيح مسلم) د ابوجعفر طبري رحمه الله په تفسير كښې دي چه دا قول د حضرت عائشه رضي الله عنها بيان كړې شوې دې.

**د غافله دعا نه قبليږي:-** حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه فرمائي چه حضرت رسو ل اكرم ﷺ فرمائيلي دي چه زړونه په مثال دلوښو دي، بعضې بعضو نه زيات نګراني كولو والا وي. اې خلقو ! تاسو چه كله دالله ﷻ نه دعا غواړې نو دقبليدو يقين ترې ساتئ. واورئ د غافله زړه خاوند دعا الله ﷻ نه قبلوي. (مسند احمد).

**په يو څيز كښې د الله او د بنده شراكت:-** حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دې چه حضرت رسو ل اكرم ﷺ فرمائيلي دي چه د الله ﷻ ارشاد دې چه اې ابن آدم يو څيز خوستا دي، يو زما دې، او يو زما اوستا په مينځ كښې تقسيم دې. خالص زما حق دادې چه هم يو زما عبادت اوكړې، او زما سره څوك شريك نه جوړوې. خما سره مخصوص دا دې چه ستا دهر هرعمل پورا پورا بدله به څه تاته ضرور دركوم او ستا هيڅ نيكي به نه ضائع كوم. په مينځ كښې چه كوم يو څيز دې هغه دا دې چه ته دعا كوه او څه به ئې قبلوم. دعا كول ستا كار دې او دعا قبلول زما كار دى. ( البزار)

**د درې كسانو دعا نه رد كيدل:-** اويو بل حديث كښې دي چه د درې قسمه خلقو دعا نه رد كيږي. ① د عادل بادشاه ② د روژه دار دعا ③ او د مظلوم هغه به د قيامت په ورځ الله ﷻ اوچت كړي. د مظلوم بددعا دپاره د آسمان دروازې پرانيستې شي. او الله ﷻ فرمائي چه خمادې په خپل عزت قسم وي چه څه به ستا مدد ضروركوم، اګرچه زرنه وي. (ترمذي، احمد، نسائي او ابن ماجه)

## خلاصه تفسیر

**دآیتونو تړون:** ړومبی دریو آیتونو مبارکو کښې د روژې او د رمضان د احکامو او فضائلو ذکر وو. او دې ځخه روستو آیت مبارک کښې هم د روژې او د اعتکاف احکام تفصیل سره بیان شوی دی. ددې بحث په دوران کښې یو مختصر آیت مبارک کښې د بندګانو په حال باندې د الله ﷻ خاص عنایت او ددوئ د دعاګانو د آوریدو او قبلیدو ذکر وو او دې سره سره د الله ﷻ د اطاعت ترغیب ورکړې شوې دې. ځکه چې د روژې په عبادت کښې د رخصتونو او د آسانو باوجود دې کښې څومره مشقت دې. ددې د آسانولو دپاره ئې د خپل خاص عنایت ذکر کړې دې چې زه خپلو بندګانو ته نزدې یم، کله هم چې دوئ دعا کوی نو ددوئ دعاګانې قبلوم، او ددوئ حاجتونه پوره کوم.

دې حالاتو کښې بندګانو ته پکار دی که څما د احکامو په پوره کولو کښې څخه مشقت هم برداشت کول وی نو چې هغه برداشت کړی. او امام ابن کثیر رحمه الله ددې د ترغیب ددې منځنئ جملې دا حکمت خودلې دې چې دې آیت مبارک کښې اشاره ده چې روژې نه روستو دعا قبلیږی، په دې وجه د دعا خاص اهتمام کول پکار دی. نبی کریم ﷺ فرمائی چې:

﴿للصائم عند فطره دعوة مستجابة﴾[ابوداؤد، طیالسی بروایة عبدالله بن عمر رضی الله عنهما][1]

یعنی د روژه ماتی په وخت کښې د روژه دار دعا قبلیږی.

ځکه خو به عبدالله بن عمر رضی الله عنهما د افطار په وخت کښې ټول کور والا جمع کول او دعا بهٔ ئې کوله. د آیت مبارک تفسیر دادې: ﴿وَاِذَا سَاَلَكَ عِبَادِيْ عَنِّيْ﴾ او [ائې محمد ﷺ] کله چه زما بندګان زما په باره کښې معلومول غواړی [چه زه دوی ته نزدې یم که لرے] ﴿فَاِنِّيْ قَرِيْبٌ﴾ نو [زما د طرفه هغوی ته اووایه چه] زه بالکل نزدې یم [او دنامناسب خواست نه بغیر] ﴿اُجِيْبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ اِذَا دَعَانِ﴾ قبلوم [هر] خواست دغوښتونکو چه هغه زما په حضور کښې سوال کوی نو [چه څنګه زه دده هغوی خواست قبلوم] ﴿فَلْيَسْتَجِيْبُوْا لِيْ﴾ هغوی له هم پکار دی چه زما احکام [ځائې راوړلو سره] قبلوی [اوهرکله چه په دې احکامو کښې یوحکم هم نامناسب نه دې نوددې وجې په دې کښې هیڅ استثنا نشته دې] ﴿وَلْيُؤْمِنُوْا بِيْ﴾ اوپه ما یقین کوئی [یعنی زما په هستئی هم زما په حاکمیت هم اوزما په حکیمیت هم او داشان په رعایتونو اوښیکړو زما هم] ﴿لَعَلَّهُمْ يَرْشُدُوْنَ﴾ امید دې چې دغه خلق به سمے [اوبرے] بیاموندې شی.

**مسئله:** دې آیت مبارک کښې ﴿فَاِنِّيْ قَرِيْبٌ﴾ اوفرمائیلې شو او دا دې طرفته اشاره اوکړې شوه چې دعاء په کرار کرار او په پټه کول پکار دی. په دعاء کښې آواز اوچتول خوښ عمل نه دې. ابن کثیر رحمه الله د آیت مبارک شان نزول هم دا ذکر کړې دې چې د یو کلی اوسیدونکی د نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو که زمونږ رب مونږ سره نزدې دې نوچې مونږ دعا په کرار کرار غواړو، او که لرې وی نو چې په اوچت آواز سره دعا غواړو، نو په دې باندې دا آیت مبارک نازل شو.

[1]) مسند ابی داؤد الطیالسی، احادیث عبدالله بن عمرو رقم الحدیث: ۲۳٦٤، وتفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ۱/ ۵۰۹

أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ

حلال کړې شوې دي|ستاسو دپاره| په شپه | د روژو کښې

|تاسو دپاره د روژو په شپه کښې

الرَّفَثُ إِلَىٰ نِسَائِكُمْ ۚ هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ وَأَنتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ ۗ عَلِمَ اللَّهُ

کوروالي| دښځو خپلو سره | هغوئ |جامې دي |ستاسو دپاره| اوتاسو |جامې يئ| دهغوئ دپاره |معلوم دی الله ته

خپلو ښځوته نزديکت مباح شوې دي|هغوئ ستاسو جامې دی اوتاسو دهغوئ جامې يئ| الله ته معلومه ده چې

أَنَّكُمْ كُنتُمْ تَخْتَانُونَ أَنفُسَكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَعَفَا

چې بيشکه| تاسو |خيانت اوکړو | دخانونو خپلو سره| نو رجوع د رحمت ئې اوکړه|په تاسو باندې| اومعافي ئې اوکړه

تاسو دخپلو خانونو سره[پټ پټ] خيانت کړې دې| نو هغه ستاسو توبه قبوله کړه| اوتاسو ئې معاف کړئ

عَنكُمْ ۖ فَالْآنَ بَاشِرُوهُنَّ وَابْتَغُوا مَا كَتَبَ اللَّهُ

تاسو ته | نواوس | دشپې جماع کوئ دهغوئ سره | اوغواړئ |هغه اولاد| چې ليکلې دې الله

نواوس ورسره [دشپې]کوروالې کوئې|اوکوم[خوند او اولاد]چې الله ستاسو دپاره مقرر کړې دې هغه حاصلوئ شئ

لَكُمْ ۚ وَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ

ستاسو دپاره| او خورئ | او څکئ |تر هغې پورې |چې ښکاره شي| تاسو ته | تار

........[ددې نه سوا] دشپې خوراک اوڅکاک هم کوئې| تردې چې راښکاره شي سپين تار

الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ ۖ ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ ۚ

سپين | د تار | تورنه | يعنې صبا | بيا |پوره کړئ | روژه | دشپې پورې

[د صبا رڼا]درته دشپې د تور تار[د شپې تيارې] نه اوصبا راوخيژی| نو بيا ترماښام پورې روژه پوره کوئ

وَلَا تُبَاشِرُوهُنَّ وَأَنتُمْ عَاكِفُونَ فِي الْمَسَاجِدِ ۗ تِلْكَ

او کوروالي مه کوئ دښځوسره | کله چې تاسو| اعتکاف کونکي يئ| په جوماتو نو کښې| دا

او[بله داچې] ښځو ته مه ورنږدې کيږئ کله چې تاسو په جماتونو کښې اعتکاف کښې ئی | دا

حُدُودُ اللَّهِ فَلَا تَقْرَبُوهَا ۗ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ آيَاتِهِ لِلنَّاسِ

حدونه دالله دی | نو مه نزدې کيږئ هغې ته| هم دارنګې| بيانوی | الله | آيتونه خپل| دپاره دخلقو

دالله [مقرر کړې] حدونه دی |نودې ته نزدې نزدې مه ګرځئ الله خلقو ته خپل حکمونه وضاحت سره بيانوی

لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ۝

اميد دې چې هغوئ |ځان اوساتی دغلطو طريقو نه|

چې هغوئ دغلط کارونونه بچ شی |

## آسان ترجمه قرآن

ستاسو دپاره حلال کړې شوی دی چه د روژوپه شپه کښې تاسو خپلو بیبیانو سره بې تکلفه صحبت کوئ هغوی ستاسو دپاره جامې دی او تاسو دهغوی دپاره جامې یئ، الله ته علم وو چه تاسو خپلو ځانونو سره خیانت کولو بیا هغه په تاسو مهربانی اوکړه او ستاسو غلطی ئې معاف کړه نو تاسو اوس دهغوی سره صحبت کوئ، او کوم څه چه الله ستاسو دپاره لیکلی دی هغه طلب کوئ او تر هغه وخته پورې تاسو خورئ څکئ چه ترڅو پورې دصَبا سپینه کرښه [غاړه] د تورې کرښې [غاړې] نه زیاته ښکاره کیدوسره په تاسو باندې واضحه (نه) شی ددې نه پس تر شپې راتلو پورې روژې پوره کړئ، اودهغوی (خپلو بیبیانو) سره په دې حالت کښې مباشرت مه کوئ کله چه تاسو په جماتونو کښې په اعتکاف کښې ناست یئ دا د الله (مقرّر کړې شوی) حدونه دی لهٰذا ددې (خلاف ورزئ) ته نزدې هم مه ورځئ دغه شان الله خپلې نښې خلقو ته ښکاره بیانوی چه دوی تقوٰی اختیار کړی.

### خلاصه تفسیر

﴿أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلَىٰ نِسَائِكُمْ﴾ ستاسو خلقو دپاره دروژے په شپه کښې خپلو ښځو سره مشغولیدل حلال کړې شو [او مخکښې چه کوم بندیز وو هغه پورته شو] ﴿هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ﴾ ځکه چه [دنزدیکت او ځائے کیدو په وجې سره] هغوی تاسو لره [لکه د] لباس او خورولو [څیزونو] دی ﴿وَأَنتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ﴾ اوتاسو هغوی لره [لکه د] اغوستلو او ویړولو اچولو [څیزونو] یئ ﴿عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ كُنتُمْ تَخْتَانُونَ أَنفُسَكُمْ﴾ الله ﷻ په دې خبر وو چه تاسو [په دې دالله ﷻ په حکم کښې] دخیانت [کولو] په گناه کښې ځان اخته کولو [مگر] خیر [چه تاسو بیا عذر خواهی اوکړه نو] ﴿فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَعَفَا عَنكُمْ﴾ الله ﷻ په تاسو احسان اوکړو او تاسو نه یئ گناه اووینځله نو [چه اجازت اوشونو] ﴿فَالْآنَ بَاشِرُوهُنَّ﴾ اوس هغوی سره یوځائې کیږی اوهغوی دې تاسو ته جوختیږی ﴿وَابْتَغُوا مَا كَتَبَ اللَّهُ لَكُمْ﴾ اوچه څه [داجازت قانون] یئ تاسو دپاره تجویز کړی دی [بې تکلیفه] دهغې بندوبست کوئی ﴿وَكُلُوا وَاشْرَبُوا﴾ او [څنگه چه دروژې په شپه کښې خپلې ښځې سره دکوروالی اجازت دې دغه شان ددې هم اجازت دی چې توله شپه کښې چه غواړئی] خورئی [هم] او څښئ [هم] ﴿حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ﴾ تر هغې پورې چه درته سپینه لیکه دصبا [صادق رڼا] بیله بیله ښکاره شی دتورے کرښے نه [یعنی دشپې ډتیرې نه] ﴿ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ﴾ نو بیا [دصبا صادق نه] دشپې [دراتلو پورې روژه سرته رسوئی. [دصبا دسپین والی کرښے نه شپې دتیارې دتورے کرښے نه دبیلے ښکاره کیدومطلب دادې چه صبا صادق په یقینی توگه ثابت شی]

**ښځم حکم د اعتکاف:** ﴿وَلَا تُبَاشِرُوهُنَّ وَأَنتُمْ عَاكِفُونَ فِي الْمَسَاجِدِ﴾ اوددې خپلو ښځو [بدن] سره خپل بدن هم [په شهوت سره] مه ورجوختوئی اومه یو ځائې کوئی کله چه تاسو اعتکاف کوونکی یئ [چه] په مسجدونو کښې [کیږی] ﴿تِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ فَلَا تَقْرَبُوهَا﴾ دا [ټول ذکر شوی احکام] دالله ﷻ ضابطے دی نو ددې [ضابطو] نه [وتل خولاخه کوئی] وتلوته یئ نزدې کیږئی هم مه [لکه څنگه چه الله ﷻ دا احکام بیان کړی دی] ﴿كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ آيَاتِهِ لِلنَّاسِ﴾ دغه شان الله ﷻ خپل [نور] احکام [هم]

دخلقو د [اصلاح] دپاره بيانوي ﴿لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ﴾ په دې امید چه دا خلق [په احکامو خبر شی اوددې دخلاف کولونه] پرهيز اوکړی.

## معارف او مسائل

**د قوله تعالٰى:** ﴿أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ﴾ لفظ نه معلومه شوه چې کوم څيزدَدې آيت په ذريعه حلال کړې شوې دي هغه دَدې نه وړاندې حرام ؤو. دَبراء بن عازب ﷺ په روايت په صحيح بخاری وغيره کښې ذکرشوی دی چې دَرمضان دَروژودفرض کيدو په شروع کښې دَروژه ماتی نه پس دَخوراک څکاک اوبيبيانو سره دَيوځائې کيدو صرف ترهغې پورې اجازت ؤوچه اوده شوې به نۀ ؤو، هرکله چې به اوده شونو داتول څيزونه به تربله روژه ماتی پورې حرام شو، څه صحابه کرامو ﷺ ته په دې کښې ډيرې ګرانئ پيښې شوې، قيس بن صرمه انصاری ﷺ تول ورځ مزدوری کړې وه اودروژه ماتی په وخت چې کورته راغلوپه کورکښې دَخوراک دَپاره هيڅ نۀ ؤو، بی بی ورته اووئيل چې زۀ څه انتظام کوم اوراوړم ئي، کله چې دابيرته کورته راغله نودستومانتياله کبله دغه صحابی اُوده شوې ؤوچه بيدارشونوخوراک څکاک وغيره پرحرام شوې ؤو، صباله ئې بياپه لوږه روژه اونيوله نوپه غرمه کښې بيهوشه شو [ابن کثير] ([1]) هم داشان څنې صحابه کرام ﷺ چه به دَاُوده کيدونه پس خپلوبيبيانوسره يوځائې شونودېرپريشانه شو. نودا آيت نازل شوچه پرړومبې حکم منسوخ شواودَنمرډوبيدو [روژه ماتی] دَوخت نه ترصباراختوپورې ټوله شپه دَخوراک څکاک اودَجماع عام اجازت ورکړې شو، اګرچه په دې دوران کښې اُوده شوې هم وی بلکه دَاُوده کيدونه پس دَپيشمنی خوراک څکاک کول سُنت اوتاکلې شوچه په احاديثوکښې هم په ښکاره ډول ئې بيان شوې دې څنګه ئې چې په دې آيت کښې بيان دې.

**د رفث معنی:** رفث: دَدې لفظی معنی اګرچه عامه ده يعنی يوسړې چې خپلې بی بی سره دَخپل خواهش پوره کولوپه غرض څه خبرې ياکارکوی هغه ټوله په دې کښې شامل دې ليکن په اتفاق دَاُمت سره، دلته ترمراد صرف جماع ده.

**دَشرعی احکامو ثابتولودپاره درسول ﷺ احاديث هم په حکم دَقرآن کښې دی:**: دې آيت چه کوم حکم منسوخ کړې دې يعنی دَاُوده کيدونه پس دَخوراک، څکاک وغيره حراموالی داحکم چرته هم په قرآن کښې ذکرشوې نۀ دې، دَرسول الله ﷺ په تعليم سره به صحابه کرامو ﷺ په دې حکم عمل کولو [احمد په خپل مسند کښې] ([2]) دې آيت هغې لره حکم الهی ګرځولوسره منسوخ کړو.

په دې آيت کښې ړومبې حکم، حکم الهی اوګرځولې شواوبيادآسانتيارا وستوپه غرض منسوخ کړې شو، اوس دې نه داهم معلومه شوه چه په سنت سره څنې ثابت شوی احکام دَقرآن کريم په ذريعه هم منسوخ کيدې شی [جصاص وغيره] ([3])

**دپيشمنی کولوآخری وخت:**: **قوله تعالٰى:** ﴿حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ﴾ په دې آيت کښې دَصباسپينوالی ته سپينه ليکه اودَشپې توروالی ته توره ليکی وئيلوسره دَروژې شروع کيدو اودَخوراک

---

[1] ) صحيح البخاری، کتاب الصوم، باب قول الله: احل لکم... الخ، ج:۱ ص: ۲۵٦، ۲۵۷، وتفسير ابن کثير تحت هذه الآية: ج ۱، ص ۵۱۰

[2] ) مسند أحمد رقم الحديث: ۱۷۸۷۰

[3] ) أحکام القرآن للجصاص، باب الاکل والشرب ج: ۲، ص ۷۵

ځکاک وغيره خرامید وصحیح وخت ئې اوټاکلو او په دې کښې ئې د کمې زياتی ختمولو د پاره د ﴿حَتّٰى يَتَبَيَّنَ﴾ لفظ زيات کړو، مطلب ئې دادې چې نۀ خو دو همی خلقو پشان دَصبار اختونه رومبې خوراک ځکاک وغيره حرام ګنړل پکاردی او نۀ بې پروايی کښې دې حد ته رسيدل پکاردی چې دَصبا په راختو ځان ناغرضه کړی او دَصبا د راننو ادليدلو باوجود بيغمه خوراک ځکاک کوی بلکه دا درميانه لار اختيارول پکاردی چې دَصباصادق په يقينی کيدو سره خوراک ځکاک بندول پکاردی، يعنی دَصبار اختونه وړاندې خوراک ځکاک وغيره لره حرام ګنړل هميشه ښۀ نۀ دی او دَصبار اختونه پس خوراک ځکاک وغيره کول حرام او روژه ماتوونکې دی اګرچه يو منټ قدرې هم وی، خبره دَيقين ده چې دَصبار اختل يقينی نۀ وی نو خوراک ځکاک حرام ګنړل ښۀ نۀ دی چې صبار اختل يقينی شو نو بيا خوراک ځکاک کول حرام او روژه ماتوونکی شو. په صحابو کرامو رضي الله عنهم داتور لګول درست نۀ دی چې دَچا په داسې وينا چې صبار اختلې دې يو صحابی همد غسې خوراک ځکاک جاری ساتلو چه دَ دغه صحابی پښپله دَصبار اختو يقين نۀ وو راغلې، داسې نۀ ده چې ګنی دَبل صحابی رضي الله عنه په وينائې يقين نۀ کولو بلکه دَهغه وينائې په بې احتياطئ بناشوې ګنړله.

په يو حديث کښې رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلې دې چې دَحضرت بلال رضي الله عنه آذان دستاسو دَ پيشمنی په خوراک ځکاک کولو کښې مانع نشی ځکه چې هغه په شپه کښې آذان کوی له دې وجې تاسو دَبلال رضي الله عنه په آذان دَخوراک ځکاک کولو نه مۀ بنديږئ ترڅو چه دَابن ام مکتوم آذان واؤنۀ رئ ځکه چې هغه ټيک دَصباصادق په راختو آذان کوی [بخاری ومسلم] (۱).

دَدې حديث په پوره شان نۀ نقل کولو په وجه ځنې موجوده علماؤته دا غلط فهمی شوې ده چې دَصبا [سهار] آذان نه پس هم څه شيبه او وخت خوراک ځکاک کول څه باک نۀ لری او ځوک چې ناوخته راوېښ شو او دَصبا [سهار] آذان کيدونو دې کَس ته ئې روا کړله چې هغه زرزر څه اوخوری او څکی، سره دَدې چې حديث په صفا [سهار] ټکو کښې بيانوی چې دَام مکتوم رضي الله عنه په آذان خوراک ځکاک بندول ځکه ضروری دی چې دۀ به دَصبا [سهار] په راختو آذان کوؤ. دې نه علاوه قرآن کريم چې پښپله کومه حدبندی کړې ده هغه دَصبا [سهار] راختل يقينی دی چې دَهغې نه پس يو منټ دَپاره هم دَخوراک ځکاک اجازت ورکول دَقرآن کريم دَښکاره بيان نه خلاف کول دی دَصحابه کرامو رضي الله عنهم او دَامت دَپخوانو علماؤنه په روژه ماتی او پيشمنی کښې دَنرمئ کولو روايتونه دَقرآن کريم دَدې ښکاره بيان په جوړهم په دې بنادی چې دَصبح صادق دَيقينی کيدونه وړاندې دَاحتياط په نوم ډيره تنګی داونکړې شی لکه چې ابن کثير (۲) دغه روايتونه په دې خبره بنا کړی دی که داسې نۀ وې نو دَقرآن کريم دَښکاره بيان نه مخالفت کول کوم يو مسلمان زغملې شی؟ او بيا دَصحابه کرام رضي الله عنهم له اړخه خو داسې کول په خيال کښې هم نۀ راځی خصوصاً په داسې وخت کښې چې دَآيت په آخر کښې ﴿تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ﴾ سره ئې ﴿فَلَا تَقْرَبُوْهَا﴾ اوفرمائيل او دَاحتياط کولو خاص تاکيدئې اوفرمائيلو.

---

(۱) صحيح البخاری، كتاب الصوم، باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: لا يمنعكم من سحوركم— الخ ج: ۱، ص ۲۵۷، وصحيح مسلم، كتاب الصيام، باب بيان الدخول في الصوم— الخ ج: ۱، ص: ۳۴۹، ۳۵۰

(۲) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية ج: ۱، ص: ۵۱۵

**مسئله**: دا تولي خبري دَهغه چا په باره کښې دي چې دَصباصادق راختو دَخپلو ستر گو په ليد و يقين کولې شي، دَصبا راختو ځائې ورته صفا وي او هغوئ دَصباصادق سپينوالي هم پيژني. داسې خلقو له ضروري دي چې دَخپلو ستر گو په کتلو دعمل او کړي که چرې دې درې وارو صورتونو کښې يو هم نهٔ وي نو هغه په نورو نخښو نښانو يا دَرياضي وغيره په حساب کتاب وختونه تاکی ښکاره خبره ده چې په دوئ به داسې وخت هم راځي چې صباصادق راختو کښې به ورته شک وی نو په داسې حالت کښې جصاص رحمه الله په احکام القرآن[۱] کښې فرمائ چې په دې حالت کښې اصلي خبره داده چې په خوراک څکاک دشروع نهٔ کوی او که چرې دیقین حاصلولو نه وړاندې ئې خوراک څکاک او کړو نو گنهگار خونهٔ دې البته که بیا هم دغه صبا راختل یقیني ثابت شو نو دَدغه روژې قضا راوړل پرې لازم او فرض دی یا لکه دَوریځې په ورځ په غلطئ چې څوک دَماښام نه وړاندې روژه ماته کړی او بیا ثابته شی چې ماښام شوې نهٔ وو نو دې گنهگار نهٔ دې خودغه قضا راوړل پر فرض دی. دَامام جصاص رحمه الله دَدې بیان نه ثابته شوه چې دَصبا راختو نه پس راویښیدونکی کَس که بې تحقیقه خوراک څکاک او کړو نو گنهگار هم دې او قضا راوړل به پرې هم خامخاوی او په څه درجه کښې مکروه والي به هم وی[۲].

**اعتکاف او ددې مسائل**: قوله تعالیٰ: ﴿وَاَنْتُمْ عٰكِفُوْنَ فِي الْمَسٰجِدِ﴾ دَاعتکاف معنی دَلغت دَمخې، چرته اوسیدل دی، اودَقرآن او سنت په اصطلاح کښې خاص شرائطو سره په جُماعت کښې تپکاویدو ته اعتکاف وئیلې شی دَ[الفظه فِي الْمَسٰجِدِ] دُعموم نه معلومیږی چې اعتکاف په هر جماعت کښې کیدې شی دَفقهاؤ داشراط لګول چې، ،اعتکاف یواځې دَجمع په جُومات کښې کیدې شی، ،په دې بِنادی چې لفظ دَ ، ،مسجد، ،هغه ځائې دَپاره استعمالیږی چې په جمع مونځ پکښې کیږی، هسې خو په کور، دکان یا پټی کښې هم مونځ کیدې شی.

**مسئله**: په روژه کښې دَشپې دَخوراک څکاک او خپلو ښځو سره دَجماع حلالوالي پورته بیان شو، په حالت د اعتکاف کښې د خوړلو څکلو خو هم هغه حکم دې کوم چې تولو دپاره دې مګر د ښځو معامله کښې جدا دی .مطلب داچه په اعتکاف کښې دَشپې خوراک څکاک کول حلال دی مګر جماع پکښې دَشپې هم حلاله نهٔ ده ځکه ئې په آیت کښې داحکم بیل بیان کړو.

**مسئله**: دَاعتکاف نورې مسئلې څه خو دَدې لفظ نه معلومیږی او څه دَرسول الله ﷺ دَفرمان اوعمل نه ښکاره شوی دی، هغه مسئلې دادی چې اعتکاف کښې دَروژې نیول شرط دی او دَدغې جُومات نه بغیر دَعُذرِ شرعي یا طبعي نه بهر وتل ناروادی.

**دروژې په معامله کښې داحتیاط حکم**: دا آیت په آخر کښې قوله تعالیٰ: ﴿تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ فَلَا تَقْرَبُوْهَا﴾ سره دې خبرې ته اشاره کوی چې په روژه کښې دَخوراک څکاک او جماع وغیره بندیز دَ الله ﷻ پولې او حدبندئ دی، دې ته نزدې هم مهٔ ورځئ ،ځکه کیدې شی چې دَپولې نه وروا وړئ بناپه دې په خُله وینځلو کښې داسې بې احتیاطي کول هم مکروه دی چې پکښې دَاوبو تیرید و او خیتې ته ئې دَننوتو خطره کیدې شی، په خُله کښې دننه څه دارو[دواء] اچول مکروه دی، خپلې بی بی سره غاړه په غاړه کیدل اوښکلول ئې مکروه دی، دارنګ دااحتیاط کول پکاردی چې دپیشمنی

[۱] باب الاکل والشرب والجماع لیلة الصیام ج: ۱، ص: ۷۲
[۲] أحکام القرآن للجصاص، باب الاکل والشرب والجماع لیلة الصیام ج: ۲، ص: ۷۲

خوراک څکاک دري ځلورمنته وراندې بند کړي او دَروژه ماتی په وخت کښې دري ځلورمنته روستو خوراک څکاک شروع کړي، په دې ټولو خبرو کښې سستی او بې پروائ کول دَارشاد الهی نه خلاف کار دې.

| | | |
|---|---|---|
| وَلَا تَأْكُلُوٓا | أَمْوَٰلَكُم | بَيْنَكُم |
| او مه خورئ تاسو | مالونه خپل | په خپلو کښې |
| اوتاسو په خپل مینځ کښې د یو بل مالونه په ناحقه طریقه مه خورئ | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِٱلْبَٰطِلِ | وَتُدْلُوا۟ | بِهَآ | إِلَى ٱلْحُكَّامِ | لِتَأْكُلُوا۟ فَرِيقًا مِّنْ | أَمْوَٰلِ ٱلنَّاسِ |
| په ناروا طریقه | اومه وړئ | هغه | حاکمانو ته | دپاره ددې چې تاسو اوخورئ څه حصه | دمالونو دخلقو نه |
| ...... اوحاکمانو ته ئې هم مه اوړئ [مثلا چه هغوی ته رشوت ورکړئ] | | | | چې [پدې چل] دخلقو د مالونو نه | |

| | | |
|---|---|---|
| بِٱلْإِثْمِ | وَأَنتُمْ | تَعْلَمُونَ ۝ |
| په ګناه او په زیاتی سره | او تاسو | پوهیږئ |
| څه حصه سره د پوهې نه په ناجائزه طریقه رالاندې کړئ | | |

## آسان ترجمه قرآن

**او خپل مینځ کښې د یو بل مال په ناحقه طریقو سره مه خورئ، او نه ددې مقدمه حاکمانو ته په دې غرض سره اوړئ چه دخلقو د مالونو څه حصه سره دپوهې د خوړلو ګناه اوکړئ.**

## خلاصه تفسیر

**د آیتونو تړون :**: مخکښې آیتونو کښې د روژې احکام ذکر کړې شوی وو. هغې کښې ددې خبرې بیان وو چې په یو معینه زمانه او وخت کښې د حلالو څیزونو استعمال حرام ګرځولې شوی دی. دې څخه روستو حرام ګټل او ددې د استعمال څخه منع کړې شوې ده. او ددې ذکر دې مناسبت سره راغلې دې چې د روژې د عبادت اصل مقصد هم دادې چې انسان څه مودې پورې د حلال څیزونو څخه هم ځان لرې اوساتی. نودې سره به دحرام څیزونو څخه بچ کیدل آسان شی. دا مناسبت هم دې چې د روژې ماتولو دپاره حلال څیزونه پکار دی. که یو کس ټوله ورځ روژه اونیسی او ماښام ئې په حرام څیز سره ماته کړی نو دا روژه د الله ﷻ په نزد قبوله نه ده.

﴿وَلَا تَأْكُلُوٓا أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم بِٱلْبَٰطِلِ﴾ اوخپل مینځ کښې دیوبل مال په ناحقه مه خورئ ﴿وَتُدْلُوا۟ بِهَآ إِلَى ٱلْحُكَّامِ﴾ اودا [په دروغه مقدمه] حاکمانو ته په دې غرض مه اوړئ ﴿لِتَأْكُلُوا۟ فَرِيقًا مِّنْ أَمْوَٰلِ ٱلنَّاسِ بِٱلْإِثْمِ﴾ چه [ددې په ذریعه]دخلقو دمالونو یوه برخه په طریقه د ګناه [یعنی په ظلم] اوخورئ ﴿وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ هرکله چه تاسوته [دخپلو دروغو اوظلم] علم هم وی.

## معارف اومسائل

**قوله تعالی:** ﴿وَلَا تَأْكُلُوٓا أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم بِٱلْبَٰطِلِ﴾:: په دې آیت کښې په حرامو طریقو دَمال ګټلو او دَهغې دَاستعمال بندیزدې څنګه چې دَسُورت بقره په آیت ۱۲۸ کښې په حلالو طریقو دَمال ګټلو او دَهغې دَاستعمالولو دَاجازت بیان تیرشوې دې، ارشاد داؤو:

**قوله تعالى:** ﴿يَاأَيُّهَا النَّاسُ كُلُوا مِمَّا فِي الْأَرْضِ حَلَالًا طَيِّبًا وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُبِينٌ﴾ اې خلقو خورئ دځیزونو دزمکې نه حلال اوپاک اود شیطان په قدمونو مهٔ ځئ ځکه چې هغه ستاسو ښکاره دښمن دی

اوپه سورت نحل کښې ارشاددي:

**قوله تعالى:** ﴿فَكُلُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ حَلَالًا طَيِّبًا وَاشْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ إِنْ كُنْتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ﴾ او خورئ له هغې څنې چې روزي کړې دې تاسو ته الله ﷻ حلال اوپاک څیزونه اوشکر کوئ د الله ﷻ داحسان کچرې تاسو خاص دهغه عبادت کوئ.

**دمال ګټلوښې اوبدې چارې اودنبه والی اوبدوالی تاکلې اندازه:** لکه ځنګه چې ددنیاټول قومونه په دې اتفاق لرې چې مال ضروري څیزدې بلکه دې پورې ژوندترلې دې دغه شان په دې هم اتفاق لرې چې ددې ګټلوښې اوبدې چارې دواړه شته، غلا، ډاکه، ټګي او دهوکه ټوله دنیابده ګنړې لیکن ددې چاروډنبه والی اوبدوالی صحیح اندازه لګول دخلقوپه لاس کښې ځکه نهٔ دی چې دا دټولې دنیابنیادموسره تړون لرې، دې دپاره صحیح اندازه صرف هغه کیدې شي کومه چې په ذریعه دوحی رب العالمین رالیږلې ده دځه بنیادموپه تاکلې اندازه دټولې دنیا انسانان هیچرې متفق شوی نهٔدی اونهٔ ئې پراتفاق راتلې شي لکه ځنګه چې بین المللی کانفرنسو تواومعاهدونه چې ثابتیږي بلکه ددې نتیجې اکثر، دظلم، بې انصافئ، زورګیرئ، جنګ جدل اوتباهئ په شکل کښې ښکاره کیږي.

**بواځې اسلامی معاشی نظام په دنیا کښې عام امن راوستې شي:** دحرامو، حلالو، او روا، ناروا ؤ په باره کښې داسلام جوړکړې قانون ښکاره په وحی الهی اوانړه دې [قائم دی] یاتراغستې شوې دې اویواځې هم دا، داسې معقول، فطری اوجامع قانون دې چې په هر قوم اووطن کښې چلیدې شي. اودعام امن ضامن کیدې شي ځکه چې په دې قانون الهی کښې د شریکیدو وړڅیزونه شریک تاکلې شوی دی لکه هوا، اوبهٔ، ناکرلي ګیاه او وابښه، دا ورګرمی، آزادځنګلونه [چه څوک مالک ئې نهٔ وي، دغرئیزوځنګلونوپیداوار-اوپه کومو څیزونو کښې چې دشرکت په وجه فسادونه پیداکیږي، جنګ جګړه اومرګ جوبله ترې راولاړیږي. په هغې کښې ئې دځان ځانئ قانون جاری کړو، دیوې زمکې یادهغې دفصل دابتدائئ ملکیت قانون جدادې اودهغې دمنتقل کولوقانون جدادې اوددې په هره دفعه کښې دالحاظ ساتلې شوې دې چې هیڅ یوبنده دژوند دضروریاتونه محرومه پاتې نشي خوشرط دادې چې ددې دحاصلولو کوشش هم اوکړي اوهیڅ یوبنده دنوروبندګانوحقوق په زورلاندې نکړي اونهٔ نوروته نقصان اورسوي، مال دولت یوڅوکسانوته راغونډنکړې، دقانون الهی په مطابق، دمیراث په ذریعه ملکیت منتقل کیږي اوکه دخرید وفروخت په ذریعه په دواړه اړخیزې رضامندئ باندې بناوي، مزدوري وي اوکه دځه مال بدله وي په ټولو کښې داضروری تاکلې شوې ده چې څه دوکه اوتګی توری دې کښې نهٔ وي اونهٔ د شک شبهې یابوسو کښې داوبوبوتلوڅه خبره پکښې وي.

په دې ټولومعاملوکښې داهم لحاظ ساتلې شوې دې چې ددواړ فریقو خوښې داصلی وي ددورې دباؤ اودزورزبردستئ خوشی دنهٔ وي. اسلامی شریعت چې په کومومعاملوکښې نه وي پورته ذکر شوی نقصانونه اوناکاروالی یونهٔ یوبه ضرور وي کله به پکښې دوکه اوتګی

وي، کله به د نامعلوم څیزیانامعلوم عمل معاوضه وي کله به د بل چاحق لاندې شوې وي، کله به د بل د نقصان په بدل کښې خپله فائده کول وي، کله به په عامو حقوقو کښې ناجائزه دخل ورکول وي، سودا وجواري [خمار] هم په دې وجه حرام دي چې د عامو حقوقو د پاره مضر دي د دې په نتیجه کښې یو څو کسان ترقي کوي لیکن پوره قوم پرخوارېږي داسې معاملې که د دواړه فریقه په رضا هم اوشي بیا هم ځکه حرام دي چې دې ځائې کښې د ټول قوم د نقصان په وجه داسخت جرم دي ذکرشوي آیت په دې ټولو ناجائزو صورتونو مشتمل دې ارشاد دې، ﴿وَلَا تَأْكُلُوٓا أَمْوَالَكُم بَيْنَكُم بِالْبَاطِلِ﴾ یعنې د یو بل مال په ناجائزه طریقه مهٔ خورئ، په دې کښې دا یو خبره د غور کولو وړ ده چې د قرآن کریم په الفاظو کښې ﴿أَمْوَالَكُمْ﴾ راغلي دي، د کوم چې اصلي معنی خپل مالونه دي دې خبرې ته اشاره ده چې که مثلاً بل څوک ستا په مال کښې د غسې ناجائزه دخل مداخلت اوکړي نو تا ته به څومره درد رسیږي که د غه خیال ته د بل چا په حق کښې اوکړې نو ته به دا اوګنړې چې د هغه مال تالان ترغه کول د خپل مال تالان کول دي. یوه بله اشاره دې طرف ته هم کیدې شي چې د بل مال په ناجائزه لاندې کول دې ته لار جوړول دي چې بل به هم د غسې ستا مال لاندې کوي نو ګویا کښې د بل په مال خیته اچول مثلاً څوک غوړو کښې تیل، شله او وازګه ګډوي او ناجائزې پیسې پر ګټي نو بل به په پئیو [شیدو] کښې اوبه اوپه مساله کښې خښتې لرګي او د چا یو په پانړو کښې د چنړو پوستکي ګډوي اودهٔ نه به پرزیاتې پیسې ګټي نو داد کم عقلۍ انتهاده چې یو کس په یو څیز کښې ګډون کولو سره ناجائزې لږې پیسې ګټي او د ګډون څیزونو په اغستو سره په شل چنده زیات بیلات او نقصان کوي.

بله خبره هم د غور کولو جوګه ده چې د خداوندي ارشاد الفاظ عام دي مطلب ئې دادې چې په باطلو او ناجائزو طریقو د بل مالونه خورئ په زورزبردستئ مال اغستل په دې کښې راځي چې په غلا داکه مال اغستل په کښې شامل شو. په سود، جوارئ، رشوت، ناجائزو سوداګانو او ناجائزلین دین سره مال ګټل ټول په دې کښې شامل دي اګرچه په دې کښې د دواړو طرفو خوشي اورضاوي په دروغ وئیلو یا په دروغو قسمونو څه مال ځان ته کول یا داسې ګټه کول حرام اوباطل دي کوم چې شریعت بند کړي دي اګر چې په دې د سروینې خپوله تلي وي د قرآن په الفاظو کښې صرف خوراک راغلې دې خو مطلب ئې هرقسم استعمال دې هغه اغوستن استوګنه وي او که بله طریقه داد عربئ یو محاوره ده بعینه داسې متل پښتو کښې هم کیږي چې فلانی مال اوخوړو اګرچه هغه مال د خوراک جوګه نهٔ وي بلکه مطلب ئې د مال لاند کول او پرقبضه کول وي.

**شان نزول:** ﴿وَلَا تَأْكُلُوٓا أَمْوَالَكُم﴾ دا آیت مبارك په یوه خاص واقعه کښې نازل شوې دې واقعه داده چې د دوو صحابه کرامو ﷺ په یو زمکه جګړه شوه حضور ﷺ د شریعت مطابق مدعاعلیه ته د قسم ورکولو ځکه حکم ورکړو چه د مدعی ګواهان نهٔ وو قسم خوړو ته چې د غه کس تیارشو نو حضور ﷺ ورته نصیحت د پاره دا آیت واوړولو ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا﴾ د قسم په زور د مال ځان ته کولو په دې آیت کښې بدی بیان شوې ده. نو ځکه مدعاعلیه صحابی د قسم کولو نه ډډه اوکړه او دغه مال ئې مدعی ته پرېښودو [روح المعانی جلد ۲ ص ۷۰] [۱].

---

[۱] ) روح المعاني تحت هذه الآية ج: ۲، ص: ۱٤۰

نو داهغه واقعه ده دکومې په باره کښې چې دا آیت نازل شو په دې کښې ناجائز طور دَبل مال خوړل یاځان ته کول حرام یاګلې شوی دی او دَدې په آخر کښې دَدروغو مقدمه جوړول په دروغه قسمونه خوړل، په دروغو ګواهۍ کول یاګواه نیول ئې په سخته بند کړل او زورنه پرپروردګار ورکړې ده. فرمائي قوله تعالٰى: ﴿وَتُدْلُوا بِهَآ إِلَى الْحُكَّامِ لِتَأْكُلُوا فَرِيقًا مِّنْ أَمْوَالِ النَّاسِ بِالْإِثْمِ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ مطلب داچه دَمالونو مقدمې حاکمانو ته مۀ اوړئ چې دَهغوئ په ذریعه تاسو دَخلقو دَمالونو څه برخه دګناه په طریقه او خورئ سره ددې چې پوهه يئ چې ستاسو حق په دې کښې نشته او دَ دروغو مقدمه جوړوئ، ﴿وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ نه معلومه شوه که څوک په غلطۍ سره یو څیز خپل حق او ګڼړي اودَدې ځان ته کولو دَپاره عدالت کښې مقدمه جوړه کړي نو هغه دَدې وعید او زورنې لاندې نۀ راځي لکه حضور ﷺ فرمائیلي دي:

[انما انا بشر وانتم تختصمون الي ولعل بعضكم ان يكون الحن بحجته من بعض فاقضي له على نحو ما اسمع منه فمن قضيت له بشيء من حق اخيه فلا يأخذنه فانما اقطع له قطعة من النار] [رواه البخاري ومسلم عن ام سلمه رضي الله عنها][1] یعنې زه یو انسان یم او تاسو ماته خپلې مقدمې راوړئ په دې کښې داهم کیدې شي چې څوک خپله معامله په زیات رنګ روغن کښې راوړاندې کړي اوزه پرمطمئن شم اودَهغه په حق کښې فیصله اوکړم نو یادلرئ چې حقیقت خو پخپله معامله ارښه پیژنې کچرې په واقع کښې دادَهغه حق نۀ وي نو هیچرې دنۀ اخلي ځکه چې په دې صورت کښې ده ته زه چې څه ورکوم نو هغه به دَجهنم یوه ټکړه وي.

**د عدالت په فیصلې سره حرام مال نه حلالیږي:** دَحضور ﷺ دې ارشاد بیخی ښکاره کړله چې کچرې دَمسلمانانو حاکم یاقاضی په غلطۍ یوه فیصله اوکړي نو دَهغې په بنیاد دغه حق دَغیر مستحق دَپاره حلال نۀ شو. اودَمستحق دَپاره حرامیږي نۀ مطلب داچه عدالتی فیصلې دَحرام حلال معیار نۀ وي کچرې څوک په دروغ شهادت، قسم یاپه ټګۍ دَبل حق دَعدالتی فیصلې په ترس کښې لاندې کړي نو دَهغې وبال به دَهغه په ګردن وي. پکار دی چې هغه دَآخرت حساب کتاب اودَعلیم، خبیر په عدالت کښې خپله پیشي رایاده کړي اوحق دَحقدار ته پرېږدي.

دَامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد دَدروغو ګواهۍ یاقسم په بنیاد دَقاضی په فیصله دَهغه معاملو دَترلوورانولو یادَهغې دَحل او حرمت احکام جاري کیږي په کومو کښې چې تړل ورانول کیدې شي اوقاضی ته هم په هغې کښې دَشریعت له مخې اختیارات حاصل وي خو دَدروغو دَقسم یادګواهۍ وبال به دَدغه کَس په سروي.

**دحلال مال برکتونه اودحرام مال سپره توب:** حرام مال نه دَځان ساتلو اودَحلال مال حاصلولو تاکید په مختلفو سرخطونو سره قرآن کریم کړې دې په یو آیت کښې دا اشاره شوې ده چې دَبنیادم په عمل او اخلاقو کښې دَحلال خوراک ډیر دَخل او اثر دې کچرې خوراک ځکاک حلال نۀ وي نو بیادَښو خویونو اودَنیکو کارونو کول ډیر ګران دی ارشاد دې:

﴿يَا أَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوا مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَاعْمَلُوا صَالِحًا ۖ إِنِّي بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ﴾ ای دانبیاؤ ټولیه حلال او پاک څیزونه خورئ او نیک عمل کوئ زۀ ستاسو دَعملونو دَحقیقت نه خبر یم.

[1] صحيح البخاري، كتاب الأحكام، باب من قضى له بحق اخيه— الخ ج: ۲، ص: ۱۰۶۴، ۱۰۶۵، وصحيح مسلم، كتاب الأقضية، باب بيان ان حكم الحاكم لا يغير الباطن ج: ۲، ص: ۷۴.

په دې آيت کښې دا اشاره ښکاري چې نيک اعمال هله کيدې شي چې دَبنيادم خوراک څکاک حلال وي. او په يو حديث کښې نبی کريم ﷺ دا خبره په ډاګه کړې ده چې دَحلال مال خوراک حکم يواځې پيغمبرانو ﷺ ته نهٔ دې بلکه ټولو مسلمانانو ته دې او ددې حديث په آخره کښې ئې دا هم فرمائيلې دی چې دَحرام مال دَخوړونکې دُعانهٔ قبليږي ډير خلق په عبادت کښې ډيره خوارې کوی بيا دَ الله ﷻ په وړاندې دَدُعالاسونه خوروی د ، ،يارب يارب، ،نعرې وهی خو خوراک، څکاک ئې حرام، اغوستن ئې حرام، نو دَهغوئ دا دعا به څنګه قبوله شي؟ [۱]

دَنبی کريم ﷺ ډير تعليمات او هدايات په دې کښې لګيدلې [راغلی] دی چې اُمت دې حلال څيزونه استعمالوی، او دَحرامونه دې ځان ساتی.

په يو حديث کښې ئې دا ارشاد فرمائيلې دې چې چا حلال او خوړل او دَسُنتو مطابق عمل او کړو او خلق دَهغه دَضررونو نه بچ شول نو هغه به جنت ته ځی صحابه کرامو ﷺ عرض او کړو چه يارسول الله نن صباخو دا حالات ستا په اُمت کښې عام دی زيات مسلمانان ددې پابند دی، هغوئ او فرمائيل ، ،آو ، ،په راتلونکې زمانه کښې به هم داسې خلق وی چې دَدې احکامو پابندی به کوی [داحديث] ترمذی روايت کړې دې او صحيح ئې ورته وئيلې دې] [۲]

په يو حديث کښې ارشاد دې چې نبی کريم ﷺ حضرت عبدالله بن عمر ﷺ ته اُوفرمائيل چې څلور داسې خويونه دی چې هغه په تاسو کښې ترڅوی نو تاسو له بس دی که بيا دنيا کښې نور هيڅ هم درسره نهٔ وی، هغه څلور خويونه دا دی ① دَامانت حفاظت [ساتل] ② رشتيا وئيل ③ ښه خوئ ④ په خوراک کښې دَحلالو غم [کوشش] کول.

حضرت سعد بن ابی وقاص ﷺ دَنبی کريم ﷺ نه خواست او کړو چه ما دَپاره دُعا او کړئ چې زهٔ مقبول الدعاء شم [يعنی چې هره دُعامې قبليږی] هغوئ او فرمائيل چې اې سَعد خپل خوراک حلال او پاک جوړ کړه نو مستجاب الدعوات به شې، او قسم مې دوی په هغه ذات دَچا په قبضه کښې چې دمحمد ﷺ ځان دې، بنده چې کله خپله خيټه کښې حرامه نمرئ [ګوله] ورواچوی نو ترڅلويښتو ورځو دَهغه هيڅ نيک عمل نهٔ قبليږی او دکوم کَس غوښه چې دَحرام مال نه جوړه شويوی نو هغې سره هم دجهنم اور سمون خوری [يعنی مناسب دې] حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائ چې نبی کريم ﷺ او فرمائيل چې په هغه ذات مې دقسم وی دچا په قبضه کښې چې زما ځان دې چې بنده ترهغې مسلمانيدې نشی ترڅو چه دَهغه زړهٔ او ژبه مسلمان نشی، او ترڅو چه دهغه ګاونډی دهغه دَضررونو نه محفوظ نشی او کله چې يو بنده حرام مال خوری او ياڻې خيرات کوی نو هغه نه قبليږی او که چرې دهغې نه څه لګوی [خرچ کوی] نو برکت به ئې نئوی او که چرې وارثانو ته ئې پريږدی نو دَجهنم په طرف دَتلو توښه به وی بيشکه الله ﷻ په بد څيز سره بد عمل نه وينځی بلکه ښه عمل سره بد عمل وينځی.

**په قيامت کښې دهر يو بنده نه پنځه ضروری پښتنې:** حضرت معاذ بن جبل ﷺ فرمائ چې حضور ﷺ فرمائيلی دی: [ماتزال قدما عبد يوم القيامة حتی يسال عن اربع عن عمره فيما افناه وعن شبابه فيما ابلاه وعن ماله من اين اکتسبه وفيما انفقه وعن علمه ماذا عمل فيه] [البيقهی ، ترغيب] په ميدان

---

[۱] ) مشکوٰة: ج ۱، ص ۲٤۱

[۲] ) جامع الترمذی، أبواب صفة القيامة، باب منه: ج ۲، ص ۷۸

محشر کښې دقيامت په ورځ هيڅ يوبنده به دخپل ځايه نۀ ښوزي ترڅوچه دهغه نه دځلورو [۱] سوالونوجواب نۀ وی اغستې شوې يوداچه هغه خپل عمرپه کوم کارکښې ختم کړو. دويم داچه هغه خپله ځوانی په کوم شغل[مشغولتيا] کښې تباه کړله دريم داچه خپل مال ئې دکومه ځايه اوګټلواو کوم ځائ کښې اولګولواوځلورم داچه په خپل علم ئې څومره عمل کړې وو.

**پنځه بد اوخراب خويونه:** حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه فرمائ چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم يوځل خطبه ورکړه په هغې کښې اوفرمائيل چې اې دمهاجرينوټوليه: پنځه خويونه داسې دی چې دهغې په باره کښې د الله ﷻ نه زۀ پناه غواړم هسې نه چې په تاسو کښې پيداشی يوداچه کوم قوم کښې بې حيائی خوره شی نوپه هغوئ طاعون ،وباګانی اوداسې نورنوی نوی رنځونه اُښلولې شی چې دهغوئ پلارانو او نيکونو به هم نۀ وی آوريدلی،بله داچه کوم قوم کښې دتول ميچ او پيمانې کمولومرض پيداشی نوهغوئ په قحط ،ګرانئ،خواروتکليفونواودحاکمانوپه ظلم کښې راګيرشي،دريم داچه کوم قوم زکواة نۀ ورکوی نوپه هغوئ بارانونه بندشی اوځلورم داچه کوم قوم د الله ﷻ اودهغۀ دَرسول الله سره کړې وعده قول مات کړی نو الله ﷻ په دغه قوم يوپردې [بهرنئ] دَشمن مسلط کړی چې دهغوئ مال به په ناحقه شُوکوی اوپنځم داچه دکوم قوم واکمن خلق دکتاب الله په قانون فيصله نۀ کوی اودَ الله ﷻ نازل کړی احکام د هغو زړۀ پوري نۀ وی لګيدلی نو الله ﷻ هغوئ په خپل منځ کښې په جنګ جګړواويوبل نه په کرکه کولواخته کړی [داروايت ابن ماجه اوبيهقی وغيره نقل کړې دې اوحاکم دَمسلم په شرط دې ته صحيح وئيلی دی] الله ﷻ دمونږته اوټولو مسلمانانوته ددې آفتونونه دَمحفوظ پاتې کيدوکامل توفيق راکړی واخر دَعوانا ان الحمد لله رب العالمين

| يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْاَهِلَّةِ ۭ قُلْ هِيَ |
|---|
| تپوس کوی ستانه \| په باره \| دسپوږمئ کښې \|ورته اووايه چې دا |
| خلق ستانه دسپوږمئ باره کښې تپوس کوی ورته اووايه چې دا |
| مَوَاقِيْتُ لِلنَّاسِ وَالْحَجِّ ۭ وَلَيْسَ الْبِرُّ بِاَنْ تَاْتُوا الْبُيُوْتَ |
| نښې دی دوختونومقررولو\|دپاره دخلقو\| اودحج \| اونۀ ده دانيکی \| اچې ورځئ تاسو\| کورونوته |
| د خلقو دپاره دتاريخ پيژندلواودحج دوخت معلومولو نښې دی \| داهيڅ نيکی نۀ ده چې خپلوکورونوته |
| مِنْ ظُهُوْرِهَا وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنِ اتَّقٰى ۚ وَاْتُوا الْبُيُوْتَ |
| دشاګانو هغې نه \| ليکن \| نيکی داده \|چې څوك ځان اوساتی دناراضګئ دالله نه\| او ورځئ کورونو ته |
| دشاګانو د طرفه ورځئ \| بلکه صاحب د نيکئ هغه دې چې ځان دحرامونه بچ کړی\| نو کورونو ته ورځئ |
| مِنْ اَبْوَابِهَا ۠ وَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ۝ وَقَاتِلُوْا |
| په دروازه دهغې نه \|اوويريږئ \| دالله نه\|شايد چې \| تاسو ته کاميابی نصيب شی\| او جنګ کوئ |
| نيغ په دروازو باندې \| او\|په ټولو حکمونو کښې\| دالله نه ويره کوئ چې کامياب شئ\| او جنګ کونی |

[۱] ځينې رواياتو کښې د پنځو عدد دې ، په هغې کښې د مال دوه سوالات جدا جدا شمار کړی دی.

فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوْا ۚ اِنَّ اللّٰهَ

په لار د الله کښې | دهغه کسانو سره | چې جنګ کوي | تاسو سره | او مۀ کوئ زياتي | بيشکه الله

د الله په لار کښې هغه کسانو سره څوک چې تاسو سره جنګ کوي | خو زياتي مه کوئ بيشکه الله

لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ ۝ وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوْهُمْ

نۀ خوښوي | زياتي کونکی | او جنګيږئ دهغوئ سره | هر ځائې کښې چې | تاسو بيامومئ هغوئ لره

زياتي کونکي کسان نه خوښوي | او هغوئ [مشرکان] وژنئ کوم ځائې کښې چې ئې بيامومئ

وَاَخْرِجُوْهُمْ مِّنْ حَيْثُ اَخْرَجُوْكُمْ وَالْفِتْنَةُ

او اوباسئ هغوئ | دهغه ځائې نه | دکوم ځائې نه چې ايستلي يئ هغوئ تاسو | او فتنه [کفر]

او بهر ئې راؤباسئ د کوم ځايونو نه ئې چې تاسو ويستلي يئ | او [د کفر] فتنه

اَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ ۚ وَلَا تُقٰتِلُوْهُمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ حَتّٰى

زيات بدکاردي | دقتل نه | او جنګ مۀ کوئ دهغوئ سره | په خوا کښې د مسجد حرام | ترهغې

دقتل نه زياته سخته [ګناه] ده | او د مسجد حرام [کعبې] په خوا کښې ور سره جنګ مه کوئ ترڅو

يُقٰتِلُوْكُمْ فِيْهِ ۚ فَاِنْ قٰتَلُوْكُمْ فَاقْتُلُوْهُمْ ۭ

چې او جنګيږي هغوئ تاسو سره | په هغې کښې | نو که چرې جنګ وکړو هغوئ ستاسو سره | نو تاسو هم وژنئ هغوئ .

چې تاسو سره جنګ نه کوي | او که چرې هغوئ هغه ځائې [حرم] کښې هم تاسو سره جنګيږي | نو تاسو هم هغوی قتلوئ

كَذٰلِكَ جَزَاۗءُ الْكٰفِرِيْنَ ۝

هم دا | سزا دا کافرانو ده |

داسې کافرو لره هم دغسې سزا پکار ده |

## آسان ترجمه قرآن

خلق ستا نه د نوو مياشتو دسپوږمۍ په باره کښې تپوس کوي، ته هغوی ته اووايه چه دا دخلقو (د مختلفو معاملاتو) او دحج د وختونو متعيّن کولو دپاره دي. او دا څه نيکی نه ده چه تاسو کورونو ته دهغې د شا دطرفه داخل شئ بلکه نيکی دادة چه انسان تقوٰی اختيار کړی او تاسو کورونو ته دهغې د دروازونه داخل شئ او د الله نه ويريږئ چه تاسو ته کامياپی حاصله شي او دهغه خلقو سره د الله په لار کښې جنګ اوکړئ څوک چه تاسو سره جنګ کوی او زياتې مه کوئ. يقين اوکړئ چه الله زياتی کونکی نه خوښوی او تاسو چه دا خلق چرته بيامومئ قتل ئې کړي، او دوی دهغه ځايونو نه اوباسئ د کوم ځائې نه چه هغوی تاسو لره ويستلی وو او فتنه د قتل نه زيات سخت جُرم دې او تاسو هغوی سره مسجدِحرام سره نزدې ترهغه وخته پورې جنګ مه کوئ چه ترڅو پورې هغوی پخپله په دې کښې تاسو سره جنګ شروع نه کړی، البته که هغوی تاسو سره په دې کښې جنګ شروع کړی، نو تاسو هغوی لره قتلولې شئ د داسې کافرانو سزا هم دادة.

## خلاصه تفسير

**د آيتونو تړون**: د ﴿لَيْسَ الْبِرَّ﴾ آيت مبارك لاندې بيان شوي دي چې دې ځخه روستو د سورة بقرې تر آخره پورې د ابواب البر بيان دې . اودا په مهمو شرعي احكامو باندې مشتمل دې . دې كښې رومبې حكم د قصاص دې ، دويم حكم د وصيت دې ، دريم او څلورم حكم د روژې دې او ددې سره متعلق مسائل ، پنځم حكم داعتكاف ، شپږم د حرام څخه د بچ كيدو وو . دې مذكوره دوه آيتونو مباركو كښې د حج او جهاد احكام او مسائل بيان شويد ي . او دحج د حكم ځخه وړاندې دا بيان كړې شوي دي چې روژه او حج وغيره كښې د قمري مياشتو او ورځو اعتبار وي .

**لغات**: ﴿الْأَهِلَّةِ﴾ د هلال جمع ده ، د قمري مياشتې د اولنۍ ورځو مياشتې ته هلال وئيلې شي . ﴿مَوَاقِيتُ﴾ د ميقات جمع ده ، او ددې معنى مطلق وخت يا منتهائي وخت ده . [قرطبي]

**اووم حكم: دقمري مياشتې حساب سره د حج وغيره حكم**: ﴿يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْأَهِلَّةِ﴾ [څه خلق] تاسو نه د [دې] مياشتو [هره مياشت دكميدو زياتيدو د] حالت [او په هغوكښې چې كومې فائدې دي د هغه] تحقيقات كوي ﴿قُلْ هِيَ مَوَاقِيتُ لِلنَّاسِ وَالْحَجِّ﴾ تاسواووائې چه [ددې فائدې دادي چه] دغه مياشت [دخپلو ددې كميدو اوزياتيدو په لحاظ سره خامخا يا دپاره د آسانتيا] دنيتو دپيژندلو ذريعه ده دخلقو [داختياري معاملو لكه دعدت اودحقوقو دمطالبې] دپاره او [غيراختياري عبادتونو لكه] حج زكات او روژے وغيره] دپاره

**اتم حكم د جاهليت د رسمونو اصلاح**: [داسلام نه مخكښې څه خلق به دحج داحرام تړلونه روستو كه چرې په احرام كښې به څه ضرورت دپاره خپل كور ته ورتلل نو په دروازه به يې دا بدګڼړل اود شاپه ديوال كښې به ئې سورے ويستلے وو اوپه هغې به دننه ورتلل اودا به يې فضيلت او ښه ګڼړل الله ﷺ دحج دبيان كولو نه پس په دې باره كښې فرمائي] ﴿وَلَيْسَ الْبِرُّ بِأَنْ تَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ ظُهُورِهَا﴾ اوپه دې كښې هيڅ ښه والئ نشته چه [خپلو]كورونو ته دهغې دشا دطرفه راځئ ﴿وَلَٰكِنَّ الْبِرَّ مَنِ اتَّقَىٰ﴾ ليكن ښه والئ دادې چه څوك دحرامو [څيزونو] نه بچ شي او [هركله چه د دروازې په لار كورونو ته دننه ورتلل حرام نه دي نو دې نه ځان ساتل هم ضروري نشو كه ورتلل غواړئې] ﴿وَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ أَبْوَابِهَا﴾ كورونو ته دهغې په دروازو راځئ ﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ﴾ او [بنيادي خبره داده چه] دالله ﷻ نه ويريږئ ﴿لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ [نوالبته] اميد دې چې تاسو [به دواړو جهانونو كښې] كامياب شئ .

**نهم حكم كافرانو سره جنګ كول**: دشپږم هجري كال دميانے په مياشت كښې دعمرے ادا كولو په قصد سره حضور ﷺ مكے ته تشريف يوړلو دغه وخت كښې مكه لا دكفارو په قبضه كښې وه دے خلقو حضور ﷺ اودهغوى ملګرى مكه كښې دننه تلو ته پرې نښودل اوعمره پاتې شوه آخر ډېرو خبرو اترو نه بعد دافيصله اوشوه چه په راتلونكي كال كښې دعمرې اداكولو دپاره تشريف راوړئ دغه شان په اووم كال دهجرت دميانې په مياشت كښې بيا هغوى په دې اراده تشريف يوړو ليكن دهغوى مسلمانانو ملګرو ته دا ويره وه چه كيديشي چه مشركان خپله فيصله ماته كړي اومقابلې اوجنګ ته تيارشي په دې سے حال كښې چپ پاتې كيدل هم ښه نه دي اوكه مقابله اوشي نو دميانے په مياشت كښې به جنګ كول راشي اودا په هغه څلورو

میاشتو کښې حساب ده په کوم کښې چه جنګ کول تر دغه وخته حرام اوبندوو دا څلور میاشتې دادی ① میانۍ ② دلوئې اختر میاشت ③ عاشوره ④ رجب.غرض داچه مسلمانان په دې تردد اوپریشانۍ کښې وو نو الله ﷻ دا آیتونه نازل کړل چه دې خاص فیصله کوونکو سره د فیصلې په خاطر تاسوته په جنګ کښې په مخکښې کیدلو اجازت نشته دې څوکه دغه خلقو فیصله ماته کړه اوتاسو سره جنګ کولو ته تیار شو نوتاسو بالکل بې فکره اوسئ] ﴿وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ او[بې فکره] تاسو [هم] جنګ کوئی دالله ﷻ په لار کښې [یعنی په دې نیت چه دغه خلق ددین مخالفت کوی] ﴿الَّذِينَ يُقَاتِلُونَكُمْ﴾ دغې خلقو سره چه [فیصله ماته کړی] تاسو سره چه جنګ روان کړی ﴿وَلَا تَعْتَدُوا﴾ او [پخپله معاهدې] دحد نه مه تیریږئ [چه معاهده او معاهده ماته کړئ اوپه جنګ شئ] ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ﴾ واقعی الله ﷻ [دشرعی قانون] دحدنه تیریدونکې نه خوښوی او [کله چه هغوی پخپله معاهده ماته کړی نوکه غواړئ په ډاډه زړه] ﴿وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ﴾هغوی وژنئ کوم ځائې کښېږئ چه رالاندې کړئ ﴿وَأَخْرِجُوهُم مِّنْ حَيْثُ أَخْرَجُوكُمْ﴾او [که غواړئ] هغوی [دمکې نه] بهر اوباسئ دکوم ځائې نه چه هغوی تاسو [تنګ کړی وې اوتکلیفونه یې درکړی وو] په وتلو [اوپه هجرت کولوئې] مجبور کړی وې او [که تاسو دهغوی نه مرګ ژوبله اوکړئ او دوطن نه یې بهر کړئ نوبیا هم دعقل په موجب پره هم دوی دی.ځکه چه معاهده دوی ماته کړې ده چه ډیر غټ ورانې یې کړې دې او داسې ورانې په ضرر کښې] ﴿وَالْفِتْنَةُ أَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ﴾ د قتل [اواوښکلو] نه ډیر سخت دے [ځکه چه ددغې قتل او اوښکلو وجه هم دهغوی خپل ورانےدې] ﴿وَلَا تُقَاتِلُوهُمْ عِندَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ او [هغوی سره په جنګ کښې ستاسو مخکښې والئ کول د معاهدې ماتولو نه زیات یوبل بندیز لرې هغه دادې چه حرم شریف یعنی مکه اودهغې نه ګیرچاپیره د ډیر عزت وړ ځائې دې چې په هغې کښې جنګ کول دهغې بې حرمتی ده نوددې وجې حکم درکولې شي چه] هغوی سره دمسجد حرام په خواؤ [شا] کښې [چه په حرم بللې شی] جنګ مه کوئی ﴿حَتَّىٰ يُقَاتِلُوكُمْ فِيهِ﴾تر څو چه هغه خلق هلته تاسوسره پخپله اونه جنګیږی ﴿فَإِن قَاتَلُوكُمْ فَاقْتُلُوهُمْ﴾اوکه چرې هغوی [کفار] پخپله دجنګ کولو انتظام اوکړی نو [بیادغه وخت تاسوته هم اجازت دې چې ] تاسو [هم] هغوی اووژنئ ﴿كَذَٰلِكَ جَزَاءُ الْكَافِرِينَ﴾ او دداسې کافرانو [چه په حرم کښې جنګ کوی] همداسې سزا ده.

## معارف اومسائل

قوله تعالی: ﴿وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾: په دې آیت کښې دصحابو کرامو رضی الله عنهم یو سوال اودَ الله ﷻ له طرفه دَهغې جواب ذکردې امام المفسرین حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه وائی چې دَنبی کریم ﷺ دَصحابه کرامو رضی الله عنهم یوخاص شان دادې چې هغوئ دَحضور ﷺ دَهیبت اوجلال په وجه دهغوئ نه ډیر کم سوالونه کړی دی بل طرفته نورو دَخپلو پیغمبرانو علیهم السلام نه ډیرسوالونه کړی دی او داسې ادب ئې نه دې کړې.دَحضرت ابن عباس رضی الله عنه دوینا په جوړپه قرآن کریم کښې دَصحابه کرامو رضی الله عنهم دَخوارلسو سوالونو ذکراغلې دې رومبې سوال ﴿وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي﴾اوس وړاندې تیرشو.دویم سوال دادې نورشپږسوالونه هم په سورة بقره کښې به راځی.اوپاتې نور شپږ سوالونه په مختلفو سورتونو کښې ذکردی.

په دې أوسنی آیت کښې دَصحابه کرامو دهغه سوال ذکر دې کوم ئې چې دَحضور ﷺ نه دَ﴿الْأَهِلَّةِ﴾ دَرومبو شپو دَمیاشتې په باره کښې په دې ډول کړې ؤ چه ددې شکل دَنمر [لمر څخه] نه مختلف دې ځکه چې دا خوړو. اول نرئ وی بیارورو غټیږی چې پوره ککوړې شی نو بیارورودغه شان په کمیدو شی اوس دا سوال په دې بناکیدې شی چې صحابه کرامو ﷺ ددې حقیقت پوښتو او په دې هم بناکیدې شی چې ددې حکمت او مصلحت ئې پوښتو مګر په جواب کښې دحکمت او مصلحت بیان دې اوس که دا تپوس [سوال] دَحکمت او مصلحت په باره کښې وی نو دا جواب هم دَسوال په جوړ شوا وکه دا سوال دَحقیقت په باره کښې وی [چه کوم دَ صحابه کرامو ﷺ دَشان سره سمون نهٔ خوری] خو بیا هم دَحقیقت ښودلو په ځائې یواځې دَحکمت او مصلحت په بیانولو کښې دې خبرې ته اشاره ده چې دآسمانی څیزونو [لکه نمر سپوږمئ وغیره] حقیقتونه معلومولو دَانسان دوس نه بهر دی او دې پورې ددین او دنیا هیڅ یو کار بند هم نهٔ دې ګویا کښې الله ﷻ په داسې ډول جواب ورکولو سره خپلو بندګانو ته داچل اوښودلو چه دَحقیقت معلومول سوال کول بې فائدې دی سوال دا کول پکار دی چې دَمیاشتې سپوږمئ په غټیدو کمیدو او پټیدو او ښکاره کیدو سره زمونږ کومې کومې ښیګړې تړلی دی نو جواب ئې دَرسول الله ﷺ په ذریعه دادې چې سپوږمئ میاشتې سره ستاسو دا ښیګړې تړلی دی چې ددې په ذریعه تاسو ته دَخپلو معاملو او معاهدونیټې ټاکل او دَحج ورځې معلومول آسان شی.

**دَسپوږمئ او نمر د حساب شرعی حیثیت::** دې آیت نه خودومره معلومه شوه چې دَسپوږمئ نه تاسو ته دَنیټو او میاشتو حساب معلومیږی په کوموچه ستاسو معاملې، حج او نور عبادتونه موقوف دی، هم دا مضمون په سورت یونس کښې داسې دی ﴿وَقَدَّرَهُ مَنَازِلَ لِتَعْلَمُوا عَدَدَ السِّنِينَ وَالْحِسَابَ﴾ دې نه معلومیږی چې دَسپوږمۍ مختلف منزلونه او حالات بدلیدل دکلونو، میاشتو او نیټو معلومولو فائده ورکوی مګر سورت بنی اسرائیل کښې دا فائده اغستل دَنمر نه هم څه داسې ثابتیږی: ﴿فَمَحَوْنَا آيَةَ اللَّيْلِ وَجَعَلْنَا آيَةَ النَّهَارِ مُبْصِرَةً لِتَبْتَغُوا فَضْلًا مِنْ رَبِّكُمْ وَلِتَعْلَمُوا عَدَدَ السِّنِينَ وَالْحِسَابَ﴾ بیا مونږه ورکه کړه نمونه دَشپې او دَلیدو موجوره کړه نمونه دَورځې دې دَپاره چې تاسو اولټوئ دَخپل رب فضل او چه معلوموئ شمیر دکلونو او حساب. [سورة بنی اسرائیل رکوع : ۲]

ددې دریم آیت مبارک څخه اګر چې ثابت شو چې د کلونو او میاشتو حساب کتاب نمر څخه هم لګولې شی [کما ذکره فی روح المعانی]

لیکن د سپوږمئ معامله کښې چو کوم الفاظ قرآن عظیم الشان استعمال کړی دی هغې څخه واضحه اشاره دې طرفته لګولې شی چې اسلامی شرعی حساب د سپوږمئ څخه جوړښت کړې شوې دې. خاص کر په هغه عباداتونو کښې چې دهغې تعلق څه خاص میاشتې او ددې د تاریخ سره وی. لکه رمضان ، د حج میاشتې ، د حج ورځې ، محرم ، شب برات وغیره ، دې سره چې کوم احکام تعلق ساتی هغه ټول د رویت هلال سره تړلې شو یدی. ځکه په دې آیت مبارک ﴿قُلْ هِيَ مَوَاقِيتُ لِلنَّاسِ وَالْحَجِّ﴾ کښې اوفرمائیلې شو چې د الله ﷻ په نزد حساب د سپوږمئ معتبر دې ، اګر چې دا حساب د نمر څخه هم معلومولې شی.

اسلامی شریعت دَسپوږمئ حساب دَعامو خلقو دآسانئ دپاره ټاکلې دې چې دې لره هر سترګو والا په افق باندې لیدلو سره معلومولې شی ، عالم ، جاهل ، کلی والا [صحرائی] او غرسنې ، ځنګلی ټولو ته دا علم آسانه دې په خلاف د شمسی حساب چې ، په نمر حساب کول هر کس ته

څکه ډیر گران وی چې هغه درصدی آلاتو اودریاضی په قواعدو اړانړه دی مطلب ئې دا شوچه دَ عباداتو په باره کښې دَ سپوږمۍ حساب ئې فرض اوټاکلو او په نورو معاملو، تجارت وغیره کښې ئې هم دا څکه غوره کړو چه دا دَ اسلامی عبادت ذریعه بلکه دَ اسلام یو خصوصی نخښه ده اگر چې دَ نمر حساب ئې ناروا کړې نۀ دې خو دَ دې پاره شرط دادې چې دَ دې حساب په مقابله کښې خلق دَ سپوږمۍ حساب بیخی هیرنۀ کړی څکه چې په دا سې کولو به بیا په عباداتو نوروژه او حج کښې خلل راځی، زمونږ په ټولو دفتری کاروباری بلکه شخصی معاملو کښې په دا سې ډول شمسی حساب دَ اسلامی غیرت نه هم خلاف دې دَ کوم په مقابله کښې چې دَ سپوږمۍ حساب بالکل داسې پریښودلې شوې دې چې دَ اسلامی میاشتو نومونه قدرې هم اکثرو مسلمانانو ته یاد نۀ دی چې دا دَ شرعی حیثیت نه علاوه دَ قومی او ملی غیرت هم دیوالیه کیدل دی که چرې دفتری کاروبار او معاملې په شمسی حساب په دې غرض اړانړه گڼرلې شی چې دَ دې تړون غیر مسلمو سره هم وی نو خیر دې خو کم نا کم دَ اسلامی غیرت تقاضا داده چې په خپلو روزانه ذاتی کارونو او ذاتی خط و کتابت کښې دَ سپوږمۍ حساب څکه او کړې شی چې په داسې کولو به دَ فرض اداکولو ثواب هم اوشی او خپل قومی شعار به هم محفوظ پاتې شی.

**مسئله**: ﴿وَلَيْسَ الْبِرُّ بِأَنْ تَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ ظُهُورِهَا﴾ آیت نه دا مسئله هم معلومیږی چې هغه څیز یا کار وغیره ضروری گڼرل ناروا دی کوم لره چې شریعت ضروری نۀ گڼرې هم دا رنگ دَ هغه کار یا څیز ناجائز گڼرل گناه ده کوم لره چې شریعت روا گڼرې دَ بدعتونو ناروا کیدو اصلی باعث هم دغه دې چې دَ دې په زور روا څیزونه او چارې ناروا او ناروا او روا گرځولې شی لکه څنگه چې دغه خلقو به په احرام کښې خپلو کورونو ته په دروازه راتلل ناروا گڼرل، او شریعت کښې روا ؤو. دَ کورونو دَ شا په موړئ راتلل به ئې ضروری گڼرل او شریعت کښې ضروری نۀ ؤو. ددې آیت مبارك نه دداسې کولو ممانعت واضح طور باندې ثابت شو چې دهغې نه دَ زرگونو اعمالو حکم معلوم شو.

**نهم حکم دجهاد او دجنګ**: دَ ټول امت په دې اتفاق دې چې مدینې منورې ته دَ هجرت کولو نه وړاندې مسلمانانو ته کفارو سره دَ جهاد کولو بندیز او دَ صبر، معافئ او درگذر کولو ورته ښودنه وه دَ هجرت نه پس دا اولینو آیت دې چې په کښې دَ جهاد کولو حکم او شو لکه چې ربیع بن انس رضی الله عنه او نورو اکثرو صحابو رضی الله عنهم او تابعینو رحمهم الله فرمائیلی دی.

دَ جهاد په باره کښې دَ حضرت ابوبکر رضی الله عنه دا آیت ﴿أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا﴾ رومبې ښودل په دې بنادی چې دا دَ جهاد په رومبو آیتونو کښې شمیر دې نۀ چې بیخی رومبې دې.

په دې آیت کښې دا حکم دې چې مسلمانان دصرف هغه کفارو سره جنگ کوی کوم چې جنگ دَ پاره راغلی وی دا سې کفار په جهاد کښې وژل ناروا دی چې هغوئ شل گډ معذوره دی یا، دغه کفارو سره خواری مزدوری کوی خو په جنگ کښې ورسره شریک نۀ وی دَ کفارو ماشومان ښځې دَ هغوئ راهبان، پادریان، بانړان وغیره چې په جنگ کښې نۀ شریکیږی، دا شرط څکه ضروری دې چې فقهاء کرام دَ هغه ښځو، بوډاگانو، پادریانو بانړانو وغیره قتلول هم روا گڼرې کوم چې کفارو سره جنگ کښې دَ مسلمانانو په مقابله کښې شریک وی یا دَ څه قسمه ملاتړ یا امداد ورسره په جنگ کښې کوی څکه چې دوئ په ﴿الَّذِينَ يُقَاتِلُونَكُمْ﴾ کښې داخل دی [مظهری، قرطبی، جصاص]

په دې باره کښې دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم هدایات ډیر واضح دی کوم چې ئې دَ جهاد په موقعه صحابو کرامو رضی الله عنهم ته ورکول لکه په صحیح البخاری او مسلم کښې حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه

روایت کوی [نهی رسول الله ﷺ عن قتل النسآء والصبیان] حضور ﷺ د ښځو او ماشومانو د وژلو نه منع کړې ده.

او په ابی داؤد کښې د حضرت انس رضی الله عنه په روایت سره راغلی دی چې نبی کریم ﷺ د جهاد په دروان کښې صحابه کرامو رضی الله عنهم ته داهدایت ورکړې ووچه، تاسو د الله ﷻ په نوم او د رسول الله په ملت جهاد د پاره ځئ څوک بوډا، کمزورې، ورکوټې، ماشوم او څوک ښځه مه وژنئ [مظهری جلد ۱ ص ۲۱۲].

یزیدبن ابی سفیان رضی الله عنه لره چې ابوبکر رضی الله عنه د شام ملک ته لیږلو نو ورته ئې داهدایت کړې وو چه عابدان، راهبان او د کافرو مزدوران هم مه وژنئ ترکومې چې داکسان په جنګ کښې برخه نه اخلی [قرطبی ج ۲ مخ ۳۴۸].

د ﴿وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ وَأَخْرِجُوهُمْ مِنْ حَيْثُ أَخْرَجُوكُمْ﴾ نه جمهور مفسرین هم دامطلب اخلی چې په جنګ کښې تاسو داسې تیرې زیاتې مه کوئ چې ښځې، ماشومان وغیره هم وژنئ د تفسیر په خلاصه کښې بیان اوشو چې داآیت هغه وخت نازل شوې دې کوم وخت چې د صلح حدیبیه نه پس د هغې دیوشرط په جوړ حضور ﷺ سره صحابه کرام رضی الله عنهم د عمرې قضا اوړلو د پاره مکې شریفې ته روانیدل او صحابه کرامو رضی الله عنهم داشک ښکاره کړوچه د کفار و د لوظ قول اعتبار نشته هسې نه چې هغوی جنګ ته تیارشی نوموږلره بیاځه پکاردی؟ د دې په جواب کښې آیت دااجازت ورکړوچه که هغوئ جنګ کولو نو تاسو هم هغوئ لره چې کوم ځائې بیاموم‌ئ نو وژنئ ئې او که وس مو وونو د مکې مکرمې نه ئې اوباسئ لکه چې څنګه هغوئ مسلمانانو لره د مکې مکرمې نه ایستلی وو.

او د مکې مکرمې په تول‌ه زمانه کښې مسلمانان کفارو سره د جنګ کولو نه منع شوی وو. همیشه ورته د معافئ او درګذر ښودنه کولې شوه. د دې آیت په نازلیدو د صحابه کرامو رضی الله عنهم داخیال ووچه د کفار و قتلول بد او بند دی نو د دې خیال ختمولو او لرې کولو د پاره ئې دا اوفرمائیل ﴿وَالْفِتْنَةُ أَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ﴾ یعنی دامنلې شوې خبره ده چې د چاقتلول سخت او بد کاردې مګر د مکې د کفارو په خپل کفراو شرک ټینګ پاتې کیدل او مسلمانانو لره د عبادت او حج او عمرې اداکولو نه بندول د دغې نه هم زیات سخت کاردې چې د هغې نه ځان ساتلو د پاره د هغوئ د وژلو اجازت ورکړې شو. په آیت کښې د ذکرشوی لفظ ﴿فِتْنَة﴾ مطلب کفراو شرک او مسلمانانو لره د عبادت نه بندول دی. [جصاص ج ۱ ص ۳۰۴، قرطبی ج ۲ ص ۳۵۱]

په آیت کښې ذکروچه کوم ځائې کفار بیاموم‌ئ وژنئ ئې نو تخصیص د پاره ئې اوفرمائیل ﴿وَلَا تُقَاتِلُوهُمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ حَتَّىٰ يُقَاتِلُوكُمْ فِيهِ﴾ چې د مسجد حرام په خواؤشا د مکې مکرمې په ټول حرم کښې تاسو دغې خلقو سره ترهغې جنګ مه کوئ ترڅو چه هغوئ تاسو سره جنګ نه وی شروع کړې.

**مسئله**: د مکې مکرمې په حرم کښې د ښکاری ځناورو ژل هم ناروادی بنیادم خولا پرېږده لیکن جمهور فقهاء په دې متفق دی چې د خپل بچاؤله خاطره [چه څوک پرحمله اوکړی نو حرم کښې هم هغه سره جنګ کول روادی].

**مسئله**: ددې آیت نه دا هم معلومیږی چې خاص دمکې په ټول حرم کښې جنګ او جهاد شروع کول منع دی په نورو ځایونو کښې جهاد شروع کول هغسې روا دی څنګه چې دفاعی جهاد ضروری دی

فَإِنِ انْتَهَوْا　فَإِنَّ اللَّهَ　غَفُورٌ

| اوکه چری منع شو هغوئ | نو بیشکه چی الله | معاف کونکې

| بیا که هغوئ [دجنګ نه] منع شی نو الله پاک بښونکې

رَّحِيمٌ ۝　وَقَاتِلُوهُمْ　حَتَّىٰ　لَا تَكُونَ　فِتْنَةٌ　وَيَكُونَ

رحم کونکې دې | او جنګ کوئ دهغوئ سره | تر هغې پورې | چی پاتې نشی | فتنه | اوشی

مهربان دې | او تاسو ورسره ترهغې وخته پورې جنګیږئ چې فتنه [کفر او شرک] پاتې نشی او شی

الدِّينُ لِلَّهِ ۖ　فَإِنِ انْتَهَوْا　فَلَا عُدْوَانَ　إِلَّا عَلَى الظَّالِمِينَ ۝

دین خالص الله لره | نوکه چری منع شول هغوئ | نو بیا نه دې جائز زیاتې | مګر جائز دې په ظالمانو باندې

دین صرف د یو الله | نوکه هغوئ منع شو | نو دظالمانو نه بغیر په بل چا لاس اوچتول پکار نه دی

الشَّهْرُ الْحَرَامُ　بِالشَّهْرِ الْحَرَامِ　وَالْحُرُمَاتُ　قِصَاصٌ ۚ　فَمَنِ

میاشته حرامه | په بدله دمیاشتې حرامې کښې ده | اوټول عزتونه | په برابرئ دی | نو چاچی

معززه میاشت د معززې میاشت په بدله کښې ده | اودټولو محترمو څیزونو خیال برابر ساتل دی | نوکه چا

اعْتَدَىٰ عَلَيْكُمْ　فَاعْتَدُوا　عَلَيْهِ　بِمِثْلِ　مَا　اعْتَدَىٰ

زیاتې اوکړو په تاسو | نو زیاتې اوکړئ تاسو | په هغه باندې | پشان | دهغې | چی زیاتې ئې کړې وو

په تاسو ظلم اوکړو | نو تاسو هم په هغه باندې هومره قدرې زیاتې اوکړئ | څومره زیاتې چې هغه په تاسو

عَلَيْكُمْ ص　وَاتَّقُوا اللَّهَ　وَاعْلَمُوا　أَنَّ اللَّهَ　مَعَ　الْمُتَّقِينَ ۝

په تاسو باندې | او اویریږئ دالله نه | اوپوهه شئ | بیشکه چی الله | ملګرې دې | دپرهیزګارانو

باندې کړې وی | او دالله نه ویره کوئ | او په دې پوهه شئ چې الله د [هغې] پرهیزګارو ملګرې دې | [چې تجاوز نه کوی]

وَأَنْفِقُوا　فِي سَبِيلِ اللَّهِ　وَلَا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ　إِلَى التَّهْلُكَةِ ۛ　وَأَحْسِنُوا ۛ

او خرچ کوئ | په لار دالله کښې | اومه غورزوئ [ځانونه] په لاسونو خپلو | هلاکت ته | اواحسان کوئ

او دالله په لار کښې [مال] خرچ کوئ | او په خپلو لاسونو ځان هلاکت ته مه غورزوئ | اواعمال کوئ

إِنَّ اللَّهَ　يُحِبُّ　الْمُحْسِنِينَ ۝

بیشکه الله | خوښوی | احسان کونکی |

بیشکه الله نیکان خلق خوښوی |

## آسان ترجمه قرآن

بیا که هغوی منع شی نو بیشکه الله ډیر بخښونکې، ډیر مهربان دې او تاسو دهغوی سره جنګ کوئ تردې چه فتنه پاتې نه شي اودین د الله شي بیا که هغوی منع شي نو (پوهه شئ چه) زیاتې کول سوا د ظالمانو نه په بل هیچا نه دی کول پکار د حرمت والا میاشتې بدله د حرمت والا میاشت ده. او په حرمتونو باندې هم د بدلې احکام جاري کیږي نو که څوك په تاسو زیاتې اوکړي نو تاسو هم دغسې زیاتې په هغه باندې اوکړئ څنګه زیاتې چه هغه په تاسو باندې کړې وی. او د الله نه ویریږئ او پوهه شئ چه الله هم دهغه چا سره دې څوك چه دهغه ویره په زړه کښې ساتي او د الله په لاره کښې مال خرچ کوئ او خپل ځانونه پخپله خپلو لاسونو سره په هلاکت کښې مه اچوئ او نیکي اختیار کړئ بیشکه الله د نیکې کونکو سره محبت کوی.

## خلاصه تفسیر

﴿فَإِنِ انْتَهَوْا فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ بیا که چرې [دجنګ شروع کولونه بعدهم] هغه خلق یعنی دمکې مشرکان دخپل کفرنه] منع شی [او اسلام قبول کړی] نو [دهغوی اسلام به بې قدره نشی ګڼړلې بلکه] الله ﷻ به یئ [هغه تیرشوی کفر] او بخښی او [دبخښنې نه علاوه بې شمیره نعمتونه به ورکړی او په دوی به] مهربانی اوکړی او [که چرې هغه خلق اسلام راونړی نو اګر چه دنورو کفارو دپاره اسلامی قانون دادې چه هغوی داسلامی حکومت حکم منی اوجزیه ورکوی نو دهغوی وژل روا نه دی بلکه دهغوی دټولو حقوقو حفاظت په اسلامی حکومت باندې دے مګر اهل عربو کفارو دپاره دجزیې قانون نشته دهغوی دپاره صرف دوه لارې دی یا خو به اسلام راوړی او یا به وژلے شی نوپه دې وجه] ﴿وَقٰتِلُوهُمْ حَتّٰى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ﴾ هغوی سره ترهغې جنګ کوئی چه [هغوی کښې] دعقیدې ګند] پاتې نشی ﴿وَيَكُونَ الدِّينُ لِلّٰهِ﴾ او [دهغوی] دین [صرف] هم دالله ﷻ شی [اودچا مذهب خالص دالله ﷻ کیدلو مطلب دادې چه هغه اسلام قبول کړی] ﴿فَإِنِ انْتَهَوْا فَلَا عُدْوَانَ إِلَّا عَلَى الظّٰلِمِينَ﴾ اوکه چرې هغه خلق [کفر نه] راواوړی [چه دهغې ذکر هم اوس شوې دې] نو [په آخرت کښې دبخښنې او رحمت جوګه کیدو سره هغوی دپاره تاسوته دنیا کښې دا قانون خودلے شی چه دسزا] سختی په چا نشی کولې بغیر د بې انصافو خلقو [چه دبې انصافۍ په طریقه دالله ﷻ احسانات هیر کړی اوکفر اوشرك کوی کله چه هغې خلقو اسلام راوړلو نو بې انصافه پاتې نشو ددې وجې دقتل غوندې سختے سزا حکم هم پاتې نشو او ائې مسلمانانو تاسو داشك شبه اوفکر مه کوئی چه ګنی کفاربه فیصله ماته کړی نودمیاشے یعنی حرامے میاشتې یعنی ذی القعده کښې به بیا تاسوهم ورسره جنګ کوئی]. نو دې څخه بې فکره شی ځکه چې:

﴿اَلشَّهْرُ الْحَرَامُ بِالشَّهْرِ الْحَرَامِ﴾ عزتمنده میاشت [کفارو سره دجنګ کولو نه تاسو لره بندوونکې کیدلې شی] ده په بدل [ددې کښې چه ددې] عزت مندے میاشتې [په وجه هغوی هم تاسو سره جنګ نه کوی] ﴿وَالْحُرُمٰتُ قِصَاصٌ﴾ او [وجه داده چه] دا عزتونه [لحاظونه] خو د بدل څیزونه دی [څوك چه تاسو سره د عزتونو لحاظ ساتی نو تاسو هم لحاظ ساتنی او] ﴿فَمَنِ اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوا عَلَيْهِ﴾ چه څوك په تاسو [دداسې حرمتونو لحاظ اونکړی] زیاتے اوکړی نو تاسو به په هغه زیاتے

کوئی ﴿بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ﴾ لکه په تاسو چه هغه زياتے کړې دې [اوددې ټولو حکمونو په ځائې راوړلو کښې] ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ﴾ د الله ﷻ نه ويرېږئ [چه په هيڅ خبره کښې دقانون حد نه بهر نشئ] ﴿وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِيْنَ﴾ او يقين اولرئ چه الله ﷻ [په خپلې مهربانئ اورحمت سره] دے ويريدونکو سره وی

**لسم حکم جهاد کښې مال خرچ کول** ﴿وَاَنْفِقُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾ او تاسو خلق [د ځان ورکولو سره مال هم] لګوئی دالله ﷻ په لار [جهاد] کښې ﴿وَلَا تُلْقُوْا بِاَيْدِيْكُمْ اِلَى التَّهْلُكَةِ ۚ وَاَحْسِنُوْا ۚ﴾ او خپل ځانونه د خپله لاسه په تباهئ کښې مه اچوئی [چه په داسې ځايونو کښې دځان ورکولو سره په مال لګولو کښې بخل کوئی او ددې نتيجه کښې ستاسو ضعيف اوکمزورے مخالف قوی اومضبوط شی او دا بالکل تباهی ده] او [چه کوم] کار [کوئی] په ښه شان سره يئ کوئ [لکه په دې موقع مال لګوئی نو د زړه داخلاصه په خوشحالئ اوپه ښه نيت سر ه يئ لګوئی] ﴿اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ﴾ بيشکه الله ﷻ خوښوی په ښه طريقه کارکوونکو لره.

## معارف او مسائل

قوله تعالٰی: ﴿اَلشَّهْرُ الْحَرَامُ بِالشَّهْرِ الْحَرَامِ وَالْحُرُمٰتُ قِصَاصٌ ۭ﴾: دَصلح حديبئې دَقانون په جوړ دَهجرت په اووم کال چې کله نبی کريم ﷺ صحابه کرام ﷺ ځان سره واغستل او دَقضاعمرې اداکولو دَپاره روان شونو صحابه کرام ﷺ دکفارو په لوظ قول او صلح اعتباريان نهٔ وو ځکه ئې دا ويره پيدا شوه چې کفار که جنګ کوی نو صحابه کرام ﷺ به يو خو په مکه کښې په جنګ کولو مجبورشی چې اسلام کښې ناجائزدی، ددې جواب په تيرشوې آيت کښې ورکړې شو چه دَمکې دَحرم عزت او احترام کول په مسلمانانو لازم دی ليکن که چرې کفارو دغلته جنګ شروع کړونو تاسو له هم دغلته دفاعی جنګ کول روا دی.

دوئيمه تلوسه او اشکال ئې داوؤ چې دَمياني مياشت کښې جنګ راتلو کومه چې حرامه مياشتو کښې حساب ده اوپه دې مياشت کښې په هيڅ ځائ کښې هم جنګ کول روانهٔ دې نو ددې جواب کښې داآيت نازل شو مطلب ئې دادې چې کفارجنګ شروع کړی نو مسلمانانولره دفاعی جنګ کول جائزدې لکه څنګه چې حرم مکه کښې دَدفاعی جنګ اجازت ورکړې شو.

**مسئله** حرمت والامياشتې څلوردی، ذې القعده [دَمياني مياشت] ذی الحجه [دَلوئې اختر مياشت] محرم. [دَعاشورې مياشت] اورجب [بزرګه مياشت] دَاسلام نه وړاندې هم دې څلورو مياشتو کښې جنګ حرام ګڼرلې شو او دَمکې مشرکان هم ددې پابند وو او اسلام کښې تر اوو کالو دَهجرت پورې هم داقانون جاری وو نو ځکه صحابه کرامو ﷺ ته داګرانه پيښه شوه ځکه دې نه پس دَجنګ داحرمت منسوخ شو او په اجماع امت سره دَعام جنګ اجازت ورکړې شو مګر اوس هم دابهتره ده چې دې څلورو مياشتو کښې جنګ شروع نکړې شی صرف دفاعی جنګ دې کولې شی به دې بنياد به دا وينا صحيح وی چې دمياشتو حرامو حرمت اوس هم باقی دې منسوخ نهٔ دې لکه چې صرف داسې صورت په حرم مکه کښې دَضرورت په بنياد جائزکړې شوې وو دپه عام ډول دَهغې حرمت اوس هم منسوخ نهٔ دې.

**لسم حکم دجهاددپاره مال لګول** قوله تعالٰی: ﴿وَاَنْفِقُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾ په دې حکم سره په مسلمانانو باندې دا حکم لازم سوې دې چې دَضرورت په جوړ جهاد [دَ الله ﷻ په لار] کښې خپل مالونه نکړی

فقهاؤ دَدي نه دا حکم ثابت کړي دي چې په مسلمانانو دَفرض زکواة ورکولو نه علاوه خپل مالونه په نورو ځايونو کښې هم لګول فرض دي چې هغه دَزکواة پشان نهٔ خو هميشه دَپاره وي او نهٔ هغې دَپاره څه نصاب او اندازه ټاکلې شوې ده، بلکه په هر مسلمان دا فرض دي چې دَضرورت په جوړېه جهاد کښې خپل مالونه اولګوي که ضرورت نهٔ وُ نو بيا فرض نهٔ دي.

قوله تعالىٰ: ﴿وَلَا تُلۡقُوۡا بِاَيۡدِيۡكُمۡ اِلَى التَّهۡلُكَةِ ۛ﴾ لفظي معنې ښکاره ده چې دَخپله لاسه خپل ځان هلاکت کښې غورځول منع دي. په هلاکت کښې دَخپل ځان غورځول دلته اوس څه معنى لري؟ په دې کښې مفسرين مختلف اقوال کوي، امام جصاص رحمه الله جلد ۱، ص ۳۰۹ په خپل خيال کښې دَدې ټولو جوړښت راولي او وائي چې دا ټول قولونه مراداغستې شي. حضرت ابو ايوب انصاري رضي الله عنه فرمائيلي دي، چه دا آيات زمونږ په باره کښې نازل شوې دي مونږ دَدې په تفسير ښه پوهيږو. خبره داوه چې اسلام څه وخت دَالله په فضل غالب او قوي شو نو مونږ دا خبرې اترې اوکړې چې اوس دَجهاد څه ضرورت دې؟ خپل وطن کښې به پاتې کيږو او خپل مال او جائيداد به سنبالوو نو دا آيت نازل شو چه دائې اوښودل چې هلاکت نه مطلب جهاد نهٔ کول دي او دې نه ثابته شوه چې دَجهاد نهٔ کول او پريښودل دَمسلمانانو دَهلاکت او تباهئ موجب دي. هم دغه وجه ده چې حضرت ابو ايوب انصاري رضي الله عنه ټول عُمر جهاد اوکړو تردې چې قسطنطنيه کښې شهيد شو. او هلته د فن شو. دَحضرت ابن عباس رضي الله عنه، حذيفه رضي الله عنه، قتاده رضي الله عنه مجاهد رحمه الله، ضحاک رحمه الله غوندې امامانو دَتفسيرنه هم دا رنګ مضمون نقل دې.

حضرت براء بن عازب رضي الله عنه فرمائ چې دَخپلو ګناهونو په وجه دَ الله ﷻ دَرحمت او مغفرت نه نااميدي کول دَخپله لاسه ځان هلاکول دي نو ځکه داسې نااميده کيدل حرام دي.

څه عالمانو دا هم فرمائيلي دي چې دَالله په لار کښې داسې بيحده زيات مال لګول ځان دَخپله لاسه هلاکول دي، او [ناجائز] اسراف دې په کوم سره چې دَاهل وعيال او بال بچ [بچيانو] حق ضائع کيږي، څه علماء دَهلاکت دا مطلب بيانوي چې دَښمن سره په جنګ کولو کښې خپله بربادي او شکست په اندازه لګولو ويني ګوري او بيا هم ورسره جنګ کوي.

څنګه چې امام جصاص رحمه الله اوس اوس اوفرمائيل دا ټول احکام دَدې آيت نه ثابتيږي.

﴿وَاَحۡسِنُوۡا ۛ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الۡمُحۡسِنِيۡنَ﴾ دا جُمله دَټولو کارونو په ښه ډول دکولو شوق را بيدا روي. کار په ښه ډول کولو ته، قرآن، احسان، وائ، دا احسان يو په عبادت کښې او دوئيم په خپلو معاملو او بنيادمو سره په روازنه تعلقاتو کښې کيدې شي لکه نبى کريم ﷺ حديث جبريل عليه السلام کښې د احسان تفسير داسې فرمائ چې عبادت داسې کوئ لکه چې تاسو خدائې تعالى وينئ ګورئ که دا تصور نهٔ شئ قائمولې نو کم ازکم دا اعتقاد جوړول خو ډير ضروري دي چې خدائې تعالى تاسو ويني.

او دَخپل مينځ په معاملو او امروزه تعلقاتو کښې دَاحسان تفسير دَمسند احمد رحمه الله په حواله حضرت معاذ رضي الله عنه دَنبي کريم ﷺ نه داسې روايت کوي چه، تاسو دَټولو خلقو دَپاره هم هغه خوښوئ کوم چې ځان دَپاره خوښوئ او کوم يو څيزچه ځان دَپاره بد ګنړئ هغه دَنورو دَپاره هم بد ګنړئ. [مظهري]